# الدر المنضود

## فی حل

# سنن أبي داؤد

**افادات**:- حضرت مولانا محمد عاقل صیب

صدرمدرّس مظاهرالعلوم سهارنپور (هند)

**مترجمین**:

[ رفقاء ] دار التصنیف والتحقیق

**زیر نگرانی**

**مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس**

**پښتو............................اووم جلد**

**خصوصیات**

① دکتاب په اول کښې د اصول حدیث مفیده مقدمه.
② د بذل المجهود شرح أبي داود عربی شرحې خلاصه اونجوړ
③ د متن ټولو احادیث ته اعراب ورکول
④ د هرکتاب په اول کښې هغې سره متعلقه ضروری مباحث.
⑤ د هر حدیث تخریج د مصدر، کتاب او رقم په حوالې سره.
⑥ د مشکلولغاتو حل.
⑦ په فقهی مباحثوکښې د مذاهبو بیان.
⑧ دفریق مخالف دلائل
⑨ د فریق مخالف ددلائلو ښځه جوابونه.
⑩ د مذهب حنفی دلائل او وجوه ترجیح

**خورونکی**

**فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور**

د کتاب نوم: الدر المنضود فی حل سنن أبی داؤد

مؤلف: حضرت مولانا محمد عاقل صاحب دامت برکاتہم

زیرنگرانی:- مولانا شاہ فیصل فاضل وفاق المدارس

خورونکی: فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

## د ملاویدو پتې

- مکتبه فخر الدین رازی هرات [نمائنده فیصل کتبخانه درهرات]
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موئے مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوٰی کتب خانه جلال آباد
- نعمت کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- حقانیه کتب خانه گردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- گودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل

خپرونکي

# فیصل کتب خانه

مدینه ټاور محله جنگی پیښور قصه خوانئ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست ابواب و مضامین

| شمار | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

بسم الله الرحمن الرحیم

# كِتَابُ الْأَيْمَانِ وَالنُّذُوْرِ

## د قسمونو او نذر (منښتې) منلو بیان

**مباحث اربعه علمیه مفیده:** دلته څو امور قابل ذکر دی:

۱: د دې کتاب د ماقبل سره مناسبت.

۲: د ایمان او نذور دواړو یو ځائې کښې د جمع کولو وجه یعنی د دواړو ترمینځه مناسبت او وجه الجمع.

۳: د یمین او نذر هر یو لغوی او شرعی معنی.

۴: د یمین او نذر احکام او اقسام.

**بحث اول:**

د دې کتاب مناسبت د کتاب الجنائز سره دا دې چه دا خو ښکاره ده چه د جنائز تعلق د مرګ سره دې نوځنګه چه په مرګ کښې سلب اختیار وی د الله پاک د طرف نه نو هم دغه شان یمین هم دسلب اختیار یوسبب دې ځکه چه د نذراو د یمین د وجې نه امر مباح شرعا واجب کیږی، او د یو څیز د واجب کیدونه پس دهغې دترک اختیار باقی نه پاتې کیدل ښکاره دی.

**بحث ثانی:**

د دې نه پس په دې باندې ځان پوهول پکار دی چه عام طور سره په کتابونو د حدیثو کښې ایمان او نذور یو ځائې بیان کړې شوې دی لکه دلته په ابوداؤد کښ، او هم دغه شان په صحیح بخاری، ترمذی او نسائی کښ، چه د هغې وجه د امام ابن ماجه رحمه الله د طرز نه معلومه شوه چه هغوی په خپل سنن کښې یو عنوان قائم کړې دې، ابواب الکفارات، او بیا ئې د هغې د لاندې خو ابواب د ایمان سره متعلق او بیا د هغې نه روستو څو ابواب د نذر متعلق۔ ذکر کړی دی د هغوی د دې کار نه د ایمان او نذور د یو ځائې جمع کولو راز معلوم شو، هغه دا چه دا دواړه په حکم د کفاره کښې مشترک دی، نو ځنګه چه د بعض ایمان په احکاماتو کښې وجوب کفاره ده هم دغه شان د نذر په بعض صورتونو کښې کفاره واجب وی، په ابوداؤد کښې وړاندې یو حدیث را روان دې، کفارة النذر کفارة الیمین او په ترمذی کښې دی ﴿کفارة النذر اذا لم یسم کفارة الیمین﴾ او د دې وجه اوصولا دا ده چه یمین د نذر د موجباتو او لوازمو نه دې ﴿لان النذر ایجاب المباح وهو یستلزم تحریم الحلال، وتحریم الحلال یمین، بدلیل قوله تعالی: یایها النبی لم تحرم ما احل الله لک.... قاله الشیخ دهلوی ((فی اللمعات)) کما فی حاشیة ابن ماجة.

**بحث ثالث:**

ایمان جمع د یمین ده او د یمین لغوی معنی ده لاس یعنی ښې لاس، بیا د دې اطلاق په قسم باندې هم کیږی، لانهم اذا تحالفوا اخذ کل بیمین صاحبه، یعنی د خلقو عادت دې چه کله هغوی خپل مینځ کښې قسمونه خوری نو هغه وخت د یو بل سره لاسونه ملاوهی، د دې

مناسبت د وجې نه په حلف باندې د یمین اطلاق او شو، او دا هم وئیلې شوې دی چه د ښی لاس کار یو څیز لره محفوظ کول دی، هم په دې مناسبت سره په حلف باندې د یمین اطلاق شروع شو، او دا هم وئیلې شوې دی چه د ښی لاس کار یو څیز لره محفوظ کول دی، بیا د دې اطلاق په حلف باندې څکه کړې شوې دې چه د محلوف علیه سرې رعایت او حفاظت کوی، او د یمین شرعًا دا تعریف کړې شوې دې ﴿ توكيد شئ بذكر اسم او صفة لله تعالى ﴾ د الله پاک نوم یا د هغه صفت ذکر کولو سره دیو څیز مضبوط او موکد کول. ﴿ قال الحافظ : وهذا اخصر التعريف واقربها ﴾

نذورجمع د نذرده چه دهغې معنی ده انذار اوتخویف، اوامام راغب رحمه الله ددې تعریف (شرعا) داسې کړې دې ﴿ ايجاب ما ليس بواجب لحدوث امر ﴾ یعنی د انسان په خپل ځان باندې یو څیز واجب کول کوم چه په هغه باندې واجب نه وو د څه امر د موجود کیدو په وخت، لکه چه داسې اووئیلې شی ﴿ ان فزت فى الاختبار فعلى صوم ﴾ چه که زه په امتحان کښې کامیاب شوم نو زما په ذمه یو روژه ده، دلته صوم لره چه یو غیر واجب څیز دې په خپل ځان باندې واجب کړې شوې دې د حدوث امر یعنی په امتحان کښې د کامیابئ د وجې نه.

**بحث رابع :**

په حاشیه د لامع کښې حضرت شیخ د ایمان او نذور اقسام ذکر کړی دی، او په الابواب والتراجم کښې مجمل لیکلې شوې دی، فالاول على خمسة انواع، والثانى على سبعة انواع.... د ایمان درې قسمونه ډیر زیات مشهور دی، یمین منعقده، یمین غموس، یمین اللغو، وړاندې په ابوداؤد کښې یو مستقل باب را روان دې ﴿ باب لغو اليمين ﴾ دا اقسام به سره د هغې د احکامو انشاء الله هلته بیانولې شی.

## بَابُ التَّغْلِيظِ فِي الْأَيْمَانِ الْفَاجِرَةِ

### په دروغه د قسم کولو د ګناه او د عذاب بیان

په دې باب کښې د یمین غموس ذکر دې او په را روان باب کښې هم، فاجرة په معنی د کاذبة، یعنی قصدا په دروغه قسم کولو باره کښې چه کوم وعید راغلې دې، د یمین غموس تعریف دا کړې شوې دې چه په یو امر ماضی باندې قصدا خلاف واقع قسم اوخورلې شی، لکه چه دا اوئیلې شی چه والله ما فلانې کار کړې دې حال دا چه هغه نه وی کړې، یا لکه چه د بل د مال په باره کښې دا قسم اوخوری چه دا زما ملک دې، یمین غموس ته غموس په دې وجه وئیلې شی چه دا خپل صاحب لره په ګناه کښې ډوب کړی او بیا په جهنم کښې.

**په یمین غموس کښې د کفارې وجوب شته که نه؟ :**

په یمین غموس کښې د جمهوروعلماء کرامو په نزد کفاره نشته، صرف معصیت او اثم دې، او د امام اوزاعی او امام شافعی رحمه الله په نزد په دې کښې کفاره واجب کیږی، جمهور وائی چه دا دومره لویه ګناه ده چه د دې نقصان په کفارې سره نه شی پوره کیدلې، او کوم

خلق چه د وجوب دکفارې قائل دی هغه وائی چه انه احوج الی الکفارة من غیره، چه په دې کښې خو د کفارې نور هم زیات حاجت دې.

[۳۲۴۲](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ مَصْبُورَةٍ كَاذِبًا، فَلْيَتَبَوَّأْ بِوَجْهِهِ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ".

دعمران بن حصین رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوك چه قید کړې شي (په قسمت سره اوبې ضرورته) په دروغه قسم اوکړي نوهغه دخان دپاره په جهنم کښې کور تیارکړو.

﴿من حلف على يمين مصبورة كاذبا فليتبوا بوجهه مقعده من النار﴾

یمین مصبوره هغه قسم ته وئیلې شی کوم چه د انسان نه د قاضی په مجلس کښې اودرولو سره واخستلې شی، ﴿صبر﴾ په معنی د حبس دې ته یمین صبر هم وائی او د یمین صفت ﴿مصبوره﴾ مجازا راوړلې شوې دې، مصبور خو په اصل کښې هغه صاحب یمین دې مګر چونکه هغه د قسم د وجې نه بند کړې شوې دې په دې وجه د صبر نسبت یمین طرف ته کړې شوې دې مجازا او اتساعا (خطأبي)

رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم انسان د قاضی په مجلس کښې په دروغه باندې قسم اوخوری هغه له خپلې استوګنې ته کوم چه په دوزخ کښې ده تلل پکار دی رسول الله ﷺ سوا د دې وعید نه د کفارې ذکر اونکړو د دې نه د جمهورو تائید کیږی یعنی عدم وجوب کفارة فی الیمین الغموس.

## بَابٌ فِيمَنْ حَلَفَ يَمِينًا لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالاً لأَحَدٍ

### دچا د مال دغصب کولو دپاره په دروغه د قسم کولو بیان

[۳۲۴۳](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَهَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ الْمَعْنَى قَالاَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ هُوَ فِيهَا فَاجِرٌ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ، لَقِيَ اللَّهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ"، فَقَالَ الأَشْعَثُ: فِيَّ وَاللَّهِ كَانَ ذَلِكَ، كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ مِنَ الْيَهُودِ أَرْضٌ، فَجَحَدَنِي، فَقَدَّمْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟"، قُلْتُ: لاَ، قَالَ لِلْيَهُودِيِّ: "احْلِفْ"، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِذًا يَحْلِفَ وَيَذْهَبَ بِمَالِي، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا سورة آل عمران آية ٧٧ "إِلَى آخِرِ الآيَةِ.

دعبدالله بن مسعود نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه الصلاة والسلام فرمائیلی دی چه څوك په څه خبره قسم وخوري او په دغه قسم کښې دروغژن وي ددې دپاره چه دیو مسلمان

(١): تفرد به أبوداود، ١(تحفة الأشراف: ١٠٨٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٦/٤، ٤٤١) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/المساقاة ٤ (٢٣٥٦)، والخصومات ٤ (٢٤١٦)، والرهن ٦ (٢٥١٥)، والشهادات ١٩ (٢٦٦٦)، ٢٠ (٢٦٦٩)، ٢٣ (٢٦٧٣)، ٢٥ (٢٦٧٦)، تفسير آل عمران ٣ (٤٥٤٩)، الأيمان ١١ (٦٦٥٩)، ١٧ (٦٦٧٦)، الأحكام ٣٠ (٧١٨٣)، التوحيد ٢٤ (٧٤٤٥)، صحيح مسلم/الإيمان ٦١ (١٣٨)، سنن الترمذي/البيوع ٤٢ (١٢٦٩)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٨ (٢٣٢٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٧/١) (صحيح)

مال غصب کړي نودې به دالله تعالى سره په دې شان سره ملاویږي چه الله تعالى به په ده باندې غصه وي اشعث وئيلى دى په الله قسم نبى ﷺ داحديث زماپه باره کښې وئيلې وو ځکه چه زما او ديويهودي شريکه زمکه وه ماته ئې زمادحصې دراکولونه انکارکړې وو نوما نبى ﷺ ته بوتلو نبى ﷺ زمانه تپوس اوکړو ايا ګواه درسره شته؟ ما عرض اوکړو نشته بيائې يهودي ته اووئيل چه ته به قسم کوې ماعرض اوکړو اې دالله رسوله داخو يهودي دې په دروغه به قسم اوکړي اوزما مال به غصب کړي په دې وخت کښې الله تعالى دا ايت نازل کړو:﴿إن الذين يشترون بعهد الله وأيمانهم ثمنا قليلا﴾ إلى آخرالآية.

**قوله:** ﴿ عن عبدالله قال قال رسول اللهﷺ..... فقال الاشعث فى والله كان ذلک، كان بينى وبين رجل من اليهود ارض الخ ﴾

دا حديث د عبدالله بن مسعود ﷺ دې چه رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه کوم انسان په يو څيز باندې قسم اوخورى په داسې حال کښې چه په هغې کښې دروغژن وى، او د دې دپاره چه د دې قسم په ذريعه د يو مسلمان مال لره واخلى نو د هغه سړى انجام به دا وى چه هغه به د قيامت په ورځ د الله پاک سره په داسې حال کښې ملاقات اوکړى چه هغه به په دهٔ باندې غصه وى. اشعث بن قيس کندى دې حديث اوريدو سره اوويې : والله د دې حديث وردو خو زما په قصه کښې شوې وو، بيا وراندې هغوى هغه قصه بيان کړه چه زما او د يو يهودى ترمينځه زمکه وو، يعنى په کوم باندې چه هغه يهودى قابض وو چه دهغې د واپس کولو نه چه هغه انکار کولو، ما دايهودى اونيولو او د رسول اللهﷺ په خدمت کښې مې حاضر کړو، اشعث وائى : رسول اللهﷺ زما نه تپوس اوکړو آيا تاسره ګواهان شته؟ ما عرض اوکړو نه، رسول اللهﷺ يهودى ته اوفرمائيل چه ته قسم اوخوره، ما عرض اوکړو يا رسول اللهﷺ دا دروغژن سړې دې قسم به اوخورى او زما مال به يوسى، په دې باندې دا آيت کريمه نازل شو:

﴿ ان اللذين يشترون بعهد الله وايمانهم ثمنا قليلا، الى آخر الاية ﴾

دا آيت او حديث دواړه په دې خبره باندې دال دى لکه چه علماء کرامو وئيلې دى چه په يمين غموس کښې کفاره نشته.

[۳۲۴۴]([1]) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنِي كُرْدُوسٌ، عَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ قَيْسٍ: أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِنْدَةَ، وَرَجُلًا مِنْ حَضْرَمَوْتَ، اخْتَصَمَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَرْضٍ مِنَ الْيَمَنِ، فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أَرْضِي اغْتَصَبَنِيهَا أَبُو هَذَا، وَهِيَ فِي يَدِهِ"، قَالَ: هَلْ لَكَ بَيِّنَةٌ؟، قَالَ: لَا، وَلَكِنْ أَحْلِفُهُ وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَنَّهَا أَرْضِي، اغْتَصَبَنِيهَا أَبُوهُ، فَتَهَيَّأَ الْكِنْدِيُّ لِلْيَمِينِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَقْتَطِعُ أَحَدٌ مَالًا بِيَمِينٍ، إِلَّا لَقِيَ اللَّهَ وَهُوَ أَجْذَمُ، فَقَالَ الْكِنْدِيُّ: هِيَ أَرْضُهُ".

داشعث بن قيس نه روايت دى چه دکنده قبيلې يوکس اودحضرموت علاقتي يوکس دزمکې متعلق نبى ﷺ ته فيصله راوړله چه هغه زمکه ديمن په حضرموت کښې و حضري

[1]: سنن النسائي/الكبرى ۴۷ (۶۰۰۲)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۲۹ (۲۸۳۵)، (تحفة الأشراف: ۱۵۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۱/۵، ۲۱۲) ويأتي هذا الحديث في الأقضية (۳۶۲۲) (صحيح)

اووئيل اې د الله رسوله دده پلار زمازمکه غصب کړې وه اوهغه اوس دده سره ده نبی ﷺ اوفرمائيل اياګواهان دې شته ده اووئيل نه مګر قسم به ورکوم الله عالم دې چه دغه زمازمکه ده دده پلاررانه غصب کړې وه، نوکندی قسم کولوته تيار شو نبی ﷺ اوفرمائيل څوك چه په قسم کولوسره دچا مال غصب کړي نوهغه به په قيامت کښې د الله تعالى سره په داسې حالت کښې ملاويږي چه لاسونه په ښپې په ئې پريکړې شوي وي کندی چه کله دا واوريدل نووئې وئيل يقينادادده زمکه ده.

﴿عن الاشعث بن قيس ان رجلا من كندة ورجلا من حضرموت اختصما الى النبى ﷺ فى ارض من اليمن فقال الحضرمى يا رسول الله ﷺ ان ارضى اغتصبنيها ابو هذا وهى ..الخ﴾

اشعث بن قيس رضی الله عنه فرمائی چه په يمن کښې يو زمکه وه چه د هغې په باره کښې ديو رجل کندی او د رجل خضرمی اختلاف او جهګړه شوه، حضرمی مدعی وو او کندی مدعی عليه، خضرمی عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ د دې کندی په قبضه کښې چه کومه زمکه ده هغه زما ده د دې کندی پلار هغه زمکه زما نه اخستلې وه، رسول الله ﷺ خضرمی ته اووې تاسره ګواهان شته؟ هغه اووې نه، او دا ئې هم اوفرمائيل چه زه په دې کندی باندې قسم خوړل غواړم چه هغه په خپل قسم کښې داسې اوائې: قسم په الله ما ته پته نشته چه دا زمکه د خضرمی ده او د دې خضرمی نه زما پلار غصب کړې ده، په دې باندې کندی داسې قسم خوړولو ته تيار شو، رسول الله ﷺ په دروغه قسم خوړلو باندې تحذير کولو سره اوفرمائيل چه کوم انسان په دروغه قسم خوړلو سره د بل مال واخلی نو هغه به د الله پاک سره په داسې حال کښې ملاقات اوکړی چه اجذم به وی (کندی په دې وعيد اوريدو سره اويريدو او) وې وئيل چه دا زمکه د هغه ده.

## دلته مصنف درې روايتونه ذکر کړی دی:

د دې حديث راوی اشعث بن قيس رضی الله عنه دی، د دې نه روستو حديث کښې هم دا قسم قصه را روانه ده چه د هغې راوی وائل بن حجر رضی الله عنه دې خو د وائل رضی الله عنه په روايت کښې داسی دی چه حضرمی مدعی دا اووې چه د کندی سره چه کومه زمکه ده هغه زما د پلار وه، چه په هغې باندې دا کندی قابض دې، او په ړومبی حديث يعنی د اشعث بن قيس رضی الله عنه په روايت کښې دا وو چه حضرمی مدعی دا اووې چه د کندی سره کومه زمکه ده د کندی پلار زما نه قبضه کړې وه دا دواړه روايات په دې خبره باندې متفق دی چه مدعی رجل حضرمی وو او مدعلی عليه رجل کندی، او د دې دواړو خلاف د باب ړومبی حديث د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دې په هغې کښې داسې دی چه خپله اشعث رضی الله عنه وائی چه زما زمکه د يو يهودی په قبضه کښې وه چه د هغې د ورکړې نه هغه انکار کولو او ما هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو د فيصلې دپاره،په دې صورت کښې مدعی خپله اشعث بن قيس شو اومدعی عليه يهودی شو.

## په روايات ثلاثه کښې تطبيق:

خان پوهول پکار دی چه په دويم او دريم حديث کښې چه خپل مينځ کښې کوم اختلاف دې هغه خو صرف د صفة ارض په باره کښې دې په يو کښې دا دی چه زما د پلار زمکه وه چه

په هغې باندې دې قابض دې او په يو کښې دا دی چه زما زمکه ده کومه چه د هغه پلار قبضه کړې وه، او د باب په رومبی حديث يعنی د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه والا حديث چه په هغې کښې مدعی خپله اشعث بن قيس کندی دی او مدعی عليه يهودی دې، او د اشعث بن قيس او وائل بن حجر رضی الله عنهما په حديث کښې مدعی رجل حضرمی او مدعی عليه رجل کندی دې، سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ډيرو روايتونو لره مخې ته د ږدلو نه پس دا رائې قائم کړې ده چه دا اختلاف دې په تعدد دواقعې باندې محمول کړې شی، د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د حديث واقعه بيله ده، او کوم احاديث چه روستو ذکر شوې دی هغه نور دی، امام بخاری رحمه الله په خپل صحيح کښې د دې دوارو نه صرف د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه والا قصه اخستلې ده.

[۳۲۴۵](۱) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ مِنْ حَضْرَمَوْتَ، وَرَجُلٌ مِنْ كِنْدَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ هَذَا غَلَبَنِي عَلَى أَرْضٍ كَانَتْ لِأَبِي، فَقَالَ الْكِنْدِيُّ: هِيَ أَرْضِي فِي يَدِي أَزْرَعُهَا، لَيْسَ لَهُ فِيهَا حَقٌّ، قَالَ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْحَضْرَمِيِّ: أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟، قَالَ: لَا، قَالَ: فَلَكَ يَمِينُهُ؟، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُ فَاجِرٌ لَا يُبَالِي مَا حَلَفَ عَلَيْهِ، لَيْسَ يَتَوَرَّعُ مِنْ شَيْءٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ لَكَ مِنْهُ إِلَّا ذَاكَ، فَانْطَلَقَ لِيَحْلِفَ لَهُ، فَلَمَّا أَدْبَرَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا لَئِنْ حَلَفَ عَلَى مَالٍ لِيَأْكُلَهُ ظَالِمًا، لَيَلْقَيَنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ وَهُوَ عَنْهُ مُعْرِضٌ".

د وائل بن حجر نه روايت دې فرمائی چه يو کس دحضر موت نه راغې اوبل دکنده قبيلې د علاقې نه او نبی عليه السلام ته ئې جګړه راوړله حضرې اووئيل اې دالله رسوله يقينادا کس په ما باندې زورور شوې دې دهغې زمکې په باره کښې کومه چه زمادپلار وه، کنده اووئيل دا زما زمکه ده زما په لاس کښې ده اوزه ئې کرم دده په کښې هيڅ حق نشته وائل وائی نبی عليه السلام حضرمی ته اوفرمائيل اياګواهان درسره شته هغه اووئيل نه نبی عليه السلام اوفرمائيل نو بيا به دابل کس ستاپه وړاندې قسم خوري هغه اووئيل اې دالله رسوله دا خو يو بدعمله لوپردې دقسم کولوهيڅ پروا نه ساتې اودهيڅ يوشی نه نه ويريږی نبی عليه السلام او فرمائيل ستاددې نه علاوه نورحق نشته دې مګر دا نوهغه روان شو چه قسم اوکړي ده ته چه هرکله ئې شاه کړه نبی عليه السلام اوفرمائيل اوګورئ که چرې څوک دچامال په ظلم سره دغصب کولودپاره په دروغه قسم اوخوري نودالله تعالی سره به په داسې حال کښې مخامخ کيږي چه مخ به ئې ترې اړولی وی.

حديث ابن مسعود رضی الله عنه اخرجه البخاری والترمذی ومسلم والنسائی وابن ماجة، وحديث اشعث بن قيس سکت عليه المنذری، وحديث وائل بن حجر اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

۱): صحيح مسلم/الإيمان ۶۱ (۱۳۹)، سنن الترمذي/الأحكام ۱۲ (۱۳۴۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۶۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۷/۴) ويأتي هذا الحديث في القضا (۳۶۲۳) (صحيح)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي تَعْظِيمِ الْيَمِينِ عِنْدَ مِنْبَرِ النَّبِيِّ

### د نبی علیه السلام د منبر خواته په دروغه قسم کول ډیره لویه ګناه ده

### تغليظ اليمين بالزمان والمكان:

تعظیم بمعنی تغلیظ.....او د ترجمة الباب حاصل تغليظ اليمين بالمكان دی، یعنی قسم لره معظم او غلیظ کول د مکان مقدس په ذریعه لکه مسجد یا منبر شریف ته نزدې چاله قسم ورکول، او هم دغه شان تغليظ بالزمان لکه جمعة یا بعد العصر وغیره، تغليظ اليمين بالزمان وی یا بالمكان وی احناف د دې قائل نه دی، شوافع او مالکیان ئې قائل دی، وعن الحنابلة روایاتان، هسې زمونږ د فقهاء کرامو عبارتونه لږ مختلف دی، ففی الدر المختار لا يستحب تغليظ اليمين بزمان ولا مكان، قلت وحاصله الاباحة، وفی البحر، لا يجوز.

[۳۲۴۶](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نِسْطَاسٍ مِنْ آلِ كَثِيرِ بْنِ الصَّلْتِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحْلِفُ أَحَدٌ عِنْدَ مِنْبَرِي هَذَا عَلَى يَمِينٍ آثِمَةٍ، وَلَوْ عَلَى سِوَاكٍ أَخْضَرَ، إِلَّا تَبَوَّأَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ، أَوْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ".

جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روایت دی فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوک هم داسې نشته چه زما د منبر خواته په دروغه قسم اوکړي اګرچه دغه قسم دیو تازه مسواک دپاره ولې نه وی مګر دی به دخپل ځان دپاره په دوزخ کښې کور جوړ کړي او که داسې ئې اوفرمائیل د دغه کس دپاره دوزخ لازم شو.

**قوله:** ﴿ لا يحلف احد عند منبرى هذا على يمين اثمة الخ ﴾ د دې نه په ظاهر کښې تغليظ اليمين بالمكان په فهم کښې راځی د دې جواب زما په ذهن کښې دا دې چه د ﴿ عند منبرى ﴾ قید د واقع په طور دې د تغلیظ دپاره نه دې چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم فیصلې به عموما په مسجد کښې منبر شریف ته نزدې کیدې.

**قوله:** ﴿ فقد ترجم البخارى فى كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا فى المسجد وترجم ايضا فى كتاب الاحكام باب من قضى ولا عن فى المسجد، قال ابن بطال استحب القضاء فى المسجد طائفة، وقال مالك هو الامر القديم الخ وفى الهداية ويجلس للحكم جلوسا ظاهرا فى المسجد الخ ﴾ (تراجم بخاری ص ۳۰۱ ج۶) والحديث اخرجه النسائى وابن ماجة، قاله المنذرى

## بَابُ الْحَلِفِ بِالْأَنْدَادِ

### په بتانو باندې د قسم کولو بیان

یمین بغیر الله بالاجماع ممنوع دې، په کراهة او حرمت کښې اختلاف دې، په دې کښې د ټولو امامانو دواړه اقوال دی، خو د مالکیانو په نزد مشهور کراهة دې، او د حنابله په نزد تحریم، او هم دا د اهل ظواهر مذهب هم دې، د شوافعو په نزد هم دوه روایتونه دی څکه چه د امام شافعی رحمه الله نه نقل دی: اخشى ان يكون الحلف بغير الله معصية، فاشار الى التردد، خو د

(1): سنن ابن ماجه الأحكام ۹ (۲۳۲۵)، (تحفة الأشراف: ۲۳۷۶)، وقد أخرجه: موطا امام مالك الأقضية ۸ (۱۰)، مسند احمد (۳۴۴/۳) (صحيح)

جمهور اصحابو د امام شافعي رحمه الله په نزد کراهة تنزيهي دي، او علت د منع دا دي چه د يو څيز قسم خوړل د محلوف به په غايت تعظيم باندې دلالت کوی والعظمة فی الحقيقة انما هی لله تعالی وحده (الابواب والتراجم۶/۱۹۲)

[۳۲۴۷](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَلَفَ، فَقَالَ فِي حَلِفِهِ: وَاللَّاتِ، فَلْيَقُلْ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ: تَعَالَ أُقَامِرْكَ، فَلْيَتَصَدَّقْ بِشَيْءٍ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلی دی چاچه قسم اوکړو او په خپل قسم کښې ئې اووئيل په لات (بت) مې دي قسم وي نولا اله الاالله دي اووائی اوچاچه خپل ملګري ته آواز اوکړو راشه چه جواري درسره اوکړم نودې څه شې په صدقه کښې ورکړي.

**قوله:**﴿من حلف فقال فی حلفه : واللت فليقل لا اله الا الله، ومن قال لصاحبه تعالى اقامرک فليتصدق بشئ ﴾: ځوک چه د لات قسم اوخوری يعنی په طور د سبقت لسان د هغه نه داسې کار اوشو نو چونکه دا صورةً شرک دې په دې وجه هغه لره د تدارک دپاره کلمه توحيد وئيل پکار دی، او که يو انسان دا قسم قصداً په طريقه د تعظيم اوخوری په دې صورت کښې خوبه کفر لازم شی او تجديد د ايمان به ضروری وی، د حديث دويم جزء دا دې چه کوم انسان خپل ملګری لره د جوارئ دپاره راوغواړی نو چونکه دا ګناه ده په دې وجه د دې داثر د ختمولو دپاره صدقه کول پکار دی.

قال الله تعالى : ان الحسنات يذهبن السيئات وقال عليه الصلوة والسلام اذا علمت سيئة فاتبعها حسنة تمحها (هامش البذل)

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، وليس فی حديث احد منهم بشئ، سوی مسلم وحده، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الْحَلِفِ بِالْآبَاءِ

### په پلار او نيکه باندې د قسم کولو د کراهت بيان

[۳۲۴۸](٢) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا عَوْفٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ، وَلَا بِأُمَّهَاتِكُمْ، وَلَا بِالْأَنْدَادِ، وَلَا تَحْلِفُوا إِلَّا بِاللَّهِ، وَلَا تَحْلِفُوا بِاللَّهِ إِلَّا وَأَنْتُمْ صَادِقُونَ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلی دی قسمونه مه خورئ په پلرونوخپلو اونه په ميندوخپلو اونه په بتانو مګرپه الله تعالی باندې او په الله باندې قسم مه خورئ مګر په هغه وخت کښې چه تاسو رښتوني يئ.

[1]: صحيح البخاري/تفسير سورة النجم ۲ (۴۸۶۰)، الأدب ۷۴ (۶۱۰۷)، الاستئذان ۵۲ (۶۳۰۱)، الأيمان ۵ (۶۶۵۰)، صحيح مسلم/الأيمان ۲ (۱۶۴۸)، سنن الترمذي/الأيمان ۱۷ (۱۵۴۵)، سنن النسائي/الأيمان ۱۰ (۳۸۰۶)، سنن ابن ماجه/الكفارات ۲ (۲۰۹۶)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۷۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۰۹) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الأيمان ۵ (۳۸۰۰)، (تحفة الأشراف: ۱۴۴۸۳) (صحيح)

**قوله:** ﴿ لا تحلفوا بابائکم ولا بامهاتکم ولا بالانداد ﴾: په پلارانو او میاندو باندې قسم خوړل ناجائز او ممنوع دی، او په دې سره یمین منعقد کیږی هم نه د څلورو امامانو په نزد، ابن قدامه فرمائی چه په مخلوق باندې قسم خوړلوسره یمین نه منعقد کیږی ﴿ کالکعبة والانبیاء وسائر المخلوقات وهو قول اکثر الفقهاء(۱) ﴾ وړاندې لیکلی چه زمونږ د اصحابو په نزد په رسول الله ﷺ باندې یمین منعقد کیږی چه په هغې باندې کفاره واجب ده.

[۳۲۴۹](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَدْرَكَهُ وَهُوَ فِي رَكْبٍ، وَهُوَ يَحْلِفُ بِأَبِيهِ، فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ يَنْهَاكُمْ أَنْ تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ، فَمَنْ كَانَ حَالِفًا، فَلْيَحْلِفْ بِاللَّهِ أَوْ لِيَسْكُتْ".

دعمرفاروق رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام زه په یوقافله کښې بیاموندم او په خپل پلار ئې قسم کولو نبی علیه السلام اوفرمائیل الله تعالی تاسومنع کوي ددې نه چه قسم وخورئ په پلارباندې هرڅوک چه قسم کوي نوقسم دې وکړي په الله باندې اویادې خاموش پاتې شي.

[۳۲۵۰](۳) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ مَعْنَاهُ إِلَى بِآبَائِكُمْ زَادَ، قَالَ عُمَرُ: فَوَاللَّهِ مَا حَلَفْتُ بِهَذَا ذَاكِرًا وَلَا آثِرًا.

سالم دخپل پلارنه اوهغه دعمر رضی الله عنه نه دتیرروایت په شان روایت نقل کړې دې مګرددې اضافې سره چه عمر رضی الله عنه اووئیل چه بیاما په ټول ژوند کښې چرته په دې څیزونوباندې په طور دحکایت یاپه طور دتذکرې قسم نه دې کړې.

﴿عن ابن عمر رضی الله عنهما عن عمر بن الخطاب رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ ادرکه وهو فی رکب الخ ﴾

## شرح الحدیث:

عمر رضی الله عنه خپله واقعه خپله بیانوی چه زه یو کرت په یو قافله کښې سور اوم، رسول الله ﷺ زه اولیدم چه زه په پلار باندې قسم خورم نو په دې باندې رسول الله ﷺ تنبیه اوفرمائیله: که قسم خوړل وی نو د الله پاک په نوم خورئ ګینې خاموشی اوسئ، او په دویم روایت کښې دا زیادت دې ﴿ قال عمر فو الله ما حلفت بهذا ذاکرا ولا اثرا ﴾ هغوی فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ د خبرداری نه پس کله هم په پلار باندې قسم نه دې کړې نه ذاکرا او نه آثرا نه د خپل طرف نه او نه د بل د کلام نه نقل کولو سره، یعنی که یو سړی په خپل پلار باندې

(۱) وجزم الدردیر المالکي بانه لا ینعقد بالنبي ولا بالکعبة والرکن والمقام والعرش الي آخر ما ذکر وفي البدائع لو حلف بشيء من ذلك لا یکون یمینا لانه حلف بغیر الله تعالي (تراجم بخاري) وقال ابن الهمام من حلف بغیر الله کالنبي والکعبة لم یکن حالفا آهـ (عون المعبود)

(۲): صحیح مسلم/الأیمان ۱ (۱۶۴۶)، (تحفة الأشراف: ۱۰۵۵۵)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الأدب ۷۴ (۶۱۰۷)، الأیمان ٤ (۶۶٤۷)، سنن الترمذي/الأیمان ۸ (۱۵۳۳)، سنن النسائي/الأیمان ٤ (۳۳۹۹)، سنن ابن ماجه/الکفارات ۲ (۲۰۹٤)، موطا امام مالك/النذور ۹ (۱٤)، مسند احمد (۲/۱۱، ۳٤، ۶۹، ۸۷، ۱۲۵، ۱٤۲) (صحیح)

(۳): صحیح البخاري/الإیمان ٤ (۶۶٤۷)، صحیح مسلم/الأیمان ۱ (۱۶٤۶)، سنن النسائي/الأیمان ٤ (۳۷۹۸، ۳۷۹۹)، سنن ابن ماجه/الکفارات ۲ (۲۰۹٤)، (تحفة الأشراف: ۱۰۵۱۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۸، ۳۶) (صحیح)

قسم اوکړو نو هغه ما په خپله ژبه نه دې نقل کړې، د دې جملې متبادر معنی هم دا ده (١)
والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة. قاله المنذري

[٣٢٥١](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَسَنَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، قَالَ: سَمِعَ ابْنُ عُمَرَ رَجُلًا يَحْلِفُ لَا وَالْكَعْبَةِ، فَقَالَ لَهُ ابْنُ عُمَرَ: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللَّهِ فَقَدْ أَشْرَكَ".

دسعيد بن عبيد رحمه الله نه روايت دې فرمائي چه ابن عمر رضي الله عنه ديوكس نه په كعبه قسم واوريدل نوورته ئې اوفرمائيل مادنبي عليه السلام نه اوريدلي دي چه فرمائيل ئې څوك چه دالله نه علاوه دبل چاپه نوم باندې قسم وخوري نوده شرك وكړو.

[٣٢٥٢](٣) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ الْمَدَنِيُّ، عَنْ أَبِي سُهَيْلٍ نَافِعِ بْنِ مَالِكِ بْنِ أَبِي عَامِرٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ سَمِعَ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ يَعْنِي فِي حَدِيثِ قِصَّةِ الْأَعْرَابِيِّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْلَحَ وَأَبِيهِ إِنْ صَدَقَ دَخَلَ الْجَنَّةَ، وَأَبِيهِ إِنْ صَدَقَ".

مالك بن ابی عامر دخپل پلارنه روايت كوی چه دطلحه بن عبيدالله نه مې په هغه حديث كښې اوريدلی دی په كوم كښې چه داعرابی قصه ده نبی عليه السلام فرمائيلی وو دې كامياب شو دده په پلارې دې قسم وي كه چرې دې رښتونې وي نوجنت ته به داخل شي، دده په پلارې دې قسم وي كچرې دې رښتونې وي.

﴿انه سمع طلحة بن عبيدالله رضي الله عنه يعنى فى قصة الاعرابى قال النبى صلى الله عليه وسلم افلح وابيه الخ﴾
دا حديث د كتاب الصلوة په شروع كښې تير شوي دې وكذا الكلام عليه فارجع اليه لو شئت.

## باب في كراهية الحلف بالأمانة

### په امانت باندې د قسم كولو د مكروه والی بيان

حلف بالامانة منعقد كيږی يا نه؟ د حنابله په نزد په دې باندې قسم منعقد كيږی بان يقول وامانة الله او بالامانة (مغنى) او خطابی د امام شافعی رحمه الله مسلك عدم انعقاد د يمين ليكلی دې، او د احنافو په دې كښې دوه روايتونه دی انعقاد او عدم انعقاد، د انعقاد وجه خو دا ده چه امانت هم د الله پاك د صفتونو نه يو صفت دې اذ الامين من اسمائه تعالى او د عدم

---

[1] شراح د دې جملې دوه معنې نورې ليكلې دی ۲: دا دواړه الفاظ هم معنی دی يعنی ارادة وقصدا وعلى هذا ذاكرا من الذكر (بالضم) ضد النسيان وآثرا من الايثار اي الاختيار وفي المعنى الاول آثرا من الاثر بمعنى النقل ۳: دريمه معنى دا ليكلې شوې ده چه آثرا اي مفتخرا بالآباء الايثار بمعني الافتخار والاكرام يعنى په پلار باندې مو قسم په طور د فخر على الاباء كله هم نه د ېخوړلې (كما يفعل في الجاهلية، بل على سبيل الجري على اللسان) اوس خلاصه د دې معانی ثلاثه دا شوه: ۱: قصداً نه د خپل طرف نه او نه د بل د طرف نه دنقل په طور. ۲: ارادة واختيارا بخلاف النسيان چه د هغې نفی نشته، ۳: د پلار قسم مو چرته هم نه دې خوړلې نه مطلقا او نه مفتخرا نه د تفاخر په طور او نه هم داسې.. (يستفاد هذه المعاني من حاشيته الترمذي)

[2]: سنن الترمذي/الأيمان ٨(١٥٣٥)، (تحفة الأشراف: ٧٠٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤/٢، ٥٨، ٦٠، ٦٩، ٨٦، ١٢٥) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الإيمان ٣٤ (٤٦)، والصوم ١ (١٨٩١)، والشهادات ٢٦ (٢٦٧٨)، والحيل ٣ (٦٩٥٦)، صحيح مسلم/الإيمان ٢، (١١)، سنن النسائي/الصلاة ٤ (٤٥٩)، الصوم ١ (٢٠٩٢)، (تحفة الأشراف: ٥٠٠٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ٢٥ (٩٤) (وهو قطعة من حديث تقدم في أول الصلاة برقم (٣٩١)

انعقاد وجه امانت په معنی د عبادت او فریضي راځي. (بذل)

[۳۲۵۳]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ ثَعْلَبَةَ الطَّائِيُّ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَلَفَ بِالْأَمَانَةِ، فَلَيْسَ مِنَّا".

ابوبردة دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي: څوك چه په امانت قسم وکړي هغه زمونږ نه دي.

**قوله:** ﴿ من حلف بالامانة فليس منا ﴾ د دې حدیث تقاضه دا ده چه حلف بالامانة نه دی منعقد کیدل پکار، ممنوع دې ځنګه چه حلف بالآباء ممنوع دې، خو چونکه حلف بالامانت د ډیرو ائمه په نزد منعقد کیږی په دې وجه به وئیلې شی چه په حدیث کښې ممانعت د تشبه بالیهود د وجې نه دې.

## بَابُ الْمَعَارِيضِ فِي الْيَمِينِ
### په قسم کولو خپله دفاع کول

[۳۲۵۵]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَمِينُكَ عَلَى مَا يُصَدِّقُكَ عَلَيْهَا صَاحِبُكَ". قَالَ مُسَدَّدٌ: قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هُمَا وَاحِدٌ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، وَعَبَّادُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ.

دابوهریرة رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه رسول پاك ﷺ فرمائیلی دی: ستاقسم لر اعتبار په هغه شي کښې دي په کوم شي کښې چا ستا ملګري ستاتصدیق وکړي. مسدد وائی چه مات عبدالله بن أبی صالح خبر راکړې دې. ابوداود وافي چه عبدالله بن أبی صالح اوعباد بن أبی صالح دواړ دیوکس نومونه دي.

معاریض جمع ده د معراض چه اخستلې شوې دې د تعریض نه، تعریض یعنی ضد التصریح، په اشاره او کنایه سره خبره کول.

﴿ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ یمینک علی ما یصدقک علیها صاحبک ﴾

دا خطاب حالف یعنی مدعی علیه ته دې او د صاحب نه مراد د دې مقابل او خصم یعنی مدعی دې، یعنی په کوم څیز باندې چه مدعی قسم ورکول غواړی هم په هغې باندې به قسم محمول وی، دا نه ده چه د دروغو نه د بچ کیدو دپاره مدعی علیه د قسم په وخت بل څه نیت اوکړی.

په دې حدیث کښې د دیانت او رشتیا وئیلو تعلیم او ترغیب دې او د معاریضو نه کویا منع کړې شوې ده چه انسان د قسم خوړلو په وخت توریه اوکړی، خو علماء کرامو لیکلې دی چه که مدعی علیه مظلوم وی نو بیا د ظلم نه د بچ کیدو دپاره توریه جائز ده لکه چه په را روان حدیث کښې راځي.

---

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۲۰۰۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۲/۵) (صحیح)

(): صحیح مسلم/الأیمان ٤ (۱٦٥۳)، سنن الترمذي/الأحکام ۱۹ (۱۳٥٤)، سنن ابن ماجه/الکفارات ۱٤ (۲۱۲۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۸۲٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۸/۲)، سنن الدارمي/النذور ۱۱ (۲۳۹٤) (صحیح)

[۳۲۵۶]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ النَّاقِدُ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ جَدَّتِهِ، عَنْ أَبِيهَا سُوَيْدِ بْنِ حَنْظَلَةَ، قَالَ: "خَرَجْنَا نُرِيدُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَعَنَا وَائِلُ بْنُ حُجْرٍ، فَأَخَذَهُ عَدُوٌّ لَهُ، فَتَحَرَّجَ الْقَوْمُ أَنْ يَحْلِفُوا، وَحَلَفْتُ أَنَّهُ أَخِي، فَخَلَّى سَبِيلَهُ، فَأَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرْتُهُ أَنَّ الْقَوْمَ تَحَرَّجُوا أَنْ يَحْلِفُوا، وَحَلَفْتُ أَنَّهُ أَخِي، قَالَ: صَدَقْتَ الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ".

دسوید بن حنظلة رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه مون نبی علیه السلام ته ورتلواو وائل بن حجر هم راسر وو، ده لره دده یودشمن په لاره کښې اود رو اوزمونږ ملګرود اخبره بده وګنڼله چه په دروغه قس وکړي او ما داقسم وکړوچه دا زما ورور دې نوبی هغوی ده لره پریخودو، کله چه مونږ دنبی علیه السلا په خدمت کښې حاضرشو نوواقعه مو ورته بیان کړ اوورته مې ووئیل چه زمونږ ملګرو قسم ونکر مګر ماقسم وکړوچه دی زما ورور دې نوبیائي دې پریخودو، نبی علیه السلام چه دا واوریدل نو اوت فرمائیل: تارښتیا وئیلی دی یو مسلمان دبل مسلمان ورور وی.

﴿عن سوید بن حنظلة رضی الله عنه قال خرجنا نرید رسول الله صلی الله علیه وسلم ومعنا وائل بن حجر الخ﴾

سوید بن حنظله رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د خپل وطن نه اوتلو او مونږ سره وائل بن حجر رضی الله عنه هم وو هغوی لره د هغوی یو دشمن اونیولو، ما دشمن ته قسم اوخوړلو چه دا زما رور دې په دې باندې دشمن هغه پریخودلو، نورو خلقو خو د قسم خوړلو نه ځان اوساتلو د ګناه د ویرې نه، بیا چه کله مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو نو هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا قصه واورو له نو هغوی زما تائید اوفرمائیلو ﴿صدقت المسلم اخو المسلم﴾.

په دې حدیث کښې د ظلم نه د بچ کیدو دپاره د توریه اجازت معلوم شو. حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه مسلم والترمذی وابن ماجة، وحدیث سوید اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْحَلِفِ بِالْبَرَاءَةِ وَبِمِلَّةٍ غَيْرِ الْإِسْلَامِ

### د اسلام نه په بیزارۍ سره او په بل دین کښې په داخلیدلو د قسم ورکولو بیان

### د ترجمة الباب تشریح او ذکر د اختلاف النسخ:

په اکثر نسخو کښې هم دغه شان دی او په بعض نسخو کښې ترجمة الباب داسې دې، ﴿ما جاء في الحلف بالبراءة وبملة غير الاسلام﴾ او هم دا نسخه صحیح ده، په دې صورت کښې د ترجمة الباب دوه اجزاء شو اول ﴿حلف البراءة، ای عن الاسلام﴾ او دویم ﴿جزء حلف بملة غير الاسلام﴾ پس د باب رومبې حدیث کښې د ترجمة الباب دویم جزء مذکور دې، ﴿من حلف بملة غير الاسلام كاذبا فهو كما قال﴾ د دې مثال به دا وی ان فعلت كذا فانا یهودی او نصرانی په دې کښې قسم غیر اسلام باندې خوړلې شی، او د باب په دویم حدیث کښې د ترجمې جزء اول موجود دې. ﴿من حلف فقال انی بري من الاسلام فان كان كاذبا فهو كما قال﴾ مثلا داسې قسم اوخوری چه که زه فلانې کار اوکړم نو زه به د اسلام نه بری یم، اوس پاتې شوه دا چه د دې دواړو مسئلو په باره کښې فقهاء کرام څه فرمائی د دې جواب دا دې چه د

(): سنن ابن ماجه/الكفارات ١٤ (٢١١٩)، (تحفة الأشراف: ٤٨٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٩/٤) (صحيح)

امام مالکرحمه الله او شافعیرحمه الله په نزد په دې دواړو صیغو سره یمین نه منعقد کیږی او نه کفاره واجب کیږی خو دغه شان قسم خوړونکې بهر حال گناه گار دې. که رشتیا وائی او که دروغ، او د احنافو او حنابله په دواړو صیغو سره یمین منعقد کیږی او کفاره واجب کیږی.
او کوم ترجمة الباب چه زمونږ په نسخه کښې دې د دې خو به مطلب دا وی چه قسم خوړل د ملت غیر اسلام نه د براءت مثلا داسې اوائی چه که زه فلانې کار اوکړم نو د غیر اسلام نه بری یم، داسې خو هیڅوک قسم نه خوری، او د غیر اسلام نه خو هر مسلمان بری وی او که بالفرض څوک داسې قسم اوخوری نو په دې کښې د وعید هیڅ خبره نشته، حال دا چه په حدیث کښې وعید ذکر دې ﴿فتد بر وتامل فان هذه الترجمة دقیقة مشکلة لاجل اختلاف النسخ﴾
په صحیح بخاری کښې د ترجمې عبارت داسې دې ﴿باب من حلف بملة سوی الاسلام﴾

[۳۲۵۷](۱) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ سَلَّامٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو قِلَابَةَ، أَنَّ ثَابِتَ بْنَ الضَّحَّاكِ، أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ بَايَعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ حَلَفَ بِمِلَّةٍ غَيْرِ مِلَّةِ الْإِسْلَامِ كَاذِبًا فَهُوَ كَمَا قَالَ، وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِشَيْءٍ عُذِّبَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَلَيْسَ عَلَى رَجُلٍ نَذْرٌ فِيمَا لَا يَمْلِكُهُ".

دابوقلابة نه روایت دې فرمائی چه ثابت بن الضحاك راته وئیلی دی چه دنبی صلی الله علیه وسلم سره مې دونې دلاندې بیعت کړې وو اونبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلې رو څوك چه داسلام نه علاوه په بل دین کښې دداخلیدلو دپاره قسم اوخورې اودده قسم په دروغه وې نودې به داسې شې لکه څرنګه چه ده وئیلې دې(اسلام نه به خارج شې او څوك چه خپل ځان په یوشی باندې مړکړې عذاب به ورکولې شی ده ته په ورځ دقیامت په دغه شې باندې اونذر پوره کول نشته دې په هیڅا باندې په هغه څه کښې کوم چه دده په اختیارکښې نه دې.

[۳۲۵۸](۲) حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ يَعْنِي ابْنَ وَاقِدٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَلَفَ، فَقَالَ: إِنِّي بَرِيءٌ مِنَ الْإِسْلَامِ، فَإِنْ كَانَ كَاذِبًا، فَهُوَ كَمَا قَالَ، وَإِنْ كَانَ صَادِقًا، فَلَنْ يَرْجِعَ إِلَى الْإِسْلَامِ سَالِمًا".

عبدالله بن بریده دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چاچه قسم اوکړو په دې خبره چه زه بیزاره یم داسلام نه نرکه چرې دې دروغژن وې نودې داسې شو لکه څنګه چه ده وئیلی دی اوکه چرې رینښتونې وې نواسلام کښې په سلامتیا سره نه شی داخلیدلې.

---

(۱): صحیح البخاري/الجنائز ۸۳ (۱۳۶۳)، الأدب ٤٤ (٦٠٤٧)، ٧٣ (٦١٠٥)، الایمان ٧ (٦٦٥٢)، صحیح مسلم/الإیمان ٤٧ (١١٠)، سنن الترمذي/الأیمان ١٥ (١٥٤٣)، سنن النسائي/الأیمان ٦ (٣٨٠١)، سنن ابن ماجه/الکفارات ٣ (٢٠٩٨)، (تحفة الأشراف: ٢٠٦٢، ٢٠٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٣، ٣٤) (صحیح)

(۲): سنن النسائي/الأیمان ٧ (٣٨٠٣)، سنن ابن ماجه/الکفارات ٣ (٢١٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٩٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٥٥، ٣٥٦) (صحیح)

## بَابُ الرَّجُلِ يَحْلِفُ أَنْ لَا يَتَأَدَّمَ

### د ترکارئ په نه خوړلو باندې د قسم کولو بیان

او په بعض نسخو کښې ﴿ ان لا یأتدم ﴾ دې، او موافق د قیاس هم دا دې لکه چه په کتاب الطهارة ﴿ ان تتزر ﴾ ﴿ او تاتزر ﴾ په تحقیق کښې تیر شوې دی، په صحیح بخاری کښې هم داسې دی﴿ اذا حلف ان لایاتدم﴾ دا د ادام نه اخستلې شوې دې چه د هغې معنی د ترکارئ ده.

[۳۲۵۹](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْعَلَاءِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَ تَمْرَةً عَلَى كِسْرَةٍ، فَقَالَ: هَذِهِ إِدَامُ هَذِهِ".

دیوسف بن عبدالله نه روایت دې فرمائی چه مانبی ﷺ اولیدو چه ډوډۍ په یوه قطره باندې ئې کجوره ایښودلې وه او وئیل ئې چه دا ددې ترکاري ده. دا حدیث هارون بن عبدالله بیان کړې دې.

### الکلام علی الحدیث من حیث الفقه :

**قوله:**﴿ رایت النبی ﷺ وضع تمرة علی کسرة فقال هذه ادام هذه ﴾ یعنی یو کرت رسول الله ﷺ په لاس مبارک کښې د ډوډۍ ټکړه اخستلو سره په هغې باندې کهجوره کیخودله او وې فرمائیل او وې فرمائیل دا د دې ډوډۍ ترکاری ده. یعنی د ضرورت په وخت کښې د کهجورې نه د ترکارئ کار اخستلې کیدې شی، د رسول الله ﷺ مقصد مسئله بیانول نه دی، پاتې شوه دا خبره چه مسئله څه ده پس پیژندل پکار دی چه په دې کښې د امام محمد رحمه الله او شیخینو اختلاف دې، شیخین فرمائی: الادام ما یصطبغ به الخبز، اذا اختلط به کخل وزیت، لا اللحم والبیض، یعنی ترکاری هغه څیز دې چه کله ډوډۍ د هغې سره اولګولې شی نو ډوډۍ د هغې په رنګ کښې رنګ شی لکه سرکه او د زیتونو تیل، او د امام محمد رحمه الله رائې دا ده چه : الادام ما یوکل مع الخبز غالبا........ یعنی کوم څیز چه عام طور سره د ډوډۍ تابع کولو سره خوړلې شی هغه ادام دې که ډوډۍ پکښې رنګ شی او که نه شی، لهذا کوم څیز چه عام طور سره ځانله خوړلې شی مستقلا لکه تمر او زبیب او بطیخ وسائر الفواکه لیس اداما، او که په څه مقام کښې په دې میوو کښې یو میوه تبعا للخبز خوړلې شی نو په هغه مقام کښې به ورته ادام وئیلې شی د عرف اعتبار کولو سره، کذا فی الدر المختار، علامه عینی رحمه الله فرمائی : ویقول محمد قالت الائمة الثلاثة الشافعی ومالک واحمد. (من الابواب والتراجم)

دمذاهبو د دې بیان نه معلومه شوه چه د ډوډۍ دپاره تمر په ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم ادام نه دې، ځکه چه عربو کښې کهجورې غالبا مستقلا خوړلې شی، او په دې کښې ډوډۍ هم نه شی رنګ کیدلې، لهذا د حدیث جواب هم هغه دې کوم چه پورته په شرح د حدیث کښې مونږ لیکلې دې. والحدیث اخرجه الترمذی قاله المنذری

---

۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۵٤) ویأتي هذا الحدیث في الأطعمة (۳۸۳۰) (ضعیف)

[۳۲۶۰](۱) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي يَحْيَى، عَنْ يَزِيدَ الْأَعْوَرِ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، مِثْلَهُ.

بریده بن الاعور دیوسف بن عبد الله بن سلام نه دتیرشوی روایت په شان روایت بیان کړې دې.

## باب الاستثناء في اليمين

### په قسم کښې دان شاء الله ویلو بیان

[۳۲۶۱](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ، فَقَالَ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ، فَقَدِ اسْتَثْنَى".

دعبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام اوفرمائیل چاچه په کوم کارباندې قسم اوکړو اوبیا ئې انشاء الله اووئیل نوده دخپل قسم نه استثناء وکړله.

**قوله:** ﴿من حلف علی یمین فقال ان شاء الله فقد استثنی﴾ د یمین اطلاق کله په محلوف علیه باندې هم کیږی مجازا لکه چه په دې حدیث کښې دی، یعنی کوم سړې چه په یو خبره باندې قسم کولو سره ان شاء الله اوائی نو هغه به نه حانث کیږی په دې شرط چه دا استثناء یعنی ان شاء الله وئیل متصلا وی، د دې اتصال د قید بیان روستو په ﴿باب الحالف یستثنی بعد ما یتکلم﴾ کښې را روان دې. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۳۲۶۲](۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَمُسَدَّدٌ، وَهَذَا حَدِيثُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَلَفَ فَاسْتَثْنَى، فَإِنْ شَاءَ رَجَعَ، وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ غَيْرَ حِنْثٍ".

دعبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام اوفرمائیل چاچه په کوم کارباندې قسم اوکړو اوبیا ئې انشاء الله اووئیل نوده دخپل قسم نه استثناء وکړله نوکه دده خوښه وي نوخپل قسم دې پوره کړي اوکه خوښه ئې وي نه دې پوره کوي اودې به په قسم کښې دروغژن نه وي.

## باب ما جاء في يمين النبي صلى الله عليه وسلم ما كانت

### د نبی علیه السلام د قسم بیان

[۳۲۶۳](۴) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "أَكْثَرُ مَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْلِفُ بِهَذِهِ الْيَمِينِ: لَا وَمُقَلِّبِ الْقُلُوبِ".

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۵٤) (ضعيف)

[2]: سنن الترمذي/الأيمان ۷ (۱۵۳۱)، سنن النسائي/الأيمان ۱۸ (۳۸۲٤)، ۳۹ (۳۸۵۹)، سنن ابن ماجه/الكفارات ٦ (۲۱۰٦)، (تحفة الأشراف: ۷۵۱۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/٦، ۱۰، ٤۸، ٤۹، ٦۸، ۱۲٦، ۱۲۷، ۱۵۳)، دي/ النذور ۷ (۲۳۸۸) (صحيح)

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۵۱۷) (صحيح)

[4]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۵۰۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/القدر ۱٤ (٦٦۱۷)، والأيمان ۳ (٦٦۲۸)، والتوحيد ۱۱ (۷۳۹۱)، سنن الترمذي/الأيمان ۱۲ (۱۵٤۰)، سنن النسائي/الأيمان ۱ (۳۷۹۳)، سنن ابن ماجه/ الكفارات (۲۰۹۲) مسند احمد (۲/٦۷، ٦۸، ۱۲۷) (صحيح)

دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه د نبي ﷺ قسم به اکثر داسې وو" «لا، ومقلب القلوب» " يعنى دزړونوپه بدلونکى باندې مې دي قسم وي.

[۳۲۶۴](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ شُمَيْخٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اجْتَهَدَ فِي الْيَمِينِ، قَالَ: وَالَّذِي نَفْسُ أَبِي الْقَاسِمِ بِيَدِهِ".

دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه کله به نبي ﷺ په قسم کښې تاکيد کولو نوداسې به ئې فرمائيل" «والذي نفس أبي القاسم بيده» " زمادي قسم وي په هغه ذات دچاپه لاس کښې چه دابو القاسم روح دي.

[۳۲۶۵](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ، أَخْبَرَنِي زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: "كَانَتْ يَمِينُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا حَلَفَ، يَقُولُ: لَا، وَأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ".

محمد بن هلال دخپل پلارنه روايت کوى فرمائي چه دابوهريره رضي الله عنه نه مې اوريدلي دي چه فرمائيل ئې کله چه به نبي ﷺ قسم کولونوداسې به ئې فرمائيل" «لا، وأستغفر الله» " يعنى داسې نه ده دالله تعالى نه بخښنه غواړم.

يعنى رسول الله ﷺ به زيات تر په کومو الفاظو باندې قسم کولو، د باب د رومبى حديث نه معلوميږى چه هغه لفظ﴿ لاومقلب القلوب ﴾ دې.او په دريم حديث کښې﴿ لا واستغفر الله﴾ په ﴿ لا ومقلب القلوب ﴾ کښې دوه احتمالات دى يودا چه لا زائد ده او دويم دا چه د لا تعلق د مضمون سابق سره دې يعنى د کلام دوران کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: داسې نه ده ﴿ومقلب القلوب ﴾، په دې صورت کښې به په لا باندې سکته کول وى، او په ﴿ لا واستغفر الله﴾ کښې دا خبره متعين ده چه دلته مقسم به محذوف دې يعنى ﴿ لا والله، استغفر الله ﴾

او د باب په دويم حديث کښې دا دى چه کله به رسول الله ﷺ په څه خبره باندې مبالغه کولو سره قسم کولو نو داسې به ئې فرمائيل ﴿ لا والذى نفس ابى القاسم بيده ﴾

خلورم حديث دي ﴿قال دلهم وحدثنيه ايضا الأسود بن عبدالله بن عاصم بن لقيط ان لقيط بن عاصم﴾

[۳۲۶۶](٣) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَيَّاشٍ السَّمَعِيُّ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ دَلْهَمِ بْنِ الْأَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَاجِبِ بْنِ عَامِرِ بْنِ الْمُنْتَفِقِ الْعُقَيْلِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمِّهِ لَقِيطِ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ دَلْهَمٌ، وَحَدَّثَنِيهِ أَيْضًا الْأَسْوَدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ لَقِيطٍ، أَنَّ لَقِيطَ بْنَ عَامِرٍ خَرَجَ وَافِدًا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَقِيطٌ: فَقَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ حَدِيثًا فِيهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَعَمْرُ إِلَهِكَ".

عاصم بن لقيط دخپل پلار نه روايت کوى فرمائي چه لقيط بن عامر په يووفد کښې نبي ﷺ ته لاړو لقيط وائي کله چه مونږ نبي ﷺ ته ورسيدو.......بيا راوى يواوږد حديث

---

١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٠٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٦، ٦٦) (ضعيف)

٢): سنن ابن ماجه/الكفارات ١ (٢٠٩٣)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٠٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٨٨) (ضعيف)

٣): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١١٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٢) (ضعيف)

ذکرکړو په هغې کښې وو چه نبی ﷺ اوفرمائیل "لَعَمر إلهك" يعنی ستا په حق معبود باندې دې زما قسم وي.

**د سند تحقیق :**

دلهم بن الاسود کوم چه د سند حدیث راوی دې هغه دا حدیث په دوه طریقو سره روایت کوی، رومبئ طریقه دا ده دلهم بن الاسود عن ابیه عن عمه لقیط بن عامر، یعنی دلهم روایت کوی د خپل پلار اسود نه او اسود روایت کوی د خپل ترۀ لقیط بن عامر نه.

او دویم طریق دا دې دلهم بن الاسود عن ابیه عن عاصم بن لقیط عن لقیط بن عاصم یعنی دلهم روایت کوی د اسود نه او اسود روایت کوی د عاصم بن لقیط نه او عاصم روایت کوی د لقیط بن عاصم نه، خو حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه ما سره چه کوم د رجال کتابونه موجود دی په هغې کښې ما لقیط بن عاصم هیڅ یو راوی بیا موندلې نه دې، پس کیدې شی چه دا تحریف وی اوصحیح لقیط بن عامر وی وهولقیط بن صبرة بن عامر، والله تعالیٰ اعلم

﴿ خرج وافدا الی النبی ﷺ الخ ﴾

لقیط وائی چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې قاصد جوړیدو سره لاړم، وړاندې مصنف رحمه الله فرمائی اختصاراً چه د دې نه پس لقیط حدیث ذکر کړو چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ لعمر الهک ﴾ ستا د معبود په بقاء باندې قسم، د عمر نه بقاء مراد ده کوم چه د الله پاک صفت دې، لکه په قرآن کریم کښې دی ﴿ لعمرک انهم لفی سکرتهم یعمهون ﴾ اوس دا چه په ﴿ لعمر الله یا لعمر الهک ﴾ سره یمین منعقد کیږی یا نه؟ جواب دا دې چه د احنافو او مالکیانو په نزد منعقد کیږی، او امام شافعی رحمه الله فرمائی چه که هغه دا د یمین په نیت اووې نو بیا خو به یمین وی ګینې نه به وی، او د امام احمد رحمه الله نه دواړه روایتونه دی، ﴿ کالمذهبین ﴾ کما فی النهل (کذا فی هامش البذل)

**فائده** : امام بخاری رحمه الله هم داسې باب قائم کړې دې ﴿ باب کیف کان یمین النبی ﷺ ﴾ حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی، یعنی هغه الفاظ په کوم سره چه به رسول الله ﷺ همیشه قسم خوړلو یا اکثر، او مجموعه د هغې کومه چه په هغه باب کښې مذکور ده څلور الفاظ دی، ۱: ﴿ والذی نفسی بیده ﴾ او هم دغه شان ﴿ والذی نفس محمد بیده ﴾ په دې کښې د بعض په شروع کښې لا ده او د بعض په شروع کښې لفظ اما او د بعض په شروع کښې لفظ ایم. ۲: ﴿ لا ومقلب القلوب ﴾ ۳: والله. ۴: ورب الکعبة والاول اکثرها ورودا آه.

او حافظ ابن قیم رحمه الله یو ځائې کښې لیکلې دی چه د رسول الله ﷺ نه قسم خوړل د اتیا نه په زیاتو ځایونو کښې منقول دی فی اکثر من ثمانین موضعا..... وامره الله تعالی بالحلف علی تصدیق ما اخبر به فی ثلاثة مواضع : فی سورة یونس وسبا والتغابن آه (الابواب والتراجم مختصرا)

# بَابُ الرَّجُلِ يُكَفِّرُ قَبْلَ أَنْ يَحْنَثَ

## باب: په بیان د هغه کس کښې چه کفاره ورکړي مخکښې د حانث کیدو نه

# بَابُ الْحِنْثِ إِذَا كَانَ خَيْرًا

## کله چه خیر بل طرف ته وی د قسم ماتول پکار دي

[٣٢٧٦] (١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا غَيْلَانُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنِّي وَاللَّهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ لَا أَحْلِفُ عَلَى يَمِينٍ، فَأَرَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا، إِلَّا كَفَّرْتُ عَنْ يَمِينِي، وَأَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ، أَوْ قَالَ: إِلَّا أَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ، وَكَفَّرْتُ يَمِينِي".

ابوبرده دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی نبی ﷺ فرمائیلی دی کله چه زه په یوه خبره قسم وکړم اوخیردهغې نه خلاف وي نوزه خپل قسم ماتوم اوکفاره ورکوم اوهغه شې اختیاروم په کوم کښې چه خیروي.

﴿عن ابی بردة عن ابیه ان النبیﷺ قال انی والله ان شاء الله لا احلف علی یمین فاری غیرها خیرا منها الا کفرت بیمینی واتیت الذی هو خیر﴾

رسول اللهﷺ فرمائی چه والله زما دا طریقه ده چه که زه په یو څیز باندې قسم اوخورم او بیا د هغې غیر لره د هغې نه غوره اوګنړم نو زه د خپل یمین کفاره ادا کوم او هغه کار کوم چه خیر وی هغه کوم. په دې کښې د راوی شک دې چه یا خو رسول اللهﷺ داسې اوفرمائیل او یا ئې داسې فرمائیلې وو چه زه هغه کار خیر کوم او د قسم کفاره ادا کوم (په دې دواړو کښې د تقدیم او تاخیر فرق دې) په ړومبۍ جمله کښې د یمین کفاره اول ذکر شوې ده او د هغه کار خیر کول روستو ذکر شوې دی، او په دویمه جمله کښې ترتیب د دې برعکس دې.

[٣٢٧٧] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ، وَمَنْصُورٌ يَعْنِي ابْنَ زَاذَانَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ سَمُرَةَ، إِذَا حَلَفْتَ عَلَى يَمِينٍ، فَرَأَيْتَ غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا، فَأْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ، وَكَفِّرْ يَمِينَكَ" قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ يُرَخِّصُ فِيهَا الْكَفَّارَةَ قَبْلَ الْحِنْثِ.

دعبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله قه راته اوفرمائیل اې عبدالرحمن بن سمره کله چه په یوه خبره قسم اوکړو اوخیر دهغې نه مخالف وو نو ته هم هغه اختیار کړه اودخپل قسم کفاره اداکړه. إمام ابوداود وئیلی دی چه امام احمد بن حنبل دحانث کیدونه مخکښې د قسم کفاره اداکول درست ګنړي.

---

(١): صحیح البخاري/الخمس ١٥ (٣١٣٣)، المغازي ٧٤ (٤٣٨٥)، الصيد ٢٦ (٥٥١٧)، الأيمان ١ (٦٦٢١)، ٤ (٦٦٤٩)، ١٨ (٦٦٨٠)، كفارات الأيمان ٩ (٦٧١٨)، ١٠ (٦٧١٩)، التوحيد ٥٦ (٧٥٥٥)، صحيح مسلم/الأيمان ٣ (١٦٤٩)، سنن النسائي/الأيمان ١٤ (٣٨١١)، سنن ابن ماجه/الكفارات ٧ (٢١٠٧)، (تحفة الأشراف: ٩١٢٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٨/٤، ٤٠١، ٤٠٤، ٤١٨) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الأيمان ١ (٦٦٢٢)، كفارات الأيمان ١٠ (٦٧٢٢)، الأحكام ٥ (٧١٤٦)، ٦ (٧١٤٧)، صحيح مسلم/الأيمان ٣ (١٦٥٢)، سنن الترمذي/الأيمان ٥ (١٥٢٩)، سنن النسائي/ آداب القضاة ٥ (٥٣٨٦)، (تحفة الأشراف: ٩٦٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦١/٥، ٦٢، ٦٣)، دي/النذور ٩ (٢٣٩١) (صحيح)

## تقديم الكفارة على الحنث :

او دا مسئله خپله مختلف فيه ده يعنی د كفاره قبل الخنث جواز او عدم جواب كوم چه مصنف رحمه الله وړاندې بيانوی، پس فرمائی ﴿ قال ابوداؤد: سمعت احمد يرخص فيها الكفارة قبل الحنث ﴾ د باقې ائمه په مذاهبو كښې دا دی چه د امام مالک رحمه الله مسلک هم دا دې كوم چه د امام احمد رحمه الله دې، يعنی د كفاره قبل الحنث جواز مطلقا، او د امام شافعی رحمه الله په نزد د كفاره ماليه تقديم خو جائز دې او د غير ماليه يعنی كفاره بالصوم د دې تقديم جائز نه دې، او د احنافو په نزد مطلقا جائز نه دې.

د دې نه پس پيژندل پكار دی چه كفاره د قسم كوم چه د قرآن كريم په دې آيت كريمه كښې ذكر ده ﴿ لا يواخذكم الله باللغو فی ايمانكم ولكن يواخذكم بما عقدتم الايمان فكفارته اطعام عشرة مساكين من اوسط ما تطعمون اهليكم او كسوتهم او تحرير رقبة، فمن لم يجد فصيام ثلاثة ايام ﴾ دا ټول څلور څيزونه شو، ١: لسو مسكينانو ته خوراک وركول، ٢: يا د هغوی جامه ٣: اعتاق او په دې درې واړو كښې په يو باندې هم د قدرت نه كيدو په صورت كښې درې روژې.

د احنافو په نزد د وجوب كفاره دپاره سبب حنث دې په دې وجه د هغوی په نزد تقديم الكفارة على الحنث جائز نه ده، او د شوافعو وغيره په نزد د وجوب كفاره سبب خپله يمين دې او حنث ئې شرط دې، وفی شرح السنة : ﴿ وانما يجوز تقديم العتق او الاطعام او الكسوة كما يجوز تقديم الزكوة على الحول، ولا يجوز تعجيل صوم رمضان قبل وقته انتهى ﴾ (بذل مختصرا)[1]

[٣٢٧٨][2] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ، نَحْوَهُ. قَالَ: فَكَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ، ثُمَّ ائْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَحَادِيثُ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، وَعَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ رُوِيَ عَنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ فِي بَعْضِ الرِّوَايَةِ الْحِنْثُ قَبْلَ الْكَفَّارَةِ، وَفِي بَعْضِ الرِّوَايَةِ الْكَفَّارَةُ قَبْلَ الْحِنْثِ.

حسن دعبد الرحمن بن سمره نه دتيرروايت په شان روايت نقل كړې دن البته په دې روايت كښې داسې دي چه اول دقسم كفاره ادا كړه اوددې نه پس بيا دخير دغه كار اختياركړه.

ابوداود وائی چه ابوموسی اشعری رضی الله عنه ، علي بن حاتم، اود ابوهرير رضی الله عنه روايتونه كوم چه ددې باب متعلق دي ددې روايتونونه په بعضو كښې دحانث كيدونه مخكښې دقسم كفاره اداكول منقول دي او په بعضې رواياتو كښې حانث كيدل دكفاري نه مخكښې دي.

# بَابٌ فِي الْقَسَمِ هَلْ يَكُونُ يَمِينًا

### بابد آيا د قسم لفظ په يمين كښې داخل دې؟

### تفصيل مذاهب الائمة فی مسئلة الباب :

يعنی په لفظ قسم سره يمين منعقد كيږی يا نه لكه چه دا اوئيلې شی چه ﴿ يا اقسمت بالله ﴾ خان پوهول پكار دی چه د حلف بلفظ القسم دوه صورتونه دی:

---

[1] ونحن نقول كما لا يجوز تقديم الزكوة علي النصاب كذا لا يجوز تقديم الكفارة علي الحنث. ١٢

[2] انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٦٩٥) (صحيح)

١: مجردا عن لفظ الجلالة يعنې بغير د لفظ دالله نه چه صرف داسې اوائی ﴿ اقسمت ﴾.
٢: مقرونا بلفظ الجلالة لکه ﴿ اقسمت بالله ﴾

د احنافو مسلک خو دا دې چه په دې دواړو صورتونو کښې يمين منعقد کيږي، او امام خطابی رحمه الله د امام شافعی رحمه الله او مالک رحمه الله مذهب دا ليکلې دې چه په ړومبی صورت کښې نه منعقد کيږي صرف په دويم صورت کښې منعقد کيږي. (بذل)د احنافو دا مسلک په بذل کښې د بدائع نه نقل کړې شوې دې او دا چه د امام زفر رحمه الله مسلک په دې کښې د امام شافعی رحمه الله د مسلک موافق دې، او حافظ د ابن المنذر نه چه کوم مذاهب ائمة نقل کړي هغه داسې دی چه لفظ ﴿ اقسمت ﴾ که د هغې سره ﴿ بالله ﴾ اوئيلې شي يا نه، که د يمين قصد وی اوکه نه بهر صورت يمين دې، وبه قال النخعی والثوری والکوفيون، او د امام مالک رحمه الله مسلک ئې دا نقل کړې دې چه ﴿ اقسمت بالله ﴾ خو بهر حال يمين دې او صرف لفظ ﴿ اقسمت ﴾ يمين نه دې مګر په نيت سره، او د امام شافعی رحمه الله مسلک دا ليکلې شوې دې چه صرف لفظ اقسمت خو په هيڅ حال کښې يمين نه دې يعنی اګر که نيت هم اوکړی، او لفظ ﴿ اقسمت بالله ﴾ دا يمين دې د نيت په صورت کښې ګيني نه دې، او د اسحق بن راهويه په نزد مطلقا يمين نه دې، او د امام احمد رحمه الله هغوی په دې کښې دوه اقوال ذکر کړی دی يو دا چه مطلقا يمين دې د احنافو په شان، دويم دا چه د نيت په صورت کښې يمين دې ګيني نه دې د مالکيانو په شان. (الابواب والتراجم)

[٣٢٦٧](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ أَبَا بَكْرٍ أَقْسَمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تُقْسِمْ".

دعبدالله بن عباس نه روايت دې فرمائی چه ابوبکرصديق رضی الله عنه په نبی عليه السلام باندې قسم اوکړو نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل داسې قسم مه کوه.

[٣٢٦٨](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ ابْنُ يَحْيَى: كَتَبْتُهُ مِنْ كِتَابِهِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ يُحَدِّثُ، "أَنَّ رَجُلًا أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنِّي أَرَى اللَّيْلَةَ، فَذَكَرَ رُؤْيَا، فَعَبَّرَهَا أَبُو بَكْرٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَصَبْتَ بَعْضًا، وَأَخْطَأْتَ بَعْضًا، فَقَالَ: أَقْسَمْتُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، بِأَبِي أَنْتَ لَتُحَدِّثَنِّي مَا الَّذِي أَخْطَأْتُ؟ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تُقْسِمْ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه يوسړې دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضرشو او عرض ئې اوکړوچه مانن شپه يوخوب اوليدو اوخوب ئې بيان کړو ابوبکر رضی الله عنه دهغې

(١): صحيح البخاري/ التعبير ١١ (٧٠٠٠)، ٤٧ (٧٠٤٦)، صحيح مسلم/ الرؤيا ٣ (٢٢٦٩)، سنن ابن ماجه/ التعبير ١٠ (٣٩١٨)، (تحفة الأشراف: ٥٨٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٩/١) دي/ النذور ٨ (٢٣٨٩)، ويأتي هذا الحديث في السنة (٤٦٣٣) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الرؤيا ٩ (٢٢٩٣)، سنن ابن ماجه/الرؤيا ١٠ (٣٩١٨)، (تحفة الأشراف: ٢٢٩٣، ١٣٧٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التعبير ٤٧ (٧٠٤٦)، صحيح مسلم/الرؤيا ٣ (٢٢٦٩)، سنن الدارمي/الرؤيا ١٣ (٢٢٠٢) ويأتي هذا الحديث في السنة (٤٦٣٢) (صحيح)

تعبیربیان کرونبی ﷺ اوفرمائیل اې صدیقه یوڅه تعبیردې ربښتیادې اویوڅه خطا دې ابوبکر رضی الله عنه عرض اوکړو اې دالله رسوله زمامور پلاردې په تاباندې قربان شي. خامخا به بیانوې راته هغه په کوم کښې چه خطا شوې یم نبی ﷺ ورته اوفرمائیل قسم مه کوه.

﴿عن ابن عباس رضی الله عنهما قال کان ابوهریرة یحدث ان رجلا اتی رسول الله ﷺ فقال انی اری اللیلة فذکر رؤیا فعبرها ابوبکرفقال النبی ﷺ اصبت بعضا واخطاءت بعضافقال اقسمت علیک یارسول الله ﷺ﴾

## مضمون د حدیث :

ابوهریرة رضی الله عنه فرمائی چه یو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو چه ما د شپې خوب لیدلې دې (مصنف رحمه الله خو دلته دا خوب اختصارا حذف کړې دې دا خوب په ابوداؤد کښې په ﴿ باب فی شرح السنة ﴾ کښې په باب فی الخلفاء کښې داسې راغلې دې، ﴿فقال انی اری اللیلة ظلة ینطف منها السمن والعسل فاری الناس یتکففون بایدیهم فالمستکثر والمستقل الحدیث ﴾ ډیر اوږد خوب دې چه د هغې د شروع حصه دا ده چه یو سړی عرض اوکړو چه د شپې ما په خوب کښې د وریځې یو ټکړه اولیده چه د هغې نه غوړی او شهد راسسیدل او ما خلقو ته کتل چه هغوی دا راسسیدونکی څیزونه په خپلو لاسونو کښې اخلی بعض په ډیر مقدار کښې او بعض په لږ مقدار کښې، صدیق اکبر رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ د دې خوب د بیانولو ماته اجازت راکړئ او بیا هغوی د دې تعبیر بیان کړو او تپوس ئې اوکړو یا رسول الله ﷺ ما صحیح تعبیر ورکړو که غلط؟ نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ اصبت بعضا واخطاءت بعضا ﴾ چه څه حصه د تعبیر صحیح ده او څه غلطه، په دې باندې صدیق اکبر رضی الله عنه عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ زه تاسو ته قسم درکوم چه تاسو ماته اوایئ چه ما څۀ غلطی اوکړه؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ لا تقسم ﴾ (١)

## حدیث الباب استدل به الفریقان :

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه دې واقعې لره په فریقینو کښې هر یو خپل دلیل وئیلې دې، شوافعو (چه د هغوی په نزد د دې نه قسم نه کیږی) په دې طریقه چه په حدیث کښې د ابرار مقسم حکم وارد شوې دې چه که په یو مسلمان باندې د هغه دویم رور قسم اوخوری نو هغه له پکار دی چه د هغه قسم پوره کړی او حالف دې حانث نه کړی) اوګورئ دلته رسول الله ﷺ چه صدیق اکبر رضی الله عنه په کوم څیز باندې قسم خوړلې وو چه تاسو بیان کړئ خو رسول الله ﷺ بیان نه کړو، نو که په ﴿ اقسمت علیک ﴾ سره قسم منعقد کیدې نو صدیق اکبر به حالف او مقسم وې او رسول الله ﷺ به د هغه ابرار فرمائیلې وې، حال دا چه رسول الله ﷺ د هغه ابرار نه دې فرمائیلې، معلومه شوه چه صدیق اکبر مقسم نه وو، دا طریق استدلال خو شو د شوافعو، او د احنافو طریق استدلال دا دې چه رسول الله ﷺ صدیق اکبر ته فرمائی چه لا تقسم چه قسم ولې خورئ زه ئې درته نه وایم، معلومه شوه چه قسم شوې وو.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجة، قاله المنذری

---

(١) یعنی قسم ولې خورې فعلم من ان یمین کما هو مسلک الحنفیة واجاب عنه الشافعی بوجه اخر بانه علیه السلام لم یامر بابرار المقسم فلوکان قسما لابرة) یعنی قسم مه خوره او بیا رسول الله ﷺ د خطاء او صحیح تعیین او نه فرمائیلو.

[٣٢٦٩](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، لَمْ يَذْكُرِ الْقَسَمَ زَادَ فِيهِ، وَلَمْ يُخْبِرْهُ.

ابن عباس به دنبی ﷺ نه دا روایت نقل کړې دې اود قسم ذکر په کښې نشته او په کښې دا اضافه ده چه نبی ﷺ ورته د غلطئ خبرورنکړو.

## بَابُ فِيمَنْ يَحْلِفُ كَاذِبًا مُتَعَمِّدًا

### باب په قصد سره د دروغ قسم خوړو نکو بیان

[٣٢٧٥](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَأَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطَّالِبَ الْبَيِّنَةَ، فَلَمْ تَكُنْ لَهُ بَيِّنَةٌ، فَاسْتَحْلَفَ الْمَطْلُوبَ، فَحَلَفَ بِاللَّهِ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَلَى، قَدْ فَعَلْتَ، وَلَكِنْ قَدْ غُفِرَ لَكَ بِإِخْلَاصِ قَوْلِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: يُرَادُ مِنْ هَذَا الْحَدِيثِ أَنَّهُ لَمْ يَأْمُرْهُ بِالْكَفَّارَةِ.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه دوه کسانو نبی ﷺ ته جګړه راوړله نو نبی ﷺ د دعوي کونکي نه ګواهان طلب کړل چونکه دهغه سره ګواهان نه وو نوپه دې وجه ئې قسم ورکړو هغه سړی ته په چاباندې چه دعوي شوي وه، ده په الله تعالی باندې قسم اوکړو په هغه الله تعالی چه دهغه نه علاوه بل معبود نشته، نبی ﷺ اوفرمائیل یقیناتا داکار کړې دې لیکن الله تعالی تاته معافي وکړله ستاد اخلاص په وجه ځکه چه تاپه اخلاص سره لا إله إلا الله اووئیل. امام ابوداود وائیلي دي ددې حدیث نه دامعلومیږي چه نبی ﷺ دغه کس ته دکفاري ورکولو حکم ونکړو.

﴿ عن ابن عباس رضی الله عنهما ان رجلین اختصما الی النبی ﷺ ﴾

یعنی دوه سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د یو څیز په باره کښې په جهګړه راغلل، د مدعی سره چونکه بینه نه وو په دې وجه رسول الله ﷺ د مدعی علیه نه قسم طلب کړو نو هغه قسم په دې الفاظو سره اوخوړلو، ﴿ بالله الذی لا اله الا هو ﴾ نو رسول الله ﷺ د هغه د قسم دا الفاظ اوریدو سره اوفرمائیل ﴿ بلی قد فعلت ﴾ چه د کوم څیز په نه کیدو باندې تاسو قسم کوئ تا هغه کار ضرور کړې دې (لهذا ته په دې قسم کښې دروغژن ئې) خو ستا دا لغزش او ګناه د لا اله الا الله د اخلاص د برکت د وجې نه معاف کړې شوه.

### استفید بالحدیث امران :

په دې باندې علامه سندی رحمه الله په فتح الودود کښې لیکی : ظاهر دا ده چه رسول الله ﷺ د هغه سړی یمین لره په ذریعه د وحی یا الهام باطلولو سره ددې خلاف فیصله اوفرمائیله، او د دې نه دا خبره هم معلومه شوه چه کله کله به رسول الله ﷺ د وحی په ذریعه د باطن د حال اعتبار کولو سره د ظاهر خلاف فیصله فرمائیله، او هغه چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل :

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٨٣٨) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٤٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٥٣، ٢٨٨، ٢٩٦، ٣٢٢، ٢/٧٠) ويأتي هذا الحديث في الأقضية (٣٦٢٠) (صحيح)

﴿ولكن غفر الله لک ﴾ د دې نه مراد د حلف كاذب د گناه معافي ده ففيه دليل على ان الكبائر تغفر بكلمة التوحيد آهـ

﴿ قال ابوداؤد : يراد من هذا الحديث انه لم يامره بالكفارة ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله فرمائي چه د دې حديث نه دا خبره مستفاد کيږي چه رسول الله ﷺ حالف ته د كفارې حکم نه دې ورکړې حال دا چه دا يمين يمين غموس وو چه په هغې کښې د امام شافعي رحمه الله په نزد کفاره ده، خو د جمهورو مسلک هم دا دې چه انه لا كفارة فيه، د دې حديث نه دوه فائدې مستفاد شوې کومې چه علامه سندي رحمه الله بيان کړې دی، دريمه فائده دا ده کوم چه مصنف رحمه الله فرمائيلې ده، دلته حضرت په بذل المجهود کښې يو اشكال او بيا د هغې جواب ليکلې دې، اشکال دا چه يمين كاذبه گناه کبيره ده کوم چه بغير د توبې نه نۀ معاف کيږی، نو د هغه سړی دا کبيره صرف په كلمة د توحيد څنګه معاف شوه ځکه چه حسنات صرف مکفر د صغائرو دی نه مطلقا، بيا ئې د دې جواب دا ليکلې دې چه ممکنه ده چه داسې اوئيلې شی چه کله دې سړی ﴿ لا اله الا الله ﴾ په اخلاص سره اووې نو گويا هغه پښيمانه شو په خپل کار باندې او پښيمانتيا توبه ده او دا هم ممکنه ده چه اوئيلې شی چه دا سړې د ﴿ لا اله الا الله ﴾ د وئيلو نه مخکښې مخلص مومن نه وو پس د دې حلف په وخت ئې کلمه توحيد په اخلاص سره اووې نو گويا هغه د خپل د ايمان تجديد اوکړو نو دې تجديد ايمان د هغه د مخکښې گناهونو تکفير اوکړو. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري

## باب كم الصاع في الكفارة

### په كفارو كښې كوم صاع لره اعتبار دې؟

يعنی په کفاره د يمين کښې به څومره غله ورکولې شی؟

### په كفاره د يمين كښې تفصيل سره د مذاهب ائمة :

وفي الكنز وكفارته تحرير رقبة او اطعام عشرة مساكين كهما في الظهار او كسوتهم بما يستر عامة البدن لقوله تعالى، فكفارته اطعام عشرة مساكين او كسوتهم الآية وكلمة ((او )) للتخيير فكان الواجب احد الاشياء الثلاثة، وقوله كهما في الظهار اى كالاطعام والتحرير في الظهار وقد بيناهما هناک (زيلعی ص ١١٢ ج٣) وفي حاشية الشلبي وان شاء اطعم عشرة مساكين كالاطعام في كفارة الظهار وهى نصف صاع من بر او صاع من تمر او شعير ويجوز ان يغديهم ويعشيهم بخبز إلا انه ان كان بُرًّا لا يشترط فيه الادام وان كان غيره فبادام، ويجزئ في الاطعام كل من التمليک والاباحة آهـ معلومه شوه چه په اطعام کښې دواړه اختيار دی يا خو به هر مسکين ته د صدقة الفطر په مثل يو صاع د شعير وغيره او نصف صاع د غنمو ورکولې شی، او يا ورته د تغديه او تعشيه اختيار دې، هم دغه شان د شوافعو وغيره په نزد چه کوم مقدار کفارة د ظهار وغيره ورکولې شی هم هغه مقدار دې دلته مسکينانو ته ورکړې شی، پس د شوافعو په نزد به هر مسکين ته يو مد د هر يو څيز نه او د امام مالک په نزد نصف صاع يعنی دوه مد د هر يو څيز نه، او د امام احمد په نزد من البر مدا ومن غيره مدين كما تقدم في كفارة الظهار.

هم دا مسئله د مصنف رحمه الله په ترجمة الباب کښې ذکر ده په دې وجه هغه مونږ دلته بیان کړه او دا هم ممکنه ده چه د مصنف رحمه الله غرض په ترجمة الباب سره مقدار صاع لره بیانول وی چه د هغې په صاع سره کفاره ادا کړې شی د دې صاع مقدار به څه وی، پس په دې حدیث سره کوم چه مذکور تحت الباب دې معلومه شوه چه د دې مقدار د مُدّ هشام په اعتبار سره مدین او نصف مد پکار دی، ففی غرض المنصف رحمه الله من الترجمة احتمالان.

[٣٢٧٩](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى أَنَسِ بْنِ عِيَاضٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ حَرْمَلَةَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبٍ بِنْتِ ذُؤَيْبِ بْنِ قَيْسٍ الْمُزَنِيَّةِ، وَكَانَتْ تَحْتَ رَجُلٍ مِنْهُمْ مِنْ أَسْلَمَ، ثُمَّ كَانَتْ تَحْتَ ابْنِ أَخٍ لِصَفِيَّةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ ابْنُ حَرْمَلَةَ: فَوَهَبَتْ لَنَا أُمُّ حَبِيبٍ صَاعًا، حَدَّثَتْنَا عَنِ ابْنِ أَخِي صَفِيَّةَ، عَنْ صَفِيَّةَ: أَنَّهُ صَاعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَنَسٌ: فَجَرَّبْتُهُ، أَوْ قَالَ: فَحَزَرْتُهُ فَوَجَدْتُهُ مُدَّيْنِ وَنِصْفًا بِمُدِّ هِشَامٍ.

دام حبیب بنت ذویب بن قیس نه روایت دې چه هغه په قبیله مزن کښې دبنی اسلم په شاخ کښې دیوکس په نکاح کښې وه اوبیا ئې څه وخت پس دام المومنین صفیه رضی الله عنها د وراره سره نکاح اوکړه، ابن حرمله وئیلی دی چه مونږته ام حبیب یوصاع (پیمانه) راکړې وو اودخپل دویم خاوند نه ئې نقل کړی وو چه هغه به دام المومنین صفیه رضی الله عنها نه روایت کولو چه دغه دنبی علیه السلام صاع وو، انس بن عیاض وئیلی دی ماددې معلومات اوکړو نودا دهشام بن عبدالملك دصاع په مقابله کښې دوه نیم مده وو.

## د مد هشام مقدار او د هغې تحقیق:

د دې نه معلومه شوه چه مد هشام د مطلق مد نه لوئې وی. اوس دا چه د دې مقدار به څه وی، د بخاری شریف ترجمه خو دا ده «باب صاع المدینة ومد النبی صلی الله علیه وسلم وبرکته» د مد هشام ذکر په هغې کښې نشته خو په موطاء د امام مالك رحمه الله کښې دی «قال مالك والکفارات کلها وزکاة الفطر وزکاة العشور کل ذلک بالمد الاصغر مد النبی صلی الله علیه وسلم الا الظهار فان الکفارة فیه بالمد الاعظم مد هشام» آه د جمهور علماء کرامو په نزد خو په ټولو کفاراتو کښې د مد مدینه یعنی د مد النبی صلی الله علیه وسلم اعتبار دې او امام مالك رحمه الله هم په ټولو کفاراتو او زکاة فطر وغیره کښې هم دهغه مد اعتبار کړې دې کوم ئې چه په موطاء کښې په مد اصغر سره تعبیر کړې دې خو په کفاره د ظهار کښې هغوی د مد هشام اعتبار کړې دې چه هغې ته مد اعظم وئیلې شی په اوجز کښې حضرت شیخ د علامه باجی نه نقل کړی دی چه زمونږ د اصحابو په دې مقدار کښې اختلاف دې بعض وائی چه یو مد هشام دنبی صلی الله علیه وسلم یو ثلث کم دوه مد دوه برابر وی او یو قول دا دې چه پوره دوه مدو د نبی صلی الله علیه وسلم د مد برابر وی یعنی د هغې پوره دوچند.

(الی آخر ما ذکر فی الاوجز ٣/١٨٩)

[٣٢٨٠](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ خَلَّادٍ أَبُو عُمَرَ، قَالَ: كَانَ عِنْدَنَا مَكُّوكٌ، يُقَالُ لَهُ: مَكُّوكُ خَالِدٍ، وَكَانَ كَيْلَجَتَيْنِ بِكَيْلَجَةِ هَارُونَ، قَالَ مُحَمَّدٌ: صَاعُ خَالِدٍ صَاعُ هِشَامٍ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْمَلِكِ.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٩٠٣) (ضعيف الإسناد)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٣٣٥) (صحيح)

د محمد بن محمد بن خلاد ابوعمر بیان دې چه ما سره یو مکوک [۱] وو هغې ته به دخالد مکوک وئیلې شو هغه د هارون د کیلجه [۲] سره د دوه د کیلجه برابر وو، محمد وائی: د خالد صاع د هشام یعنی د ابن عبدالملک صاع دی.

[۳۲۸۱] ([۳]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ خَلَّادٍ أَبُو عُمَرَ، حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، عَنْ أُمَيَّةَ بْنِ خَالِدٍ، قَالَ: "لَمَّا وَلِيَ خَالِدٌ الْقَسْرِيُّ أَضْعَفَ الصَّاعَ، فَصَارَ الصَّاعُ سِتَّةَ عَشَرَ رِطْلًا، قَالَ أَبُو دَاوُد: مُحَمَّدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ خَلَّادٍ قَتَلَهُ الزِّنْجُ صَبْرًا، فَقَالَ بِيَدِهِ هَكَذَا، وَمَدَّ أَبُو دَاوُدَ يَدَيْهِ، وَجَعَلَ بُطُونَ كَفَّيْهِ إِلَى الْأَرْضِ، قَالَ: وَرَأَيْتُهُ فِي النَّوْمِ، فَقُلْتُ: مَا فَعَلَ اللَّهُ بِكَ، قَالَ: أَدْخَلَنِي الْجَنَّةَ، فَقُلْتُ: فَلَمْ يَضُرَّكَ الْوَقْفُ.

امیه بن خالد وائی کله چه خالد قسری گورنر مقرر شو نوهغوی صاع دوچند کړو، نو یو صاع ۱۶ رطل شو، ابوداؤد وائی محمد بن محمد بن خلاد حبشیانو مخې ته اودرولو او قتل ئې کړو، هغوی په لاس (اشاره) سره اووئیل چه داسې (دې وئیلو سره) ابوداؤد خپل لاس خورکړو، او دخپلو دواړو لاسونو تهلی (دننه طرف) ئې زمکې طرف ته کړل، ابوداؤد وائی: ما هغه په خوب کښې اولید و نو تپوس مې ترې اوکړو چه الله تعالی تاسره څه معامله اوکړه؟ هغوی اووئیل: الله تعالی زه جنت ته داخل کړم، نو ما اووئیل: بیا خو چه حبشیانوته خپلې مخې ته اودرولې اوقتل ئې کړې نو ددې خو تاته هیڅ نقصان اونه رسیدو.

## بَاب فِي الرَّقَبَةِ الْمُؤْمِنَةِ

### د مسلمانې وینزې دآزادولو بیان

دکفاره یمین والا رقبه کښې د مومنه قید د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه په نزد دې، د احنافو په نزدپه دې کښې د مومنه قید نشته، خو په کفاره دقتل کښې د احنافو په نزد د رقبه مومنه قید شته دې په دې وجه هغه آیت کریمه کوم چه د کفاره قتل په باره کښې دې هغه دایمان په قیدسره مقید دې په خلاف دهغه نص کوم چه دکفاره یمین په باره کښې دې چه هغه مطلق دې قال الله تعالی : او تحریر رقبة..... لهذا مطلق به په خپل اطلاق باندې وی اومقیدپه خپل تقید باندې، او جمهور علماء کرامو په دې مسئله کښې مطلق لره په مقید باندې محمول کړې دې، دا مشهوره اختلافی مسئله ده په کتب اصول فقه کښې هم ذکر شوې ده د﴿ المطلق یجری علی اطلاقه والمقید علی تقیده ﴾ د قاعدې د لاندې.

[۳۲۸۲] ([۴]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ الْحَجَّاجِ الصَّوَّافِ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ السُّلَمِيِّ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، جَارِيَةٌ لِي صَكَكْتُهَا صَكَّةً، فَعَظَّمَ ذَلِكَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: أَفَلَا أُعْتِقُهَا، قَالَ: ائْتِنِي بِهَا، قَالَ: فَجِئْتُ بِهَا، قَالَ: أَيْنَ

---

[۱] ) مکوک د تانبې یا د مسینو یو لوښې دې چه بره خوله ئې لره تنگه وی او لاندې کهلاؤ وی پخوا به پرې خلقو اوبه څکلې او د پیمانه په طور به ئې د تللو او مقدار معلومولو دپاره هم استعمالولو، عام طور به د یو نیم صاع برابر وو، خو د هرې علاقې ددې لوښی غټ والی او وړوکوالی به مقدار کښې په کمې زیاتې هم وو.

[۲] ) دا هم یوه پیمانه ده.

[۳] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۶۰۶) (صحيح)

[۴] ): انظر حديث رقم :(۹۳۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۷۸) (صحيح)

اللّٰهُ؟، قَالَتْ: فِي السَّمَاءِ، قَالَ: مَنْ أَنَا؟، قَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللّٰهِ، قَالَ: أَعْتِقْهَا، فَإِنَّهَا مُؤْمِنَةٌ".

دمعاویه بن حکم سلمي رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه ماعرض اوکړو اې دالله رسوله زما یوه وینځه ده ماوهلي ده، په نبی علیه السلام باندي داخبره ښه ونه لګیده نوپه دې وخت کښې ماعرض اوکړو ایا ازاده ئې کړم؟ هغه راته اوفرمائیل ماته ئې راوله، دې وائی چه داوینځه مانبی علیه السلام ته حاضره کړه هغه تري تپوس اوکړو الله تعالی چرته دې؟ هغې اووئیل په اسمان کښې د بیا ئې تري تپوس اوکړو زه څوك یم؟ هغې اوونیل ته دالله رسول ئې نبی علیه السلام اوفرمائیل ازاده ئې کړه ځکه چه دا مومنه ده.

﴿عن معاوية بن الحكم السلمى قال قلت يا رسول الله ﷺ جارية لى صككتها صكة فعظم ذلک علی رسول الله ﷺ﴾

معاویه بن الحکم رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو چه زما یو وینزه ده چه هغې ته ما په مخ باندي سپیړه ورکړې ده رسول الله ﷺ د هغې زما په حق کښې لوئې جرم کیډل ظاهر اوفرمائیلو «دې اویریدو» او وې وئیل چه زه هغه آزاده نه کړم رسول الله ﷺ اوفرمائیل هغه ماته راوله، هغوی وائی چه ما هغه رسول الله ﷺ ته راوستله رسول الله ﷺ د هغې نه د امتحان په طور تپوس اوکړو ﴿ این الله ﴾ چه الله پاک ستا په نزد چرته دې؟ هغې جواب ورکړو ﴿ فی السماء ﴾ په آسمان کښې دې دا سوال خو ګویا د توحید متعلق شو او په دې کښې د اصنام د الهه کیدو نفی اوشوه بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زه څوک یم؟ هغې اووې چه تاسو د الله پاک رسول یئ، رسول الله ﷺ هغه صحابی ته اووې چه دا آزاده کړه دا مومنه ده

د دې حدیث په شرح کښې امام خطابی رحمه الله فرمائیلی دی چه دا خبره معقول او بدیهی ده چه رسول الله ﷺ دې صحابی رضی الله عنه ته د دې وینځې د آزادولو حکم په طریقه د کفارې ورکړې وو یعنی د معصیت دضرب کفاره په داسې طریقه چه ړومبی رسول الله ﷺ د هغې د ایمان امتحان واخستلو د هغې نه پس ئې د هغې د اعتاق حکم اوفرمائیلو، د دې نه معلومه شوه چه د هرې کفارې حال او حکم هم دا دې او بیا د دې نه پس هغوی په دې کښې اختلاف د علماء کرامو بیان کړې دې، دلته ذکر چونکه د کفاره یمین کیږی ځکه امام خطابی اشاره کړې ده دې خبرې طرف چه ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت په طریقه د قیاس دې.

والحدیث اخرجه مسلم والنسائی باتم منه، قاله المنذری

[۳۲۸۳]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنِ الشَّرِيدِ: أَنَّ أُمَّهُ أَوْصَتْهُ أَنْ يَعْتِقَ عَنْهَا رَقَبَةً مُؤْمِنَةً، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّ أُمِّي أَوْصَتْ أَنْ أُعْتِقَ عَنْهَا رَقَبَةً مُؤْمِنَةً، وَعِنْدِي جَارِيَةٌ سَوْدَاءُ نُوبِيَّةٌ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَرْسَلَهُ، لَمْ يَذْكُرِ الشَّرِيدَ.

د شرید نه روایت دې فرمائی چه ماته خپلې مورووصیت کړې وو چه زه دهغې مرګ نه پس دهغې دطرف نه یوه وینزه ازاده کرم فرمائی چه نبی علیه السلام ته ورغلم اوعرض مې وکړوچه اې

[1] ): سنن النسائي/الوصايا ۸ (۳۶۸۳)، (تحفة الأشراف: ۴۸۳۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۲/۴، ۳۸۸، ۳۸۹)، دي/ النذور ۱۰ (۲۳۹۳) (حسن صحيح)

دالله رسوله یقینا زماموروصیت کړې وو چه زه دهغې دطرف نه یوه مومنه وینزه ازاده کړم، اوزماسره دنوبیه مقام دحبشوپه خواه کښې دیوځائې نوم دې)یوه توره وینزه وه اوباقی روایت ئې دتیرشوی روایت په شان بیان کړو. امام ابوداود وئیلی دی دا روایت خالد بن عبدالله مرسل بیان کړې دې اوشرید ئې پکښې نه دې ذکرکړې.

[٣٢٨٤]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يَعْقُوبَ الْجُوزَجَانِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي الْمَسْعُودِيُّ، عَنْ عَوْنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: "أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجَارِيَةٍ سَوْدَاءَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ عَلَيَّ رَقَبَةً مُؤْمِنَةً، فَقَالَ لَهَا: أَيْنَ اللَّهُ؟، فَأَشَارَتْ إِلَى السَّمَاءِ بِإِصْبَعِهَا، فَقَالَ لَهَا: فَمَنْ أَنَا؟، فَأَشَارَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِلَى السَّمَاءِ، يَعْنِي أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ، فَقَالَ: أَعْتِقْهَا، فَإِنَّهَا مُؤْمِنَةٌ".

حضرت ابوهریره ﷛ وائی چه نبی کریم ﷺ ته یو سړی یوه توره وینځه راوستله، او عرض ئې اوکړو چه اې د الله رسوله ﷺ! زما په ذمه یوه مسلمانه وینځه آزادول دی، نبی کریم ﷺ دهغه وینځې نه تپوس اوکړو: الله چرته دې؟ نو هغې خپلې ګوتې سره آسمان طرف ته اشاره اوکړه (یعنی د آسمان دپاسه دې)، بیا نبی ﷺ دهغې نه تپوس اوکړو: زه څوک یم؟ نو هغې نبی کریم ﷺ او آسمان طرف ته اشاره اوکړه یعنی (دا ئې اووئیل چه) تاسو د الله رسول یئ، نبی کریم ﷺ (وینځه راوستونکی سړی ته) اووئیل: دا آزاده کړه دا مسلمانه ده.

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ النَّذْرِ

### د نذر د ممانعت بیان

په تیر ابواب د یمین سره متعلق وو، د دې ځائې نه د نذر ابواب شروع کیږی، پس په بعض نسخو کښې د دې باب نه ړومبی په جلی قلم سره لیکلې شوې دی، ﴿ اول النذور ﴾

﴿ عن عبدالله بن عمر ﷠ قال اخذ رسول الله ﷺ ينهى عن النذر ويقول انه لا يرد شيئا وانما يستخرج به من البخيل ﴾

### د نذر په حکم کښې مذاهب ائمة:

مصنف ﷫ ترجمه قائم کړې ده د کراهیة النذر، مصنف ﷫ حنبلی دې او د حنابله په نزد ابتداء نذر مکروه دې او هم دا د امام شافعی ﷫ مذهب دې لکه چه حافظ وئیلې دی او د احنافو او مالکیانو په نزد حکم د نذر استحباب دې خو حافظ د مالکیانو مذهب هم کراهت نقل کړې دې د شوافعو په شان، خو په دې باندې قسطلانی تعقب کړې دې چه مختصر خلیل (کوم چه د فقه مالکی کتاب دې) په دې کښې تصریح ده د دې خبرې چه کوم سړې نذر منی ﴿ شکرا لله تعالی ﴾ هغه مندوب دې قال ابن رشد وهو مذهب مالک آه (من الابواب والتراجم) والبسط فیه، د احنافو او مالکیانو په نزد د روایاتو دنهی محمل مطلق نذر نه دې بلکه نذر اللجاج دې، امام بخاری ﷫ باب قائم کړې دې ﴿ باب الوفاء بالنذر وقول الله تعالی یوفون بالنذر ﴾ علامه عینی ﷫ فرمائی چه امام بخاری ﷫ دا آیت راوړلو دې خبرې طرف ته اشاره کولو دپاره چه نذر لره پوره کول قابل تعریف څیز دې، د دې فاعل مستحق

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٥٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩١/٢) (حسن لغيره)

دثناء دې خو د دې نذر نه مراد نذر د طاعت دې نه نذر دمعصيت، او بيا فرمائي چه د نذر طاعت د وفا په وجوب باندې د علماء كرامو اجماع ده، خو په ابتداء د نذر كښې اختلاف دې ﴿ فقيل مستحب وقيل مكروه الخ ﴾ يعنى اول خو ځان په دې باندې پوهه كړئ چه يو خو وى نذر د طاعت او يو نذر د معصيت دې، د نذر معصيت قبيح او ناجائز كيدل خو ښكاره دى او نذر طاعت كښې دوه اړخونه دى يو نذر منلو سره هغه پوره كول، په دې كښې هم هيڅ كلام نشته چه دا عبادت دې او مستحسن دې، خو خبره په ابتداء د نذر كښې ده يعنى نذر منل څنګه دى محمود يا مذموم؟ دا مسئله مختلف فيه دې د احنافو او مالكيانو په نزد مستحب او د شوافعو او حنابله په نزد مكروه دې، ښه ځان پرې پوهه كړئ يعنى الفرق بين ايفاء النذر وابتداء النذر.

[۳۲۸۷]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ عبدِ اللهِ بنِ مُرَّةَ، قَالَ عُثْمَانُ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: أَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَنْهَى عَنِ النَّذْرِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، وَيَقُولُ: لَا يَرُدُّ شَيْئًا، وَإِنَّمَا يُسْتَخْرَجُ بِهِ مِنَ الْبَخِيلِ"، قَالَ مُسَدَّدٌ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: النَّذْرُ لَا يَرُدُّ شَيْئًا.

دعبدالله بن عمرنه روايت دې فرمائي چه نبى ﷺ دنذرمنلونه منع فرمائيلى ده چه نذر دتقدير څه شي لره نه شى واپس كولې اونه ئې بدلولې شي علاوه ددې نه چه دنذرپه ذريعه باندې د بخيل نه مال ويستلې شي.

## شرح الحديث:

دا ټول خو كلام وو د ترجمة الباب د لاندې او د حديث الباب مضمون دا دې: ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي چه رسول الله ﷺ به منع فرمائيله د نذر نه، يعنى د ابتداء د نذر نه، ځكه چه دا خو ښكاره ده چه ايفاء دنذر واجب دې، او بيا وړاندې حديث كښې رسول الله ﷺ فرمائي چه نذر تقدير لره نه شى لرې كولې (بلكه كيږى هم هغه كوم چه په تقدير كښې دې) او بيا فرمائي چه جز اين نيست چه د نذر په ذريعه سره مال ويستلې شى د بخيل سړى نه، د دې نه دوه خبرې معلوميږى يو دا چه په دې اعتقاد سره نذر منل چه د نذر منلو سره به زمونږ كار ضرور كيږى دا اعتقاد دتاثير باطل دې لهذا په دې نيت او اعتقاد كښې نذر نه دى منل پكار، دويمه خبره دا معلوميږى چه د طاعت نذر منلو دا طاعت لره معلق كول دى چه كه زمونږ كار اوشى نو مونږ به دومره صدقه كوو دا طريقه د بخيلانو ده، انفاق مال لوجه الله لره د نذر په ذريعه سره معلق كول نه دى پكار، بلكه د دې نيكئ بغير د نذر نه كول پكار دى، خو د بخيل طبيعت ځكه نه تياريږى چه هغه بغير د تعليق بالنذر نه خرچ نه كوى. او د نذر طاعت دا اړخ د مدح قابل نه دې بلكه مذموم دې، په بذل كښې ليكلى دى چه د خلقو عادت دې چه د جلب منافع او د دفع دمضار دپاره نذرونه منى او دا فعل دې د بخلاء هم په

[1] ): صحيح البخاري/القدر ٦ (٦٦٠٨)، الأيمان ٢٦ (٦٦٩٣)، صحيح مسلم/النذر ٢ (١٦٣٩)، سنن النسائي/الأيمان ٢٤ (٣٨٣٢، ٣٨٣٣)، سنن ابن ماجه/الكفارات ١٥ (٢١٢٢)، (تحفة الأشراف: ٧٢٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٦١، ٨٦، ١١٨)، دي/النذور ٥ (٢٣٨٥) (صحيح)

دې وجه په دې حديث کښې منع کړې شوې ده خو که څوک په اخلاص سره د يو قربت او عبادت نذر اومنی لکه څنګه چه عمر رضی الله عنه په مسجد حرام کښې د يوې شپې د اعتکاف نذر منلې و وهغه ممنوع نه دی آهـ والحديث اخرجه البخارى ومسلم والنسائي وابن ماجة، قاله المنذرى

[٣٢٨٨] (١)حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: قُرِءَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ، وَأَنَا شَاهِدٌ أَخْبَرَكُمُ ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مَالِكٌ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هُرْمُزَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَأْتِي ابْنَ آدَمَ النَّذْرُ الْقَدَرَ بِشَيْءٍ لَمْ أَكُنْ قَدَّرْتُهُ لَهُ، وَلَكِنْ يُلْقِيهِ النَّذْرُ الْقَدَرَ قَدَّرْتُهُ، يُسْتَخْرَجُ مِنَ الْبَخِيلِ، يُؤْتِي عَلَيْهِ مَا لَمْ يَكُنْ يُؤْتِي مِنْ قَبْلُ".

حضرت ابوهريره رضی الله عنه وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل (چه الله تعالی فرمائی) نذر (منخته) بنيادم ته څه داسې څيز نه شی راوړلې کوم چه ما دهغه دپاره مقرر کړې نه وی، ليکن نذر ده لره هغه تقدير سره ملاوهی کوم چه ما دده دپاره ليکلې دې، دا د بخيل نه هغه څيز اوباسی کوم چه دې ددې نذر نه مخکښې نه اوباسی (يعنی دخپل بخيل توب په وجه صدقه اوخيرات نه کوی خود نذر په وجه ئې کوی).

# بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّذْرِ فِي الْمَعْصِيَةِ

## د ناجائز عمل د نذر منلو بيان

[٣٢٨٩] (١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ الْأَيْلِيِّ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ نَذَرَ أَنْ يُطِيعَ اللَّهَ فَلْيُطِعْهُ، وَمَنْ نَذَرَ أَنْ يَعْصِيَ اللَّهَ، فَلَا يَعْصِهِ".

دعائشې رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائيلی دی چه څوک دالله تعالی تابعدارې کول نذراومنی نوده لره پکاردې چه دالله تابعدارې اوکړې او خپل نذر پوره کړې، اوکه چرې څوک دالله تعالی دنافرمانی کولو نذر اومنی نودې دې ګناه نه کوې (يعنی دانذرعبث دې څکه چه الله تعالی په ګناه باندې نه راضې کيږې).

### نذر د معصيت منعقد کيږی يا نه، مذاهب اربعة :

**قوله:** ﴿عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من نذر ان يطيع الله فليطعه ومن نذر ان يعصى الله فلا يعصه﴾ په دې حديث کښې د نذر د طاعت د پوره کولو حکم ورکړې شوې دې، او د نذر معصيت نه منع کړې شوې ده يعنی د دې پوره کولو سره، په دې باندې اجماع ده چه د نذر معصيت ايفاء جائز نه ده خو په دې کښې اختلاف دې چه نذر معصيت منعقد کيږی يا نه او هم دغه شان په وجوب د کفاره کښې، ابن قدامه فرمائی چه د نذر معصيت ايفاء بالاجماع

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٨٥٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأيمان ٢٦ (٦٦٩٢)، صحيح مسلم/النذر ٢ (١٦٤٠)، سنن الترمذي/النذر ١٠ (١٥٣٨)، سنن النسائي/الأيمان ٢٥ (٣٨٣٦)، سنن ابن ماجه/الكفارات ١٥ (٢١٢٣)، مسند احمد (٢/٢٣٥، ٢٤٢، ٣٠١، ٣١٤، ٤١٢، ٤٦٣) (صحيح)

(١): صحيح البخاري/الأيمان ٢٨ (٦٦٩٦)، ٣١ (٦٧٠٠)، سنن الترمذي/الأيمان ٢ (١٥٢٦)، سنن النسائي/الأيمان ٢٦ (٣٨٣٧)، ٢٧ (٣٨٣٨، ٣٨٣٩)، سنن ابن ماجه/الكفارات ١٦ (٢١٢٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٥٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/النذور ٤ (٨)، مسند احمد (٦/٣٦، ٤١، ٢٢٤)، سنن الدارمي/النذور ٣ (٢٣٨٣) (صحيح)

جائز نه ده او ناذر باندې كفاره يمين واجب كيږي سفيان ثوري او ابوحنيفه او د هغوی د اصحابو په نزد، او د امام احمد رحمه الله نه د دې قسم روايت مروی دې كوم چه په ې باندې دلالت كوی چه په هغه باندې كفاره واجب نه ده او هم دا مذهب دې د امام مالک او امام شافعي رحمهما الله (تراجم بخاری) امام خطابي رحمه الله هم د امام مالک او د امام شافعي رحمه الله مذهب د عدم وجوب كفاره ليكلې دې، او حافظ ابن قيم رحمه الله په تهذيب السنن كښې د امام احمد رحمه الله مسلک د احنافو په شان ليكلې دې د هغې الفاظ دا دی: ﴿ قال الموجبون للكفارة في نذر المعصية (وهم احمد واسحاق والثوری وابوحنيفة واصحابه ﴾ هذه الآثار قد تعددت طرقها ورواتها ثقات ﴾ الى آخر ما ذكر..... خپله حافظ ابن قيم رحمه الله په دې مسئله باندې تفصيل سره كلام كړې دې او وجوب كفاره ته ئې ترجيح وركړې ده، رواية دراية، د دې عبارتونو نه معلوميږي بلكه بعضو تصريح كړې ده چه د امام احمد رحمه الله نه په دې كښې دواړه روايتونه دی. والحديث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۳۳۰۰]( ) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ، إِذَا هُوَ بِرَجُلٍ قَائِمٍ فِي الشَّمْسِ، فَسَأَلَ عَنْهُ، قَالُوا: هَذَا أَبُو إِسْرَائِيلَ، نَذَرَ أَنْ يَقُومَ وَلَا يَقْعُدَ، وَلَا يَسْتَظِلَّ وَلَا يَتَكَلَّمَ، وَيَصُومَ، قَالَ: مُرُوهُ فَلْيَتَكَلَّمْ، وَلْيَسْتَظِلَّ، وَلْيَقْعُدْ، وَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام خلقوته خطبه وركوله نوناڅاپه يو سړې ښكاره شو چه په غرموولاړوو نونبی عليه السلام دهغه په باره كښې دخلقونه تپوس وكړو خلقو ورته اووئيل دا ابواسرائيل دې اوداندزئې منلې دې چه ولاړ به وي اوكښېني به نه اونه به سوري ته دمه كوي اونه به خبرې كوي اوروژه به ئې وي نبی عليه السلام اوفرمائيل ده ته اووائی چه خبرې اوكړي او په سوري دې كښېني اوخپله روژه دې پوره كړی.

**قوله:** ﴿ عن ابن عباس رضي الله عنهما قال بينما النبی صلی الله عليه وسلم يخطب اذا هو برجل قائم فی الشمس فسأل عنه فقالوا هذا ابو اسرائيل الخ ﴾ يعنی رسول الله صلی الله عليه وسلم په داسې حال كښې چه خطاب ئې فرمائيلو ناڅاپه د رسول الله صلی الله عليه وسلم نظر په يو داسې انسان باندې پريوتلو چه په ګرمئ كښې ولاړ وو رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغه په باره كښې د خلقو نه تپوس اوكړو، خلقو عرض اوكړو چه دا سړې ابو اسرائيل دې هغه نذر منلې دې چه دې به ولاړ وی په نمر كښې او كينی به نه او دا چه د چا سره به خبرې نه كوی، او دا چه روژه به ئې وی، رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ده ته اوايه چه ده له پكار دی چه خبرې اوكړی او په سوری كښې اودريږی، او كينی ولاړ دې نه پاتې كيږی او خپله روژه دې پوره كړی.

امام خطابي رحمه الله فرمائی چه د دې سړی نذر، په نذر طاعت او نذر معصيت په دواړو باندې مشتمل وو پس رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې انواع نذر كښې چه كوم د نذر طاعت وو د هغې د پوره كولو او كوم چه نذر د غير طاعت وو د هغې د ترک كولو اوفرمائيل: صوم خو نذر طاعت وو، او قيام فی الشمس او ترک كلام او ترک استظلال دا نذر د غير طاعت وو، خكه چه دا

( ): صحيح البخاري/الأيمان ۳۱ (۶۷۰۴)، سنن ابن ماجه/الكفارات ۲۱ (۲۱۳۶)، (تحفة الأشراف: ۵۹۹۱) (صحيح)

ځیزونه د مشاق د قبیلې نه دی بدن لره سترې کونکی او تکلیف ورکونکی، په دې کښې یو معنی هم د قربت او عبادت نشته، په دې وجه رسول الله ﷺ د هغې د ترک کولو حکم اوفرمائیلو. والحدیث اخرجه البخاری وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابُ مَنْ رَأَى عَلَيْهِ كَفَّارَةً إِذَا كَانَ فِي مَعْصِيَةٍ

### د معصیت د نذر په ماتولو باندې د بعضو په نزد باندې کفاره واجبیږي

دا ترجمة الباب د احنافو د مسلک ترجمانی کوی او هم دغه شان هغه حدیث کوم چه مصنف رحمه الله په دې باب کښې راوړلې دې خو مصنف رحمه الله په دې حدیث باندې د بعض نورو محدثینو په شان په دې باندې سخت کلام کړې دې لکه چه به راشی.

[٣٢٩٠](١) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةٍ، وَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ".

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه رسول پاك ا فرمائیلی دی نذر پوره کول د ګناه په کارکښې درست نه دی او ددې کفاره هغه ده کومه چه د قسم کفاره ده.

﴿عن یونس عن الزهری عن ابی سلمة عن عائشة رضی الله عنها ان النبی ﷺ قال لا نذر فی معصیة وکفارته کفارة یمین﴾

دا حدیث د ترجمة الباب او د احنافو د مسلک مطابق دې وړاندې مصنف رحمه الله په دې باندې کلام او اعتراض فرمائی.

[٣٢٩١](٢) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ بِمَعْنَاهُ وَإِسْنَادِهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ شَبُّويَةَ، يَقُولُ: قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ، يَعْنِي فِي هَذَا الْحَدِيثِ: حَدَّثَ أَبُو سَلَمَةَ، فَدَلَّ ذَلِكَ عَلَى أَنَّ الزُّهْرِيَّ لَمْ يَسْمَعْهُ مِنْ أَبِي سَلَمَةَ، وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ: وَتَصْدِيقُ ذَلِكَ مَا حَدَّثَنَا أَيُّوبُ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمَانَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: أَفْسَدُوا عَلَيْنَا هَذَا الْحَدِيثَ، قِيلَ لَهُ: وَصَحَّ إِفْسَادُهُ عِنْدَكَ، وَهَلْ رَوَاهُ غَيْرُ ابْنِ أَبِي أُوَيْسٍ، قَالَ أَيُّوبُ: كَانَ أَمْثَلَ مِنْهُ يَعْنِي أَيُّوبَ بْنَ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ، وَقَدْ رَوَاهُ أَيُّوبُ.

ابوداود وائی چه احمدبن شبویه وئیلی دی چه ابن مبارك ددې حدیث په باره کښې وئیلی دی چه دابوسلمه نه مې تپوس اوکړو نوهغه راته اووئیل دابوسلمه اوریدل دزهري نه ثابت نه دي. ابوداودوائی احمد بن حنبل رحمة الله علیه وئیلی دی چه دا حدیث ئې زمونږ په وړاندې خراب کړې دې دهغه نه تپوس اوکړې شو چه ایاستاپه نزد باندې ددې حدیث خرابیدل صحیح دي، اوایا دابن اویس نه علاوه بل چا هم دانقل کړې دې؟ نوهغه اوفرمائیل هو، ایوب بن سلیمان بن بلال هم نقل کړې دې.

﴿قال ابوداؤد : وسمعت احمد بن شبیه قال قال ابن المبارک : یعنی فی هذا الحدیث حدیث ابوسلمة فدل ذلک علی ان الزهری لم یسمعه عن ابی سلمة﴾

---

١): سنن الترمذي/الأيمان ٢ (١٥٢٤)، سنن النسائي/الأيمان ٤٠ (٣٨٦٥-٣٨٦٩)، سنن ابن ماجه/الكفارات ١٦ (٢١٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤٧/٦) (صحيح)

٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٧٧٠) (صحيح)

### د قال ابوداؤد تشریح او تنقیح:

په دې عبارت باندې د پوهیدو دپاره د دې حدیث چه کوم دویم سند وړاندې راغی هغه اوګورئ په هغې کښې داسې دی : ﴿ عن شهاب عن سلیمان بن ارقم ان یحیی بن ابی کثیر اخبره عن ابی سلمة ﴾ په دې سند کښې د زهری او ابوسلمه ترمنیځه دوه واسطې ذکر دی سلیمان بن ارقم او یحیی ابن ابی کثیر خو په دې ړومبی سند کښې په دې دواړو واسطو کښې یو واسطه هم نه ده ذکر شوې بلکه براه راست زهری د ابو سلمه نه روایت کوی، اوس د دې نه پس د مصنف رحمه الله په کلام باندې ځان پوهه کړئ، مصنف فرمائی ما د خپل استاد احمد بن شبویه نه واوریدل چه عبدالله ابن المبارک په دې حدیث د ابوسلمة باندې کلام کړې دې «وړاندې هیڅ نشته چه څه کلام ئې پرې کړې دې خو مصنف رحمه الله فرمائی چه د ابن المبارک رحمه الله په حدیث باندې نقد او کلام کول په دې خبره باندې دلالت کوی چه زهری حدیث لره براه راست د ابوسلمه نه نۀ دې اوریدلې، دا خبره مصنف رحمه الله څنګه فهم کړه چه هغوی کلام هم په دې وجه باندې کړې دې، غالبا مصنف رحمه الله دا خبره ځکه اوګڼرله چه د دې حدیث په سند کښې یو راوی هم داسې نشته چه هغه غیر ثقه وی، لهذا دا کلام په سند کښې دیو راوی د وجې نه نۀ دې بلکه د انقطاع د سند د وجې نه کیدې شی ځکه چه د دې نه روستو حدیث مصنف رحمه الله په داسې طریق باندې راوړې دې چه په هغې کښې د زهری او ابوسلمه ترمینځه دوه واسطې موجود دی، فثبت منه انقطاع هذا السند ووجه الکلام علیه، مصنف هم په دې باندې نه ده بس کړې بلکه وړاندې د امام احمد رحمه الله نقد هم چه په دې حدیث باندې دې هغه ذکر کوی: قَالَ أَبُو دَاوُدَ سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ يَقُولُ : أَفْسَدُوا عَلَيْنَا هَذَا الْحَدِيثَ. قِيلَ لَهُ : وَصَحَّ إِفْسَادُهُ عِنْدَكَ وَهَلْ رَوَاهُ غَيْرُ ابْنِ أَبِي أُوَيْسٍ قَالَ : أَيُّوبُ كَانَ أَمْثَلَ مِنْهُ. يَعْنِي أَيُّوبَ بْنَ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ وَقَدْ رَوَاهُ أَيُّوبُ....... مصنف رحمه الله فرمائی ما د خپل استاد احمد بن حنبل رحمه الله نه واوریدل هغوی به فرمائیل بعض خلقو په مونږ باندې دا حدیث فاسد او خراب کړې دې، یعنی د دې په سند کښې خرابی کولو سره، چا ترې تپوس اوکړو چه ستاسو په نزد د دې حدیث د سند خرابوالې محقق دې؟ په اصل کښې سائل پوهه شوې وو چه امام احمد بن حنبل رحمه الله د دې حدیث د سند فساد چه ثابتوی هغه د هغې سند او طریق په وجه باندې دې کوم چه وړاندې په کتاب کښې راغی چه د هغې راوی ابوبکر بن اویس دې «چا چه د دې حدیث په سند کښې د زهری او ابوسلمة په مینځ کښې دوه واسطې ذکر کړی دی» نو سائل د امام احمد رحمه الله نه تپوس کوی چه د کوم حدیث په بناء باندې تاسو د دې حدیث د سند فساد ثابتوئ چه د هغې راوی ابن ابی اویس دې نو آیا د ابن ابی اویس څوک متابع هم په دې کښې شته یا نه؟ چه مونږ هغه بل سند کوم چه راروان دې چه په هغې کښې دوه واسطې موجود هغې ته راجح اونیلې شو، ځکه چه د کوم حدیث سند ته هغوی فاسد وائی د هغې راوی خو د زهری نه یونس دې چه ثقه او قوی دې او هغه دویم سند چه د هغې د وجې نه هغه سند ته منقطع وائی د هغې راوی ابن ابی اویس دې چه متکلم فیه دې، نو ترهغه وخته پورې چه د هغه څوک متابع ملاؤ نه شی هغې ته راجح څنګه ونیلې کیدې شی

نو د دې اصولي سوال جواب امام احمد رحمه الله داسې ورکړو چه عجیبه شان دې، او هغه دا چه هغوی په ځائې د متابع پیش کولو دا فرمائی چه د ابن ابی اویس چه کوم شاګرد دې یعنی ایوب هغه د ابن ابی اویس نه زیات ثقه دې نو ګویا د شاګرد ثقاهت لره قائم مقام د متابع منی، یعنی د امام صاحب په ذهن کښې د ابن ابی اویس څوک متابع خو او نه چه هغه ئې بیان کړې وې بلکه دا ئې اوفرمائیل چه ایوب کوم چه د ابن ابی اویس نه روایت کوی هغه ډیر زیات ثقه دې خو دا خبره بس هم دغه شان ده د دې وجې نه حضرت لیکی : وانت خبیر بان جواب الامام غیر صحیح علی قاعدة المحدثین فان روایة ایوب بن سلیمان لا یدفع ضعف ابی بکر بن ابی اویس فانه تلمیذه فلا یقاوم حدیث یونس عن الزهری فلا یثبت احتمال التدلیس، حضرت دا فرمائی چه د شاګرد ثقاهت او قوت د استاد ضعف نه شی ختمولې چه هر کله دا خبره ده نو بیا د ابوبکر بن اویس حدیث، د حدیث یونس عن الزهری مقاومت نه شی کولې، لهذا د حدیث دیونس عن الزهری مدلس یا منقطع کیدل ثابت نه شو کوم چه دا حضرات ثابتول غواړی، بیا وړاندې حضرت فرمائی علی ان النسائی روی حدیث یونس بسند هارون بن موسی المدنی قال ثنا ابو ضمرة عن یونس عن ابن شهاب قال ثنا ابوسلمة عن عائشة رضی الله عنها، اوګورئ په دې سند کښې ابن شهاب د ابو سلمة نه د سماع تصریح کوی، لهذا د دې حدیث نه انقطاع ثابته شوه او نه تدلیس، الی آخر ما ذکر فی البذل

[٣٢٩٢](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي أُوَيْسٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي عَتِيقٍ، وَمُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَرْقَمَ، أَنَّ يَحْيَى بْنَ أَبِي كَثِيرٍ، أَخْبَرَهُ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةٍ، وَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ"، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ: إِنَّمَا الْحَدِيثُ حَدِيثُ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَرَادَ أَنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ أَرْقَمَ وَهِمَ فِيهِ، وَحَمَلَهُ عَنْهُ الزُّهْرِيُّ، وَأَرْسَلَهُ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَحِمَهَا اللَّهُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَى بَقِيَّةُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الزُّبَيْرِ، بِإِسْنَادِ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ مِثْلَهُ.

دعائشې رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائیلی دی نذر پوره کول درست نه دی دګناه په کارکښې او ددې کفاره به هغه وي کومه چه دقسم کفاره ده، احمد بن حنبل رحمة الله علیه وئیلی دی چه دحدیث اصل سند داسې دې علي بن مبارك دمحمدبن زبیرنه اوهغه دخپل پلارنه هغه دعمران بن حصین نه هغه دنبی عليه السلام نه داحمد دقول مفهوم دادې چه په دې حدیث کښې دسلیمان بن ارقم نه وهم شوې دې هغه دې لره مرسل نقل کړې دې دابوسلمه نه اوهغه دعائشه رضی الله عنها نه ابوداؤد وائی بقیه د اوزاعی نه، هغه د یحی نه، هغه د محمد بن زبیر نه د علی بن مبارک په سند سره ددې په مثل روایت کړې دې.

## تشریح الحدیث

قوله: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ سُلَيْمَانَ......الخ:

دباب ړومبې حدیث یعنی دحدیث عائشة رضی الله عنها دا دویم طریق دې چه په هغې کښې ابن شهاب

(1): انظر حدیث رقم: (٣٢٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٨٢) (صحیح بما قبله)

او د ابو سلمة ترمینځه دوه واسطې موجود دی کومې چه په رومبی سند کښې نه وې هم په دې وجه باندې امام ابوداؤد رحمه الله په دې سند باندې د عبدالله ابن المبارک او امام احمد بن حنبل رحمهما الله نقد نقل فرمائیلې وو، چه د هغې مطلب دا شو چه د حدیث عائشه رضي الله عنها دا طریق ثانی هم غلط دې پس فرمائی: قَالَ أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ : إِنَّمَا الْحَدِيثُ حَدِيثُ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-. أَرَادَ أَنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ أَرْقَمَ وَهِمَ فِيهِ وَحَمَلَهُ عَنْهُ الزُّهْرِيُّ وَأَرْسَلَهُ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عنها.

احمد بن محمد مروزی رحمه الله فرمائی چه دا پورته طریق یعنی سلیمان بن ارقم عن یحیی بن ابی کثیر بالکل غلط دې، صحیح طریق د یحیی بن ابی کثیر د دویم شاګرد یعنی د علی ابن المبارک والا دې، او علی ابن المبارک حدیث داسې روایت کړې دې عن یحیی بن ابی کثیر عن محمد بن الزبیر عن ابیه عن عمران بن حصین، په اصل کښې دا سلیمان بن ارقم راوی مجمع علی ضعفه دې هغه سند د یحیی بن ابی کثیر نه غلطې طریقې سره بیان کړې دې، د یحیی بن ابی کثیر استاد په دې سند کښې ابوسلمة نه دې لکه چه سلیمان بن ارقم بیان کړې ده بلکه محمد بن الزبیر دې او بیا د هغوی نه وړاندې سند داسې دې عن ابیه عن عمران بن حصین رضي الله عنه ګویا دا حدیث د مسانید عائشة رضي الله عنها نه نۀ دې بلکه د عمران بن حصین د مسانیدو نه دې او دا ټول خرابې د سلیمان بن ارقم د طرف نه دې، او بیا په دې باندې زیاتی خرابوالې دا اوموندلې شو چه چونکه دا حدیث امام زهری رحمه الله د سلیمان بن ارقم نه اخستلې دې نو هغوی په ځائې د بعینه نقل کولو مرسلا د ابو سلمة نه روایت کړو د مینځ دوه راویان ئې تدلیسا حذف کړل (د زهری شمیر دې هم په مدلسینو کښې) خلاصه دا شوه چه د دې حدیث عائشة رضي الله عنها په سند کښې دوه کسانو خرابی کړې ده اول سلیمان بن ارقم چه هغه سند بل څه بیان کړو اصل حدیث د عمران بن حصین رضي الله عنه دمسانیدو نه وو سلیمان دا په ځائې د هغوی عائشې رضي الله عنها ته منسوب کړو، دویم تصرف د دې حدیث په سند کښې د سلیمان شاګرد ابن شهاب زهری کړې دې چه د مینځ نه ئې دوه راویان تدلیسًا حذف کړل، امام ابوداؤد رحمه الله چه څه وئیل غواړی د هغې تشریح هغه ده کومه چه مونږ پورته بیان کړه، اوس د دې ټولې خبرې حاصل دا شو چه د باب په شروع کښې چه مصنف رحمه الله کوم حدیث د عائشې رضي الله عنها په یو طریق سره د هغې نه پس په دویم طریق ذکر کړو، دا حدیث د دواړو طریقو په اعتبار سره وهم دې، او صحیح داسې دې کومه چه احمد بن محمد مروزی وائی یعنی :

علی بن المبارک عن یحیی بن ابی کثیر عن محمد بن الزبیر عن ابیه عن عمران بن حصین رضي الله عنه عن النبی صلى الله عليه وسلم انه قال لا نذر فی معصیة وکفارته کفارة یمین.

زه د ابوداؤد په سبق کښې وایم چه دا ﴿ قال ابوداؤد ﴾ په ټول کتاب کښې د ټولو اقاویلو د ابوداؤد نه زیات مشکل او سخت دې د الله پاک په فضل سره مونږ پورته د دې پوره وضاحت لیکلې دې اوس به د پوهیدونکو دپاره په دې کښې هیڅ سختی نه وی، او مونږ چه د دې کومه تشریح کړې ده هغه تقریبا ټوله د بذل المجهود نه اخستلې شوې ده.

## د عائشې رضي الله عنها په حديث باندې د محدثينو نقد او د احنافو د طرف نه د هغې رد

د دې نه پس ځان په دې پوهه کړئ چه دا په حديث د عائشې رضي الله عنها باندې کلام شروع دې په نذر د معصيت کښې د احنافو د مسلک دليل دې يعني دا چه نذر د معصيت منعقد کيږي او بيا په هغې کښې کفاره د يمين واجب کيږي او جمهور علماء کرام رحمهم الله دا وائي چه نذر د معصيت نه منعقد کيږي او نه په دې کښې کفاره واجب کيږي، اوس دا حضرات محدثين په دې حديث عائشة رضي الله عنها باندې کلام کوي، د امام ابوداؤد او امام احمد رحمهما الله وغيره کلام خو اوس پورته ذکر شو، امام خطابي رحمه الله دا فرمائي چه که داحديث د عائشې رضي الله عنها صحيح شي لكان القول به واجبا والمصير اليه لازما،

او بيا وړاندې فرمائي، خو دا حديث ثابت نه دې ځکه چه د محدثينو دا دعوی ده چه اله حديث مقلوب او د دې نه پس بيا څه چه امام ابوداؤد رحمه الله ذکر کړي دی امام خطابي هم هغه بيان کړي دی او بيا ئې په آخير کښې دا وئيلي دی چه کله دا ثابته شوه چه دا حديث داسې مروی دې څنګه چه احمد بن محمد مروزی بيان کوي، او څنګه چه هغوی فرمائي د دې په سند کښې محمد بن الزبير او د هغه پلار راوی دې او دا دواړه مجهول دی، پس دا حديث د زهري په طريق سره خو مقلوب دې او په دويم طريق کښې رجل مجهول دې لهذا دا حديث ساقط الاحتجاج شو، والله تعالى اعلم.

د دې ټولو جواب زمونږ د طرف نه دا دې کوم چه حضرت سهارنپوري په بذل کښې د علامه سندي د حاشيې نه چه په نسائي باندې ده نقل کړې دې چه د هغې حاصل دا دې چه دا حديث صرف د عائشې رضي الله عنها نه نۀ دې روايت بلکه د عقبه بن عامر او عمران بن حصين رضي الله عنهما نه هم روايت کړې شوې دې، او د حديث عائشة رضي الله عنها بعض اسانيد کښې (عن الزهري عن ابي سلمة) دې او په بعضو طرقو کښې (عن الزهري قال حدثنا ابو سلمة) چه صريح دې د زهري په سماع کښې د ابوسلمة نه (لهذا د تدليس احتمال بيان کول صحيح نه دی) او د دې په بعض طرقو کښې (عن الزهري عن سليمان بن ارقم ان يحيى ابن ابي كثير حدثه انه سمع اباسلمة، وهذا الاختلاف يمكن دفعه باثبات سماع الزهري مرة عن سليمان عن يحيى بن ابي سلمة ومرة عن ابي سلمة نفسه، وعند ذلک لاقطع بضعفه سيما حديث عقبة وعمران يؤيد الثبوت والله تعالى اعلم.

يعني د زهري په حديث کښې چه کوم اضطراب او اختلاف دې په دې باره کښې دا وئيلې کيدې شي د هغې په باره کښې دا وئيلې کيدې شي چه ممکنه ده دا حديث د زهري په دواړو طرقو سره را رسيدلې وي براه راست د ابوسلمة نه هم او په واسطه ده سليمان عن يحيى بن ابي کثير نه هم، او په دې کښې هيڅ د اشکال خبره نشته، خصوصا چه د عقبه بن عامر او عمران بن حصين رضي الله عنهما د حديث نه هم د کفارې ثبوت ملاويږي.

حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه الترمذي وابن ماجة، قاله المنذري.

[۳۲۹۳](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيُّ، أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللهِ بْنُ زَحْرٍ: أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ مَالِكٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ أَخْبَرَهُ، "أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَنْ أُخْتٍ لَهُ، نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ حَافِيَةً غَيْرَ مُخْتَمِرَةٍ، فَقَالَ: مُرُوهَا فَلْتَخْتَمِرْ، وَلْتَرْكَبْ، وَلْتَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ".

دعقبة بن عامر نه روايت دې فرمائي چه د نبي ﷺ نه مې دخپلې خور متعلق تپوس اوکړو هغه داسې چه زماخور داندرمنلې وو چه زه به خپې ابله خپې اوسرتور سر حج کوم نبي ﷺ ده ته اوفرمائيل هغې ته داحکم اوکړئ چه خپل سر پټ کړي او په سورلئ دي حج ته لاړه شي اودرې روژې دې اونيسي.

قوله: عن عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ أَخْبَرَهُ : أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ أُخْتٍ لَهُ نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ حَافِيَةً غَيْرَ مُخْتَمِرَةٍ فَقَالَ : « مُرُوهَا فَلْتَخْتَمِرْ وَلْتَرْكَبْ وَلْتَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ ».

مضمون د حديث دا دې چه عقبه بن عامر ﷺ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه زما يوه خور ده چا چه دا نذر منلې دې چه هغه به حج کوی پيدل خپې ابله او بغير د سر پټولو نه، رسول الله ﷺ اوفرمائيل هغې ته پکار دی چه سر پټ کړی او په سورلئ حج اوکړی او هغې ته پکار دی چه درې روژې اونيسی.

## د روايات الباب تجزيه

خان پوهول پکار دی چه مصنف ﷫ د اخت عقبه ﷺ د نذر قصې لره په دوه طريقو سره ذکر کړې ده يو په روايت د عقبه او دويم په روايت د عکرمة عن ابن عباس مسندا، او په يو طريق کښې دی عن عکرمه مرسلا، بيا د روايت د عقبه بن عامر ﷺ الفاظ خو دا دی ﴿ مروها فليختمر ولترکب ولتصم ثلاثة ايام ﴾ او په يو روايت کښې دی ﴿ لتمش ولترکب ﴾ په دې کښې د صوم وغيره ذکر نشته، او د ابن عباس ﷺ په يو روايت کښې دی ﴿ فامرها النبی ﷺ ان ترکب وتهدی هديا ﴾ او په يو روايت کښې د هغوی داسې دی فليحتج راکبة ولتکفر يمينها، او د ابن عباس ﷺ په روايت کښې صرف د مشی ذکر دې د عدم اختمار نه.

د دې نه پس مصنف ﷫ د انس ﷺ حديث ذکر کړو چه د هغې تعلق د اخت عقبة ﷺ سره نه دې بلکه په هغې کښې دی رَأَى رَجُلاً يُهَادَى بَيْنَ ابْنَيْهِ او په دې کښې دی، ان الله لغنی عن تعذيب هذا نفسه وامره ان يرکب، حافظ فرمائی چه په حديث د انس ﷺ کښې دی چه رسول الله ﷺ هغه ته د رکوب حکم اوکړو جزما، او د اخت عقبة ﷺ په باره کښې دا دی چه هغې ته رسول الله ﷺ حکم اوفرمائيلو، ان تمشی وان ترکب... خکه په حديث د انس ﷺ کښې نذر منلو والا ﴿ کان شيخا ظاهر العجز ﴾ او د اخت عقبة حال دا نه وو په دې وجه رسول الله ﷺ هغې ته اوفرمائيل چه تر خو پورې پيدل تلې شی پيدل دې لاړه شی او کله چه عاجزه شی نو سوره دې شی. اهـ

¹: سنن الترمذي/الأيمان ١٦ (١٥٤٤)، سنن النسائي/الأيمان ٣٢ (٣٨٤٦)، سنن ابن ماجه/الكفارات ٢٠ (٢١٣٤) (تحفة الأشراف: ٩٩٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٣/٣، ١٤٥/٣، ١٤٧، ١٤٩، ١٥١)، سنن الدارمي/النذور ٢ (٢٣٧٩) (ضعيف)

## الكلام على الحديث من حيث الفقة :

د دې نه پس خان پوهول پكار دى چه كوم سړې د حج ماشيا نذر اومنى نو په هغه باندې ايفاء واجب ده ګينې په هغه باندې به جزا واجب وى، پس كه هغه د خپل نذر ايفاء اوكړه نو ډيره ښه ده او كه وې نه كړه نو د امام احمد رحمه الله مذهب دا دې چه په دې كښې به د يمين كفاره واجب وى لهذا ﴿ ولتصم ثلاثة ايام ﴾ والا روايت به د حنابله موافق وى او د امام شافعي او مالک رحمهما الله په نزد په هغه باندې هدى واجب ده، او د احنافو په نزد به هدى په هغه صورت كښې واجب ده ﴿ اذا كان الركوب فى اكثر المسافة ﴾ او كه داسې نه وى نو په هغه باندې به د شاة قيمت واجب وى په اندازه د ركوب، د ائمه ثلاث استدلال د ابن عباس رضي الله عنهما د روايت نه اوشو چه په هغې كښې دى، ﴿ ان تركب وتهدى هديا ﴾ اوس چه په كوم روايت كښې ﴿ ولتصم ثلاثة ايام ﴾ دى هغه د ائمة ثلاثه خلاف دى، د دې جواب دا كيدې شى چه دا ممكنه ده چه دا روايت بالمعنى وى ځكه چه د ابن عباس رضي الله عنهما د روايت يو طريق داسې دې ﴿فلتحج راكبة ولتكفر يمينها ﴾ نو هم هغه راوى ﴿ ولتصم ثلاثة ايام ﴾ سره تعبير كړې دې، حال دا چه د كفارې نه مراد دلته كفارة الجناية وو لكه چه د ابن عباس رضي الله عنهما د روايت په دويم طريق كښې ﴿ ان تركب وتهدى هديا ﴾ راغلې دې.

پس ملا على قارى رحمه الله په مرقاة كښې فرمائى ﴿ والظاهر ان المراد بالتكفير كفارة الجناية وهى الهدى او ما يقوم مقامه من الصوم ﴾ او دا هر څه خو هغه دى كوم چه مونږ د حافظ وغيره رحمهم الله شارحينو د كلام نه فهم كړه او زمونږ حضرت سهارنپورى رحمه الله په بذل المجهود كښې د دې په شرح كښې ليكلې دى چه د اخت عقبة رضي الله عنها په نذر كښې دوه څيزونه موندلې شوې دى يو د حج ماشيا نذر دويم د عدم اختمار نذر، په دې دواړو كښې يو نذر نذر د طاعت دې او دويم نذر د معصيت، د نذر طاعت پوره كول واجب دى يعنى حج ماشيا، او د نه پوره كولو په صورت كښې هدى يعنى دم جنايت به واجب وى لكه چه په يو روايت كښې د هدى ذكر دې، او دويم نذر كوم چه نذر معصيت دې د هغې ايفاء چونكه ناجائز ده او حانث كيدل واجب دى، او بيا به په دې صورت كښې د يمين كفاره واجب كيږى لكه چه دلته په يو روايت كښې دى ﴿ ولتصم ثلاثة ايام ﴾ (١) مصنف رحمه الله چه دا حديث د كوم ترجمة الباب د لاندې راوړې دې د هغې نه د حضرت د رائې تائيد كيږى.

د حضرت شيخ د حاشيه بذل نه په دې مسئله كښې د مذاهب ائمة تفصيل ذكر كړې شوې دې كوم چه لاندې په حاشيه كښې ليكلې شى ففيه من نذر المشى ثم ركب فعند احمد القادر على المشى اساء دون العاجز وعليه كفارة يمين بكل حال والرواية الاخرى عليه دم وهو قول الشافعى فى الحالين القدرة والعجز والدم الشاة على الاصح، وقول آخر انه بدنة، وعند مالک يجب قضاء ما ركب فى سنة اخرى فيمشى ما ركب ويركب ما مشى اذا كان المشى كثيرا وكان فى المناسک وهى من

---

١) حاصل دا چه د هدى حكم د ركوب د وجې نه دې او د صوم ثلاثه ايام تعلق د اختمار سره دې دواړه روايتونه به جمع كولې شى)

خروج مكة الى رجوع منى،، ومع ذلک يجب الهدى ايضا وهذا اذا كان قريب البلدة كالمدنى او متوسطها كالمصرى، وان كان بعيدا البلدة كالافريقى فعليه الهدى فقط وكذا اذا كان الركوب قليلا فى غير المناسک وعندنا الحنفية، اذا ركب فى اكثر الطريق بعذر او بلا عذر فعليه دم شاة، وفى الاقل او المساواة بقدر ذلک من قيمة الشاة الاوجز ۴/۳۳)والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وابن ماجة، قاله المنذرى وحديث انس رضی الله عنه اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى، قاله المنذرى

[٣٢٩٤](١) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: كَتَبَ إِلَيَّ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ زَحْرٍ مَوْلًى لِبَنِي ضَمْرَةَ، وَكَانَ أَيَّمَا رَجُلٍ، أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الرُّعَيْنِيَّ أَخْبَرَهُ، بِإِسْنَادِ يَحْيَى وَمَعْنَاهُ.

عبد الرحمن وائی: مونږ ته ابن جريج بيان کړې دي چه يحى بن سعيد ماته اوليکل چه ماته د بنوضمره غلام عبيد الله بن زحر يا بل چا خبر راکړو چه هغوی ته ابوسعيد رعينی د يحى په سند سره ددې مفهوم حديث خبر ورکړې دې.

[٣٢٩٩](٢) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، أَنَّ يَزِيدَ بْنَ أَبِي حَبِيبٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أَبَا الْخَيْرِ حَدَّثَهُ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: "نَذَرَتْ أُخْتِي أَنْ تَمْشِيَ إِلَى بَيْتِ اللَّهِ، فَأَمَرَتْنِي أَنْ أَسْتَفْتِيَ لَهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَاسْتَفْتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: لِتَمْشِ وَلْتَرْكَبْ".

دعقبة بن عامر الجهنی رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه زماخور نذر منلې دې چه بيت الله ته به پيدل زم اوماته ئې اووئيل چه زه ددې دپاره دنبی عليه السلام نه شرعي حکم معلوم کړم نبی عليه السلام راته اوفرمائيل پيدل هم تلې شي اوپه سورلئ باندې هم تلې شي (مراد دادې چه پيدل دې روانه شي خوچه کله ستړې شي نوبيا دې په سورلئ سوره شي)

[٣٢٩٧](٣) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَمَّا بَلَغَهُ أَنَّ أُخْتَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ مَاشِيَةً، قَالَ: إِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنْ نَذْرِهَا، مُرْهَا فَلْتَرْكَبْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ نَحْوَهُ وَخَالِدٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی هرکله چه نبی عليه السلام ته داخبره ورسيدله چه دعقبة بن عامرخور دپيدل حج کولونذرمنلې دې تو اوئې فرمائيل چه الله تعالى دهغې دنذر ته احتياج نه لرى اوهغې ته حکم وکړئ چه په سورلئ دې سوره شي. امام ابوداود وئيلى دى چه دسعيد بن ابى عروبه نه هم داسې روايت منقول دې اوخالد دعکرمه نه اوهغه دنبی عليه السلام نه هم داسې روايت نقل کړې دې.

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٩٠) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/جزاء الصيد ٢٧ (١٨٦٦)، صحيح مسلم/النذر ٤ (١٦٤٤)، سنن النسائي/ الأيمان ٣١ (٣٨٤٥)، (تحفة الأشراف: ٩٩٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٢/٤) (صحيح)

(٣): انظر ما قبله: (٣٢٩٢)، (تحفة الأشراف: ٦١٩٧، ١٩١٢١) (صحيح)

[٣٢٩٦]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ أُخْتَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ نَذَرَتْ أَنْ تَمْشِيَ إِلَى الْبَيْتِ، فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَرْكَبَ، وَتُهْدِيَ هَدْيًا".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي دعقبة بن عامرخور دپيدل حج كولونذرمنلې وو نو نبي عليه السلام ورته او فرمائيل چه په سورلۍ دې سوره شي اوحج ته دې دخان سره قرباني بوځي.

[٣٢٩٥]([2]) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ مَوْلَى آلِ طَلْحَةَ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أُخْتِي نَذَرَتْ يَعْنِي أَنْ تَحُجَّ مَاشِيَةً، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللَّهَ لَا يَصْنَعُ بِشَقَاءِ أُخْتِكَ شَيْئًا، فَلْتَحُجَّ رَاكِبَةً، وَلْتُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهَا".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام ته يوكس حاضرشوعرض ئې وكړوچه اې دالله رسوله زماخور دپيدل حج كولونذرمنلې دې نو نبي عليه السلام ورته او فرمائيل چه الله تعالى ستاخورته دهغې په تكليف باندې هيڅ اجرنه وركوي هغې لره پكاردي چه په سورلۍ دې حج وكړي اودخپل قسم كفاره دې وركړي.

[٣٣٠١]([3]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رَأَى رَجُلًا يُهَادَى بَيْنَ ابْنَيْهِ، فَسَأَلَ عَنْهُ: فَقَالُوا: نَذَرَ أَنْ يَمْشِيَ، فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنْ تَعْذِيبِ هَذَا نَفْسَهُ، وَأَمَرَهُ أَنْ يَرْكَبَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَمْرُو بْنُ أَبِي عَمْرٍو، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ.

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام يوكس اوليدو چه دخپلو دوه ځامنوپه اوږوباندې ئې لاس ايښودلې وو او روان وو نبي عليه السلام دهغه متعلق تپوس وكړو نوصحابه كرامو ورته اووئيل چه ده دپيدل تلونذرمنلې دې نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل چه الله تعالى دده دې تكليف نه بې پرواه دې كوم چه دې خپل ځان ته وركوي، اوپه سورلۍ باندې دسوريدوحكم ئې ورته وكړو. ابوداؤد وائي: عمرو بن ابي عمرو د اعرج نه، هغه د ابوهريره رضي الله عنه نه، هغه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه هم ددې په شان حديث روايت كړې دې.

[٣٢٩٨]([4]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ: أَنَّ أُخْتَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ بِمَعْنَى هِشَامٍ، وَلَمْ يَذْكُرِ الْهَدْيَ، وَقَالَ فِيهِ: مُرْ أُخْتَكَ فَلْتَرْكَبْ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ خَالِدٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ بِمَعْنَى هِشَامٍ.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٩٧، ١٩١٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٩/١، ٢٥٢، ٣١١)، سنن الدارمي/النذور ٢ (٢٣٨٠) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٣٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٠/١، ٣١٥) (ضعيف)

[3]: صحيح البخاري/جزاء الصيد ٢٧ (١٨٦٥)، الأيمان ٣١ (٦٧٠١)، صحيح مسلم/النذور ٤ (١٦٤٢)، سنن الترمذي/الأيمان ٩ (١٥٣٧)، سنن النسائي/الأيمان ٤١ (٣٨٨٣، ٣٨٨٤)، (تحفة الأشراف: ٣٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٦/٣، ١١٤، ١٨٣، ٢٣٥، ٢٧١) (صحيح)

[4]: انظر حديث رقم: (٣٢٩٦)، (تحفة الأشراف: ٦١٩٧، ١٩١٢١) (صحيح)

د عکرمه نه روایت دې چه دعقبه بن عامر ﷺ خور، وریسې هغه خبرې دی کومې چه دهشام په حدیث کښې دی خوپه هغې کښې د هدیې ذکرنشته، خودا ذکر پکښې شته چه: «مر أختك فلتركب» "خپلې خورته حکم ورکړه چه هغه سوره شی"۔ ابوداؤد وائی: هغه ته خالد د عکرمه نه دهشام په شان روایت کړې دې.

[٣٣٠٢]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي الْأَحْوَلُ، أَنَّ طَاوُسًا أَخْبَرَهُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَرَّ وَهُوَ يَطُوفُ بِالْكَعْبَةِ بِإِنْسَانٍ يَقُودُهُ بِخِزَامَةٍ فِي أَنْفِهِ، فَقَطَعَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ، وَأَمَرَهُ أَنْ يَقُودَهُ بِيَدِهِ".

عبدالله بن عباس ﷺ وائی چه نبی کریم ﷺ د کعبې طواف کولو چه یو داسې انسان سره تیرشو چه دهغه په پوزه کښې ئې پیزوان چولې وو او روان کړې وو، نو نبی کریم ﷺ خپل لاس سره دهغه پیزوان کټ کړواوحکم ئې اوکړوچه دده لاس اونیسئ بوئې ځئ.

[٣٣٠٣]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَفْصِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ السُّلَمِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ طَهْمَانَ، عَنْ مَطَرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ أُخْتَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ مَاشِيَةً، وَأَنَّهَا لَا تُطِيقُ ذَلِكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنْ مَشْيِ أُخْتِكَ، فَلْتَرْكَبْ، وَلْتُهْدِ بَدَنَةً".

عبدالله بن عباس ﷺ وائی چه د عقبه بن عامر ﷺ خور پیدل دحج کولو نذر اومنلو اوهغې د پیدل تلو طاقت نه لرلو، نو نبی کریم ﷺ (عقبه بن عامر ﷺ ته) اووئیل: الله تعالی ته ستاسو دخور د پیدل تلو پرواه نشته، (ته خپلې خور ته اووایه چه) هغه سوره شی او (دنذر د کفارې په طور باندې) یو اوښ قربانی کړی.

[٣٣٠٤]() حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أُخْتِي نَذَرَتْ أَنْ تَمْشِيَ إِلَى الْبَيْتِ، فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ لَا يَصْنَعُ بِمَشْيِ أُخْتِكَ إِلَى الْبَيْتِ شَيْئًا".

عقبه بن عامر جهنی ﷺ وائی چه دوی نبی کریم ﷺ ته اووئیل: زما خور بیت الله ته د پیدل تلو نذر منلې دې، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ستا خورته پیدل بیت الله ته د تلو الله تعالی هیڅ ثواب نه ورکوی.

## بَابُ مَنْ نَذَرَ أَنْ يُصَلِّيَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ

### څوک چه په بیت المقدس کښې دمونځ کولو نذر اومنی

د احنافو په نزد په نذر کښې تعین د زمان او مکان معتبر نه دې، لهذا که یو انسان په یو خاص مسجد کښې د مونځ کولو نذر اومنی یا په یو خاص زمانه کښې د روژې منلو نذر اومنی په نفس مونځ او نفس روژې سره به د هغه نذر پوره شی، او د مالکیانو او حنابله مسلک هم دادې خودهغوی په نزدمساجدثلاثة ددې قاعدې نه مستثنی دی، ددې مساجد

[1]: صحيح البخاري/الحج ٦٥ (١٦٢٠)، ٦٦ (١٦٢١)، الأيمان ٣١ (٦٧٠٣)، سنن النسائي/الحج ١٣٥ (٢٩٢٣) الأيمان ٢٩ (٣٨٤١، ٣٨٤٢)، (تحفة الأشراف: ٥٧٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٤/١) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم: (٣٢٩٦)، (تحفة الأشراف: ٦٢١٧) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٣٢٩٣، ٣٢٩٩)، (تحفة الأشراف: ٩٩٣٨) (صحيح)

تعيين د هغوی په نزد معتبر دي، او د امام شافعي رحمه الله نه دوه روايتونه دی، او په احنافو کښې د امام زفر رحمه الله په نزد تعين د زمان او مکان او شخص په نذر کښې معتبر دي.

[٣٣٠٥](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، قَالَ: أَخْبَرَنَا حَبِيبٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَجُلًا قَامَ يَوْمَ الْفَتْحِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي نَذَرْتُ لِلَّهِ إِنْ فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكَ مَكَّةَ، أَنْ أُصَلِّيَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ رَكْعَتَيْنِ، قَالَ: صَلِّ هَاهُنَا، ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ، فَقَالَ: صَلِّ هَاهُنَا، ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ، فَقَالَ: شَأْنَكَ إِذًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رُوِيَ نَحْوُهُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه دفتح مکې په ورځ باندې يو کس پاڅيدو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله مادالله دپاره دانذر منلې وو که چرې ته مکه فتح کړې نوزه به په بيت المقدس کښې دوه رکعته مونځ کوم نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل هغه دوه رکعته دلته اوکړه دغه کس دوباره بياتپوس اوکړو نونبی عليه السلام ورته هم هغه جواب ورکړو چه هغه دوه رکعته هم دلته اوکړه، هغه سړی بيا خپل سوال دوباره کړو نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل اوس دي خپل اختيار دي.

قَالَ: « صَلِّ هٰهُنَا » ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ فَقَالَ: « صَلِّ هٰهُنَا »

مضمون د حديث دا دې جابر رضي الله عنه فرمائی چه د مکې د فتح په ورځ يو سړې اودريدو او هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو چه ما دا نذر منلې وو د الله پاک دپاره چه الله پاک په تاسو باندې مکه فتح کړه نو زه به په بيت المقدس کښې دوه رکعته ادا کوم، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل هم دلته ئې اوکړه هغه بيا دوباره دا سوال اوکړو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم بيا ارشاد اوفرمائيلو هم دلته ئې اوکړه، بيا په دريم کرت هم داسې اوشو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل فَقَالَ: « شَأْنَكَ إِذًا » يعنی بس بيا ته پوهه شه اوستا کار.

[٣٣٠٦](٢) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ. ح وحَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ الْمَعْنَى، قَالَ: حَدَّثَنَا رَوْحٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُوسُفُ بْنُ الْحَكَمِ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، أَنَّهُ سَمِعَ حَفْصَ بْنَ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَعَمْرًا، وَقَالَ عَبَّاسٌ ابْنُ حَنَّةَ أَخْبَرَاهُ عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، عَنْ رِجَالٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْخَبَرِ، زَادَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي بَعَثَ مُحَمَّدًا بِالْحَقِّ، لَوْ صَلَّيْتَ هَاهُنَا، لَأَجْزَأَ عَنْكَ صَلَاةً فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْأَنْصَارِيُّ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، فَقَالَ جَعْفَرُ بْنُ عُمَرَ وَقَالَ عَمْرُو بْنُ حَيَّةَ وَقَالَ: أَخْبَرَاهُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَعَنْ رِجَالٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

عمربن عبدالرحمن بن عوف په صحابه کرامو کښې ديوځو کسانونه داروايت نقل کړې دې اودا اضافه ئې کړې ده چه نبی عليه السلام اوفرمائيل په هغه ذات مې دې قسم وي چاچه محمد په حقه رالېږلې دې که چرې ته دغه دوه رکعتونه دلته (بيت الله) کښې اوکړې نودابه ستادپاره کافی شي دبيت المقدس ددوه رکعتونونه. امام ابوداود فرمائی چه داروايت انصاري دابن جريج نه نقل کړې دې او وئيلي ئې دي چه جعفربن عمر اوعمربن حيه دواړو داروايت دعبدالرحمن بن عوف. اوهغه دصحابه کرامونه نقل کړې دي.

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٤٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٦٣)، سنن الدارمي/النذور ٤ (٢٣٨٤) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٧٣) (ضعيف الإسناد)

## شرح السند :

**قوله:** أَنَّهُ سَمِعَ حَفْصَ بْنَ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ وَعَمْرَ وَقَالَ عَبَّاسٌ : ابْنَ حَنَّةَ أَخْبَرَاهُ عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ:

په دې سند باندې ځان داسې پوهه کړئ چه د یوسف بن الحکم دوه استاذان دی حفص بن عمر او عمر، د دې دویم استاد په باره کښې د مصنف رحمه الله د یو استاد یعنی مخلد بن خالد خوصرف عمر وئیلې دې، بغیرد نسبت نه اود مصنف رحمه الله دویم استاد عباس عنبری په ځائې د عمر عمر بن حنة یعنی د عمر نسبت ئې هم ذکر کړو. د ﴿ اخبراه ﴾ ضمیر د تثنیه حفصه بن عمر او عمر بن حنه ته راجع دې، یعنی دې دواړو خبر ورکړو خپل شاګرد یوسف ته.

قَالَ أَبُو دَاوُدَ : رَوَاهُ الْأَنْصَارِيُّ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ فَقَالَ جَعْفَرُ بْنُ عَمْرٍو وَقَالَ عَمْرُو بْنُ حَيَّةَ

دا انصاری د ابن جریج د شاګرد د روح عدیل (مقابل) دې کوم چه پورته په سند کښې راغلو، مطلب دا دې چه د ابن جریج شاګرد روح خو د هغوی نه د یوسف د استاذ نوم حفص بن عمر ذکر کړې دې، او دې انصاری د ابن جریج نه په ځائې د حفص بن عمر جعفر بن عمر ذکر کړې دې، او بله دا چه د عمر بن حنه په ځائې ئې عمر بن حیه ذکر کړې دې. ﴿وقال اخبراه عن عبدالرحمن بن عوف وعن رجال ﴾ یعنی انصاری حفص بن عمر او د عمر بن حنه استاد عبدالرحمن بن عوف ته وئیلې دې په ځائې د عمر بن عبد الرحمن، او دویم فرق ئې دا اوکړو چه په ځائې د ﴿ عن رجال ﴾ ئې ﴿ وعن رجال ﴾ کړو.

# بَابٌ فِي قَضَاءِ النَّذْرِ عَنِ الْمَيِّتِ

**د مړی د طرف نه د نذر پوره کولو بیان**

**په مسئلة الباب کښې مذاهب د ائمة :**

یعنی د مړی په ذمه که یو نذر وی نو د هغې د پوره کولو بیان، د دې تفصیل [1] دا دې چه نذر د دوه حالو نه خالي نه دې یا خو به هغه مالی وی یا بدنی، یعنی د هغې تعلق به یا خو عبادت مالیه سره وی لکه صدقه یا عبادت بدنیه سره، که عبادت مالیه دې نو بیا به کتلې شی چه مړی مال پریخودلې دې یا نه، که نه ئې وی پریخودلې نو پوره کول د چا په نزد هم واجب نه دی، او که پریخودلې ئې وی نو بیا به د دې وصیت تنفیذ صرف په ثلث مال کښې واجب وی، د امام شافعی او احمد رحمهما الله په نزد مطلقا او د امام ابوحنیفه او مالک رحمهما الله په نزد په شرط د وصیت، او د دې په مقابله کښې په عبادت بدنیه کښې لکه صوم او صلوة په دې کښې د وارث د طرف نه قضاء یعنی نیابة د مړی د طرف نه جائز نه دې، خو د فدیې په ذریعه به ئې قضاء وی عند الائمة الثلاثة د امام احمد رحمه الله په نزد صوم د دې نه مستثنی دې د هغوی په نزد د صوم منذور قضاء نیابة د مړی د طرف نه جائز ده.

دا د نیابت مسئله د دې نه مخکښې په کتاب الحج او صوم کښې هم تیره شوې ده،

[1] ) لا تجري النيابة في الصلوة عند الائمة الاربعة الا في رواية احمد ولا يجوز في الصوم عند الائمة الثلاثة ويجوز عند احمد اي في الصوم المنذور لا الواجب الاصلي ورواية الشافعي وتجري في الحج بالاتفاق)

او د اهل ظواهر په نزد د نذر قضاء د مړي د طرف نه مطلقا واجب ده برابره خبره ده که په عبادت مالي کښې وي او که په بدني کښې وي.

[٣٣٠٧](1) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ اسْتَفْتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "إِنَّ أُمِّي مَاتَتْ وَعَلَيْهَا نَذْرٌ لَمْ تَقْضِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اقْضِهِ عَنْهَا".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه سعد بن عباده دنبي عليه السلام نه تپوس اوکړو چه زمامور وفات شوي ده په ژوند کښې ئې يونذر منلې وو او دهغه قضا ئې نه وه راوړې اومړه شوه نبي عليه السلام اوفرمائيل ته دهغې دطرف نه دغه نذر پوره کړه.

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ : أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ اسْتَفْتَى رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم الخ

سعد بن عبادة رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه معلومه کړه چه زما د مور وفات اوشو حال دا چه د هغې په ذمه يو نذر وو او هغه ئې نه وو پوره کړې نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ته ئې د هغوی د طرف نه قضاء اوکړه.

دا نذر د څه څيز وو؟ قيل كان نذرا مطلقا، وقيل نذر الصوم، وقيل نذر العتق، وقيل الصدقة.

دلته په دې حديث کښې د قضاء حکم د احنافو په نزد استحبابا دې، ځکه چه د احنافو په نزد د عبادت بدنيه نذر خو قضاء جائز نه ده. ﴿ لقول ابن عباس رضي الله عنهما لا يصوم احد عن احد ولا يصلي احد عن احد ﴾ وعن ابن عمر رضي الله عنهما نحوه..... او په عبادت ماليه کښې ا شوې ځکه مونږ اووې چه دا امر استحبابا دې د احنافو په نزد او هم دغه شان د مالکيانو په نزد. والحديث اخرجه البخاري والترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[٣٣٠٨](2) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "أَنَّ امْرَأَةً رَكِبَتِ الْبَحْرَ، فَنَذَرَتْ إِنْ نَجَّاهَا اللَّهُ أَنْ تَصُومَ شَهْرًا، فَنَجَّاهَا اللَّهُ، فَلَمْ تَصُمْ حَتَّى مَاتَتْ، فَجَاءَتِ ابْنَتُهَا، أَوْ أُخْتُهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَهَا أَنْ تَصُومَ عَنْهَا".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه يوې ښځې په سمندرکښې سفرکولو اوداندرئې اومنلو که چرې مونږ الله تعالى صحيح اوسلامت اورسولو نوزه به يوه مياشت روژې نيسم الله تعالى هغوی صحيح سلامت اورسول ليکن هغه ښځه در وژونيولونه مخکښې وفات شوه نوددې خور بالور دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضره شوه نونبي عليه السلام ورته حکم اوکړو چه دهغې دطرف نه روژې اونيسې.

**قوله:** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ : أَنَّ امْرَأَةً رَكِبَتِ الْبَحْرَ فَنَذَرَتْ إِنْ نَجَّاهَا اللَّهُ أَنْ تَصُومَ شَهْرًا:

يعني يوې زنانه د کشتئ په سفر کښې دا نذر اومنلو چه که زه ژوندئ او روغه اورسيدم نو زه به يوه مياشت روژې نيسم خو هغې ته د روژو د نيولو موقع ملاؤ نه شوه تردې چه وفات

(1): صحيح البخاري/الوصايا ١٩ (٢٧٦١)، الأيمان ٣٠ (٦٦٩٨)، الحيل ٣ (٦٩٥٩)، صحيح مسلم/النذور ١ (١٦٣٨)، سنن الترمذي/الأيمان ١٩ (١٥٤٦)، سنن النسائي/الوصايا ٨ (٣٦٨٦)، الأيمان ٣٤ (٣٨٤٨، ٣٨٤٩، ٣٨٥٠)، سنن ابن ماجه/الكفارات ١٩ (٢١٣٢)، (تحفة الأشراف: ٥٨٣٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/النذور ١ (١)، مسند احمد (٢١٩/١، ٣٢٩، ٣٧٠) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٤٦٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الأيمان ٣٣ (٣٨٤٨)، مسند احمد (٢١٦/١) (صحيح)

شوه، نو د هغې لور یا خور د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او نو رسول الله ﷺ هغې ته د صوم عن المیت حکم اوکړو، ﴿یعني بالاقتداء علی مسلک الجمهور﴾

[٣٣٠٩]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ بُرَيْدَةَ، أَنَّ امْرَأَةً أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: كُنْتُ تَصَدَّقْتُ عَلَى أُمِّي بِوَلِيدَةٍ، وَإِنَّهَا مَاتَتْ وَتَرَكَتْ تِلْكَ الْوَلِيدَةَ، قَالَ: قَدْ وَجَبَ أَجْرُكِ، وَرَجَعَتْ إِلَيْكِ فِي الْمِيرَاثِ، قَالَتْ: وَإِنَّهَا مَاتَتْ وَعَلَيْهَا صَوْمُ شَهْرٍ، فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ عَمْرٍو.

**ترجمه:** دبریده رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوه ښځه د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله ماخپلې مور ته یوه وینځه ورکړې ده اوس زما مور وفات شوې ده اوهغه وینځه دهغې نه په میراث کښې پاتې شوې ده، نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ثواب دې هم حاصل کړو اووینځه درته هم په میراث کښې واپس راغله دې ښځې عرض اوکړو چه زماپه موربانذې یوه میاشت روژې وې باقی روایت ئې دتیرشوی روایت په شان بیان کړو.

**قوله:** عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ بُرَيْدَةَ : أَنَّ امْرَأَةً :

دا حدیث بسنده ومتنه په کتاب الوصایا کښې تیر شوې دې او هم دغه شان په کتاب الزکوة کښې هم ﴿ باب من تصدق بصدقة ثم ورثها ﴾ کښې، او وراندې به په کتاب البیوع کښې په ﴿ باب فی الرجل یفضل بعض ولده علی بعض فی النحل ﴾ کښې را روان دې.

## بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهُ

**باب: چه څوک مړشی اوپه هغه روژې وې نو هغه دې دهغه ولی پوره کړی**

[٣٣١٠]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، قَالَ: سَمِعْتُ الْأَعْمَشَ، ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، الْمَعْنَى، عَنْ مُسْلِمٍ الْبَطِينِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "أَنَّ امْرَأَةً جَاءَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: إِنَّهُ كَانَ عَلَى أُمِّهَا صَوْمُ شَهْرٍ، أَفَأَقْضِيهِ عَنْهَا؟ فَقَالَ: لَوْ كَانَ عَلَى أُمِّكِ دَيْنٌ، أَكُنْتِ قَاضِيَتَهُ؟، قَالَتْ: نَعَمْ، قَالَ: فَدَيْنُ اللَّهِ أَحَقُّ أَنْ يُقْضَى".

عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وائی چه یوه ښځه نبی کریم ﷺ ته راغله او عرض ئې اوکړو چه زما د مور په ذمه د یوې میاشت روژې دی آیا زه ئې دهغې دطرفه اونیسم؟ نبی کریم ﷺ ترې تپوس اوکړو: که ستا دمور په ذمه قرض وو نو آیا تابه ادا کولو؟ هغې اووئیل: آو، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: د الله قرض خو نورهم زیات د اداکولو مستحق دې.

[٣٣١١]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ،

---

[1]: صحيح مسلم/الصيام ٢٧ (١١٤٩)، سنن الترمذي/الزكاة ٣١ (٦٦٧)، سنن ابن ماجه/الصيام ٥١ (١٧٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٩٨٠) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الصوم ٤٢ (١٩٥٣)، صحيح مسلم/الصيام ٢٧ (١١٤٨)، سنن الترمذي/الصوم ٢٢ (٧١٦)، سنن ابن ماجه/الصوم ٥١ (١٧٥٨)، (تحفة الأشراف: ٥٦١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٢٤، ٢٢٧، ٢٥٨، ٢٥٨، ٣٦٢)، دي/ الصوم ٤٩ (١٨٠٩) (صحيح)

[3]: انظر حديث رقم: (٢٤٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٨٢) (صحيح)

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ، صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهُ".

ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها فرمائي چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل: څوک چه مړشي اودهغه په ذمه روژې وی نو دهغه ولی دې دهغه دطرفه روژې اونيسي.

## بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنَ الْوَفَاءِ بِالنَّذْرِ

### د نذر د پوره كولو د تاكيد بيان

[٣٣١٢]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ عُبَيْدٍ أَبُو قُدَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَخْنَسِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: "أَنَّ امْرَأَةً أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي نَذَرْتُ أَنْ أَضْرِبَ عَلَى رَأْسِكَ بِالدُّفِّ، قَالَ: أَوْفِي بِنَذْرِكِ، قَالَتْ: إِنِّي نَذَرْتُ أَنْ أَذْبَحَ بِمَكَانِ كَذَا وَكَذَا مَكَانٌ كَانَ يَذْبَحُ فِيهِ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ، قَالَ: لِصَنَمٍ؟، قَالَتْ: لَا، قَالَ: لِوَثَنٍ؟، قَالَتْ: لَا، قَالَ: أَوْفِي بِنَذْرِكِ".

عمرو بن شعيب د خپل پلارنه اوهغه دده دنيكه نه روايت كوی فرمائی چه يوه ښځه دنبی ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه اوعرض ئې اوكړو اې دالله رسوله مادانذر منلې دې چه تاته به تمبل غرومه يعنی كله چه جهاد ته خې نوپه هغه وخت كښې به درته تمبل(چمبه)غږوم نبی ﷺ ورته اوفرمائيل نذر دې پوره كړه دې ښځې اووئيل چه ماپه فلانې فلانې ځائې كښې دذبح كولو نذرمنلې دې اوهلته به د جاهليت په وخت كښې خلقو ذبح كولې نبی ﷺ اوفرمائيل ايا هلته به دكوم بت دپاره ذبح كيدلې؟ دغې ښځې اووئيل نه نبی ﷺ تپوس اوكړو ايادالله تعالی نه علاوه دبل چاپه نوم باندې ذبح به كيدلې؟ هغې عرض اوكړو نه نونبی ﷺ ورته اوفرمائيل خپل نذر پوره كړه.

قوله: أَنَّ امْرَأَةً أَتَتِ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– فَقَالَتْ : يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّى نَذَرْتُ أَنْ أَضْرِبَ عَلَى رَأْسِكَ بِالدُّفِّ. قَالَ : « أَوْفِى بِنَذْرِكِ ».

په دې روايت كښې دلته اختصار دې د ترمذی په روايت كښې په دې باندې اضافه ده، مضمون د حديث دا دې چه رسول الله ﷺ يو كرت خپل بعض مغازی ته تشريف يوړو، د رسول الله ﷺ په واپسئ باندې يو توره وينځه راغله او هغې عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ ما نذر منلې وو چه كه تاسو الله پاک صحيح او سالم واپس كړئ نو زه به ستاسو مخكښې تمبل وهم (دوپړئ نه ځكه چه هغه ممنوع دی كما سياتی فی الاشربة نهی عن الطبل) ﴿ بين يديک ﴾ دا لفظ د ترمذی په روايت كښې دې په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه واقعی تا هم دا نذر منلې دې نو هغه پوره كړه د دې حديث په باره كښې امام ترمذی رحمه الله فرمائی ﴿ حديث حسن صحيح غريب ﴾

### شرح الحديث:

د دې حديث په شرح كښې امام خطابی رحمه الله ليكی چه وهل دقبل خو د هغه طاعاتو نه نهٔ دې چه د هغې نذر صحيح وی ځكه چه وهل د قبل زيات نه زيات مباح كيدې شی نه طاعت خو

---

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٧٥٦) (حسن صحيح)

چونکه ددې ضرب دفن تعلق د بعض داسې څیزونه سره دې چه هغې ته عبادت وئیلې کېدې شی، یعنی د رسول الله ﷺ په سلامتیا سره په واپسئ باندې د خوشحالئ اظهار چه په هغې کښې مساءة دکفارو دې او اذلال د منافقین وغیره امورو، په دې حیثیت سره په دې کښې د عبادت معنی پیدا شوه، او بیا وراندې په دې حدیث کښې دی چه دې زنانه دا هم عرض اوکړو چه ما په فلانی مکان کښې د څاروی د ذبح کولو نذر منلې وو چرته چه به د جاهلیت والو ذبح کوله، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه ستا دا نذر د یو بت په نوم باندې د ذبح کولو دپاره دې، هغې اووې داسې نه ده پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل خپل نذر پوره کړه، د دې نه پس هم یو بل روایت هم د دې قسم مضمون را روان دې.

[٣٣١٣] (١) حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو قِلَابَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ثَابِتُ بْنُ الضَّحَّاكِ، قَالَ: "نَذَرَ رَجُلٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْحَرَ إِبِلًا بِبُوَانَةَ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنِّي نَذَرْتُ أَنْ أَنْحَرَ إِبِلًا بِبُوَانَةَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ كَانَ فِيهَا وَثَنٌ مِنْ أَوْثَانِ الْجَاهِلِيَّةِ يُعْبَدُ؟، قَالُوا: لَا، قَالَ: هَلْ كَانَ فِيهَا عِيدٌ مِنْ أَعْيَادِهِمْ؟، قَالُوا: لَا، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوْفِ بِنَذْرِكَ، فَإِنَّهُ لَا وَفَاءَ لِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ، وَلَا فِيمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ".

د ثابت بن ضحاك نه روایت دې فرمائی چه د نبی ﷺ په زمانه کښې داندرمنلې وو چه زه به په بوانه مقام کښې اوښ ذبح کوم نودغه کس دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوعرض ئې اوکړو چه ماپه بوانه مقام کښې داوښ دذبح کولونذرمنلې دې نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ایاپه بوانه کښې دجاهلیت دزمانې کوم بت وو چه عبادت ئې کیدو؟ صحابه کراموعرض اوکړونه بیانبی ﷺ اوفرمائیل ایادمشرکانوپه میلوکښې کومه میله به دلته کیدله عرض اوکړې شو چه نه په دې وخت کښې نبی ﷺ تپوس کونکې ته متوجه شو اووئې فرمائیل ته خپل نذر پوره کړه اودګناه په کارکښې نذر پوره کول نشته دې اونذر پوره کول په هغه څیزکښې نه دی کوم چه دانسان په اختیارکښې نه دی یعنی دکوم څیز چه انسان مالك نه دې.

[٣٣١٤] (٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ بْنِ مِقْسَمٍ الثَّقَفِيُّ مِنْ أَهْلِ الطَّائِفِ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي سَارَةُ بِنْتُ مِقْسَمٍ الثَّقَفِيِّ، أَنَّهَا سَمِعَتْ مَيْمُونَةَ بِنْتَ كَرْدَمٍ، قَالَتْ: "خَرَجْتُ مَعَ أَبِي فِي حَجَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَسَمِعْتُ النَّاسَ، يَقُولُونَ: رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَعَلْتُ أُبِدُّهُ بَصَرِي، فَدَنَا إِلَيْهِ أَبِي وَهُوَ عَلَى نَاقَةٍ لَهُ مَعَهُ دِرَّةٌ كَدِرَّةِ الْكُتَّابِ، فَسَمِعْتُ الْأَعْرَابَ وَالنَّاسَ يَقُولُونَ: الطَّبْطَبِيَّةَ، الطَّبْطَبِيَّةَ، فَدَنَا إِلَيْهِ أَبِي، فَأَخَذَ بِقَدَمِهِ، قَالَتْ: فَأَقَرَّ لَهُ، وَوَقَفَ، فَاسْتَمَعَ مِنْهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي نَذَرْتُ إِنْ وُلِدَ لِي وَلَدٌ ذَكَرٌ، أَنْ أَنْحَرَ عَلَى رَأْسِ بُوَانَةَ فِي عَقَبَةٍ مِنَ الثَّنَايَا عِدَّةً مِنَ الْغَنَمِ، قَالَ: لَا أَعْلَمُ إِلَّا أَنَّهَا قَالَتْ: خَمْسِينَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ بِهَا مِنَ الْأَوْثَانِ شَيْءٌ؟، قَالَ: لَا، قَالَ: فَأَوْفِ بِمَا نَذَرْتَ بِهِ لِلَّهِ، قَالَتْ: فَجَمَعَهَا، فَجَعَلَ يَذْبَحُهَا، فَانْفَلَتَتْ مِنْهَا شَاةٌ، فَطَلَبَهَا وَهُوَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ أَوْفِ عَنِّي نَذْرِي، فَظَفِرَهَا، فَذَبَحَهَا".

---

[١]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٠٦٥) (صحيح)

[٢]: انظر حديث (٣١٠٣)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٩١) (صحيح)

میمونه بنت کردم وائي چه زه دخپل پلار سره په حجة الوداع کښې اووتلم نو ما رسول الله ﷺ اولیدلو او دخلقونه مې واوریدل چه دا رسول الله ﷺ دی، ما په هغه خپل نظر واچولو، زما پلار دهغوی ﷺ سره نزدې شو، هغوی ﷺ په خپله اوښه باندې سور وو، دهغوی ﷺ سره د مکتب (مدرسې) د دُرې په شان یوه دُره وه، ما د باندچیانو او خلقو نه واوریدل، شن شن (د دُرې آواز چه تیزئ سره وهلو او تاوولو په وخت اوخي) نو زما پلار دهغوی ﷺ سره نزدې شو، او دهغوی ﷺ خپې ئې اونیولې، دهغوی ﷺ د رسالت اقرار ئې اوکړو، اودریدو او دهغوی ﷺ خبرې ئې توجه سې واوریدلې، بیا هغه اووئیل: اې دالله رسوله ﷺ ما نذر منلې دې که زما ځوئې اوشو نو زه به د بوانه په سختو غرونو کښې د ډیرو چیلو قربانی کوم، راوی وائي: ماته دا معلومه ده چه هغوی پنځو چیلئ یادې کړې، نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو: آیا هلته څه بُت شته؟ هغوی اووئیل: نا، نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: تا چه دالله تعالی دپاره کوم نذر منلې دې هغه پوره کړه، هغه چیلئ جمع کړې او ذبح ئې کړې، دهغې نه یوه چیلئ توپ کړل اوتختیده، نوهغه دا (چیلئ) لټوله او وئیل ئې، اې الله! زما نذر پوره کړې، بیا ئې هغه پیدا کړه نو ذبح ئې کړه.

[۳۳۱۵]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ بِنْتِ كَرْدَمِ بْنِ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِيهَا، نَحْوَهُ مُخْتَصَرٌ مِنْهُ شَيْءٌ، قَالَ: هَلْ بِهَا وَثَنٌ أَوْ عِيدٌ مِنْ أَعْيَادِ الْجَاهِلِيَّةِ؟، قَالَ: لَا، قُلْتُ: إِنَّ أُمِّي هَذِهِ عَلَيْهَا نَذْرٌ، وَمَشْيٌ، أَفَأَقْضِيهِ عَنْهَا؟، وَرُبَّمَا قَالَ ابْنُ بَشَّارٍ: أَنَقْضِيهِ عَنْهَا؟، قَالَ: نَعَمْ.

میمونه دخپل پلار کردم بن سفیان نه ددې پشان لیکن ددې نه لږ اختصار سره روایت کوی نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو: آیا هلته څه بت شته؟ یا دجاهلیت د اخترونو نه یو اختر کیږی؟ هغه اووئیل: نا، ما اووئیل: دا زما مور ده ددې په ذمه نذر دې، او پیدل حج کول دی، آیا زه دا ددې دطرفه پوره کړم؟ او ابن بشار داسې وئیلی دی: آیا مونږ ددوی دطرفه دا پوره کړو؟ (دجمع صیغې سره) نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: آؤ.

## بَابٌ فِي النَّذْرِ فِيمَا لَا يَمْلِكُ

### دغیراختیاری څیزونو نذرمنلو بیان

د باب د حدیث په آخر کښې دی: لَا وَفَاءَ لِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ وَلَا فِيمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ

### ترجمة الباب والا مسئلة کښې مذاهب ائمة:

د دې مضمون مفصل حدیث په ﴿ باب فی الطلاق قبل النکاح ﴾ کښې تیر شوې دې ﴿ عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده ان النبی ﷺ قال لا طلاق الا فیما تملک ولا عتق الا فیما تملک ولا بیع الا فیما تملک ولا وفاء نذر الا فیما تملک ﴾ او په یو روایت کښې دا زیادت دې ﴿ ومن حلف علی معصیة فلا یمین له ﴾ د دې ټولو مسائلو بیان او اختلاف د علماء کرامو په کتاب الطلاق کښې د دې حدیث د لاندې تیر شوې دې، خو د نذر متعلق مسئله مونږ دوباره دلته

[1]: انظر ما قبله (صحیح)

ليکو يعنی کوم څيز چه د انسان په ملک کښې نه وی د نذر منلو په وخت، د هغې نذر معتبر نه دې، منذور به که د مال د قبيلې نه دې نو د هغې د ناذر په ملک کښې کيدل پکار دی يا کم از کم چه هغه نذر مضاف الی الملک وی يا مضاف الی سبب الملک وی، په دې دواړو صورتونو کښې هم نذر صحيح کيږی لکه چه يو انسان داسې اوائی ﴿ ان شفی الله مريضی فعبد زيد حر ﴾ دا نذر باطل دې بالاتفاق يا خو ئې خپل غلام کيدل پکار دی يا بيا اضافت الی الملک يا سبب الملک کيدل پکار دی لکه چه داسې اوئيلې شی ﴿ کل مال املکه فيما استقبل فهو صدقة ﴾ يا داسې اوائی ﴿ کل ما اشتريته او ارثه فهو صدقة ﴾ او د امام مالک رحمه الله په نزد اضافت الی الملک يا اضافت الی سبب الملک سره دې د هغه څيز څه صفت هم ذکر کړې شی مثلا د قبيلې تعين يا د يو ښهر تعين يا بل څه صفت چه په هغې سره فی الجملة تخصيص پيدا شی نو بيا نذر صحيح کيږی ګڼې نه، او د امام شافعی رحمه الله په نزد اضافت الی الملک يا الی سبب الملک که عموما وی يا خصوصا په دواړو صورتونو کښې معتبر نه دې فی الحال ملکيت کيدل پکار دی، د احنافو او مالکيانو په نزد دا حديث په تنجيز باندې محمول دې چه يو انسان په يو غير مملوک څيز باندې نذر اومنی دا تنجيزا معتبر نه دی، د تعليق په صورت کښې معتبر دی، او د امام شافعی رحمه الله په نزد تنجيز او تعليق دواړه د حديث په مفهوم کښې داخل دی، ملا علی قاری رحمه الله فرمائی: (ومذهبنا مروی عن عمرو ابن مسعود وابن عمر ﴾ والجواب عن الاحاديث المذکورة انها محمولة علی نفی التنجيز والحمل ماثور عن السلف کالشعبی والزهری، قال عبدالرزاق فی مصنفه : انا معمر عن الزهری انه قال فی رجل قال کل امرءة اتزوجها فهی طالق، وکل امة اشتريها فهی حرة هو کما قال، فقال له معمر اوليس قد جآء : لا طلاق قبل النکاح ولا عتق الا بعد ملک، قال انما ذلک ان يقول امراءة فلان طالق، وعبد فلان حر آه (بذل ۴/۲۷۳) په بذل کښې د دې نه پس د مصنف ابن ابی شيبة نه د ډيرو تابعينو نه هم دا نقل کړې شوې دی لکه سالم، قاسم بن محمد، عمر بن عبدالعزيز، شعبی، النخغی او الزهری رحمهم الله وغيره يعنی دا چه دا حديث په تنجيز باندې محمول دې او د تعليق والا صورت په دې کښې داخل نه دې.

[۳۳۱۶] (¹) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: كَانَتِ الْعَضْبَاءُ لِرَجُلٍ مِنْ بَنِي عُقَيْلٍ، وَكَانَتْ مِنْ سَوَابِقِ الْحَاجِّ، قَالَ: فَأُسِرَ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي وَثَاقٍ، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى حِمَارٍ عَلَيْهِ قَطِيفَةٌ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ، عَلَامَ تَأْخُذُنِي وَتَأْخُذُ سَابِقَةَ الْحَاجِّ؟ قَالَ: نَأْخُذُكَ بِجَرِيرَةِ حُلَفَائِكَ ثَقِيفَ، قَالَ: وَكَانَ ثَقِيفُ قَدْ أَسَرُوا رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: وَقَدْ قَالَ فِيمَا قَالَ: وَأَنَا مُسْلِمٌ، أَوْ قَالَ: وَقَدْ أَسْلَمْتُ، فَلَمَّا مَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: فَهِمْتُ هَذَا مِنْ مُحَمَّدِ بْنِ عِيسَى، نَادَاهُ: يَا مُحَمَّدُ، يَا مُحَمَّدُ، قَالَ: وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِيمًا، رَفِيقًا، فَرَجَعَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: مَا شَأْنُكَ؟ قَالَ: إِنِّي مُسْلِمٌ، قَالَ: لَوْ قُلْتَهَا وَأَنْتَ تَمْلِكُ أَمْرَكَ،

¹): صحيح مسلم/النذر ۳ (۱۶۴۱)، سنن النسائي/الأيمان ۳۱ (۳۸۲۱)، ۴۱ (۳۸۶۰)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۸۴)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/ السير (۱۵۶۸)، سنن ابن ماجه/الكفارات ۱۶ (۲۱۲۴)، مسند احمد (۴/۲۶۷، ۴۳۰، ۴۳۲، ۴۳۳)، دي/النذور ۳ (۲۳۸۲) (صحيح)

أَمْلَحْتَ كُلَّ الْفَلَاحِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: ثُمَّ رَجَعْتُ إِلَى حَدِيثِ سُلَيْمَانَ، قَالَ: يَا مُحَمَّدُ، إِنِّي جَائِعٌ فَأَطْعِمْنِي، إِنِّي ظَمْآنُ فَاسْقِنِي، قَالَ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَذِهِ حَاجَتُكَ، أَوْ قَالَ: هَذِهِ حَاجَتُهُ، قَالَ: فَفُودِيَ الرَّجُلُ بَعْدُ بِالرَّجُلَيْنِ، قَالَ: وَحَبَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَضْبَاءَ لِرَحْلِهِ، قَالَ: فَأَغَارَ الْمُشْرِكُونَ عَلَى سَرْحِ الْمَدِينَةِ، فَذَهَبُوا بِالْعَضْبَاءِ، قَالَ: فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهَا، وَأَسَرُوا امْرَأَةً مِنَ الْمُسْلِمِينَ، قَالَ: فَكَانُوا إِذَا كَانَ اللَّيْلُ يُرِيحُونَ إِبِلَهُمْ فِي أَفْنِيَتِهِمْ، قَالَ: فَنُوِّمُوا لَيْلَةً، وَقَامَتِ الْمَرْأَةُ، فَجَعَلَتْ لَا تَضَعُ يَدَهَا عَلَى بَعِيرٍ إِلَّا رَغَا، حَتَّى أَتَتْ عَلَى الْعَضْبَاءِ، قَالَ: فَأَتَتْ عَلَى نَاقَةٍ ذَلُولٍ مُجَرَّسَةٍ، قَالَ: فَرَكِبَتْهَا، ثُمَّ جَعَلَتْ لِلَّهِ عَلَيْهَا إِنْ نَجَّاهَا اللَّهُ لَتَنْحَرَنَّهَا، قَالَ: فَلَمَّا قَدِمَتِ الْمَدِينَةَ عُرِفَتِ النَّاقَةُ نَاقَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأُخْبِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا، فَجِيءَ بِهَا، وَأُخْبِرَ بِنَذْرِهَا، فَقَالَ: بِئْسَ مَا جَزَيْتِيهَا أَوْ جَزَتْهَا، إِنِ اللَّهُ أَنْجَاهَا عَلَيْهَا لَتَنْحَرَنَّهَا، لَا وَفَاءَ لِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ، وَلَا فِيمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَالْمَرْأَةُ هَذِهِ امْرَأَةُ أَبِي ذَرٍّ.

دعمران بن حصين ؓ نه روايت دي چه عضباء دنبی ﷺ اوښه، په بنی عقيل قبيله کښې ديو کس وه اوداوښه په هغه ځاروو کښې وه کوم چه به دخدمت دپاره دحاجيانونه مخکښې روان وو، بيادوي مالك گرفتار کړې شواواوترلې شو او نبی ﷺ ته پيش کړې شو په دې وخت کښې نبی ﷺ په يوخرباندې سور وو او په هغه باندې کته پرته وه دعضباء مالك اووئيل اې محمد زه تاسوپه کوم جرم کښې نيولې يم اوداځاروې هم کوم چه دحاجيانو دانتظام دپاره مخکښې روان وي نبی ﷺ ورته اوفرمائيل ته مونږ دبنو ثقيف قبيلې دحليف کيدو د جرم په سلسله کښې نيولې ئې بنو ثقيف قبيلې والاداجرم کړې وو چه دصحابه کرامونه ئې دوه کسان گرفتار کړي وو په دې وخت کښې دغضباء مالك اووئيل زه مسلمان يم يا مسلمان شوې يم، ليکن نبی ﷺ مخکښې لاړو. ابوداود وائی چه دحديث داجمله چه نبی ﷺ مخکښې لاړو، مادمحمدبن عيسي نه معلومه کړي ده، کله چه نبی ﷺ مخکښې لاړو نودې کس په چغه ورته آواز اوکړو اې محمد، عمران وائی چه نبی ﷺ ډيررحم اوکرم کونکې وو چه کله ئې داخبره واوريده نوورته راواپس شو اوتپوس ئې ترې اوکړو چه څه خبره ده؟ دغه کس عرض اوکړو چه زه مسلمان يم نبی ﷺ اوفرمائيل که چرې دادې دنيولونه مخکښې وئيلې وې نواوس به ته په خپل اختيارکښې وې (يعنی قيدشوې به نه وې)او پوره نجات به دې حاصل کړې وو ده بياعرض اوکړو اې محمد زه وږې شوم خوراك راته راکړه اوتږې شوې يم دڅکلو دپاره اوبه راکړه نبی ﷺ اوفرمائيل ستامقصد هم داوو، بائې داسې اوفرمائيل دداسې سرې هم دامقصد وي راوي وائی چه بياداسړې دهم هغه دوه صحابه کرامو په عوض کښې فديه کړې شو کوم چه بنوثقيف گرفتارکړي وو (يعنی بنو ثقيف ته ئې حواله کړواودده په بدل کښې ئې هغه دوه کسان پريخودل)عضباء اوښه نبی ﷺ دخپلې سورلۍ دپاره منتخب کړې وه، راوي وائی چه ددې نه پس مشرکانو د مدينې په ځاروو باندې ډاکه واچوله او عطباء اوښه ئې هم دخان سره بوتله اويوه مسلمانه زنانه ئې هم گرفتارکړې بوتلله، چه کله به شپه شوه نواوښان به بې دارام دپاره په يو ميدان کښې پريخودل، يوه شپه دغه کسان اوده وو نودغه زنانه په دې اراده باندې پاڅيده چه پټه به په کوم اوښ باندې سوره شم او اوبه تښتم، نودې زنانه چه به په کوم اوښ باندې لاس ايخودو هغه به آواز کولو تردې چه عضباء اوښې ته راغله او ورته معلومه شوه چه دا ډيره

ښه شريفه اودسورلی کولو دپاره ډيره ماهره اوښه ده نوهغه په دې باندې سوره شوه ددې نه پس دې زنانه دالله تعالی دپاره نذراومنلو که چرې الله تعالی ماته په دې اوښه باندې ددوی نه نجات راکړو نوزه به دا قرباني کوم، راوي وئيلی دی کله چه دا زنانه مدينې ته راورسيده نوخلقو وليدل چه په عضباء اوښه باندې راغله اوهغه ئې او پيژندله اونبی ﷺ ته ئې دذې اطلاع ورکړه نبی ﷺ دغه زنانه راوغوښتله اوهغې خپل نذر بيان کړو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل ته دې اوښې ته بده بدله ورکول غواړې کله چه الله تعالی تاته ددې اوښې په شاه باندې دهغې نه نجات درکړو نوددې بدله داشوه چه ته ئې ذبح کړې اوبيا ئې اوفرمائيل دهغه نذر پوره کول جائزنه دی په کوم کښې چه دالله نافرمانی وي اودداسې نذر پوره کول هم نشته کوم چه دانسان په اختيارکښې نه دې. امام ابوداود وائی دازنانه دابوذره کورودانې وه.

**قوله**: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ : قَالَ كَانَتِ الْعَضْبَاءُ لِرَجُلٍ مِنْ بَنِى عَقِيلٍ وَكَانَتْ مِنْ سَوَابِقِ الْحَاجِّ قَالَ : فَأُسِرَ فَأَتَى النَّبِىَّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ فِى وَثَاقٍ :

د رسول الله ﷺ د دې اوښې غضباء واقعه کومه چه دلته ذکر کړې شوې ده، دا مونږ په ﴿باب فی اقطاع الارضين﴾ کښې د صخر بن عيله رضی الله عنه د حديث د لاندې مختصر ليکلې ده په يو خاص مناسبت سره، هلته دې اوکتلې شی. (۱۷۱/۵)

د دې قصې باقی حصه دا ده قَالَ : فَفُودِىَ الرَّجُلُ بَعْدُ بِالرَّجُلَيْنِ. يعنی بيا د دې قيدی انجام دا شو چه هغه د ددوه مسلمانانو قيديانو په بدله کښې پريخودلې شو......... چه د هغې ذکر په پورته قصه کښې راغلې دې، قَالَ : وَحَبَسَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الْعَضْبَاءَ لِرَحْلِهِ يعنی دا عضباء اوښه رسول الله ﷺ د خپلې سورلئ دپاره ايساره کړه، قَالَ - فَأَغَارَ الْمُشْرِكُونَ عَلَى سَرْحِ الْمَدِينَةِ فَذَهَبُوا بِالْعَضْبَاءِ - قَالَ - فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهَا وَأَسَرُوا امْرَأَةً مِنَ الْمُسْلِمِينَ - قَالَ - فَكَانُوا إِذَا كَانَ اللَّيْلُ يُرِيحُونَ إِبِلَهُمْ فِى أَفْنِيَتِهِمْ الخ.

## د ناقة غضباء يوه قصه :

وړاندې راوی چه د دې ناقه عضباء سره کومه قصه پيښه شوه هغه بيانوی هغه دا چه يو ورځ داسې اوشو چه بعض مشرکينو د اهل مدينه په اوښانو باندې حمله اوکړه او هغه ئې لوټ کولو سره يوړل او د هغه اوښانو سره دا اوښه هم لاړه او هم دغه شان ئې يوه زنانه هم قيد کولو سره يوړه دا زنانه د ابوذرغفاری رضی الله عنه ښخه وه، دې مشرکانو چه کوم اوښان لوټ کولوسره د مدينې نه بوتلل د سفر دوران کښې چه به کله شپه راغله نو هغه اوښان به ئې د خيمو مخې ته اوتړل او اوده به شو، دا بودئ د هغوی سره وه چه هر وخت به ئې خان بچ کولو سره د هغوی د لاسو نه د تختيدو فکر کولو، پس يوه ورځ داسې اوشوه چه کله دا ټول غله د شپې اوده شو نو دا زنانه ويښه وه دا پاسيده او يوه دسورلئ قابله اوښه ئې اولټوله چه په هغې باندې سوريدو سره مدينې ته واپس شی، اصل کښې هره يوه اوښه د سورلئ قابله نه وی په دې وجه رومبی هغه اوښه کتلې کيږی چه هغه د سورلئ قابله ده يا نه ده، دا زنانه تجربه کاره وه پوهيده چه د سورلئ قابله کومه يوه اوښه وی، پس زنانه پته پاسيده او

په هغه اوښو باندې به ئې په هر يو باندې لاس کيخودلو، چه په کومه به ئې هم لاس کيخودلو هغه به هنريدله. (په اوښ باندې چه کله کيجاوه وغيره کيخودلې شي د سورلئ دپاره يا د سامان ترلو دپاره نو هغه وخت هغه څه آواز اوباسي) چه کله به هغه اوښې څه ونئيل دا زنانه به يکدم د هغې نه اخوا شوه دا اندازه لګولو سره چه دا د سورلئ قابله نه ده او د دې ويرې نه چه دا اودهٔ کسان راپانسي غرض دا چه هغې به هم دغه شان زر زر په يو يو باندې لاس کيخودلو او چه کله به هغې خبرې کولې نو روستو به شوه ترې نه، چه کله د دې ناقه عضباء نمبر راغلو او په هغې باندې هم دې لاس کيخودلو نو هغې څه او نه ونئيل، پس د مسلم په روايت کښې دی ﴿ فجعلت اذا دنت من البعير رغا فتترکه حتى تنتهي العضباء فلم ترغ ﴾ دا پوهه شوه چه دا اوښه د سورلئ قابله ده. د ﴿ذلول﴾ او ﴿ مجرسة ﴾ معنى هم دا ده يعنى هغه اوښه چه د سور تابع کيدو سره د سورلئ لائق وی، پس په هغې باندې سوره شوه، او د مدينې رخ ئې اوکړو او دغه وخت کښې هغې دا نذر هم اومنلو ﴿ ان نجاها الله لتنحربها ﴾ چه که الله پاک د دې اوښې په ذريعه ماته خلاصي راکړو او په دې باندې سوريدو سره زه مدينې طيبې ته روغه اورسيدم نو زه به دا اوښه د الله پاک دپاره ذبح کوم، پس په هغې باندې کيناستلو سره هغه مدينې طيبې ته روغه اورسيدله. ﴿ فلما قدمت المدينة عرفت الناقة ناقة النبیﷺ ﴾ يعنى چه کله د ورځې خلقو دا اوښه اوليده نو هغوی پوهه شو چه دا خو د رسول اللهﷺ ناقه عضباء ده او بيا رسول اللهﷺ ته د دې خبر ورکړې شو، رسول اللهﷺ سړې اوليږلو او دا زنانه ئې راطلب کړه او بيا د هغه زنانه د نذر ذکر هم اوکړې شو، رسول اللهﷺ اوفرمائيل « بِئْسَمَا «جَزَتْهَا» او جزيتهادا د راوی شک دې چه رسول اللهﷺ د غائب په صيغې سره اوفرمائيل يا زنانه ته خطاب کولو سره ئې صيغه د حاضر تلفظ اوفرمائيله، يعنى دې زنانه دې اوښې ته دا ډيره بده بدله ورکړه. « إِنِ اللَّهُ أَنْجَاهَا عَلَيْهَا لَتَنْحَرَنَّهَا دا حرف شرط دې يعنى که الله پاک دې ته خلاصي ورکړی په دې اوښه باندې نو دا به خامخا دا ذبح کوی. د دې جزاء بد کيدل صورة ښکاره دی چه کوم ځاروی لره الله پاک د دې زنانه د نفس د حفاظت ذريعه جوړه کړه هغه زنانه دې دا هلاک کړی ﴿ هذا جزاء الحسنة بالسيئة ﴾ بيا وړاندې رسول اللهﷺ د شرعى مسئلې دا خبره بيان کړه لاَ وَفَاءَ لِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ وَلاَ فِيمَا لاَ يَمْلِكُ يعنى د کوم څيز چه انسان مالک نه وی په هغې کښې د نذر منلو څه مطلب، نذر خو د خپل مال کيدل پکار دی د دې حديث شرح او د مسئلې تفصيل مونږ د باب په شروع کښې بيان کړې دې.

### د استيلاء الکافر على مال المسلم متعلق يو سوال او د هغې جواب

دلته يو بل علمى سوال او جواب دې هغه دا چه په کتاب الجهاد کښې يو د يو باب د لاندې ﴿ باب في المال يصيبه العدو من المسلمين ثم يدرکه صاحبه ﴾ دا مسئله تيره شوې ده د احنافو او د مالکيانو په نزد استيلاء الکافر على مال المسلم سبب د ملک دې نو د دې تقاضا دا ده چه دا مشرک د دې عضباء مالکان شوی وو او دې زنانه دا د مشرکانو مال لوټ کولو سره راوړو لهذا دا اوښه مال غنيمت شو چه د هغې مالک واپس کيدونکې

پکار دي، په دې باندې ﴿ لا يملك ﴾ کله صادقيږي د شوافعو او د مالکيانو په مسلك باندې خو هيڅ اشکال نشته ځکه چه د هغوی په نزد استيلاء الکافر سبب د ملك نه وی، د دې اشکال جواب دا دې چه د احنافو په نزد استيلاء سبب د ملك بعد الاحراز وی، دلته اګر چه استيلاء موندلې شوې ده خو تر اوسه پورې احراز نه دې موندلې شوې، يعنې مال لره د دارالاسلام نه دارالحرب ته منتقل کول، او د مالکيانو په نزد استيلاء الکافر مطلقا سبب د ملك وی، پس دا حديث كه خلاف دې نو د مالکيانو خلاف دې نه د احنافو. والله تعالی اعلم بالصواب. قَالَ أَبُو دَاوُدَ : وَالْمَرْأَةُ هَذِهِ امْرَأَةُ أَبِي ذَرٍّ، والحديث اخرجه مسلم والنسائی بطوله، واخرجه الترمذی منه طرفا، واخرج النسائی وابن ماجة منه طرفا، قاله المنذری

## بَابٌ فِيمَنْ نَذَرَ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمَالِهِ

### د الله په لار کښې د ټول مال صدقه کولو نذر منل

[۳۳۱۷]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، وَابْنُ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، قَالَ: قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: فَأَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبٍ، وَكَانَ قَائِدَ كَعْبٍ مِنْ بَنِيهِ حِينَ عَمِيَ، عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي صَدَقَةً إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ مَالِكَ، فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ، قَالَ: فَقُلْتُ: إِنِّي أُمْسِكُ سَهْمِيَ الَّذِي بِخَيْبَرَ".

دعبدالله بن کعب بن مالك نه روايت دې فرمائی چه ماعرض وکړو اې د الله رسوله زما دپاره داستغفار طريقه داده چه زه دخپل ټول دولت نه جدا شم او الله اود الله رسول ته ئې صدقه کړم، نبی ﷺ ورته اوفرمائيل ددې مال نه يوڅه دځان دپاره هم اوساته، ځکه چه دا ستا دپاره بهتر دې ماورته عرض وکړو چه په غزوه خيبر کښې چه زما کومه حصه ده هغه به اوساتم.

عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي صَدَقَةً إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ. قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم : « أَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ مَالِكَ ..الخ»

### په تصدق بجميع المال کښې مذاهب ائمة :

په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر کړې شوې ده هغه د تصدق بجميع المال د نذر ده که يو سړې دا نذر اومنی چه که زما فلانی کار اوشو نو زه به خپل ټول مال د الله پاك دپاره صدقه کوم دا مسئله مختلف فيه ده د مالکيانو او حنابله مسلك په دې صورت کښې دا دې چه ﴿ يكفيه التصدق بالثلث ﴾ يعنی د داسې انسان دپاره د ثلث مال صدقه کول کافی دی، او د امام شافعی رحمه الله په نزد به پوره صدقه کولې شی، وعند الحنفية جميع المال الزکوی ان کان والا فما کان..... يعنی د احنافو په نزد به نذر په هغه مال باندې محمول وی چه په هغې کښې زکوة واجب وی (نقدين والسوائم وغيره) که هغه سره مال زکوی وی، او که هغه سره داسې قسم مال موجود نه وی نو بيا چه هر يو مال وی هم په هغې باندې به محمول وی، هم هغه ټول به ورکولې شی، د امام مالك رحمه الله مسلك خپله په موطاء کښې موجود دې ﴿ عن

(): سنن النسائي/الأيمان ۳۵ (۳۸۵٤)، انظر حديث رقم: (۲۲۰۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۳۵) (صحيح)

عائشة ام المومنين انها سئلت عن رجل قال مالى فى رتاج الكعبة فقالت عائشة يكفره ما يكفر اليمين) قال مالک فى الذى يقول مالى فى سبيل الله ثم يحنث قال يجعل ثلث ماله فى سبيل الله وفى الاوجزواخرج محمد فى موطاه اثر عائشة ثم قال قد بلغنا هذا عن عائشة واحب الينا ان يفى بما جعل على نفسه فيتصدق بذلک ويمسک ما يقوته فاذا افاد مالا تصدق بمثل ما امسک وهو قول ابى حنيفة والعامة من فقهائنا آهـ امام محمد رحمه الله فرمائى چه زمونږ په نزد د دې صورت حکم دا دې چه داسې نذر منلو والا انسان دې دا خپل نذر پوره کړې يعنى ټول مال دې صدقه کړې او د خپل حاجت مناسب دې ترې نه اوساتى او بيا چه چرته د بل ځائې نه مال اوګټى نو دا مقدار دې هم صدقه کړې. اوجز۴/۲۸۵

## شرح الحديث من حيث الفقه :

د حديث الباب مضمون دا دې چه کله د کعب بن مالک رضی الله عنه توبه قبوله شوه نو هغوى رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ (زما په ذهن او اعتقاد کښې دا خبره ده) چه زما د توبې کمال په دې کښې دې چه زه خپل ټول مال الله پاک او د هغه د رسول ﷺ دپاره صدقه کولو سره د هغې نه جدا شم، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه څه مال ته د خپل ځان دپاره اوساته دا ستا دپاره زياته غوره ده، نو هغوى عرض اوکړو: ډيره ښه ده زه به خپله هغه حصه چه ماته د خيبر په غنيمت کښې ملاؤ شوې ده د خپل ځان دپاره ايساره کړم، او د دې نه په روستو روايت کښې دى چه رسول الله ﷺ هغوى د ټول مال د تصدق نه او دغه شان د نصف مال د تصدق نه هم منع کړو او بيا ئې په آخير کښې د ثلث مال د تصدق اجازت ورکړو. مالکيانو او حنابله د دې حديث نه استدلال کړې دې پس په حاشيه د بذل کښې دى ( استدل به الموفق فيمن نذر التصدق بجميع ماله انه يجزئه التصدق بالثلث، وبه قال مالک، وقال الشافعى رحمه الله يلزمه الكل فى التبرز دون اللجاج، وقال الحنفية يلزمه تصدق المال الزكوى كله آهـ نذر اللجاج والغضب هغه نذر ته وائى کوم نذر چه انسان په جوش کښې راتلو سره د قسم په طور باندې اومنى د يو کار د کولو يا د هغې نه د منع کيدو دپاره چه په هغې سره د ناذر مقصود قربت او عبادت نه وى صرف په خپله ذمه څه کار اخستل مقصود وى، نذر تبرز نذر طاعت ته وائى چه په هغې سره مقصود قربت او عبادت وى او ښه سوچ کولو سره هغه نذر اومنلې شى، په نذر اللجاج باندې تفصيلى کلام د وړاندې يو باب نه پس را روان دې، لهذا دا حديث د احنافو او شوافعو خلاف شو، د دې جواب د احقر په ذهن کښې دا دې چه په دې قصه د کعب رضی الله عنه کښې د نذر ذکر کوم ځائې دې هغوى خو د رسول الله ﷺ نه طلب د مشورې کوى چه زما خيال دې زما د توبې تکميل به هله کيږى چه کله زه خپل ټول مال صدقه کړم، رسول الله ﷺ هغوى ته په ځائې د ټول مال د ثلث مال د تصدق مشوره ورکړه، او که دا اومنلې شى چه د هغوى مقصد خپل نذر لره بيانول وو چه ما د خپلې توبې د تکميل دپاره د تصدق بجميع المال نذر منلې وو نو اوس څۀ اوکړم، نو په دې صورت کښې به د هغوى د کلام تاويل دا وى چه اوس د ثلث مال صدقه اوکړه، ټول مال په يو ځائې مه صدقه کوه په دې سره به درته پريشانى پيدا شى روستو په مزه مزه د دې مقدار صدقه

ورکولو سره پوره کړه، پس د احنافو په نزد هم دغه شان ده چه په يو ځائې دې ټول مال نه صدقه کوی لکه چه مخکښې تير شو د امام محمد رحمه الله په کلام کښې. والله تعالی اعلم
والحديث اخرجه النسائي ايضا مختصرا، واخرج البخاری ومسلم في الحديث الطويل، قاله المنذری.

[۳۳۱۸](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تِيبَ عَلَيْهِ: إِنِّي أَنْخَلِعُ مِنْ مَالِي، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، إِلَى خَيْرٌ لَكَ.

کعب بن مالک رضي الله عنه وائی کله چه دهغوی توبه قبوله شوه نو هغوی رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو: زه دخپل مال نه ويزاره کيږم، بيا وړپسې راوی دغسې حديث بيان کړو «خير لك» پورې.

[۳۳۱۹](2) حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ ابْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَوْ أَبُو لُبَابَةَ، أَوْ مَنْ شَاءَ اللَّهُ: "إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَهْجُرَ دَارَ قَوْمِي الَّتِي أَصَبْتُ فِيهَا الذَّنْبَ، وَأَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي كُلِّهِ صَدَقَةً، قَالَ: يُجْزِءُ عَنْكَ الثُّلُثُ".

کعب بن مالک رضي الله عنه وائی هغوی يا ابولبابه رضي الله عنه يا بل څوک چه الله اوغوښتل، نبی کريم ﷺ ته ئې اووئيل: زما په توبه کښې شامل دی چه زه دخپل دې کور نه کوم ځائې چه زما نه ګناه شوې ده هجرت اوکړم او خپل ټول مال صدقه کړم ددې نه ويزاره شم، نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: بس دريمه حصه صدقه کول به ستا دپاره کافی وی.

[۳۳۲۰](3) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ أَبُو لُبَابَةَ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، وَالْقِصَّةُ لِأَبِي لُبَابَةَ قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ بَعْضِ بَنِي السَّائِبِ بْنِ أَبِي لُبَابَةَ، وَرَوَاهُ الزُّبَيْدِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ السَّائِبِ بْنِ أَبِي لُبَابَةَ، مِثْلَهُ.

زهری وائی: ماته ابن کعب بن مالک خبر راکړې دې، هغه وائی چه دا ابولبابه رضي الله عنه وو، بيا هغوی ددې مفهوم حديث ذکر کړو او واقعه د ابولبابه ده. ابوداؤد وائی: دا يونس د ابن شهاب نه، اوابن شهاب دسائب بن ابولبابه په خامنوکښې د يونه روايت کړې دې، او دغسې زبيدی د زهری نه، زهری د حسين بن سائب بن ابی لبابه نه ددې په مثل روايت کړې دې.

[۳۳۲۱](4) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا حَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، قَالَ: قَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، فِي قِصَّتِهِ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي إِلَى اللَّهِ، أَنْ أَخْرُجَ مِنْ مَالِي كُلِّهِ إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ صَدَقَةً، قَالَ: لَا، قُلْتُ: فَنِصْفُهُ، قَالَ: لَا، قُلْتُ: فَثُلُثُهُ، قَالَ: نَعَمْ، قُلْتُ: فَإِنِّي سَأُمْسِكُ سَهْمِي مِنْ خَيْبَرَ.

عبدالله بن کعب بن مالك نه دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه په دې قصه کښې روايت کوی

(1): انظر ما قبله، وانظر حديث رقم: (۲۲۰۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۳۵) (صحيح)
(2): انظر ما قبله، وانظر حديث رقم: (۲۲۰۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۳۵، ۱۲۱۴۹) (صحيح الإسناد)
(3): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۴۹) (ضعيف الإسناد)
(4): انظر ما قبله، انظر رقم (۲۲۰۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۳۵) (حسن صحيح)

فرمائي چه ماعرض وکړو اي د الله رسوله زما د پاره د توبې کولو ښه طريقه داده چه زه د الله د پاره د خپل ټول دولت نه جدا شم او خپل ټول مال د الله په لاره کښې ورکړم، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل داسې مه کوه، مابيا عرض وکړو چه خپل نيم مال، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل داسې مه کوه، مابيا عرض وکړو چه د خپل مال دريمه حصه، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل داسې ټهيک ده ما ورته عرض وکړو چه په غزوه خيبر کښې چه زما کومه حصه ده هغه به اوساتم.

## بَابُ مَنْ نَذَرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ ثُمَّ أَدْرَكَ الإِسْلاَمَ

### د اسلام قبلولو نه پس د جاهليت د زمانې د نذر حکم

[۳۳۲۵](1) حدثنا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي نَذَرْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَنْ أَعْتَكِفَ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ لَيْلَةً، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوْفِ بِنَذْرِكَ".

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه ما عرض وکړو اي د الله رسوله ما د جاهليت په وخت کښې د اندر منلې وو چه په مسجد حرام کښې به اعتکاف کوم. نبي ﷺ ورته اوفرمائيل چه خپل نذر پوره کړه.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهما أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي نَذَرْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَنْ أَعْتَكِفَ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ لَيْلَةً. فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– : « أَوْفِ بِنَذْرِكَ »

دا حديث په باب الاعتكاف کښې تير شوې دې د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه په نزد د نذر د صحت د پاره د ناذر اسلام شرط دې ځکه چه نذر وی د طاعت والکافر ليس باهل لها، او د امام احمد رحمه الله په نزد شرط نه دې هغوی هم د دې حديث نه استدلال کړې دې، او جمهور علماء کرام دا حديث په استحباب باندې محمول کوی که څوک په دې باندې دا اشکال اوکړی چه د جمهور په نزد خو د کافر نذر نه دې حال دا چه رسول الله ﷺ دې ته نذر فرمائيلې دې، د دې بعضو علماء کرامو دا جواب ورکړې دې ﴿ اوف بمثل نذرک ﴾ چه څنګه حقيقي نذر پوره کولې شي هم دغه شان دا د نذر مثل پوره کړه.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

## بَابُ مَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَمْ يُسَمِّهِ

### د غير معين نذر بيان

[۳۳۲۶](2) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبَّادٍ الأَزْدِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ يَعْنِي ابْنَ عَيَّاشٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ مَوْلَى الْمُغِيرَةِ، قَالَ: حَدَّثَنِي كَعْبُ بْنُ عَلْقَمَةَ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَفَّارَةُ

(1): صحيح البخاري/الاعتكاف ۵ (۲۰۳۲)، ۱۵ (۲۰۴۲)، ۱۶ (۲۰۴۳)، الخمس ۱۹ (۳۱۴۴)، المغازي ۵۴ (۴۳۲۰)، الأيمان ۲۹ (۶۶۹۷)، صحيح مسلم/الأيمان ۶ (۱۶۵۶)، سنن الترمذي/الأيمان ۱۱ (۱۵۳۹)، سنن النسائي/الأيمان ۳۵ (۳۸۵۱)، سنن ابن ماجه/الصيام ۶۰ (۱۷۷۲)، الكفارات ۱۸ (۲۱۲۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۵۵۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۷، ۲/۲۰، ۸۲، ۱۵۳)، سنن الدارمي/النذور ۱ (۲۳۷۸) (صحيح)

(2): صحيح مسلم/النذر ۵ (۱۶۴۵)، سنن الترمذي/النذور ۴ (۱۵۲۸)، (تحفة الأشراف: ۹۹۶۰)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الأيمان ۴۰ (۳۸۶۳)، سنن ابن ماجه/الكفارات ۱۷ (۲۱۲۵)، مسند احمد (۴/۱۴۴، ۱۴۶، ۱۴۷) (صحيح)

النَّذْرِكَفَّارَةُ الْيَمِينِ"، قَالَ أَبُودَاوُد: وَرَوَاهُ عَمْرُوبْنُ الْحَارِثِ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنِ ابْنِ شِمَاسَةَ، عَنْ عُقْبَةَ.

دعقبة بن عامر رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي دنذر هم هغه كفاره ده كومه چه د قسم ده.

[۳۳۲۴]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْحَكَمِ حَدَّثَهُمْ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي كَعْبُ بْنُ عَلْقَمَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ شِمَاسَةَ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.

ابو الخيرد عقبة بن عامرنه اوهغه دنبی علیه السلام نه دتيرشوي روايت په شان روايت نقل كړي دي.

**قوله:** عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم: «كَفَّارَةُ النَّذْرِ كَفَّارَةُ الْيَمِينِ»

## د حديث الباب محمل او په هغې كښې اختلاف د علماء كرامو

او د ترمذی په روايت كښې داسې دی كفارة النذر اذا لم يسمه كفارة اليمين، د ابوداؤد په حديث كښې اګر چه دا زيادت نشته، خو مصنف رحمه الله دا حديث محمول هم په دې باندې كړې دې لكه چه په ترجمة الباب كښې دی، د دې نذر صورت دا دې لكه چه يو انسان داسې اوائی ﴿لله على نذر﴾ او د څه څيز نذر دې د هغې تعين اونكړی دې نذر ته نذر مبهم وائی، په نذر مبهم كښې د جمهور علماء كرامو مسلک دا دې چه ﴿كفارته كفارة اليمين﴾ ځكه چه د پوره كولو څه صورت خو شته نه د غير معين كيدو په وجه باندې، امام ابن قدامة رحمه الله د اكثرو علماء كرامو مذهب هم دا فرمائيلې دې، هغوی فرمائی: ﴿ولا اعلم فيه مخالفا الا الشافعي قال لا ينعقد نذره ولا كفارة فيه، ولنا ما روى عقبة بن عامر كفارة النذر اذا لم يسمه كفارة اليمين الحديث آهـ من المغنی وفی المحلی ورواه احمد وابوداؤد والنسائی، ورواه مسلم بدون قوله: اذا لم يسمه، فحمله مالک وابوحنيفة وجماعة على النذر المطلق، وحمله احمد وبعض الشافعية على نذر المعصية، وحمله جمهور الشافعية على نذر اللجاج مثلا ان كلمت زيدا فلله على حجة فكلمه فهو بالخيار بين الكفارة وبين ما التزمه آهـ وهكذا حكى القارى عن النووى انه قال حمله جمهور اصحابنا على نذر اللجاج قال القارى لا يظهر حمل لم يسمه على المعنى المذكور مع ان التخيير خلاف المفهوم من الحديث، وحمله على المعصية مع بعده يرده حديث ابن عباس رضی الله عنهما مرفوعا من نذر نذرا لم يسمه فكفارته كفارة يمين ومن نذر نذرا فی معصية فكفارته كفارة يمين فان الاصل فی العطف المغايرة آهـ مختصرا من الاوجز ۳۷/۳﴾ صاحب د محلی چه ليكلی دی چه امام احمد رحمه الله دا په نذر د معصيت باندې حمل كړی دې دا د هغې خلاف دی كوم چه ابن قدامة نقل كړی دی يعنی دا چه د دې نه مراد نذر مطلق او مبهم مراد دې لهذا صحيح دا ده چه د جمهور علماء كرامو چه په هغوی كښې ائمه ثلاثه هم دی په نزد د دې نه مراد نذر مبهم دې، مګر د شافعی رحمه الله په نزد د دې نه مراد لجاج دې اوس پاتې شوه دا خبره چه د نذر لجاج څه حكم دې.

## د نذر لجاج تعريف او د هغې په حكم كښې اختلاف ائمة:

په اوجز كښې په يو بل مقام باندې په نذر لجاج باندې تفصيلی كلام كولو سره د مالكيانو دا مذهب ليكلې شوې دې چه دا نذر د هغوی په نزد په قول راجح كښې واجب الوفاء دې،

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۹۶۰) (صحيح)

او نذر لجاج دا دې چه د هغې نه مقصود طاعت وغیره هیڅ نه وی بلکه خپل نفس لره د څه نه بندول او هغه ته د سزا ورکولو په طور وی لکه داسې اوئیلې شی ﴿ لله علی کذا ان کلمت زیدا ﴾ یعنی د زید نه د خفه کیدو په صورت کښې اوائی چه که زه دهغه سره خبرې اوکړم نو زما په ذمه یو حج یا عمره ده مثلاً د دې یو مثال په ﴿ باب الیمین فی قطعیة الرحم ﴾ کښې را روان دې، قال الباجی یلزم النذر علی وجه اللجاج والغضب وقال الشافعی هو مخیر فی نذره علی اللجاج بین ان یکفر کفارة یمین وبین ان یفی به، او موفق خپل او د حنابله مذهب هم دا نقل کړې دې کوم چه د امام شافعیؒ دې ﴿ انه مخیر بین الوفاء بنذره لانه نذر فیلزمه الوفاء به کنذر التبرز ﴾ الی آخر ما بسط الموفق..... د دې نه پس حضرت شیخؒ فرمائی چه د شوافعو په دې کښې پنځه اقوال دی کوم چه امام نوویؒ په شرح المهذب کښې مبسوطا ذکر کړی دی، وقال نذر اللجاج والغضب ویقال لیه یمین اللجاج والغضب ویقال له ایضا یمین الغلق ونذر الغلق فاذا قال ان کلمت فلانا لله علی صوم شهر او حج او صلوة او نحو ذلک ثم کلمه ففیما یلزمه خمسة طرق جمعها الرافعی قال اشهرها علی ثلاثة اقوال احدها یلزمه الوفاء بما التزم، والثانی یلزمه کفارة الیمین والثالث یتخیر بینهما، قال وهذا الثالث هو الاظهر عند العراقین، وقال النووی هو الاصح آهـ او ملا علی قاریؒ د احنافو مذهب داسې لیکلې دې چه ﴿ یلزم الوفاء بالنذر سواء کان مطلقا او معلقا بشرط بان قال ان شفی الله مریضی فعلی حجة مثلا او عمرة مثلا، لکن لزومه عند وجود الشرط اذا کان معلقا، ولا یخرج عنه بالکفارة فی ظاهر الروایة عن ابی حنیفةؒ، او بیا د دې نه پس لیکی چه د نذر مطلق دوه صورتونه دی یو دا چه تعلیق په داسې شرط باندې وی چه د هغې وجود مطلوب وی لکه ﴿ ان شفی الله مریضی فعلی کذا ﴾ نو د داسې نذر خو ایفاء هم واجب ده او که تعلیق د داسې څیز سره وی چه هغه غیر مطلوب وی لکه ﴿ ان کلمت زیدا فلله علی کذا ﴾ نو د داسې نذر خو ایفاء هم واجب دې او که تعلیق د هم دې څیز سره وی چه هغه غیر مطلوب وی لکه ﴿ ان کلمت زیدا فلله علی کذا ﴾ په دې کښې دوه اقوال دی یو هم دا چه واجب الایفاء دې دویم دا چه په دې صورت کښې د یمین کفاره کافی ده ﴿ وهو الصحیح وقد رجع الیه الامام ابوحنیفة قبل موته بثلاثة ایام او بسبعة وهو قول محمدؒ آهـ او هم دا تفصیل د حنابلة په مذهب کښې دې کما فی الروض المربع چه که تعلیق د داسې شرط سره دې چه د هغې وجود مطلوب وی د هغې ایفاء واجب ده او که هغه څیز داسې دې چه د هغې وجود مطلوب وی د هغې ایفاء واجب ده او که هغه څیز داسې وی چه د هغې وجود مطلوب نه دې نو هلته تخییر دې بین الایفاء وکفارة الیمین او حضرت شیخ فرمائی وهذا التفصیل هوالمرجح عندالشافعیة.

## خلاصة المذاهب:

فالحاصل فی نذر الجاج ان الائمة الثلاثة فی جانب والامام مالک فی جانب، د امام مالکؒ په نزد مطلقا واجب الایفاء دې او د ائمۀ ثلاثه په نزد علی الراجح په دې کښې تفصیل دې کوم چه پورته ذکر شو د دې مقام په شرح کښې ډیر تطویل اوشو چه د هغې منشاء د ناقلین

مذهب اختلاف دې په یو کتاب کښې دا مسئله مهذب او منقح ملاؤ نه شوه خو اوس الحمد لله تنقیح او تحقیق اوشو کوم چه مونږ په دوارو ځایونو کښې په آخر کښې لیکلې دې په نذر مبهم کښې هم او په نذر لجاج کښې هم ﴿ فلله الحمد ﴾

## بَابُ لَغْوِ الْيَمِينِ

### باب د یمین لغو بیان

دا هم هغه باب دې چه د هغې حواله مونږ په ابتدائی مباحثو کښې په بحث رابع کښې وزکړې وه.

### د یمین اقسام ثلاثه او د یمین لغو په تعریف کښې اختلاف :

د یمین درې مشهور قسمونه دی ۱: یمین منعقده، ۲: یمین غموس، ۳: یمین لغو.

یمین منعقده هغه دې چه د هغې تعلق د مستقبل د زمانې سره وی، چه قسم خوړلو سره داسې اوائی چه زه به داسې کوم یا به نه کوم، او د یمین غموس او یمین لغو تعلق د ماضی یعنی تیرې شوې زمانې سره وی، یا د حال سره وی او دا دواړه خلاف واقع وی، فرق د دوارو دا دې چه په یمین غموس کښې قصدا خلاف واقع خبره باندې قسم خوړلې شی په یمین لغو کښې بغیر د قصد نه یعنی هغه خبر د اعتقاد مطابق خو وی خو د واقع خلاف وی، مثلا که قسم خوړلو سره دا اوائی چه زید راغلو، او فی الواقع هغه نه وی راغلې نو که دا قسم ئې قصدا اوخوړلو نو بیا خو یمین غموس دې ګڼې یمین لغو. هم دا مذهب د امام مالک رحمه الله دې د امام شافعی رحمه الله په یمین لغو کښې اختلاف دې د هغوی په نزد د یمین لغو تعریف دا دې که د هغې تعلق د ماضی سره وی یا د حال سره یا د استقبال سره ﴿ما سبق الیه اللسان من غیر قصد ﴾ لکه چه د خلقو عادت وی چه د خبرې دوران کښې ﴿ لا والله ﴾، ﴿ بلی والله ﴾ وغیره الفاظو وئیلو. او د امام احمد رحمه الله په نزد دا دواړه قسمونه په یمین لغو کښې داخل دی، چه هغې ته شوافع لغو وائی هغه هم او کوم چه د احنافو او مالکیانو په نزد لغو دې هغه هم، قال الصاوی المالکی المفسر : اختلف العلماء فی معنی اللغو فقال الشافعی هو ما سبق الیه اللسان من غیر قصد عقد الیمین وقال ابوحنیفة ومالک هو ان یحلف علی ما یعتقد فتبین خلافه، وکلاهما داخل فی اللغو عند الامام احمد رحمه الله آه

[۳۲۵۴](1) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ الشَّامِيُّ، حَدَّثَنَا حَسَّانُ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي الصَّائِغَ، عَنْ عَطَاءٍ فِي اللَّغْوِ فِي الْيَمِينِ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "هُوَ كَلَامُ الرَّجُلِ فِي بَيْتِهِ، كَلَّا وَاللَّهِ، وَبَلَى وَاللَّهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ إِبْرَاهِيمُ الصَّائِغُ رَجُلًا صَالِحًا، قَتَلَهُ أَبُو مُسْلِمٍ بِعَرَنْدَسَ، قَالَ: وَكَانَ إِذَا رَفَعَ الْمِطْرَقَةَ فَسَمِعَ النِّدَاءَ سَيَّبَهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ دَاوُدُ بْنُ أَبِي الْفُرَاتِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ الصَّائِغِ، مَوْقُوفًا عَلَى عَائِشَةَ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ، وَعَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، وَمَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ، وَكُلُّهُمْ عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ مَوْقُوفًا.

دعطاء نه روایت دې فرمائی چه دیمین لغوه متعلق دام المومنین عائشې رضی الله عنها نه منقول دي

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۷۵) (صحیح)

چه فرمائیل ئې چه نبی ﷺ فرمائیلی دی چه یمیني لغوه دي ته وائی چه یو انسان په خپل کورکښې (په طور دتکیه کلام) اووائی مثلا هو په الله قسم نه، په الله قسم. امام ابوداود فرمائی چه ابراهیم سنار مسلم په عرندس مقام کښې قتل کړې وو اودابراهیم سنار حال داوو چه څټك به ئې راخستې وو چه داذان آواز به راغې نودوهلونه مخکښې به ئې پریخودو. ابوداود وئیلی دی چه داود بن ابوالفرات دابراهیم نه اوهغه دعائشې رضی الله عنها نه دارروایت موقوفا بیان کړې دې په همدارنګې زهري دعبدالملك نه په واسطه دعطاء سره دعائشې رضی الله عنها نه موقوفا نقل کړې دې.

قوله: قَالَتْ عَائِشَةُ رضی الله تعالی عنها ......إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « هُوَ كَلاَمُ الرَّجُلِ فِى بَيْتِهِ كَلاَّ وَاللَّهِ وَبَلَى وَاللَّهِ »

دا حدیث په ظاهر کښې د شوافعو موافق دې، په بدائع کښې د دې جواب دا لیکلې شوې دې چه دا حدیث زمونږ خلاف نه دې، زمونږ په نزد هم دا یمین لغو دې په دې شرط چه د دې تعلق د ماضی یا د حال سره وی، د شوافعو په نزد دا عام دې، د هغوی په نزد دا مستقبل ته هم شامل دې، هغوی فرمائی ﴿ والدلیل علی ما قلنا انها فسرتها بالماضی روی عن مطر عن رجل قال دخلت انا وابن عمر رضی الله عنه علی عائشة رضی الله عنها فسالتها عن یمین اللغو فقالت قول الرجل فعلنا والله کذا، وصنعنا والله کذا فتحمل تلک الروایة علی هذا توفیقا بین الروایتین اذا المجمل محمول علی المفسر ﴾

قوله: قَالَ أَبُو دَاوُدَ كَانَ إِبْرَاهِيمُ الصَّائِغُ رَجُلاً صَالِحًا قَتَلَهُ أَبُو مُسْلِمٍ بِعَرَنْدَسَ قَالَ وَكَانَ إِذَا رَفَعَ الْمِطْرَقَةَ فَسَمِعَ النِّدَاءَ سَيَّبَهَا.

### د ابراهیم صائغ یو خاص خصلت :

په سند کښې چه یو راوی ابراهیم صائغ راغلې دې د هغوی په باره کښې مصنف رحمه الله فرمائی چه هغه ابو مسلم په مقام فرندس کښې قتل کړې وو وراندې د هغوی یو عادت بیانوی چه د هغه حال دا وو چه د کار دوران کښې به چه کله هغه کالې جوړولو او د سټک د ګزار دپاره به ئې لاس اوچت کړو نو که هغه وخت به ئې په غوږونو کښې د آذان آواز پریوتلو نو فورا به ئې لاس اودرولو، او هغه سټک به ئې په ځائې د وهلو اودرولو، په بذل کښې لیکلې دی چه دا ابومسلم د حجاج بن یوسف په شان ډیر لوئې ظالم او خونی وو.

## بَابٌ فِيمَنْ حَلَفَ عَلَى الطَّعَامِ لاَ يَأْكُلُهُ

### باب د څه خیز د نه خوړلو د قسم بیان

[٣٢٧٠] (١) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِى عُثْمَانَ، أَوْ عَنْ أَبِى السَّلِيلِ عَنْهُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِى بَكْرٍ، قَالَ: "نَزَلَ بِنَا أَضْيَافٌ لَنَا، قَالَ: وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يَتَحَدَّثُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ، فَقَالَ: "لاَ أَرْجِعَنَّ إِلَيْكَ حَتَّى تَفْرُغَ مِنْ ضِيَافَةِ هَؤُلاَءِ، وَمِنْ قِرَاهُمْ، فَأَتَاهُمْ بِقِرَاهُمْ، فَقَالُوا: لاَ نَطْعَمُهُ

[1]: صحيح البخاري/مواقيت الصلاة ٤١ (٦٠٢)، المناقب ٢٥ (٣٥٨١)، الأدب ٨٧ (٦١٤٠)، صحيح مسلم/الأشربة ٣٢ (٢٠٥٧)، (تحفة الأشراف: ٩٦٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٩٧، ١٩٨) (صحيح)

حَتَّى يَأْتِيَ أَبُو بَكْرٍ، فَجَاءَ، فَقَالَ: مَا فَعَلَ أَضْيَافُكُمْ، أَفَرَغْتُمْ مِنْ قِرَاهُمْ؟ قَالُوا: لَا، قُلْتُ: قَدْ أَتَيْتُهُمْ بِقِرَاهُمْ فَأَبَوْا، وَقَالُوا: وَاللَّهِ لَا نَطْعَمُهُ حَتَّى يَجِيءَ، فَقَالُوا: صَدَقَ، قَدْ أَتَانَا بِهِ، فَأَبَيْنَا حَتَّى تَجِيءَ، قَالَ: فَمَا مَنَعَكُمْ؟ قَالُوا: مَكَانَكَ، قَالَ: وَاللَّهِ لَا أَطْعَمُهُ اللَّيْلَةَ، قَالَ: فَقَالُوا: وَنَحْنُ وَاللَّهِ لَا نَطْعَمُهُ حَتَّى تَطْعَمَهُ، قَالَ: مَا رَأَيْتُ فِي الشَّرِّ كَاللَّيْلَةِ قَطُّ، قَالَ: قَرِّبُوا طَعَامَكُمْ، قَالَ: فَقَرَّبَ طَعَامَهُمْ، فَقَالَ: بِسْمِ اللَّهِ، فَطَعِمَ وَطَعِمُوا، فَأُخْبِرْتُ أَنَّهُ أَصْبَحَ، فَغَدَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرَهُ بِالَّذِي صَنَعَ، وَصَنَعُوا، قَالَ: بَلْ أَنْتَ أَبَرُّهُمْ وَأَصْدَقُهُمْ".

دعبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه یوځل زمونږ میلمانه راغلل او ابوبکر رضی الله عنه دنبی علیه السلام خواته تلې وو اووئیلي ئې وو ترهغې پورې درته واپس نه راځم ترڅوچه ته ددوی دخدمت او میلمستیا ورکولونه اوزګار شوې نه یې، نوعبدالرحمن میلمنوته خوراک راوړو میلمنو اووئیل مونږ خو دابوبکر رضی الله عنه د راتلونه مخکښې خوراک نه کوو، بیا ابوبکر رضی الله عنه راغې اودمیلمنودحال تپوس ئې اوکړو چه ایادوی ته دخوراک پیش کولونه فارغې شوې ئې اوکه نه؟ ماعرض اوکړو چه ماخوورته ډوډئ ورې وه لیکن هغوی ستانه بغیر دخوراک کولونه انکاراوکړو میلمنوهم زمادخبرې تصدیق اوکړو، صدیق اکبر میلمنوته اوفرمائیل تاسوخوراک ولې اونکړو؟ هغوی اووئیل ستاپه وجه ابوبکراووئیل زمادې په الله قسم وي چه زه خونن بالکل خوراک نه کوم، میلمنواووئیل ترڅوچه ته خوراک نه کوې ترهغې پورې ئې مونږ هم نه کوو، ابوبکر رضی الله عنه اووئیل چه داسې بده خبره ماهیڅ کله هم نه ده لیدلې اووئې فرمائیل ډوډئ راوړه چنانچه راوړل شوه ابوبکر رضی الله عنه بسم الله اووئیله اوخوراک ئې شروع کړو او میلمنوهم خوراک شروع کړو، عبدالرحمن وائی چه ماته معلومه شوه چه ابوبکر رضی الله عنه سحر دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شو او واقعه ئې ورته بیان کړه نبی علیه السلام اوفرمائیل ته ډیرنیک اورښتونې ئې.

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ قَالَ: نَزَلَ بِنَا أَضْيَافٌ لَنَا قَالَ: وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يَتَحَدَّثُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ – صلى الله عليه وسلم– بِاللَّيْلِ

## د ابی بکر صدیق رضی الله عنه میلمنو قصه:

عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنهما بیان کوی چه یو کرت زمونږ څو میلمانهٔ راغلل (دا درې کسان وو د اصحاب صفه نه) هغوی فرمائی چه زما دوالد صاحب رضی الله عنه عادت د شپې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضریدو او هغوی سره د خبرو اترو وو، پس هغوی د تلو په وخت ما ته اوفرمائیل چه زما د واپس کیدو پورې دوی د خوراک نه فارغ کړه، عبدالرحمن وائی: ما هغوی ته خوراک (روټئ) راوړله، میلمنو د کور د مالک (صدیق اکبر) نه بغیر د خوراک خوړلو نه انکار اوکړو. عبدالرحمن وائی: چه کله مې والد صاحب رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واپس راغلو نو تپوس ئې اوکړو چه تاسو د خوراک نه فارغ شوی یئ؟ هغوی جواب ورکړو چه نه! د دې نه پس د بخاری په روایت کښې دی چه صدیق اکبر رضی الله عنه خپل ځوی عبدالرحمن ته آواز اوکړو (هغوی د صدیق اکبر رضی الله عنه په غصه لیدو باندې پټ شوې وو لکه چه په بخاری کښې روایت دې) ﴿ یا غنثر ﴾ (اې کمینه!) هغه مخامخ راغلو او راتلو سره ئې عرض اوکړو چه ما خو دوی ته ډوډئ کیخودلې وه خو دې خلقو د خوراک نه انکار

اوکړو چه تر څو پورې تاسو واپس نه شئ مونږ ئې هم نه خورو، په دې باندې میلمنو د عبدالرحمن تصدیق اوکړو چه بیشکه دوی خوراک راوړې وو خو مونږ انکار اوکړو ستاسو په انتظار کښې. صدیق اکبر ﷺ تپوس اوکړو چه زما انتظار مو ولې کوو هغوی جواب ورکړو چه ستاسو د مقام او د مرتبې د وجې نه، صدیق اکبر ﷺ دا بده اوګڼړله او قسم خوړلو سره ئې اوفرمائیل زه به هم نن دا خوراک نه خورم، دې میلمنو هم قسم اوخوړو چه مونږ ئې هم نه خورو چه تاسو ئې نه خورئ.

﴿ قال ما رایت فی الشر کاللیلة قط ﴾ په دې باندې صدیق اکبر ﷺ ډیر متاثر شو او وې فرمائیل چه داسې بده شپه خو ما چرته هم نه ده لیدلې خو هغوی دا بد صورتحال فورا ختم کړو او وې فرمائیل خوراک راوړئ او بسم الله وئیلو سره ئې خوراک شروع کړو، میلمنو هم شروع کړه، وړاندې په روایت کښې دی چه د دې شپې د قصې نه پس چه کله سحر صدیق اکبر ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د شپې دا واقعه ئې هغوی ته واوروله او دا چه زه په خپل قسم کښې حانث شوم په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ بل انت ابرهم واصدقهم ﴾ ته چرته حانث ئې ته خو په هغوی کښې د ټولو نه زیات نیک او رشتینې ئې مطلب دا چه دا هغه حنث نه دې کوم چه مذموم وی بلکه دا خو ﴿ من حلف علی یمین فرای غیرها خیرا منها ﴾ د قبیلې نه دې.

دا واقعه په صحیح بخاری نوره هم په تفصیل سره ده په هغې کښې دا هم دی ﴿ فاکل واکلوا فجعلوا لا یرفعون لقمة الا ربت من اسفلها اکثر منها فقال یا اخت بنی فراس ما هذا؟ فقالت وقرة عینی انها الان لاکثر قبل ان ناکل فاکلوا او بعث بها الی النبی ﷺ فذکر انه اکل منها ﴾ یعنی کله چه دې خلقو خوراک کولو نو کومه نمړئ به ئې هم چه اوچتوله نو لاندې به ترې نه خوراک نور هم زیات شو، بیا وړاندې دا دی چه په دې خوراک کښې پچ شوې رسول الله ﷺ ته هم اولیږلې شوه چه د هغې نه رسول الله ﷺ هم اوخوړه، دا قصه په صحیح بخاری کښې په کتاب الأدب ص ۹۰۷ او په علامات نبوت ص ۵۰۶ او مواقیت الصلوة ص ۸۵ کښې ذکر شوې ده.[۳۲۷۱]

[۳۲۷۱] ( )حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا سَالِمُ بْنُ نُوحٍ، وَعَبْدُ الْأَعْلَى، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، نَحْوَهُ زَادَ، عَنْ سَالِمٍ فِي حَدِيثِهِ، قَالَ: وَلَمْ يَبْلُغْنِي كَفَّارَةٌ.

ابوعثمان دعبدالرحمن بن ابی بکر ﷺ نه دتیر روایت په شان روایت نقل کړې دې لیکن په دې کښې ئې دسالم راوې نه دهغه په حدیث کښې دا اضافه کړې ده چه وئې فرمائیل ماته دامعلومه نه شوه چه ابوبکر دخپل قسم کفاره ادا کړه.

﴿ قال ولم یبلغنی کفارة ﴾ راوی وائی چه صدیق اکبر ﷺ په دې واقعه کښې کفاره یمین ادا کړې وه که نه په دې باره کښې ما ته هیڅ نه دی رارسیدلې خو اصولا کفاره واجب ده او عدم ذکر عدم لره مستلزم نه وی، او که دا واقعه د مشروعیت دکفارې نه مخکښې وی نو بیا بیله خبره ده. (بذل)

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم بنحوه اتم منه، قاله المنذری

( ): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۶۸۸) (صحیح)

# بَابُ الْيَمِينِ فِي قَطِيعَةِ الرَّحِمِ

## د رشتې ماتولو متعلق د قسم کولو بیان

[۳۲۷۲](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا حَبِيبٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ: أَنَّ أَخَوَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ بَيْنَهُمَا مِيرَاثٌ، فَسَأَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ الْقِسْمَةَ، فَقَالَ: إِنْ عُدْتَ تَسْأَلُنِي عَنِ الْقِسْمَةِ، فَكُلُّ مَالٍ لِي فِي رِتَاجِ الْكَعْبَةِ، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: إِنَّ الْكَعْبَةَ غَنِيَّةٌ عَنْ مَالِكَ، كَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ، وَكَلِّمْ أَخَاكَ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: لَا يَمِينَ عَلَيْكَ، وَلَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةِ الرَّبِّ، وَفِي قَطِيعَةِ الرَّحِمِ، وَفِيمَا لَا تَمْلِكُ".

دسعید بن المسیب نه روایت دې فرمائی چه په انصاروکښې دوه رونړه په مینځ کښې په میراث کښې څه اختلاف پیداشوي وو په دوی کښې یوکس بل ته دتقسیم کولو دپاره ووئیل ده ورته په جواب کښې ووئیل که چرې بیادې ماته دتقسیم خبره وکړه نوزما ټول مال بیت الله ته وقف وي، عمر رضي الله عنه ورته ووئیل چه بیت الله شریف ستامال ته محتاج نه دې ته دخپل قسم کفاره ورکړه اودخپل ورورسره دوراثت تقسیم خبرې وکړه ځکه چه ماد نبی علیه السلام نه اوریدلي ووچه فرمائیلي ئې وو چه دالله په نافرمانی کښې اودصله رحمی په قطع کولو کښې، په تاباندې نه قسم پوره کول واجب دې اونه کفاره ورکول واجب دې اونه په نذر کښې، نذر اوقسم په هغه څیزونو کښې معتبر نه دی کوم چه دانسان په اختیارکښې نه وي.

عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ : اَنَّ اَخَوَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ بَيْنَهُمَا مِيرَاثٌ فَسَأَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ الْقِسْمَةَ فَقَالَ : إِنْ عُدْتَ تَسْأَلُنِي عَنِ الْقِسْمَةِ فَكُلُّ مَالٍ لِي فِي رِتَاجِ الْكَعْبَةِ.

### شرح الحديث وفيه بيان نذر اللجاج :

دا دوه انصاری کسان چه په خپل مینځ کښې رونړه رونړه وو د هغوی ترمینځه د میراث مسئله راغلې وه په هغوی کښې یو د بل نه د تقسیم میراث مطالبه اوکړه (ممکنه ده چه څو کرته د دې نوبت راغلې وی) هغه اووې چه که بیا دې د تقسیم سوال اوکړو نو بیا زما نذر دا دې چه زما د حصې ټول مال د باب کعبې دپاره دې. مراد ترې نه خپله کعبه ده. وړاندې په روایت کښې دی چه د عمر رضي الله عنه په علم کښې چه کله دا واقعه راغله نو هغوی د دې نذر د منلو نه انکار اوکړو (ان الكعبة غنية عن مالك) کعبې ته ستا د مال ضرورت نشته، د خپل قسم کفاره ورکړه او د خپل رور سره خبرې شروع کړه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی، هغوی به فرمائیل (لا يمين عليك ولا نذر في معصية الرب ولا في قطيعة الرحم) په دې قصه کښې چه کوم نذر ذکر شوی دې هغه نذر اللجاج دې چه د هغې حکم اوس نزدې سره د بیان مذاهب ائمه تیر شوې دې او د هغې حاصل دا دې : چه که څوک خپل نذر لره د یو څیز د حصول پورې معلق کړی نو د هغې دوه صورتونه دی یو دا چه هغه څیز مطلوب او مقصود وی لکه (ان شفى الله مريضى فعبدى حر) د دې نذر ایفاء بالاتفاق واجب ده او که هغه څیز غیر مطلوب وی لکه د غصې وغیره په صورت کښې نذر اومنلې شی لکه (ان كلمتك فعلى

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰٤٤۷) (ضعيف الإسناد)

صوم شهر ﴾ دا نذر نذرلجاج دې او روميې نذر نذر المجازاة او نذر تبرز، د امام مالک رحمه الله په نزد خو د دواړو قسمونو يو حکم دې يعنی وجوب ايفاء او د باقی ائمه ثلاثه په نزد قسم اول يعنی د نذر المجازاة حکم وجوب دايفاء دې او په دويم قسم کښې التخيير بين الايفاء وکفارة اليمين .

د دې مضمون يو حديث په موطاء کښې هم دې ﴿ عن ام المومنين عائشة رضي الله عنها انها سئلت عن رجل قال مالی فی رتاج الکعبة فقالت عائشة يکفره ما يکفر اليمين ﴾ دا روايت مونږ سره ﴿ باب من نذر ان يتصدق بماله ﴾ کښې هم تير شوې دې.

[۳۲۷۳](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنِي أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا نَذْرَ إِلَّا فِيمَا يُبْتَغَى بِهِ وَجْهُ اللَّهِ، وَلَا يَمِينَ فِي قَطِيعَةِ رَحِمٍ".

عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: صرف په هغه څيزونو کښې نذر جائز دې چه هغې سره د الله رضا او خوشحالول مطلوب وی او د رشته دارئ پريکولو (تعلق پريخودلو) دپاره قسم جائز نه دې.

[۳۲۷٤](٢) حَدَّثَنَا الْمُنْذِرُ بْنُ الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَكْرٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ الْأَخْنَسِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نَذْرَ وَلَا يَمِينَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ، وَلَا فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ، وَلَا فِي قَطِيعَةِ رَحِمٍ، وَمَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ فَرَأَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا، فَلْيَدَعْهَا وَلْيَأْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ، فَإِنَّ تَرْكَهَا كَفَّارَتُهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْأَحَادِيثُ كُلُّهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلْيُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهِ إِلَّا فِيمَا لَا يُعْبَأُ بِهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قُلْتُ لِأَحْمَدَ: رَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، فَقَالَ: تَرَكَهُ بَعْدَ ذَلِكَ، وَكَانَ أَهْلًا لِذَلِكَ، قَالَ أَحْمَدُ: أَحَادِيثُهُ مَنَاكِيرُ، وَأَبُوهُ لَا يُعْرَفُ.

عمرو بن شعيب دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی وو نذر اوقسم پوره کول لازم نه دی په هغه څيزونو کښې کوم چه دانسان په اختيارکښې نه وی اونه دالله تعالی په نافرمانی کولو کښې، اونه په صله رحمئ کټ کولو کښې، او څوك چه ديو کارنه قسم وکړي او بيا ددې په خلاف کښې ورته خير ښکاره شي نودا عمل دې پريږدي اوهغه عمل دې اختيارکړي کوم چه دده دپاره غوره دې، يقينا ددغه (نامناسبه) کارپريښودل دده د قسم کفاره ده.ابوداؤد وائی: دا ټول حديثونه د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه رانقل دی، اوپکار دی چه هغه دخپل قسم کفاره ورکړی خوکوم قسمونه چه بغير سوچ خوړلې شی او دهغې خيال نه کيږی نودهغې کفاره نشته. ابوداؤد وائی: ما د احمد نه تپوس اوکړو: آيا يحی بن سعيد د يحی بن عبيدالله نه روايت کړې دې؟ نو هغوی اووئيل آؤ مخکښې ئې کړې وو، بيا ئې پريخودو، اوهغه ددې لائق وو چه دهغه نه روايت کول پريخودلې شی. احمد وائی: دهغه احاديث منکر دی اودهغه پلار غير معروف دې.

١): انظر حديث رقم (٢١٩٢) (تحفة الأشراف: ٨٧٣٦) (حسن)

٢): سنن النسائي/الأيمان ١٦ (٣٨٢٣)، (تحفة الأشراف: ٨٧٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢١٢) (حسن)

## بَابُ الِاسْتِثْنَاءِ فِي الْيَمِينِ بَعْدَ السُّكُوتِ

**باب: قسم خوړلو کښې د خاموش کیدو نه پس د ان شاء الله ونیلو بیان**

د دې نه مخکښې یو باب تیر شوې دې ﴿ باب الاستثناء فی الیمین ﴾ هلته مونږ دا لیکلي وو چه استثناء هغه معتبر ده کومه چه متصلا وی او دا چه د اتصال بحث، به په دې راتلونکی باب کښې ذکرکولې شی.

**په استثناء کښې د اتصال قید، او ذکر د مذاهبو :**

استثناء په اصطلاح کښې د ماقبل حکم نه د بعضو افرادو اخراج ته وائي په الا وغیره سره، او د دې اطلاق په تعلیق علی المشیئة باندې هم کیږی یعنی ان شاء الله ونیل، دلته هم دا مراد ده، د قسم خوړلو نه پس که یو انسان متصلا ان شاء الله اووائی نو دا د انعقاد یمین نه مانع کیږی، د اتصال قید د جمهور علماء کرامو او ائمة اربعه په نزد دی، بعض سلف لکه د طاؤس حسن قتاده وغیره نه په دې کښې اختلاف منقول دې، هم دغه شان د ابن عباس رضی الله عنهما اختلاف په دې کښې مشهور دې د هغوی په نزد د استثناء دپاره د یوې زمانې قید نشته چه کله هم غواړی کولې شی.

**(دامام اعظم رحمه الله د ذهانت دلچسپه واقعه)**

په دې سلسله کښې یوه قصه هم مشهوره ده هغه دا چه یو سړی ﴿ قیل هو محمد بن اسحاق صاحب المغازی ﴾ خلیفه منصور عباسی ته د امام ابوحنیفه رحمه الله شکایت اوکړو چه دوی ستاسو د نیکه ابن عباس رضی الله عنهما مخالفت کوی چه استثناء منفصل معتبر نه ده متصل کیدل ئې ضروری دی، منصور امام صاحب راوغوښتلو د هغوی نه ئې په دې باره کښې سوال اوکړو هغوی جواب ورکړو او زه وایم چه استثناء منفصل معتبر نه ده او بیا د هغه د مطمئن کولو دپاره هغوی اوفرمائیل آیا ستاسو دا خبره خوښه ده چه خلق ستاسو په مجلس کښې ستاسو په لاس باندې بیعت کوی حلف اوچت کړی اوبیا د مجلس نه بهر وتلو سره د انشاء الله په ذریعه بیعت ماتؤلو سره بری شی په دې باندې هغه خوشحاله شو اووې ونیل ﴿نعم ما قلت وعضب علی ابن اسحاق واخرجه من عنده ﴾ (بذل)

[٣٢٨٥](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا، وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا، وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا، ثُمَّ قَالَ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَدْ أَسْنَدَ هَذَا الْحَدِيثَ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَسْنَدَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ: عَنْ شَرِيكٍ، ثُمَّ لَمْ يَغْزُهُمْ.

عکرمه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه الصلاة والسلام فرمائیلی وو په الله مې دې قسم وي زه به دقریشو قبیلې سره جهاد کوم، په الله مې دې قسم وي زه به دقریشو قبیلې سره جهاد کوم، په الله مې دې قسم وي زه به دقریشو قبیلې سره جهاد کوم، اوبیائې انشاء الله ونیل. امام ابوداود وائی چه ولیدبن مسلم په واسطه د شریك سره پدی روایت کښې دا

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩١١٦) (ضعيف)

اضافه کړي ده چه، بیائي ورسره جهاد ونکړو.

[۳۲۸۶](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ بِشْرٍ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، يَرْفَعُهُ، قَالَ: "وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا، ثُمَّ قَالَ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ قَالَ: وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا إِنْ شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ قَالَ: وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا، ثُمَّ سَكَتَ، ثُمَّ قَالَ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: زَادَ فِيهِ الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ شَرِيكٍ، قَالَ: ثُمَّ لَمْ يَغْزُهُمْ.

دعکرمه نه مرفوعا روایت دی فرمائی چه نبی علیه الصلاة والسلام فرمائیلی وو: په الله مې دي قسم وي زه به دقریشوقبیلې سره جهاد کوم، په الله مې دي قسم وي زه به دقریشوقبیلې سره جهاد کوم، په الله مې دي قسم وي زه به دقریشوقبیلې سره جهاد کوم، او بیائي انشاء الله ووئیل. اوبیائي اوفرمائیل په الله مې دي قسم وي زه به دقریشوقبیلې سره جهاد کوم انشاء الله تعالی، په الله مې دي قسم وي زه به د قریشوقبیلې سره جهاد کوم، او بیا خاموش شو، اوبیائي اووئیل انشاء الله. امام ابوداود وائی چه ولیدبن مسلم په واسطه د شریك سره په دې روایت کښې دا اضافه کړي ده چه بیائي ورسره جهاد ونکړو.

**قوله:** عَنْ عِكْرِمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ: « وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا وَاللَّهِ لَأَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا ». ثُمَّ قَالَ: « إِنْ شَاءَ اللَّهُ ». او په دویم روایت کښې دا زیادت دې ثُمَّ سَكَتَ ثُمَّ قَالَ: « إِنْ شَاءَ اللَّهُ »

خو فصل یسیر د جمهورو په نزد هم جائز دې پس په بذل کښې د ابن امیر الحاج نه نقل دی: يشترط فی الاستثناء الاتصال بالمستثنی منه لفظا عند جماهير العلماء الا تنفس او سعال او اخذ فم ونحوه كعطاس او جشاء وعن ابن عباس جواز الفصل بشهر وسنة مطلقا﴾ او د دې نه پس بیا دا دی چه هغه د ابن عباس رضی الله عنهما نه چه کوم فصل منقول دې د هغې نه مراد استثناء ده کومه چه په وخت د تکلم منوی وی خو موخر وی.

مضمون د حدیث دا دې چه رسول الله ﷺ یوه ورځ اوفرمائیل چه زه به د قریش مکه سره ضرور غزوه کوم او دا رسول الله ﷺ درې کرته اوفرمائیل، د دې نه پس په دویم روایت کښې دی ﴿لم لم يغزهم﴾ چه بیا رسول الله ﷺ ته هغوی سره د جنګ کولو ضرورت رانغلو په دې باندې په بذل کښې دا اشکال دې چه د مکې فتح د غزوې په ذریعه اوشوه بیا د نفی څه معنی ده؟ قلت ويمكن ان يقال معناه لم يغزهم بعد هذا القول على الفور بل بعد زمان... یا دا چه د راوی مراد د غزوې نه قتال وی پس د امام شافعی رحمه الله په نزد د مکې فتح صلحا اوشوه نه عنوة. والله تعالى اعلم

## بَابُ مَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَا يُطِيقُهُ

### د داسې نذر منلو بیان چه انسان دهغې طاقت نه لری

[۳۳۲۲](۲) حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ التِّنِّيسِيُّ، عَنِ ابْنِ أَبِي فُدَيْكٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي طَلْحَةُ بْنُ يَحْيَى الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۱۱۶) (ضعيف)

(۲): سنن ابن ماجه/الكفارات ۱۷ (۲۱۲۸)، (تحفة الأشراف: ۶۳۴۱) (ضعيف مرفوعا)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَمْ يُسَمِّهِ، فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ، وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا فِي مَعْصِيَةٍ، فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ، وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَا يُطِيقُهُ، فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ، وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا أَطَاقَهُ، فَلْيَفِ بِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ وَكِيعٌ وَغَيْرُهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْهِنْدِ، أَوْقَفُوهُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه رسول پاک ﷺ فرمائيلي دی څوك چه غير معين نذر اومنی نوددي كفاره هغه ده كومه چه د قسم كفاره ده او څوك چه دګناه ديوار نذر اومنی نوددي كفاره هم د قسم كفاره ده او څوك چه داسې نذر اومنِي دكوم چه دې طاقت نه لری نوددي كفاره هم د قسم كفاره ده او څوك چه داسې نذر اومنی دكوم چه ددې وس اوطاقت لری نوهغه دې پوره كړي، ابوداود وائی چه دې حديث لره وكيع وغيره دعبدالله بن سعيد نه اوهغه په ابن عباس به باندې موقوفا نقل كړې دې.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ: « مَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَمْ يُسَمِّهِ فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا فِى مَعْصِيَةٍ فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ

دا هم هغه حديث دې چه د هغې ذكر مونږ سره په ﴿ باب من نذر نذرا لم يسمه ﴾ كښې د ملا علی قاری د كلام د لاندې داسې راغلې دې چه كومو علماء كرامو ﴿ من نذر نذرا لم يسمه ﴾ لره په نذر معصيت باندې محمول كړې دې هغه صحيح نه دې ځكه چه نذر معصيت خو د هغه حديث نه پس پخپله ذكر شوې دې او عطف مقتضی دې مغايرت لره وغيره وغيره.

والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذري

# كِتَابُ الْبُيُوعِ

## داخستلو خرڅولو داحكامو بيان

### د ماقبل سره مناسبت:

چه هم كله مصنف رحمه الله د عباداتو د بيان نه فارغ شو يعنی اركان اربعه مونځ روژه زكوة او حج او نكاح او جهاد وما يناسبه من الضحايا والوصايا والفرائض وغيرها نو اوس د دې ځائې نه د معاملاتو بيان شروع كوی او د دې نه پس اطعمة او اشربة، ځكه چه دا د بيع وغيره معاملات د خوراك څكاك د سهولتونو دپاره مشروع شوی دی او بيا د دې ټولو نه پس چه كوم احكام باقی پاتې شو يعنی حدود او قصاص او ديات هغه مصنف رحمه الله ذكر كړی دی ځكه چه دا امور يعنی حدود او قصاص وغيره زيات تر د اكل او شرب په بې احتياطئ باندې متفرع كيږی په دې وجه هغه د اطعمه او اشربة نه پس آخر كښې ذكر كړې شو، والله تعالى اعلم. دا مناسبت خو د پوره كتاب د مضامينو په اعتبار سره شو اوس پاتې شوه دا خبره چه نزدې چه كوم كتاب تير شوې دې يعنی كتاب الايمان والنذور په دې كښې او بيوع كښې څه مناسبت دې نو د دې په باره كښې دا وئيلې كيدې شی څنګه چه د كتاب النذور په شروع كښې تير شو چه په نذر كښې زوال د اختيار وی نو هم دغه شان په بيع كښې زوال د ملك وی فتناسبا والله تعالى اعلم

او د صحيح بخاری ترتيب دا دې چه هغوی په اركان اربعه كښې د ټولو نه آخير

کښې صوم ذکر کولو نه پس، د هغې نه پس متصلا کتاب البیوع بیان فرمائیلې دې او امام مسلم رحمه الله د ارکان اربعه نه پس کتاب الحج لره د ټولو نه آخر کښې ذکر کولو نه پس اول کتاب النکاح او د هغې نه پس کتاب البیوع ذکر کړې دې،

**(د بیع اصطلاحي تعریف)**

د بیع تعریف کوم چه مشهور دې هغه دا دې ﴿البیع مبادلة المال بالمال بالتراضی﴾ په دې تعریف باندې یو اشکال هم کړې شوې دې چه دا مانع نه دې ځکه چه دا په هبة بشرط العوض باندې صادق راځی، په دې وجه بعض علماء کرامو په دې کښې د لفظ تجارة اضافه اوکړه یعنی مبادلة المال بالمال بالتراضی بطریق التجارة... خو په دې باندې هم اشکال دې ځکه چه د دې نه بیع د مکره خارج کیږی حال دا چه د احنافو په نزد هغه منعقده ده.

**(په بیع او شراء کښې فرق)**

بیوع جمع ده د بیع، بیع او شراء د دې دواړو په باره کښې لیکلې شوې دی چه دا د اضدادو نه دی د یو بل په معنی راځی خو اکثر د بیع اطلاق په اخراج المبیع عن الملک، او د شراء اطلاق اکثر په اخراج الثمن عن الملک باندې کیږی.

**د بیع انواع :**

او په بیوع کښې د جمع صیغه اختیاروی فقهاء هم او محدثین هم د کثرت انواع بیع طرف ته د اشاره کولو دپاره، په حاشیه د هدایه کښې لیکلی دی چه د بیع په اعتبار د مبیع څلور قسمونه دی ۱: بیع سلعة بمثلها یعنی د سامان په بدله کښې سامان بدلول د دې نوم بیع مقایضه ده ۲: د ثمن په بدله کښې سامان ورکول لکه چه عام طور سره وی، مطلق بیع چه کله وئیلې شی نو هم دا ترې نه مراد وی ۳: بیع الثمن بالثمن یعنی چه د دواړو طرفونو نه په نقدینو کښې یو وی نو د دې نوم بیع الصرف دې. ۴: بیع دین بعین د دې نوم بیع سلم دې، په دې بیع کښې مبیع دین وی یعنی فی الحال نه بلکه واجب فی الذمه وی، او ثمن فی الحال وی یعنی عام طور سره خو د دې برعکس وی چه سلعة یعنی سامان ئې فی الحال واخستلو او د هغې عوض یعنی ثمن ئې موجل کړو چه روستو به ئې درکړم، او د بیع په دې قسم کښې یعنی سلم کښې د دې برعکس وی چه ثمن فی الحال او مبیع موجل هم په دې وجه د دې تعریف داسې کولې شی ﴿بیع آجل بعاجل﴾ دا دې په ذهن کښې وی چه په باب بیع کښې حرف "با" په ثمن باندې داخلیږی د بیع د دې څلورم قسم جواز خلاف القیاس، د نص د وجې نه دې، شریعت د مصلحت او سهولت عباد دپاره دا قسم خلاف القاس جائز کړې دې، هم په دې وجه د دې د جواز دپاره ئې ډیر شرطونه کیخودلې دی چه روستو اختلاف پیدا نه شی، دا شرطونه د فقه په کتابونو کښې مذکور و مسطور دی، هم دغه شان د ثمن په لحاظ سره هم د بیع څلور قسمونه دی، ۱: بیع المساومه، ما اتفقا علیه من غیر اعتبار الثمن الاول یعنی سودا کولو سره یو څیز اخستل چه په هر څومره قیمت باندې اتفاق راشی لکه چه عام طور سره په بیوع کښې وی، ۲: بیع المرابحة ۳: التولیة ۴ والوضعیة په دې درې واړو قسمونو کښې د ثمن اول اعتبار وی یعنی بائع دا اوائی چه ماته دا څیز په

دومره قیمت پرېوتلې دې او زه ئې تاته په دومره پیسو درکوم بیا د ګټې د اخستلو په صورت کښې دې ته مرابحه او د نه اخستلو په صورت کښې بیع تولیه او د کمولو په صورت کښې بیع الوضعیه وائي.

**په دین کښې د معاملاتو د صحیح کولو اهمیت:**

زمونږ دین یعنی دین اسلام صرف د عباداتو نوم نه دې، بلکه د عباداتو، معاملاتو، معاشراتو او اخلاقیاتو د مجموعې نوم دې، بغیر د معاملاتو د صحیح کولو نه انسان دینداره یا صوفی یا زاهد نه شي جوړیدې، پس په تعلیم المتعلم کښې لیکلې دی چه یو سړی د امام محمد رحمه الله خدمت کښې عرض اوکړو ﴿ الا تصنف کتابا فی الزهد ﴾ چه تاسو په زهد او تصوف کښې یو کتاب ولې نه لیکئ؟ نو هغوی جواب ورکړو ﴿ قد صنفت کتابا فی البیوع ﴾ یعنی په په مسائلو د بیوع باندې کتاب لیکلې دې. په ظاهر کښې خو جواب د سوال مطابق نه وو په دې وجه هغه دوباره سوال اوکړو نو هغوی هم هغه جواب اوفرمائیلو، درې کرته هم داسې اوشوه هر کرت به هغوی هم دا فرمائیل چه ما په بیوع باندې کتاب لیکلې دې ګویا امام صاحب رحمه الله دې طرف ته اشاره اوفرمائیله چه بغیر د بیوع او معاملاتو د برابرولو نه انسان صوفی او زاهد نه شي جوړیدې، د امام محمد رحمه الله د دې قصې تائید د امام ترمذی رحمه الله د صنیع نه هم کیږي ځکه چه هغوی د کتاب البیوع په شروع کښې چه کوم باب ترلې دې هغه دا دې ﴿ باب ما جآء فی ترک الشبهات ﴾ او بیا ئې په هغې کښې دا مشهور حدیث مرفوع ذکر فرمائیلې دې ﴿ الحلال بین والحلام بین وبین ذلک امور مشتبهات لا یدری کثیر من الناس امن الحلال هی ام من الحرام فمن ترکها استبراء لدینه وعرضه فقد سلم الحدیث قال ابوعیسی هذا حدیث حسن صحیح آه.قلت هو متفق علیه اخرجه البخاری ومسلم.

## بَابٌ فِي التِّجَارَةِ يُخَالِطُهَا الْحَلِفُ وَاللَّغْوُ

**په تجارتی معاملاتو کښې قسمونه او دروغ ډیر وی**

[۳۳۲۶](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ، قَالَ: "كُنَّا فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُسَمَّى السَّمَاسِرَةَ، فَمَرَّ بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَمَّانَا بِاسْمٍ هُوَ أَحْسَنُ مِنْهُ، فَقَالَ: يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ، إِنَّ الْبَيْعَ يَحْضُرُهُ اللَّغْوُ وَالْحَلِفُ، فَشُوبُوهُ بِالصَّدَقَةِ".

دقیس بن ابی غرزه نه روایت دې فرمائی چه مونږ تاجرانوته به دنبی ﷺ په زمانه کښې سماسره وئیلې کیدل یوه ورځ نبی ﷺ زمونږ په خوا کښې تیریدو اوزمونږ دپاره ئې دپخوانې نوم نه بهترنوم تجویز کړو، وئې فرمائیل اې دتاجرانو دلې یقینا په کاروبارکښې بې کاره خبرې اوقسمونه وي لهذا تاسوله پکاردې چه دصدقې سره ئې یوځائې کړئ.

[۳۳۲۷](٢) حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ عِيسَى الْبِسْطَامِيُّ، وَحَامِدُ بْنُ يَحْيَى، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ جَامِعِ بْنِ أَبِي رَاشِدٍ، وَعَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَعْيَنَ، وَعَاصِمٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ،

[1]: سنن الترمذي/البيوع ٤ (١٢٠٨)، سنن النسائي/الأيمان ٢١ (٣٨٢٨)، البيوع ٧ (٤٤٦٨)، سنن ابن ماجه/التجارات ٣ (٢١٤٥)، (تحفة الأشراف: ١١١٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٠،٦٧٤) (حسن صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١١٠٣) (صحيح)

بِمَعْنَاهُ، قَالَ: وَالْحَلِفُ يَحْضُرُهُ الْكَذِبُ، وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ الزُّهْرِيُّ: اللَّغْوُ وَالْكَذِبُ.

جامع بن ابی راشد اوعبد الملك بن اعين اوعاصم دابووائل نه روايت كوی هغه دقيس بن ابی غرزة نه دتيرشوی روايت په شان روايت بيان كړې دې اواضافه ئې كړې ده، چه په بيعه كښې قسم خوړل اودروغ وئيل ډيرېښېږي يا عبث خبرې اودروغ خبرې ډيرې پيښيږي (نوتاسولره پكاردي چه ډير ډير خيراتونه كرئ).

عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ قَالَ كُنَّا فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نُسَمَّى السَّمَاسِرَةَ فَمَرَّ بِنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَسَمَّانَا بِاسْمٍ هُوَ أَحْسَنُ مِنْهُ فَقَالَ « يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ إِنَّ الْبَيْعَ يَحْضُرُهُ اللَّغْوُ وَالْحَلِفُ فَشُوبُوهُ بِالصَّدَقَةِ »

قيس بن ابی عرزه ﷛ فرمائی چه مونږ ته به د عهد نبوی ﷺ په شروع كښې سماسره وئيلې كيدل يعنی سوداګرو ته به سماسره وئيلې كيدل كوم چه د سمسار يعنی الدلال جمع ده، يوه ورځ رسول الله ﷺ په بازار كښې په سوداګرو باندې تير شو، هغه صحابی فرمائی چه هغه ورځ رسول الله ﷺ مونږ په ډير ښه نومونو باندې ياد اوفرمائيلو : وې فرمائيل ﴿ يا معشر التجار﴾ اې د سوداګرو جماعته! د لين دين او بيع او شراء په لغوياتو كښې د دروغو قسمونه په خولهٔ باندې راشی نوتاسو دا عمل د صدقې سره يو ځائې كوئ يعنی روزانه د ګنجائش او وس مناسب صدقه كوئ، چه د دې لغوياتو تلافی اوشی.

د سوداګر نوم د سمسار نه ولې ښه دې ځكه چه تجارت د الفاظ عربيه نه دې په قرآن كريم كښې ذكر دې په خلاف د سمسار چه هغه عجمی لفظ دې. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَابٌ فِي اسْتِخْرَاجِ الْمَعَادِنِ

### دكان نه د مال ويستلو بيان

يعنی د سرو او سپينو زرو د كانونو نه مال ويستلو سره حاصلول، د دې باب كتاب البيوع سره څه مناسبت دې ځكه چه سره او سپين زر د څيزونو د اخستلو دپاره ثمن جوړيږي.

[۳۳۲۸](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرٍو يَعْنِي ابْنَ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "أَنَّ رَجُلًا لَزِمَ غَرِيمًا لَهُ بِعَشَرَةِ دَنَانِيرَ، فَقَالَ: وَاللَّهِ لَا أُفَارِقُكَ حَتَّى تَقْضِيَنِي، أَوْ تَأْتِيَنِي بِحَمِيلٍ، فَتَحَمَّلَ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَاهُ بِقَدْرِ مَا وَعَدَهُ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِنْ أَيْنَ أَصَبْتَ هَذَا الذَّهَبَ؟، قَالَ: مِنْ مَعْدِنٍ، قَالَ: لَا حَاجَةَ لَنَا فِيهَا، وَلَيْسَ فِيهَا خَيْرٌ، فَقَضَاهَا عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دابن عباس ﷛ نه روايت دې فرمائی چه يو كس خپل قرضدارې دلسو روپو په وجه ونيولو (دچاپه ذمه چه دهغه لس ديناره وو) ورته ئې اووئيل په الله مې دې قسم وې ترهغې به دې پريږنه دم ترڅوچه دې زما قرض نه وی اداكړې اويارا ته زمانت راتكړې، راوي وائی نبی ﷺ چه دا واوريدل نوقرض غوښتونكې ته ئې دقرضدارې دطرف نه ضمانت اوكړو نوده

(۱): سنن ابن ماجه الأحكام ۹(۲٤۰٦)، (تحفة الأشراف: ۶۱۷۸) (صحيح)

ورته دومره مال راوړو دڅومره مال دراوړوچه ني وعده کړي وه، نبی ﷺ ورته اوفرمائيل دادي دچرته نه راوړل هغه اووئيل دکان نه مي راوړل نبی ﷺ اوفرمائيل زمونږ دي ته څه حاجت نشته دې اونه په دې کښې څه خيرشته دې، نونبی ﷺ دده قرض ددغه مال نه اداکړو.

**قوله:** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما أَنَّ رَجُلاً لَزِمَ غَرِيمًا لَهُ بِعَشَرَةِ دَنَانِيرَ الخ

**شرح الحديث:**

ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه يو سړی يعنی دائن خپل مديون نيولې وو چه په هغه باندې دين صرف لس ديناره وو، او رجل دائن دا وئيل چه والله زه به تا نه پريږدم چه تر څو تا ماته خپل دين نه وی ادا کړې يا خپل يو کفيل پيش نه کړې. راوی وائی چه د دې شخص د دين کفالت رسول الله ﷺ واخستلو او بيا د څو ورځو نه پس د وعدې مطابق د هغوی په خدمت کښې مديون مال راوړو، رسول الله ﷺ د هغه نه تپوس اوکړو چه دا سرۀ زر تا د کوم ځائې نه حاصل کړل، هغه عرض اوکړو د يو معدن نه، رسول الله ﷺ په دې اوريدو باندې هغه واپس کړو او وې فرمائيل مونږ ته د دې ضرورت نشته، په دې کښې هيڅ خير نشته او بيا هغه قرض داری ته رسول الله ﷺ د خپل طرف نه ادا کړې.

رسول الله ﷺ د دې معدن نه ويستلې شوې سره زر ولې واپس کړل، شراح د دې په توجيه کښې مختلف دی، بعضو وئيلې دی چه د دې به څه خاص وجه وی چه د هغې مونږ ته خبر نشته ګينې صرف د دې مال مستخرج من المعدن کيدل خو مانع عن التملک نه دې امام خطابی رحمه الله د دې متعدد توجيهات احتمالاً ليکلی دی. ۱: رسول الله ﷺ دا په دې وجه رد کړو ﴿لانه لم يخمس﴾ يعنی هغه سړی تر اوسه پورې د دې مال خمس نه وو ادا کړې کوم چه شرعا واجب دې. ۲: د اصحاب معادن عادت وی چه هغوی د تراب المعادن بيع کوی څکه چه په هغې کښې د سرو زرو او سپينو ذرو ذرات وی، او چونکه دا معلومه نه ده چه څه به راوځی يا نه او څومره به راوځی ففيه غرر ۳: ضرورت وو د سکې د دراهم او دنانير او هغه سړی راوړې وو سرۀ زر غير مضروب په دې وجه رسول الله ﷺ هغه واپس کړل ۴: اصحاب معادن دا کوی چه کان په ټهيکه ورکوی چه د کنستلو والا به هغې کښې عشر يا خمس يا ثلث، باقی زمونږ، او د هغې مقدار معلوم نه دې، د دې جهالت د وجې نه دا عقد فاسد شو په دې وجه رسول الله ﷺ واپس اوفرمائيلو (بذل) والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

## بَابٌ فِي اجْتِنَابِ الشُّبُهَاتِ

د مشتبه څيزونو نه د ځان ساتلو بيان

[۳۳۲۹] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ، وَلَا أَسْمَعُ أَحَدًا بَعْدَهُ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ الْحَلَالَ بَيِّنٌ، وَإِنَّ الْحَرَامَ بَيِّنٌ، وَبَيْنَهُمَا أُمُورٌ مُشْتَبِهَاتٌ، وَأَحْيَانًا يَقُولُ مُشْتَبِهَةٌ، وَسَأَضْرِبُ لَكُمْ فِي ذَلِكَ مَثَلًا، إِنَّ اللَّهَ حَمَى

¹): صحيح البخاري/الإيمان ۳۹ (۵۲)، والبيوع ۲ (۲۰۵۱)، صحيح مسلم/المساقاة ۲۰ (۱۵۹۹)، سنن الترمذي/البيوع ۱ (۱۲۰۵)، سنن النسائي/البيوع ۲ (۴۴۵۸)، سنن ابن ماجه/الفتن ۱۴ (۳۹۸۴)، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۲۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۲۶۷، ۲۶۹، ۲۷۰، ۲۷۱، ۲۷۵)، سنن الدارمي/البيوع ۱ (۲۵۷۳) (صحيح)

حِمًى، وَإِنَّ حِمَى اللَّهِ مَا حَرَّمَ، وَإِنَّهُ مَنْ يَرْعَ حَوْلَ الْحِمَى، يُوشِكُ أَنْ يُخَالِطَهُ، وَإِنَّهُ مَنْ يُخَالِطِ الرِّيبَةَ، يُوشِكُ أَنْ يَجْسُرَ".

دنعمان بن بشير نه روايت دې فرمائي چه ما د نبي ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمائيل ئې يقينا حلال هم ظاهردي اوحرام هم ظاهردي اومشتبه ددې دواړو په مينځ کښې دي، زه تاسوته ددې مثال بيانوم الله تعالی ددې دپاره يوحدمقرر کړې دې او ددې حد دهغه حرام کړې شوي څيزونه دی اويقيناڅوك چه خپل څاروی ددې حدونه چاپيره څروي نونزدې دهرچه په دې کښې به داخل شي، اوهمدارنګې څوك چه مشتبه کارکوي نوپه دې باره کښې دده د جرئت زياتيدو انديښنه ده.

**قوله:** عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ - وَلاَ أَسْمَعُ أَحَدًا بَعْدَهُ يَقُولُ - سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « إِنَّ الْحَلاَلَ بَيِّنٌ وَإِنَّ الْحَرَامَ بَيِّنٌ

په دې سند کښې ﴿ وَلاَ أَسْمَعُ أَحَدًا بَعْدَهُ ﴾ دا جمله معترضه ده او په نسائی کښې داسې دی، ﴿فوالله لا اسمع بعده احدا ﴾ امام شعبي رحمه الله فرمائي چه ما دا حديث (کوم چه وړاندې را روان دې) د نعمان بن بشير رضي الله عنه نه اوريدلې، او د هغوی نه د اوريدو نه پس ئې د بل چا نه نۀ اورم، يعني د هغوی نه پس د بل صحابي رضي الله عنه نه د اوريدو ضرورت نشته، صرف د هغوی نه اوريدل کافي دی ځکه چه هغوی بالکل رشتيني او قابل اعتماد دی.[1]

**شرح الحديث :**

د حديث مضمون دا دې : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائي چه د کومو څيزونو خلقو ته حلال کيدل معلوم دی د هغې حکم خو ښکاره دې، يعني خلق دا ګڼړي چه د هغې په اختيارولو کښې څه حرج نشته، او هم دغه شان د کوم څيز حرام کيدل چه خلقو ته معلوم دی د هغې حکم هم د هغوی په نزد نور هم ظاهر دې، يعني دا چه د هغې نه بچ کيدل ضروری دی، خو ضرورت د دې خبرې دې چه کوم امور د حلال او حرام ترمينځه دی د هغې حکم دې اوپيژندلې شي او هغه دا دې چه څنګه د حديث د وړاندې حصې نه معلوميږي چه د داسې امورو نه اجتناب هم احتياطاً ضروری دې ګڼې د احتياط نه کولو په صورت کښې ويره ده چه معامله وړاندې لاړه نه شي يعني وقوع فی الحرام، او بيا رسول الله ﷺ د دې مشتبهاتو دا حکم په يو مثال سره واضحه کړو ﴿ ان الله حمى حمى وان حمى الله محارمه ﴾ چه بيشکه الله پاك په بعض څيزونو باندې کنده تار لګولو سره هغه ممنوع کړې دی چه انسان هغې ته او نه رسی او هغه امور چه په هغې باندې الله پاك کنده تار لګولې دې هغه ممنوعات شرعيه دی او کوم انسان چه د هغه تار خوا کښې څاروی څروی نو د هغه په باره کښې قوی ويره ده چه هغه په تار کښې دننه ور داخل نه شي. ﴿وانه يخالط الريبة يوشک ان يجسر ﴾ يعني کوم انسان چه مشکوک ته نزدې کيږی د هغه په باره کښې دا ويره ده چه هغه په داسې کولو سره وړاندې جرأت اوکړی او په ښکاره حرامو کښې ورننوځي، د دې حديث د ړومبئ جملې

[1] او دا هم ممکنه ده چه داسې اونيلې شی چه شعبي د اوساط تابعينو نه دې کوم چه زيات تر د تابعينو نه روايت کوی او دا حديث د هغوی نه د صحابي نه دې په دې وجه فرمائي چه د دې نه پس اوس د يو تابعي نه د روايت کولو څه ضرورت پاتې کيږی)

مطلب شراحو هم دا لیکلي دي کوم چه مونږ پورته اولیکلو، او د دې جملې مطلب دا نه دې چه ټول هغه څیزونه کوم چه د الله پاک په نزد حلال دی او هم دغه شان کوم چه د الله پاک په نزد حرام دی هغه ټول بین او ښکاره دی ټول خلق هغه پیژنی، د دې مطلب شراح نفی کړې ده ځکه چه د دې مطلب په صورت کښې بیا مشتبه امور چرته باقی پاتې کیږی چه د هغې نه د بچ کیدو د پاره په حدیث کښې فرمائیلې شوې دی. والله تعالی اعلم

## د حدیث الباب په ظاهر کښې معارض یو بل روایت:

دلته یو طالب علمانه اشکال دې چه وړاندې د کتاب الاطعمة په اخیر کښې په حدیث کښې داسې دی ﴿ كان اهل الجاهلية ياكلون اشياء ويتركون اشياء تقذرا فبعث الله نبيه ﷺ وانزل كتابه واحل حلالا وحرم حرامه فما احل الله فهو حلال وما حرم الله فهو حرام وما سكت عنه فهو معفو ﴾ په دې حدیث کښې د حلال او حرام څیزونو ترمینځه څیز ته عفو وئیلې شوې ده، او په حدیث الباب کښې دې ته مشتبه او واجب الاحتراز فرمائیلې شوې دی، د دې اشکال او د هغې جواب طرف ته اشاره شیخ په کوکب کښې داسې فرمائیلې ده چه د دې دواړو احادیثو ترمینځه څو قسمه جمع کړې شوې ده مثلاً دا چه ۱: حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما من باب الفقه والفتوی دې او د نعمان بن بشیر رضی الله عنه دا حدیث من باب الورع والتقوی دې. ۲: او د دې نه غوره توجیه دا ده چه د ابن عباس رضی الله عنهما په حدیث کښې چه کوم حکم ذکر کړې شوې دې یعنی عفو هغه د مسکوت عنه ده، او د نعمان بن بشیر رضی الله عنه حدیث کښې چه کوم حکم ذکر کړې شوې دې هغه امر مشتبه دې، پس دلته څلور مراتب شو حلال، حرام، مسکوت عنه، یعنی هغه څیز چه د هغې په باره کښې نه دلیل د حلت موجود وی نه دلیل د حرمت، مشتبه یعنی چه په کوم امر کښې دلائل متعارض وی د حلت او حرمت په باره کښې، او د هغې حکم وجوب ترک دې ترجیحاً للحرمة، او د قسم ثالث حم دا دې چه هغه معفو عنه دې د اباحة اصلیه په اعتبار سره.[1] ،او یو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه د نعمان بن بشیر رضی الله عنه حدیث متفق علیه دې بلکه د صحاح ستة حدیث دې، او حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما د سنن روایت دې.

[۳۳۳۰](۲) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا، عَنْ عَامِرٍ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: "وَبَيْنَهُمَا مُشَبَّهَاتٌ، لَا يَعْلَمُهَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ، فَمَنِ اتَّقَى الشُّبُهَاتِ اسْتَبْرَأَ عِرْضَهُ وَدِينَهُ، وَمَنْ وَقَعَ فِي الشُّبُهَاتِ وَقَعَ فِي الْحَرَامِ

دنعمان بن بشیر نه روایت دې فرمائی چه ماد نبی علیه السلام نه اوریدلي دي چه فرمائیل ئې وو......او په دې حدیث کښې داهم دي چه دحلالو اوحرامود حدودو په مینځ کښې مشتبهات دي چه ډیرخلق ئې نه پیژني څوك چه ددې نه بچ شو نوده خپل دین اوعزت سلامت کړو اوڅوك چه په دې کښې واقع شو نودې په حرامو کښې واقع شو.

[1] په اشیاؤ کښې اصل اباحت دې یا توقف: وفي هامش البذل: في حكم الأشياء قبل ورود الشرع اربعة مذاهب كما في العيني ص ۳۴۸، وفي الدر المختار مذهب اهل السنة ان الأصل في الأشياء التوقف والاباحة رأي المعتزلة ورد عليه ابن عابدين ۳۴۸/۳، وحقق ان الثاني مذهب اكثر الحنفية والشافعية وبسط المذاهب.آه.

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۲۴) (صحيح)

[۳۳۳۱](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا عَبَّادُ بْنُ رَاشِدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ أَبِي خَيْرَةَ، يَقُولُ: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ مُنْذُ أَرْبَعِينَ سَنَةً، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ح وحَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ دَاوُدَ يَعْنِي ابْنَ أَبِي هِنْدٍ، وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي خَيْرَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ، لَا يَبْقَى أَحَدٌ إِلَّا أَكَلَ الرِّبَا، فَإِنْ لَمْ يَأْكُلْهُ أَصَابَهُ مِنْ بُخَارِهِ"، قَالَ ابْنُ عِيسَى: أَصَابَهُ مِنْ غُبَارِهِ.

دابوهريرة رضی الله تعالی عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی خامخا به په خلقوداسې زمانه راشي چه هیڅوك به دسود خوړلونه بچ نه وی پاتې شوي اوكه چاسود نه وی خوړلې نولوګي خوبه ئې ورته رسيدلي وي. ابن عیسي وئیلی دی چه دبخارنه مراد ګرد دې.

**قوله:** عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لاَ يَبْقَى أَحَدٌ إِلاَّ أَكَلَ الرِّبَا فَإِنْ لَمْ يَأْكُلْهُ أَصَابَهُ مِنْ بُخَارِهِ ». قَالَ ابْنُ عِيسَى « أَصَابَهُ مِنْ غُبَارِهِ »

## شرح الحديث:

په عربو کښې ربا یعنی د سودی معاملاتو لین دین ډیر عام وو چه هغه به ئې بالکل جائز ګنړلو اسلام چه راغلو نو دا هر څه ئې حرام کړل او رسول الله ﷺ د حجة الوداع په خطبو کښې د نورو امورو سره د دې د حرمت هم بار بار اعلان فرمائیلې وو، او د زمانه جاهلیت نه چه په کومو خلقو کښې د سود معاملات روان وو په ټولو باندې رسول الله ﷺ پابندی اولګوله ﴿ وربا الجاهلية موضوع واول ربا اضع ربانا ربا عباس بن عبدالمطلب فانه موضوع كله ﴾ او وی فرمائیل چه د سابقه سودی معاملاتو باقی رقم کوم چه د عباس رضی الله عنه د معاملاتو دې د دې په پریخودلو کښې رومبی والې زه کوم غرض دا چه خلقو د دې د حرمت نه پس سودی کاروبار او معاملات بند کړل، بیا رسول الله ﷺ په دې حدیث الباب کښې فرمائی چه یو زمانه داسې را روانه ده چه د سودی معاملاتو سلسله به بیا په زور او شور سره اوموندلې شی او دا مرض به داسې عام شی چه د هغې نه په هیڅوک بچ نه شی، او که څوك ډیر زیات کوشش کولو سره د ښکاره سود خوړلو نه پرهیز هم اوکړی نو کم ازکم د هغې لوړې او بخار خو به پرې ورشی یعنی د سود اثر به هغه ته په څه نه څه طریقې ور رسیږی، مثلا په سودی معاملاتو کښې به د شاهد جوړیدو ضرورت راشی یا د کاتب جوړیدو یعنی د سودی معاملاتو لیکلو، یا د ربا د خوړونکی د میلمستیا خوړلو یادهغه دطرف نه دهدیه وغیره دملاویدو. والحديث اخرجه النسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[۳۳۳۲](²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، أَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ، فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْقَبْرِ يُوصِي الْحَافِرَ، أَوْسِعْ مِنْ قِبَلِ رِجْلَيْهِ، أَوْسِعْ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ، فَلَمَّا رَجَعَ اسْتَقْبَلَهُ دَاعِي امْرَأَةٍ، فَجَاءَ وَجِيءَ

---

(¹): سنن النسائي/البيوع ٢ (٤٤٦٠)، سنن ابن ماجه/التجارات ٥٨ (٢٢٧٨)، مسند احمد (٤٩٤/٢)، (تحفة الأشراف: ٩٢٠٣، ١٢٢٤١) (ضعيف)

(²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٣/٥، ٤٠٨) (صحيح)

بِالطَّعَامِ، فَوَضَعَ يَدَهُ، ثُمَّ وَضَعَ الْقَوْمُ، فَأَكَلُوا، فَنَظَرَ آبَاؤُنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلُوكُ لُقْمَةً فِي فَمِهِ، ثُمَّ قَالَ: أَجِدُ لَحْمَ شَاةٍ أُخِذَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ أَهْلِهَا، فَأَرْسَلَتِ الْمَرْأَةُ، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَرْسَلْتُ إِلَى الْبَقِيعِ يَشْتَرِي لِي شَاةً، فَلَمْ أَجِدْ، فَأَرْسَلْتُ إِلَى جَارٍ لِي قَدِ اشْتَرَى شَاةً أَنْ أَرْسِلْ إِلَيَّ بِهَا بِثَمَنِهَا، فَلَمْ يُوجَدْ، فَأَرْسَلْتُ إِلَى امْرَأَتِهِ، فَأَرْسَلَتْ إِلَيَّ بِهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَطْعِمِيهِ الْأُسَارَى".

عاصم بن کلیب دخپل پلار نه اوهغه په انصاروکښې دیوکس نه روایت کوی فرمائی چه دنبی ﷺ سره مونږ یوې جنازي ته لاړوما اولیدل چه نبی علیه الصلاة والسلام دقبرسره ودریدو اوقبرکن ته ئې دکنستو طریقه خودله اوداسې ئې ورته فرمائیل چه دخپو دطرفه ئې ازادکړه او دخپو دطرفه ئې ازادکړه، هرکله چه واپس شو نویوکس ورته د یوې ښځې دطرف نه دخوراك دپاره دعوت ورکړو نبی ﷺ ورغلو اوخوراك ورته راوړي شو اوخې لاس ئې ور وړاندې کړو ،خوراك ئې شروع کړو اوخلقوورته کتل چه په یوه نوړ باندې ئې شخوند وهلو او تیروله ئې نه، بیا ئې اوفرمائیل ماته داسې ښکاري چه داغوښه دداسې چیلئ ده کومه چه دمالك درضا نه بغیر اخستلې شوې ده، دغه زنانه ووئیل اې دالله رسوله ما نقیع مقام ته یوکس دچیلی اخستلو دپاره لیږلې وو لیکن چیلی ورته نه وو ملاوشوې بیاېې ګاونډیانوته ووئیل تاسوچه کومه چیلی اخستلې ده ماته ئې په هم هغه قیمت راکړئ اتفاً هغه ګاونډي په کورکښې موجودنه ووما دهغه ښځې ته جواب اولیږلو هغې راته چیلی راولیږله نبی ﷺ ورته اوفرمائیل داغوښه په قیدیانوباندې اوخوروئ.

عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي جَنَازَةٍ

**مضمون د حدیث:**

یو انصاری صحابی ؓ فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په یو جنازه کښې قبرستان ته لاړو ما رسول الله ﷺ اولیدو چه هغوی د قبر یو طرف باندې اودریدل او قبر کنستونکی ته هدایت فرمائی چه د دې طرف نه نور هم اوکنه، او د دې فلانی طرف نه نور هم اوکنه، ﴿ فَلَمَّا رَجَعَ اسْتَقْبَلَهُ دَاعِيَ امْرَأَةٍ فَجَاءَ وَجِيءَ بِالطَّعَامِ ﴾ [1] یعنی چه کله په دې موقع باندې رسول الله ﷺ د قبرستان نه واپس تشریف راوړلو نو د یو زنانه د طرف نه رسول الله ﷺ ته دعوت ورکونکې ملاؤ شو، پس رسول الله ﷺ هغه زنانه ته تشریف یوړو پس رسول الله ﷺ ته

[1] **د اهل بیت د طرف نه په ضیافت باندې اشکال او د هغې توجیه** : په اکثر نسخو کښې داسې دی په مطبوعه کښې هم او قلمی کښې هم او دا روایت په مشکوة کښې هم دې په هغې کښې دا لفظ داسې دی (داعي امراته) ضمیر سره یعنی د هغه مړی ښځې د کوم د دفن کولو نه پس چه رسول الله ﷺ واپس را روان وو لکه چه ملا علی قاری ؒ د دې شرح کړې ده، که دا لفظ داسې وی ځکه چه په مشکوة کښې دی نو بیا په دې باندې دا اشکال دې چه زمونږ فقهاء کرامو دا تصریح کړې ده د دې خبرې چه د اهل میت د طرف نه میلمستیا ورکول جائز نه دی، ځکه چه ضیافت خو د یو خوشحالئ په موقع باندې مشروع دې نه د غم او خفګان په موقع او د رسول الله ﷺ د دې میلمستیا قبلول دا دلالت کوی د دې په جواز باندې، نو اول خو به د دې جواب هم دا ورکولې شی چه په مشکوة کښې دا روایت د ابوداؤد دې او دا ابوداؤد په یوه نسخه کښې هم په موجوده نسخو کښې ﴿ داعي امراته ﴾ نه دې، ثانیا دا کیدې شی چه دا واقعه د نهی نه د مخکښې وی، او دا هم وئیلې کیدې شی چه د رسول الله ﷺ دا عمل د بیان اجواز دپاره وو ځکه چه د اهل میت د طرف نه ضیافت مکروه دی حرام نه دی.

دوډۍ کيخودلې شوه، خلقو خوراک شروع کړو، رسول الله ﷺ چه څنګه نمړۍ اوچتولو سره په خولهٔ کښې کيخودله خلقو اوليدل چه رسول الله ﷺ هغه نمړۍ تيرولې نه شی، پس لږ ساعت پس رسول الله ﷺ اوفرمائيل داسې معلوميږی چه دا غوښه د هغه بيزې ده کومه چه د مالک د اجازت نه بغير اخستلې شوې ده، چه کله هغه زنانه ته پته اولګيده چه رسول الله ﷺ هغه غوښه نه خوری نو هغې رسول الله ﷺ ته يو سړې د صورت حال د بيانولو دپاره راوليږلو چه يا رسول الله ﷺ ما نقيع يعنی د څارو منډۍ ته د بيزې د اخستلو دپاره سړې ليږلې وو خو هلته بيزه ملاؤ نه شوه په دې وجه ما خپل ګاونډی کره سړې اوليږلو چا چه بيزه اخستلې وه چه هغه بيزه دې قيمة ما ته راکړی خو اتفاق سره هغه سړې په کور کښې نه وو، بيا ما د هغه ښځې ته هم په دې غرض باندې سړې ور اوليږلو هغې ماته دا غوښه راوليږله پس دا بيزه د هغه بيزې ده رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اطعميه الاساری ﴾ دا خوراک په قيديانو باندې اوخروه، يا خو په دې وجه چه هغوی اکثر غريبانان وی او يا په دې وجه لکه چه بعض شارحينو ليکلی دی چه هغوی کافران دی د هغوی په خوراک کولو کښې هيڅ باک نشته.

## بَابٌ فِي آكِلِ الرِّبَا وَمُوكِلِهِ

### د سود خوړونکی او ورکونکی بيان

د آکل نه مراد آخذ او د موکل نه مراد معطی، يعنی کوم انسان چه د چا نه د سود مال واخلی يا بل ته ئې ورکړی (که هغه ئې او خوری او که ئې نه خوری).

[۳۳۳۳](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آكِلَ الرِّبَا، وَمُؤْكِلَهُ، وَشَاهِدَهُ، وَكَاتِبَهُ".

دابن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ لعنت وئيلی دی په سود خوړونکی او په سود ورکونکی اوپه سود باندې ګواهي کونکي باندې اوپه سود ليکونکي باندې.

**قوله**: عن عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- آكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ وَشَاهِدَهُ وَكَاتِبَهُ.:

امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې حديث کښې تصريح ده، د دې خبرې چه د ربوی او سودی معاملې کتابت که هغه د اجرت سره وی يا بغير د اجرت نه، هم دغه شان په دې قسم معامله کښې شهادت يعنی شاهد، جوړيدل حرام دی ځکه چه په دې کښې اعانت علی الباطل دې، والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجة، واخرجه مسلم من حديث جابر بن عبدالله بتمامه، ومن حديث علقمة عن عبدالله بن مسعود فی آكل الربا وموكله فقط واخرج البخاری من حديث أبی جحيفة (حديثا طويلا وفيه ونهی عن) وآكل الربا وموكله، قاله المنذری

(١): صحيح مسلم /المساقات ١٩ (١٥٩٧)، سنن الترمذي /البيوع ٢ (١٢٠٦)، سنن ابن ماجه /التجارات ٥٨ (٢٢٧٧)، (تحفة الأشراف: ٩٣٥٦)، وقد أخرجه: سنن النسائي /الطلاق ١٣ (٣٤٤٥)، مسند احمد (١/٣٩٢، ٣٩٤، ٤٠٢، ٤٥٣) (صحيح)

## بَابٌ فِي وَضْعِ الرِّبَا
### د سود د معاف کولو بیان

[۳۳۳۴](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا شَبِيبُ بْنُ غَرْقَدَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ، يَقُولُ: "أَلَا إِنَّ كُلَّ رِبًا مِنْ رِبَا الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعٌ لَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ، لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ، أَلَا وَإِنَّ كُلَّ دَمٍ مِنْ دَمِ الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعٌ، وَأَوَّلُ دَمٍ أَضَعُ مِنْهَا دَمُ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، كَانَ مُسْتَرْضِعًا فِي بَنِي لَيْثٍ، فَقَتَلَتْهُ هُذَيْلٌ، قَالَ: اللَّهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ، قَالُوا: نَعَمْ، ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، قَالَ: اللَّهُمَّ اشْهَدْ، ثَلَاثَ مَرَّاتٍ".

سلیمان بن عمرو دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مي په حجة الوداع کښې اوریدلي وو چه فرمائیل ئې خبردار چه دجاهلیت دوخت ټول سود وو هغه ساقط (معاف) شو تاسو به صرف خپل اصل مال اخلئ نه به ظلم کوئ اونه به په تاسو ظلم کولې شي (مراد دادي چه نه به تاسو دچا نه سود اخلئ اونه به ستاسونه څوك سود اخلي اود جاهلیت دوخت .چه څومره وینه وه هغه معاف شوه او په دې ټولو وینوکښې دتولونه مخکښې دحارث بن عبد المطلب وینه معاف کوم څوك چه دلیث قبیلې والا وو اوپۍ ئې خوړل او هذیل قبیلې والا قتل کړې وو، اوبیائې درې پیرې ووېل اې پروردګاره ایاما پیغام ورسولو؟ صحابه کرامو عرض وکړو چه بیشکه او بیائې درې پیرې ووېل چه اې الله ګواه شه.

﴿لَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ﴾ یعنی په تیرو سودی معاملاتو کښې چه کوم د سود پیسې باقي پاتې شوې دی هغه دې وانخستلې شی صرف راس المال دې واخستلې شی. ﴿لاَ تَظْلِمُونَ وَلاَ تُظْلَمُونَ﴾ نه خو تاسو په بل باندې ظلم کوئ چه د سود باقي رقم واخلئ او نه دې په تاسو باندې ظلم اوکړې شی چه اصل راس المال دې هم پوره وانخستلې شي، دواړه خبرې غلطې دی. ﴿وَأَوَّلُ دَمٍ أَضَعُ مِنْهَا دَمُ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ﴾ دا روایت په کتاب الحج کښې تیر شوې دې هلته په یو روایت کښې خو دم د ربیعة بن الحارث، په ځائې ربیعة ابن الحارث دې، او په یو روایت کښې تیر شوې دی ﴿دم ابن ربیعة بن الحارث﴾ او هم دا صحیح دې، نو ګویا دلته په روایت کښې دوه مضاف محذوف دی. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة..........وهذا مذکور فی حدیث جابر الطویل، وقد اخرجه مسلم وابوداؤد فی الحج، قاله المنذری

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الْيَمِينِ فِي الْبَيْعِ
### په اخستلو خرڅولو کښې د قسم کولو د ممانعت بیان

[۳۳۳۵](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، عن يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ: إِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

---

[1]: سنن الترمذي/الفتن ١ (١٢٥٩)، تفسير القرآن ١٠ (٣٠٨٧)، سنن ابن ماجه/المناسك ٧٦ (٣٠٥٥)، (تحفة الأشراف: ١٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٦/٣، ٤٩٨) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/البيوع ٢٦ (٢٠٨٧)، صحيح مسلم/المساقاة ٢٧ (١٦٠٦)، سنن النسائي/البيوع ٥ (٤٤٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٣٣٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣٥، ٢٤٢، ٤١٣) (صحيح)

يَقُولُ: "الْحَلِفُ مَنْفَقَةٌ لِلسِّلْعَةِ، مَمْحَقَةٌ لِلْبَرَكَةِ"، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ: لِلْكَسْبِ، وَقَالَ: عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوريدلي وو چه فرمائيل ئې قسم خوړل دکاروبار دپاره فائده ورکوي اوبرکت ختموي.

﴿ « الْحَلِفُ مَنْفَقَةٌ لِلسِّلْعَةِ مَمْحَقَةٌ لِلْبَرَكَةِ ». و قَالَ ابْنُ السَّرْحِ « لِلْكَسْبِ » ﴾ الحلف د حاء په فتح او د لام په کسرې سره او سکون لام هم جائز دې قاله السندی علی النسائی قلت ويجوز فيه کسر الحاء مع سکون اللام کما تقدم مفصلا فی باب الحلف فی آخر کتاب الفرائض ﴾ که قسم دروغژن دې نو بيا خو کراهة تحريمی دې او که رښتينې دې نو بيا مکروه دې په کراهة تنزيهی سره، يعنی د سوداګر په دروغه باندې قسم خوړل (ځکه چه د مسند احمد په روايت کښې ﴿ اليمين الکاذبة ﴾ دې) دا د سوداګر سامان لره روانونکې خو دې، خو برکت لره کمونکې دې، يا ختمونکې دې، منفقه د ميم او فاء په فتحې سره په مينځ کښې نون ساکن دې، دا اخستلې شوې دې د نفاق بفتح النون نه ﴿ وهو الرواج ضد الکساد ﴾ او لفظ ممحقة په وزن د منفقة، او په دې کښې يو روايت د ضم ميم او کسر دحاء هم دې، دا اخستلې شوې دې د محق نه په معنی د النقض او ابطال، مطلب ښکاره دې چه په دروغه قسم سره سامان خو اوخی خرڅ شی خو په هغه تجارت کښې برکت نه وی.

# بَابٌ فِي الرُّجْحَانِ فِي الْوَزْنِ وَالْوَزْنِ بِالْأَجْرِ

## په مزدوری باندې د تول کولو بيان

يعنی بائع له پکار دی چه مبيع دې لږ زيات کړی او هم دغه شان مشتری له پکار دی چه ثمن دې درانه اوتلی، يعنی په بيع مقايضه کښې يعنی په کوم صورت چه شراء بالسلعة وی.

[۳۳۳۶](1) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، حَدَّثَنِي سُوَيْدُ بْنُ قَيْسٍ، قَالَ: "جَلَبْتُ أَنَا وَمَخْرَفَةُ الْعَبْدِيُّ بَزًّا مِنْ هَجَرَ، فَأَتَيْنَا بِهِ مَكَّةَ، فَجَاءَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي، فَسَاوَمَنَا بِسَرَاوِيلَ، فَبِعْنَاهُ، وَثَمَّ رَجُلٌ يَزِنُ بِالْأَجْرِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: زِنْ، وَأَرْجِحْ".

دسويد بن قيس نه روايت دې فرمائی چه ما اومخرمه عبدي دهجر مقام نه د کاروبار دپاره کپړه راوړه اومکې ته مو يوړل زمونږ سره نبی ﷺ پيدل راغې اوزمونږ سره ئې ديو پرتوګ قيمت برابر کړو مونږ ورباندې خرڅ کړو په دې وخت کښې يو سړی په مزدوری باندې تول کولو نبی ﷺ ورته او فرمائيل کله چه تول کوې نو درون تول کوه.

### مضمون د حديث:

قوله: ﴿ عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ حَدَّثَنِي سُوَيْدُ بْنُ قَيْسٍ قَالَ جَلَبْتُ أَنَا وَمَخْرَفَةُ الْعَبْدِيُّ بَزًّا مِنْ هَجَرَ فَأَتَيْنَا بِهِ مَكَّةَ ﴾ سويد بن قيس رضي الله عنه فرمائی چه زه او مخرفة العبدی رضي الله عنه د مقام هجر نه څه کپړې د تجارت دپاره اخستلو سره مکې مکرمې ته راغلو رسول الله ﷺ مونږ ته پياده تشريف

---

(1): سنن الترمذي/البيوع ٦٦ (١٣٠٥)، سنن النسائي/البيوع ٥٢ (٤٥٩٦)، سنن ابن ماجه/التجارات ٣٤ (٢٢٢٠)، اللباس ١٢ (٣٥٧٩)، (تحفة الأشراف: ٤٨١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٢/٤)، سنن الدارمي/البيوع ٤٧ (٢٦٢٧) (صحيح)

راوړو او د يو پرتوګ ئې مونږ سره بيع اوکړه هغه مونږ په رسول اللهﷺ باندې خرڅ کړو، ﴿وَثَمَّ رَجُلٌ يَزِنُ بِالأَجْرِ ﴾ يعنی هلته يو سړې موجود وو کوم چه به په اجرت باندې د څيزونو وزن کولو نو رسول اللهﷺ هغه ته اوفرمائيل چه دا ثمن اوتله او درانه ئې اوتله.

په کوکب کښې ليکلی دی چه غالبا رسول اللهﷺ دا پرتوګ د يو وزنی څيز (سلعة) په بدله کښې اخستلې وی کوم چه هغوی وزن کولو سره بائع ته ورکړو، (ګينې که دا شراء بالثمن يعنی د درهم او دينار په ذريعه وی نو د دې د تللو څه ضرورت وو) ﴿ هکذا فهمت من الکوکب فارجع اليه ﴾ شراح ليکلی دی چه د دې حديث نه معلومه شوه چه وزن بالاجر جائز دې بلکه دا چه د ثمن وزن د مشتری په ذمه دې لهذا د دې اجرت به هم په هغه باندې واجب وی او د دې بالمقابل د مبيع وزن يا کيل د بائع په ذمه دې ﴿ فکذا اجرته عليه ﴾

## ايا د رسول اللهﷺ نه دپرتوګ اغوستل ثابت دې؟

په کوکب کښې دا هم دی چه د دې حديث نه د رسول اللهﷺ پرتوګ اخستل ثابت شو خو د رسول اللهﷺ د دې اغوستل په هيڅ روايت کښې د دې تصريح نشته. آهـ د دې په حاشيه کښې حضرت شيخ د جمع الفوائد نه دا روايت نقل کړې دې ﴿ عن ابی هريرة ﷺ قلت يا رسول اللهﷺ انک لتلبس السراويل؟ قال اجل فی السفر والحضر وبالليل والنهار، فانی امرت بالستر فلم اجد شيئا استر منه ﴾ يعنی رسول اللهﷺ د ابوهريرةﷺ په سوال باندې اوفرمائيل چه او زه پرتوګ اچوم، په سفر او حضر کښ، او رسول اللهﷺ د سراويل تعريف اوفرمائيلو چه په دې کښې ستر زيات دې (په نسبت د لنګ وغيره) حضرت شيخ ﷺ فرمائی چه سيوطی ﷺ د دې په سند باندې د ضعف حکم لګولی دې، او فی نفسه دا مسئله اختلافی ده چه د رسول اللهﷺ نه [د لنګ په ځای] پرتوګ اغوستل ثابت دی يا نه، يو جماعت د دې قائل دې، ابن قيم ﷺ هم د دوی نه دې، او يو جماعت د لبس نه انکار کړې دې. (کوکب،۱/۳۸)

[۳۳۳۷](1) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، الْمَعْنَى قَرِيبٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ أَبِي صَفْوَانَ بْنِ عُمَيْرَةَ، قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ قَبْلَ أَنْ يُهَاجِرَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَلَمْ يَذْكُرْ: يَزِنُ بِالْأَجْرِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ قَيْسٌ، كَمَا قَالَ سُفْيَانُ، وَالْقَوْلُ قَوْلُ سُفْيَانَ.

د ابوصفوان بن عميرة نه روايت دې فرمائی په مک کښې نبی ﷺ ته ورغلم مخکښې دهجرت کولو نه اودتير شوی روايت په شان روايت ئې بيان کړوليکن په دې روايت کښې ئې لفظ . يزن بالاجر . ذکرنکړو، امام ابوداود فرمائی چه په دې کښې سفيان دقيس په شان روايت کړې دې اودسفيان روايت ډير درست دې.

﴿ عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ عَنْ أَبِى صَفْوَانَ بْنِ عُمَيْرَةَ قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِمَكَّةَ قَبْلَ أَنْ يُهَاجِرَ بِهَذَا الْحَدِيثِ ﴾

### شرح السند:

په رومبی حديث کښې د سماک نه روايت کونکې سفيان وو او په دويم سند کښې د هغوی

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۴۸۱۰) (صحيح)

نه روایت کونکې...... شعبه دې په دواړو روایتونو کښې واضحه فرق دې، د سفیان په روایت کښې د پرتوګ بیع کونکی سوید بن قیس دی او د هغوی سره محرفه هم شامل دی، او د شعبه په روایت کښې په ځائې د سوید او مخرفة ابو صفوان دی.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ قَيْسٌ كَمَا قَالَ سُفْيَانُ وَالْقَوْلُ قَوْلُ سُفْيَانَ ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله د سفیان متابع قیس لره بیانولو سره د سفیان روایت لره د شعبه په روایت باندې ترجیح ورکړې ده، هم دغه شان امام نسائی رحمه الله حدیث د سفیان لره اشبه بالصواب منلې دې، او د نسائی او د ابن ماجه په یو روایت کښې ﴿ سمعت مالكا ابا صفوان ﴾ دې چه د هغې نه معلومیږی چه سوید بن قیس او ابو صفوان دواړه کسان بیل بیل دی، د ابو صفوآن نوم مالک دې، او په دې کښې د بعضو علماء کرامو رائې دا ده کوم چه حاکم کرآبیسی او ابوعمر ابن عبدالبر نقل کړې دې چه د ابوصفوان سوید بن قیس کنیت دې. (بذل)

والحديث اخرجه النسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[۳۳۳۸] (۱) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي رِزْمَةَ، سَمِعْتُ أَبِي، يَقُولُ: قَالَ رَجُلٌ لِشُعْبَةَ: خَالَفَكَ سُفْيَانُ، قَالَ: دَمَغْتَنِي، وَبَلَغَنِي عَنْ يَحْيَى بْنِ مَعِينٍ، قَالَ: كُلُّ مَنْ خَالَفَ سُفْيَانَ، فَالْقَوْلُ قَوْلُ سُفْيَانَ.

ابن ابی رزمه دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه یوکس شعبه ته اووئیل سفیان ستانه مخالف روایت بیان کړې دې شعبه ورته اووئیل زمادماغ دې وختلو. ابوداود وائی چه ماته دیحي بن معین نه رارسیدلې ده چه وئیلي ئې وو څوک چه دسفیان خلاف اوکړي نو اعتبار به دسفیان قول لره وي.

﴿ قَالَ رَجُلٌ لِشُعْبَةَ خَالَفَكَ سُفْيَانُ. قَالَ دَمَغْتَنِي ﴾ یعنی یو سړی د حدیث د راوی شعبة بن الحجاج کوم چه په کبار محدثین کښې دې، هغوی ته دا اووې چه سفیان ستاسو په فلانئ خبره کښې مخالفت کړې دې (یا خوهم دامخالفت کوم چه د حدیث الباب په سند کښې بیا موندلې شو، یا بل څه مخالفت) نو په دې باندې شعبه اوفرمائیل چه تا دې جمله وئیلو سره (یعنی د سفیان د مخالفت کولو) زما سر مات کړو، په ظاهر کښې امام شعبه د سفیان ثوری رحمه الله مخالفت لره د هغوی دجلالت شان دوجې نه اهمیت ورکړو.

[۳۳۳۹] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، قَالَ: كَانَ سُفْيَانُ أَحْفَظَ مِنِّي.

شعبه وائی سفیان زما په نسبت باندې ډیرې قوی حافظې والا دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ شُعْبَةَ قَالَ كَانَ سُفْيَانُ أَحْفَظَ مِنِّي ﴾

د مصنف رحمه الله غرض خو د هغوی اقوال نقل کولو سره د سفیان روایت لره ترجیح ورکول دی لکه چه مصنف رحمه الله خپله فرمائیلی دی.

دویمه خبره چه کومه مونږ بیانول غواړو چه دا دواړه ډیر جلیل القدر محدثین دی، دې دواړو به خپل مینځ کښې د یو بل تعظیم او تکریم فرمائیلو، پس شعبه رحمه الله خپله

(۱): تفرد به أبو داود (صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۸۰۸) (صحيح)

فرمائی چه سفیان زما نه احفظ دې، او د سفیان ثوری رحمه الله نه د شعبه په باره کښې منقول دی چه هغوی اوفرمائیل ﴿ شعبة امیر المؤمنین فی الحدیث ﴾ پس په تهذیب التهذیب کښې دی ﴿وقال ابن مهدی کان الثوری یقول : شعبة امیر المؤمنین فی الحدیث ﴾

## بَابٌ فِي قَوْلِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم "الْمِكْيَالُ مِكْيَالُ الْمَدِينَةِ"

### پیمانه د مدینې او تول د مکې معتبر دې

دا ترجمة بلفظ الحدیث ده، دحدیث یو ټکړه ده پوره حدیث تحت الباب ذکر دې.

[۳۳۴۰]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَنْظَلَةَ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْوَزْنُ وَزْنُ أَهْلِ مَكَّةَ، وَالْمِكْيَالُ مِكْيَالُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا رَوَاهُ الْفِرْيَابِيُّ، وَأَبُو أَحْمَدَ، عَنْ سُفْيَانَ، وَافَقَهُمَا فِي الْمَتْنِ، وَقَالَ أَبُو أَحْمَدَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، مَكَانَ ابْنِ عُمَرَ، وَرَوَاهُ الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ حَنْظَلَةَ، قَالَ: وَزْنُ الْمَدِينَةِ، وَمِكْيَالُ مَكَّةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَاخْتُلِفَ فِي الْمَتْنِ فِي حَدِيثِ مَالِكِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي هَذَا.

دابن عمرنه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی په تول کښې دمکې والا قول معتبردې اوبه پیمانه کښې دمدینې والا قول معتبردې، ابوداودوائی ابواحمد اوفریابی هم داسې دسفیان نه روایت نقل کړې دې اوپه متن کښې ورسره موافقت کړې دې ابواحمد دابن عمرپه ځائې باندې ابن عباس ذکرکړې دی، ولید دحنظله نه ددې روایت په نقل کولوسره وئیلی دی چه دمدینې وزن اودمکې تول معتبر دې. امام ابوداود فرمائی چه په حدیث دمالك بن دینارکښې دعطاء نه اوهغه دنبی ﷺ نه ددې په متن کښې اختلاف دې.

قوله: ﴿ الْوَزْنُ وَزْنُ أَهْلِ مَكَّةَ وَالْمِكْيَالُ مِكْيَالُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ ﴾ د حدیث مطلب دا دې چه په احکام شرعیه کښې یعنی زکوة صدقة الفطر او کفاراتوکښې خو وزن معتبر دې د اهل مکة او کیل معتبر دې د اهل مدینة، دراهم و دنانیر دا د موزوناتو نه دی او د زمکې پیداوار غلې دا د مکیلاتو نه دی، او په ظاهر کښې د دې وجه دا ده چه اهل مکه اصحاب تجارت وو چه د هغوی لین دین او معاملات به زیات تر په دراهم او دنانیر باندې وو، او اهل مدینه اصحاب زراعت وو چه د هغوی معاملات زیات تر په مکیال (پیمانه) یعنی مد او صاع وغیره باندې کیدې، امام خطابی رحمه الله فرمائی چه دراهم په اصل کښې مختلف الاوزان وی د مختلفو ښهرونو په اعتبار سره، او د اهل مدینه تعامل چه کله رسول الله ﷺ مدینې طیبې ته هجرت فرمائیلو سره تشریف راوړو په دراهم سره وو په اعتبار دعدد او چونکه دراهم لکه چه اوس مخکښې تیر شو مختلفة الاوزان وی په دې وجه رسول الله ﷺ په دې حدیث کښې د اهل مدینة توجه دې طرف ته راوسته چه هغوی دې په درهم او دنانیر کښې د اهل مکة د وزن اعتبار کوی. او د اهل مکة درهم وزن د سبعه وی یعنی هر لس درهمه د اووۀ مثقالو برابر وو. لهذا د چا په ملك کښې چه دوه سوه درهمه د وزن سبعه په اعتبار سره موجود وی هغه به صاحب نصاب وی او په هغه باندې به زکوة واجب وی، د وزن سبعه او وزن ستة ذکر په کتاب الزکوة کښې تیر شوې دې. (والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری)

(): سنن النسائي للزكاة ٤٤ (٢٥٢١)، البيوع ٥٤ (٤٥٩٨)، (تحفة الأشراف: ٧١٠٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٥/٢) (صحيح)

قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَكَذَا رَوَاهُ الْفِرْيَابِيُّ وَأَبُو أَحْمَدَ عَنْ سُفْيَانَ وَافَقَهُمَا فِي الْمَتْنِ وَقَالَ أَبُو أَحْمَدَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَكَانَ ابْنِ عُمَرَ وَرَوَاهُ الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ حَنْظَلَةَ قَالَ « وَزْنُ الْمَدِينَةِ وَمِكْيَالُ مَكَّةَ »

د دې حديث مدار په حنظله باندې دې، د حنظله نه روايت کونکی د امام ابوداؤد رحمه الله د کلام مطابق دوه دی سفيان او وليد بن مسلم، او بيا د سفيان نه روايت کونکی د هغوی درې شاګردان دی، ابن دکين، فريابی، ابو احمد، د دوی درې واړو روايت د متن په اعتبار سره خو متفق دې يعنی وزن مکه او مکيال مدينة، خو په سند کښې دا درې واړه مختلف دی په دريو کښې دوه يعنی ابن دکين او فريابی دې درې واړو د حديث راوی ابن عمر رضي الله عنهما منلې دې، او ابو احمد ابن عباس رضي الله عنهما.

او وليد بن مسلم دسفيان مخالفت کړې دې په متن د حديث کښ، هغه متن اولټه کړو او وې وئيل ﴿ وزن المدينة ومكيال مكة ﴾ او د دې نه روستو مصنف رحمه الله د يو روايت حواله ورکوی يعنی مرسل د عطاء او د هغې په باره کښې دا فرمائی چه په دې روايت کښ، يعنی د مالک بن دينار په روايت کښې هم متن مختلف دې.

د دې روايت په متن کښې مصنف رحمه الله کافی اختلاف د رواياتو ذکر کړې دې او بيا ئې يو طريق ته هم د ترجيح اشاره نه ده فرمائيلې اللهم الا ان يقال چه هغوی اوس نزدې د دې باب نه مخکښې د يحيی بن معين رحمه الله دامقوله ليکلې ده. ﴿ كل من خالف سفيان فالقول قول سفيان ﴾ لهذا د سفيان د روايت متن به راجح وی. والله تعالی اعلم

امام نسائی رحمه الله دا حديث صرف په يو طريق باندې ﴿ باب كم الصاع ﴾ د لاندې ذکر کړې دې، ﴿ قال ابوعبدالرحمن وحدثنيه زياد بن ايوب واحمد بن سليمان قالا حدثنا ابونعيم قال حدثنا سفيان عن حنظلة عن طاؤس عن ابن عمر رضي الله عنهما عن النبی صلی الله عليه وسلم قال : المكيال مكيال اهل المدينة والوزن وزن اهل مكة ﴾

## بَابٌ فِي التَّشْدِيدِ فِي الدَّيْنِ

### د قرض په اخستلو وعيد او د دې د اداکولو د تاکيد بيان

[٣٣٤١][1] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ سَمْعَانَ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: "خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "هَاهُنَا أَحَدٌ مِنْ بَنِي فُلَانٍ؟ فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ، ثُمَّ قَالَ: هَاهُنَا أَحَدٌ مِنْ بَنِي فُلَانٍ؟ فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ، ثُمَّ قَالَ: هَاهُنَا أَحَدٌ مِنْ بَنِي فُلَانٍ؟ فَقَامَ رَجُلٌ، فَقَالَ: أَنَا يَا رَسُولَ اللهِ، فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مَنَعَكَ أَنْ تُجِيبَنِي فِي الْمَرَّتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ؟ أَمَا إِنِّي لَمْ أُنَوِّهْ بِكُمْ إِلَّا خَيْرًا، إِنَّ صَاحِبَكُمْ مَأْسُورٌ بِدَيْنِهِ، فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ أَدَّى عَنْهُ، حَتَّى مَا بَقِيَ أَحَدٌ يَطْلُبُهُ بِشَيْءٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: سَمْعَانُ بْنُ مُشَنَّجٍ.

دسمره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی صلی الله عليه وسلم مونږ ته خطبه راکړه او وئې فرمائيل ايادلته د فلاني قوم څوک شته نوچاجواب ورنکړو، بيا ئې اوفرمائيل ايادلته د فلاني قوم څوک شته نوچاجواب ورنکړو، بيا ئې اوفرمائيل ايادلته د فلاني قنوم څوک شته نو يو کس پاڅيدو او وئې وئيل زه موجود يم اې د الله رسوله نبی صلی الله عليه وسلم ورته وفرمائيل څه شي منع کړې وې چه

[1]: سنن النسائي/البيوع ٩٦ (٤٦٨٩)، (تحفة الأشراف: ٤٦٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١/٥، ١٣، ٢٠) (حسن)

دوه خله دي جواب رانکړو زه ستاسو سره خيرخواهي کول غواړم بيانبي ﷺ اوفرمائی په تاسوکښې فلانې کس په قرض کښې ډوب دې سمره په اوونيل چه دغه کس هغه قرض اداکړو تردې چه هيڅوك قرض غوښتلووالا پاتې نه شول.

﴿ عَنْ سَمُرَةَ قَالَ خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ « هَا هُنَا أَحَدٌ مِنْ بَنِى فُلاَنٍ ». فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ....... فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ -صلى الله عليه وسلم- « مَا مَنَعَكَ أَنْ تُجِيبَنِى فِى الْمَرَّتَيْنِ الأُولَيَيْنِ أَمَا إِنِّى لَمْ أُنَوِّهْ بِكُمْ إِلاَّ خَيْرًا ﴾

د سيدنا سمرة ﷺ نه روايت دې چه يو کرت رسول الله ﷺ مونږ ته خطاب اوفرمائيلو او په هغې کښې هغوی د يو قبيلې نوم اخستلو سره دا تپوس اوکړو چه د هغه قبيلې دلته څوک فرد موجود شته؟ په دې باندې چا هم څه او نه وئيل، رسول الله ﷺ دويم کرت او بيا دريم کرت هم دا تپوس اوکړو؟ دريم کرت باندې يو سړې اودريدو او هغه عرض اوکړو زه يم يا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ اوفرمائيل په ړومبی او دويم کرت دې جواب ولې نه وو راکړې، بيشکه ما تا سره ښه خبره کول غوښتل (هغه دا) چه ستاسو يو ملګرې په قبرکښې د قرض د وجې نه نيولې شوې او مقيد دې، وړاندې راوی وائی چه ما اوکتل چه دهغه په ذمه څومره هم قرض ووهغه اداکړې شو. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذری

[۳۳۴۲](۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا عَبْدِ اللَّهِ الْقُرَشِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا بُرْدَةَ بْنَ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، يَقُولُ: عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِنَّ أَعْظَمَ الذُّنُوبِ عِنْدَ اللَّهِ، أَنْ يَلْقَاهُ بِهَا عَبْدٌ بَعْدَ الْكَبَائِرِ الَّتِي نَهَى اللَّهُ عَنْهَا، أَنْ يَمُوتَ رَجُلٌ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ، لَا يَدَعُ لَهُ قَضَاءً".

ابو بردة بن ابوموسی الاشعری نه د خپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی يقينا دکبيره ګناهونونه پس دالله په نزد کښې دټولونه لويه ګناه داده چه انسان ددې ګناه سره دالله تعالی ملاقات اوکړي دکوې نه چه الله تعالی منع فرمائيلې وې يعنی يوسړې دقرض په حالت کښې مړشي اودقرض دادا کولودپاره ئې څه پرېښې نه وی.

**شرح الحديث :**

ابو موسی اشعری ﷺ د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوی چه بيشکه په ګناهونو کښې د ټولو نه لويه ګناه د کومې سره چه بنده د الله پاک سره ملاقات کوی چه يو سړې مړ شی او د هغه په ذمه قرض وی چه د هغې د ادا کولو دپاره ئې څه مال نه وی پرېښودلې.

د دې حديث په شرح کښې علامه طيبی ﷫ فرمائی چه که يو انسان داسې اوائی چه د حقوق الله بناء په مصالحت او مسامحت باندې ده په خلاف د حقوق العباد چه د هغوی مسئله سخته ده لکه چه په دې حديث کښې تير شو ﴿ يغفر كل ذنب الشهيد الا الدين ﴾ او په دې حديث کښې دين لره د کبائرو نه پس کېخودلې شوې دې، د دې سوال جواب علامه طيبی داورکړې دې چه هغه چه په حديث کښې تير شو چه د شهيد ټول ګناهونه معاف کيږی سوا د قرض نه هغه خلقو لره د قرض نه د بچ کولو دپاره او د ويرولو دپاره دې په طريقه د

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۱۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۹۲/٤) (ضعيف)

مبالغې او دا حدیث په خپل ظاهر باندې دې، طیبی بیا یو بل سوال قائم کړې دې چه که څوک آوانی چه نفس دین خو معصیت نه دې بلکه هغه خو مندوب آلیه دې پاتې لا دا چه گناه وی، بلکه د دې گناه کیدل د یو عارض د وجې نه دی هغه دا چه دین د حقوق الناس د اضاعت سب جوړیږی، په خلاف د کبائرو چه هغه فی حد ذاتها ممنوع او قبیح دی. آه عزیزی شارح د جامع الصغیر فرمائی چه په دې حدیث کښې چه کوم وعید دې په دین باندې هغه په هغه صورت باندې محمول دې چه کله مدیون د هغې په ادا کولو کښې کوتاهی کوی (یعنی د دین په ادا کولو کښې مستعد نه وی) یا په هغه صورت باندې محمول دې چه دین د یو معصیت دپاره وی. (بذل)

[۳۳۴۳] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَلِّي عَلَى رَجُلٍ مَاتَ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ، فَأُتِيَ بِمَيِّتٍ، فَقَالَ: أَعَلَيْهِ دَيْنٌ؟، قَالُوا: نَعَمْ، دِينَارَانِ، قَالَ: صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ، فَقَالَ أَبُو قَتَادَةَ الْأَنْصَارِيُّ: هُمَا عَلَيَّ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: فَصَلَّى عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: أَنَا أَوْلَى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ مِنْ نَفْسِهِ، فَمَنْ تَرَكَ دَيْنًا، فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ، وَمَنْ تَرَكَ مَالًا، فَلِوَرَثَتِهِ".

دجابر ﷺ نه روایت دې فرمائی کله چه به مقروض مړ شو نو نبی ﷺ به ورباندې جنازه نه کوله یوځل ورته یوه جنازه راوړل شوه صحابه کرامو ته ئې اوفرمائیل ایا په ده باندې دچاقرض شته؟ عرض اوکړې شو چه هو په ده باندې وه دیناره دي نبی ﷺ اوفرمائیل تاسوپه دې خپل ملګرې باندې دجنازې مونځ اوکړئ، په دې وخت کښې ابوقتاده انصارې عرض اوکړو چه اې دالله رسوله دغه دوه دیناره زما په ذمه شو اوزه به ئې اداکوم نوبیا ورباندې نبی ﷺ جنازه اوکړه بیاچه کله الله تعالی خپل نبی ته دفتوحاتو دروازه پرانستله نوئې فرمائیل زه په مومنانوباندې دهغوی دځانونونه هم زیات حقداریم هرڅوک چه دمقروض کیدو په حالت کښې مړ شي نودهغه قرض ادا کول زماپه ذمه دي او څوک چه مال پریږدي او مړ شي نودغه مال دده دوارثانودې (زما ورسره څه کارنشته اودده مال به دده وارثان حاصله وي.

**قوله:** ﴿عَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم لاَ يُصَلِّى عَلَى رَجُلٍ مَاتَ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ الخ﴾

یعنی د رسول الله ﷺ معمول وو چه کوم انسان باندې به قرض وو او مړ به شو نو رسول الله ﷺ به پرې جنازه نه فرمائیله، یو کرت یو مړې راوړې شو رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه په دهٔ باندې قرض خو نشته؟ خلقو عرض اوکړو چه په دهٔ باندې دوه دیناره قرض دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ صلوا علی صاحبکم ﴾ چه د دهٔ د جنازې مونځ تاسو اوکړئ زه ئې نه کوم، په دې باندې ابوقتادة ﷺ عرض اوکړو ﴿ هما علی یا رسول الله ﷺ ﴾ چه د هغه دینارونو د ادا کولو ذمه داری زه اخلم په دې خبره باندې رسول الله ﷺ په هغه باندې مونځ اوکړو. د دې نه پس جابر ﷺ فرمائی چه د رسول الله ﷺ دا معمول په شروع کښې وو د فتوحاتو د زمانې نه مخکښې د فتوحاتو نه پس د رسول الله ﷺ دا معمول شوې وو چه رسول الله ﷺ

(١): سنن النسائي /الجنائز ٦٧ (١٩٦٤)، (تحفة الأشراف: ٣١٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٩٦) (صحيح)

په فرمائيل ﴿ أَنَا أَوْلَى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ مِنْ نَفْسِهِ ﴾ د دې جملې مطلب مونږ سره مخکښې په كتاب الفرائض کښې تير شوې دې، يعنې دا چه زه هر مومن ته د هغه د نفس نه زيات نزدې يم او وې فرمائيل چه کوم انسان قرض دارې مړ شي نو د هغې قضاء زما په ذمه ده او کوم مال چه پريږدى هغه د هغه د وارثانو دپاره دې، په دې حديث کښې د اداء دين عن الميت مسئله ده په دې باندې كلام وړاندې را روان دې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[٣٣٤٤]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، رَفَعَهُ، قَالَ عُثْمَانُ، وحَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ، قَالَ: اشْتَرَى مِنْ عِيرٍ تَبِيعًا، وَلَيْسَ عِنْدَهُ ثَمَنُهُ، فَأُرْبِحَ فِيهِ، فَبَاعَهُ، فَتَصَدَّقَ بِالرِّبْحِ عَلَى أَرَامِلِ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، وَقَالَ: لَا أَشْتَرِي بَعْدَهَا شَيْئًا إِلَّا وَعِنْدِي ثَمَنُهُ.

عکرمه دابن عباس رضي الله عنه دتير شوي روايت په شان روايت کوی مګردديّ اضافي سره چه نبی علیه السلام د يوې قافلې نه څه شې واخستو اودهغه څيز قيمت ورسره نه وو اوبيا ئې خرڅ کړو او منافع ئې په کښې وکړله او څه منافع چه وشوله هغه ئې دبنی عبدالمطلب کونډو اوغريبانوته ورکړه او وئې فرمائيل په ائنده کښې به بيا څه شې نه اخلم ترڅوچه زماسره دهغه قيمت موجود نه وی.

**قوله:** ﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مِثْلَهُ قَالَ اشْتَرَى مِنْ عِيرٍ تَبِيعًا وَلَيْسَ عِنْدَهُ ثَمَنُهُ فَأُرْبِحَ فِيهِ الخ ﴾ يعنی يو کرت رسول الله ﷺ د بهر نه راتلونکې قافلې نه يو څيز واخستلو چه د هغې ثمن هغوی سره هغه وخت نه وو. يعنی هغه څيز رسول الله ﷺ قرض واخستلو، د هغې نه پس رسول الله ﷺ هغه خرڅ کړو نو هغوی ته پکښې نفع اوشوه نو رسول الله ﷺ دا ګټه د خپل خاندان په کنډو زنانو باندې صدقه کړه او دا ئې هم اوفرمائيل چه بيا به زه هيڅ يو څيز قرض نه اخلم.

## صحة الكفالة عن الميت کښې اختلاف د ائمة :

په دې حديث کښې دا دی چه د مړی په ذمه چه کوم دينار ؤو د هغې ذمه داری ابو قتادة رضي الله عنه واخستله، ګويا هغه کفيل شو د مړی د طرف نه. لهذا د دې نه معلومه شوه چه د غريب مړی د طرف نه کفالت صحيح دې، د ائمه ثلاثه او صاحبينو هم دا مذهب خو هم دا دې، خو امام ابوحنيفه رحمه الله د دې کفالت د صحت قائل نه دې، ځکه چه د کفالت حقيقت دې ﴿ ضم ضمة الاصيل الى ذمة الكفيل فى المطالبة ﴾ پس د کفالت نه پس مکفول له ته حق وی چه هغه مطالبه د اصيل يعنی اصل مديون نه اوکړی يا د هغه د کفيل نه، او دلته د اصيل د مرګ د وجې نه ذمة الاصيل فنا شوه، چه کله هغه فنا شوه ﴿ فكيف ضم ضمة الى ذمة ﴾ هم د دې وجې نه په هدايه کښې د امام صاحب په دليل کښې ليکلې شوې دی چه دا کفالت بدين ساقط دې، ځکه چه هر کله د دين محل باقی پاتې نه شو نو دين هم باقی پاتې نه شو، په دې وجه دا

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١١٣، ١٩١١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٥، ٣٢٣) (ضعيف)

کفالت صحیح نه دي، او د دې حدیث جواب دا کیدې شي چه دا کفالت اصطلاحیه نه دي بلکه د هغه مړ صحابي د طرف نه د اداء دین وعده ده، او دا هم ممکنه ده چه ابوقتاده ﷺ چه څه اوفرمائیل هما علی په دې سره اشاره کفالت سابقه طرف ته وي چه هغه خو ما پخپله ذمه باندې اخستلي دی، زه د اول نه د هغه کفیل یم. (بذل عن القاری)

## بَابٌ فِي الْمَطْلِ

### د قرض په ادا کولو کښې د تاخیر کولو بیان

[۳۳۴۵]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ، وَإِذَا أُتْبِعَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيءٍ، فَلْيَتْبَعْ".

دابوهریره نه روایت دې فرمائي چه رسول الله و فرمائیلي دی د دولت مند سړي د پاره د قرض په ادا کولو کښې تاخیر کول ظلم دي، که چرې تاسو ته په مالدار باندې د چا حواله ورکړې شي نو هغه لره پکار دي چه حواله قبوله کړي.

**قوله:** ﴿ مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ وَإِذَا أُتْبِعَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيءٍ فَلْيَتْبَعْ ﴾ یعنی د مالدار سړي د قرض په ادا کولو کښې تسویف او تاخیر کول ظلم دي، چه کله هغه د خپل غناء د وجې نه في الحال د قرض په ادا کولو باندې قادر دي د هغې باوجود د هغه د دین په ادا کولو کښې تاخیر کول ظلم دي، د دې حدیث هم دا معنی متبادر او مشهوره ده او په دې صورت کښې به د مطل اضافت د فاعل طرف ته وي، او ما د خپل استاد محترم حضرت مولانا اسعد الله صاحب ﷺ نه واوریدل هغوی فرمائیل چه په دې کښې دا هم احتمال دي چه د مطل اضافت د مفعول طرف ته وي، یعنی د مدیون تاخیر کول د مالداره دائن سره دا ظلم دي یعنی چه قرض دارې د قرض په ادا کولو کښې په دې وجه باندې تاخیر کوي چه د هغه قرض غوښتونکي مالدار دي یعنی په دې سوچ چه هغه خو مالدار دې د هغه څه تادی ده بیا به ئې چرته ورکړو.

هم د دې حدیث په باره کښې ما د استاد موصوف نه دا هم واوریدل چه د حضرت تهانوي په خلفاء کښې وو چه ما د تهانوي په مجلس کښې د ټولو نه ړومبې حدیث چه د حضرت د ژبې نه واوریدلو هغه هم دا حدیث دې. (مطل الغنی ظلم)

وراندې په دې حدیث کښې دی چه که مدیون د خپل دین حواله په یو مالدار انسان باندې اوکړي نو بیا دائن لره هغه حواله قبلول پکار دی او بیا د هم هغه محال علیه نه طلب کول پکار دی، وهذ الامر قیل للندب وقیل للوجوب.

﴿ مَلِيءٍ ﴾ دوه طریقو سره ضبط کړې شوې دې ملی بتشدید الیاء بدون الهمزة کغنی لفظا ومعنی، او ملیٔ په سکون د یاء او همزې سره، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

(): صحيح البخاري/الحوالة ١ (٢٢٨٨)، ٢ (٢٢٨٩)، والاستقراض ١٢ (٢٤٠٠)، صحيح مسلم/المساقاة ٧ (١٥٦٤)، سنن النسائي/البيوع ٩٩ (٤٦٩٥)، (تحفة الأشراف: ١٣٦٩٣، ١٣٨٠٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البيوع ٦٨ (١٣٠٨)، سنن ابن ماجه/الصدقات ٨ (٢٤٠٣)، موطا امام مالك/البيوع ٤٠ (٨٤)، مسند احمد (٢/٢٤٥، ٢٥٤، ٢٦٠، ٣١٥، ٣٧٧، ٣٨٠، ٤٦٣، ٤٦٤، ٤٦٥)، سنن الدارمي/البيوع ٤٨ (٢٦٢٨) (صحيح)

## بَابٌ فِي حُسْنِ الْقَضَاءِ
### په ښه شان سره د قرض د ادا کولو بیان

[۳۳۴۶](1) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، قَالَ: "اسْتَسْلَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَكْرًا، فَجَاءَتْهُ إِبِلٌ مِنَ الصَّدَقَةِ، فَأَمَرَنِي أَنْ أَقْضِيَ الرَّجُلَ بَكْرَهُ، فَقُلْتُ: لَمْ أَجِدْ فِي الْإِبِلِ إِلَّا جَمَلًا خِيَارًا رَبَاعِيًا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَعْطِهِ إِيَّاهُ، فَإِنَّ خِيَارَ النَّاسِ أَحْسَنُهُمْ قَضَاءً".

دابورافع ﷺ نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ یو وړوکي اوښ په قرض واخستو بیا چه کله ورته دصدقې اوښان راغلل نونبی ﷺ حکم اوکړو چه دهغه په شان اوښ دي ورکړې شي ماعرض اوکړو اې دالله رسوله دصدقې اوښان خو ټول شپږ کلن اوښه برابر برابر اوښان دي، نبی ﷺ اوفرمائیل هم ددې اوښانونه ورته یو اوښ ورکړه ځکه چه بهترین په خلقو کښې هغه څوک وي څوک چه قرض په ښه شان سره ادا کوي.

﴿عَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ اسْتَسْلَفَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– بَكْرًا فَجَاءَتْهُ إِبِلٌ مِنَ الصَّدَقَةِ﴾

سیدنا ابو رافع ﷺ فرمائی چه یو کرت رسول الله ﷺ د یو سړی نه ځوان نر اوښ قرض واخستلو، (او که ښځه وی نو هغې ته قلوص وائی) ځو ورځې پس رسول الله ﷺ ته د صدقې اوښان راغلل نو هغوی ماته حکم اوکړو د ادا کولو د قرض نو ما عرض اوکړو چه په دې اوښانو کښې چه د کوم عمر اوښ رسول الله ﷺ اخستلې وو هغه خو نشته بلکه ډیر ښه او د هغې نه د زیات عمر دي (رباعی یعنی کوم اوښ چه د شپږو کالو کیدو سره په اووم کښې داخل شی) رسول الله ﷺ اوفرمائیل هم هغه ورکړه، ځکه چه په خلقو کښې غوره انسان هغه دې چه د بل حق په بهترینه طریقه باندې ادا کوی.

د دې حدیث نه شارحینو ډیرې فائدې او مسائل مستنبط کړی دی کومې چه په بذل کښې ذکر شوې دی، د هغه ټولو نه یو مشهوره اختلافی مسئله ده ﴿ استقراض الحیوان ﴾، امام نووی ﷫ فرمائی دا حدیث دلیل دې د دې خبرې چه حیوان لره د قرض په طوراخستل او ورکول جائز دی او هم دا مذهب دې د امام مالک و شافعی او د جمهور علماء کرامو، الی آخر ما ذکر فی المنهل، د احنافو او حنابله په نزد استقراض الحیوان جائز نه دې، د هغوی په نزد د دې دلیل دا دې کوم چه وړاندې په باب بیع الحیوان بالحیوان نسیئة کښې را روان دې کوم چه به مونږ هم هلته بیانوو ان شاء الله. په دې حدیث باندې یو اشکال او جواب دې هغه دا چه رسول الله ﷺ مقرض ته د هغه د حق واجب نه په طور د حسن قضاء زیات ورکړو. دا زیاتی ورکول که د خپل مال نه وې نو بیا خو صحیح وه دا رسول الله ﷺ د صدقې د اوښانو نه ورکړې دې کوم چه د بیت المال دی، د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه دا استقراض د رسول الله ﷺ د خپل ضرورت دپاره وو بیا چه کله په بیت المال کښې اوښان راغلل نو رسول الله ﷺ په هغې کښې یو اوښ اخستلو سره په قرض کښې ورکړو نو هیڅ

(1): صحیح مسلم/البیوع ۴۳ (۱۶۰۰)، سنن الترمذي/البیوع ۷۵ (۱۳۱۸)، سنن النسائي/البیوع ۶۲ (۴۶۲۱)، سنن ابن ماجه/التجارات ۶۲ (۲۲۸۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۲۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البیوع ۴۳ (۸۹)، مسند احمد (۶/۳۹۰)، سنن الدارمي/البیوع ۳۱ (۲۶۰۷) (صحیح)

اشکال نشته او یو توجیح په دې کښې دا کړې شوې ده چه د کوم انسان نه ئې قرض اخستلې وو هغه خپله د اهل ضرورت نه وو او د اهل ضرورت حق په بیت المال کښې وی. (بذل)

والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۳۳۴۷]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "كَانَ لِي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ، فَقَضَانِي وَزَادَنِي".

د جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه په نبی علیه السلام باندې زما قرض وو، زما قرض ئې هم هغه هومره ادا کړو اوځه ئې ورسره زیاتې هم راکړل.

﴿ كَانَ لِى عَلَى النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- دَيْنٌ فَقَضَانِى وَزَادَنِى ﴾ په دې باندې شارحینو لیکلی دی چه مستقرض د قرض د ادا کولو په وخت، چه کوم قرض اخستلې وو که د هغې نه احسن او اکثر ادا کړی په دې شرط چه دا زیادت بغیر د څه شرط او معاهدې وی نو ورکونکې به محسن وی او د مقروض دپاره به د هغې اخستل جائز وی، امام نووی رحمه الله فرمائی چه د مقروض دپاره زیادت اخستل جائز دی که هغه زیادت د صفت په اعتبار سره وی یا د عدد په اعتبار سره، او د امام مالک رحمه الله په مذهب کښې دا زیادت فی العدد ممنوع دې او زمونږ دلیل د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیث دې ﴿ خير الناس احسنهم قضاء ﴾ د خپل عموم د وجې نه. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الصَّرْفِ

### د بیع صرف بیان

**د بیع الصرف تعریف او حکم:**

بیع الصرف هغه بیع ده چه په هغې کښې عوضین یعنی عوض او معوض من جنس الاثمان وی، لکه سرۀ او سپین زر، د صرف لغوی معنی ده نقل، چونکه په دې بیع کښې د بدلینو نه هریو دبل طرف ته نقل کول فورا ضروری وی په دې وجه ددې نوم بیع الصرف کیخودلې شو.

خان پوهه کړه چه د بیع الصرف د صحت دپاره دوه شرطونه دی عدم النسیئة مطلقا، او عدم تفاضل په صورة د اتحاد الجنس یعنی د عدم نسیئة حکم خو په هر حال کښې دې که دواړه متحد الجنس وی یا مختلف الجنس، په دې بیع کښې قرض خو مطلقا ناجائز دې تقابض فی المجلس ضروری دې او په حکم ثانی کښې یعنی عدم تفاضل دا هغه وخت دې چه کله عوضین متحد الجنس وی مثلا دواړه فضه وی یا ذهب، او که د جنس اتحاد نه وی لکه یو طرف ته فضة او دویم طرف ته ذهب نو په دې صورت کښې تفاضل جائز دې، په دې دواړو کښې رومبې حکم یعنی د عدم النسیئة قرض اخستل ناجائز کیدل دا اجماعی مسئله ده.

(): صحیح البخاري/الصلاة ۵۹ (۴۴۳)، والوکالة ۸ (۲۳۰۹)، والاستقراض ۷ (۲۳۹۴)، والهبة ۳۲ (۳۶۰۳)، صحیح مسلم/المسافرین ۱۱ (۷۱۵)، سنن النسائي/البیوع ۵۱ (۴۵۹۴)، (تحفة الأشراف: ۲۵۷۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۹/۳، ۳۰۲، ۳۱۹، ۳۶۳) (صحیح)

### د ربا الفضل په عدم جواز کښې د بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف :

او حکم ثانی یعنی عدم تفاضل فی صورة الاتحاد په دې کښې د جمهور علماء کرامو او ائمة اربعه مسلک خو هم دا دې، خو د بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم لکه ابن عمر او ابن عباس رضی الله عنهم، په دې دواړو کښې د ابن عمر رضی الله عنه رجوع خو ثابت ده چه هغوی د جمهورو مسلک ته رجوع کړې وه، خو د ابن عباس رضی الله عنه په رجوع کښې اختلاف دې بعض وائی هغوی هم رجوع کړې وه او بعضو د هغوی د رجوع نفی کړې ده خو صحیح دا ده چه د ابن عباس رضی الله عنه نه هم په دې کښې رجوع ثابت ده وهو الذی اختاره النووی فی شرح مسلم ۲/۲۷ د دې دواړو حضراتو استدلال په شروع کښې د اسامة رضی الله عنه د حدیث ﴿ لا ربا الا فی النسیئة ﴾ نه وو، دا حدیث په بخاری مسلم دواړو کښې دې، جمهور علماء کرامو د دې حدیث نه دوه جوابونه کړی دی چه د ربا نه مراد اربی الربا أو اشد الربا ده د نفس ربا نفی نشته، مطلب دا دې چه په بیع الصرف کښې سخت حرمت چه دې هغه په نسیئة کښې دې، او د تفاضل حرمت دومره سخت نه دې، او یو جواب د نسخ هم ورکړې شوې دې، بلکه دا چه کله په حلت او حرمت کښې تعارض وی نو حرمت له ترجیح وی.

### د ربا تعریف او د هغې دوه قسمونه :

د ذکر کړې شوې بیان نه معلومه شوه چه د ربا دوه قسمونه دی ربا الفضل او ربا النسیئة، دربا تعریف فقهاء کرامودا لیکلې دې ﴿ الرباء هو الفضل المستحق لاحد المتعاقدین فی المعاوضة الخالی عن عوض شرط فیه ﴾ یعنی د مخصوص اموالو په بیع کښې (یعنی اموال ربویه چه د هغې بیان په حدیث الباب کښې دې) په احد الجانبین کښې د داسې زیادت موجود کیدل چه جانب آخر د دې زیادت د عوض نه خالی وی مثلاً د یو درهم په بدل کښې سل درهم نو دلته په یو جانب کښې خو یو درهم شو اوس د دې نه پس په یو جانب کښې چه کوم ربع درهم موندلې شی د هغې عوض په دویم جانب کښې ندارد، خو دا تعریف د ربا په مذکوره دوه قسمونو کښې د ربا الفضل دې، د دې په قسم ثانی یعنی ربا النسیئة سره د دې تعریف هیڅ تعلق نشته، ربا النسیئة خو دا ده چه د اموال مخصوصه بیع کښې تقابض فی المجلس بیا نه موندلې شی بلکه معامله په قرض باندې پریخودلې شی، یعنی احد المتعاقدین خومعامله نقدکوی اوفی الحال څیز ورکوی، او دویم سړې د دې عوض فی الحال نه ورکوی د دې نه پس تاسو حدیث الباب واخلئ.

| [۳۳۴۸](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ". |
|---|

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: سره زر په سپینوزرو

[۱]: صحیح البخاري/البیوع ۵٤ (۲۱۳٤)، ۷٤ (۲۱۷۰)، ۷٦ (۲۱۷٤)، صحیح مسلم/البیوع ۳۷ (۱۵۸٦)، سنن الترمذي/البیوع ۲٤ (۱۲٤۳)، سنن النسائي/البیوع ۳۹ (٤۵٦۲)، سنن ابن ماجه/التجارات ۵۰ (۲۲٦۰، ۲۲۵۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰٦۳۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البیوع ۱۷ (۳۸)، مسند احمد (۱/۲٤، ۲۵، ٤۵)، سنن الدارمي/البیوع ٤۱ (۲٦۲۰) (صحیح)

خرخول سود دې مګرچه دواړه نقد وي اوغنم په غنمو خرخول سود دې مګرچه دواړه نقد وي اووربشي په وربشو خرخول سوددې مګر چه نقد وي دواړه.

**قوله:** ﴿عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم« الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ رِبًا إِلاَّ هَاءَ وَهَاءَ وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ رِبًا إِلاَّ هَاءَ وَهَاءَ وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ رِبًا إِلاَّ هَاءَ وَهَاءَ وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ رِبًا إِلاَّ هَاءَ وَهَاءَ﴾

## شرح الحديث على اكمل وجه انشاء الله تعالى:

په دې حدیث کښې صرف پنځه څیزونه ذکر شوې دی، او د دې نه پس چه کوم د عبادة بن الصامت رضي الله عنه حدیث را روان دې په هغې کښې شپږم څیز هم مذکور دې، ﴿والملح بالملح مدی بمدی﴾ په دې حدیث کښې چه کوم لفظ مکرر یعنی هاء و هاء دی، دا د اسماء افعال نه دی چه د هغې معنی ده ﴿خذ﴾ په دې کښې مد او قصر دواړه جائز دی خو مد افصح دې، امام سیوطی رحمه الله لیکلي دی چه د دې لفظ اصل ﴿هاک﴾ دې یعنی ﴿خذ﴾ کاف (ک) لره حذف کولو سره د هغې په عوض کښې مد او همزه راوړلی شو، او په فائق کښې لیکلي شوې دی چه لفظ هاء د اسماء اصوات نه دې په معنی د ﴿خذ﴾ او هم د دې نه دې قول د باری تعالی ﴿هاؤم اقرؤ كتابيه﴾ علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دا لفظ په محل نصب کښې دې بناء بر حالیت، او د الا مستثنی منه مقدر دې، او مطلب دا دې چه بیع الذهب بالفضة ربا ده په ټولو حالاتو کښې مګر په حال د حضور کښې او تقابض فی المجلس کښې پس دا لفظ هاء او هاء کنایة ده د تقابض نه آه(بذل)لهذا ترجمة به دا وی چه د ذهب بیع د فضة سره ربا ده په ټولو احوالو کښې خو په دې حال کښې نه مګر په دې حال کښې په متعاقدینو کښې هر یو ته وائی ﴿خذ هذا﴾ یعنی دا واخله او دویم هم اوائی چه دا واخله، هم د دې نوم دې تقابض فی المجالس، او که داسې نه وی نو بیا به ربا فی النسیئة موندلې شی چه حرامه ده.

د دې نه پس ځان په دې پوهه کړئ چه دا حدیث چه په هغې کښې د اموال ربویه ذکر دې په هغې کښې داسې دی چه اموال ټول شپږ بیان کړې شوې دی او د دې اشیاء ستة د معاملې دوه صورتونه په حدیث کښې مذکور دی، یو د اتحاد جنس والا چه دواړو طرفونو ته یو څیز وی مثلا دواړو طرفونو ته سرۀ زر وی یا سپین زر وی او هم دغه شان، او دویم صورت د اختلاف جنس بیان کړې شوې دې لکه یو طرف ته ذهب او دویم طرف ته فضة، یا یو طرف ته حنطة، او دویم طرف ته شعیر، د ړومبی صورت حکم کوم چه په حدیث کښې ذکر دې هغه په دې دواړو کښې یو دې یعنی تقابض فی المجلس یعنی د قرض حرام کیدل او مساوات په دې صورت کښې ضروری نه دې، یعنی په دې صورت کښې فضل او زیادت جائزدې، ربا یعنی حرامه نه ده.

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه ظاهریه کوم چه منکرین قیاس دی [1] د هغوی په نزد د اموال ربویه انحصار صرف په اشیاء ستة باندې نه دې بلکه د نورو ډیرو څیزونو دپاره هم

---

[1] پس د طائفه ظاهریه امام ابو محمد علی بن احمد بن حزم رحمه الله په انکار قیاس باندې مستقل کتاب لیکلي دې. ابطال الرائي والقياس.

هغوی دا حکم ثابتوی، په ذریعه د قیاس، قیاس نوم دې د تعدیة الحکم لوجود العلة یعنی د حکم منصوص د علت معلومولو نه پس چرته چه هم هغه علت بیا موندلې شی په هغې کښې حکم منصوص جاری کول.

## په اشیاء سته مذکوره کښې علة ربا د ائمة اربعه په نزد :

اوس چه دلته دې حضرات ائمة اربعه په دې اشیاء سته کښې کوم د حرمت ربا علت متعین کړې دې هغه مختلف دې او بیا د هر یو امام په نزد چه چرته هم د دې اشیاء سته نه علاوه چرته هم هغه علت بیا موندلې شو هغه هلته دا حکم منصوص نافذ کړو اوس دا چه هغه علت حکم دې حضراتو څه متعین کړو په دې باره کښې واورئ، دې امامانو په دې حدیث کښې چه کوم څیزونه ذکر کړې شوې دی د هغې اول خو دا تجزیه اوکړه هغه دا چه ذهب او فضة چه هغې ته ثمنین وائی هغه خو ئې ځانله اوساتل او باقی څلور څیزونه ئې ځانله کولو سره په هغې کښې جدا غور اوکړو، د ثمنین علت ربا ځانله تجویز کړې شو او د باقی څیزونه ځانله. د امام شافعی رحمه الله په نزد په ثمنین کښې علت د ربا ثمنیت دې او چونکه ثمنیت خاص صفت د ذهب او فضة دې په بل څه څیز کښې نه شی موندلې کیدې لهذا د دې دوارو امامانو په نزد په ثمنینو باندې خو بل څیز لره نه شې قیاس کولې اوس پاتې شو باقی څلور څیزونه، نو په هغې کښې د امام شافعی رحمه الله په نزد علت د ربا طعم دې یعنی د هغه څیزونو مطعوم کیدل، لهذا د ټولو مطعوماتو حکم به د هغوی په نزد هم دا وی کوم چه د دې څلورو څیزونو دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد په دې څیزونو کښې علت د ربا اقتیات او ادخار دې یعنی په دې څیزونو کښې د هر یو قوت مدخر کیدل یعنی د انسان داسې روزی چه هغه ذخیره کړې شی لهذا د امام مالک رحمه الله په نزد د ټولو اقوات مدخره هم دا حکم دې. د مثال په طور په دې څلورو څیزونو کښې د وریژو ذکر نشته، ذره یعنی جوار، د هغې هم ذکر نشته وغیره وغیره، د ټولو حکم هم دا دې، او د احنافو په نزد په ثمنینو کښې علت د ربا ثمنیت نه دې بلکه وزن دې یعنی د دې دوارو څیزونو موزون کیدل دی لهذا د دې دوارو نه علاوه به هم د ټولو موزوناتو هم دا حکم وی، لکه حدید او نحاس وغیره او په باقی څلورو څیزونو کښې علت ربا د احنافو په نزد کیل دې یعنی د هغه څیزونو مکیلی کیدل، لهذا د ټولو مکیلاتو به هم دا حکم وی پس د ربا النسیئة علت زمونږ په نزد په بیع کښې د عوضینو وزنی یا کیلی کیدل دی، او د ربا الفضل علت د عوضین وزنی یا کیلی کیدو سره متحد الجنس کیدل دی پس په هدایه کښې دی چه د ربا علت زمونږ په نزد کیل مع الجنس یا وزن مع الجنس دې، او د امام احمد رحمه الله نه په دې مسئله کښې دوه روایتونه دی یو د احنافو په مثل او دویم د شوافعو په مثل. والله تعالیٰ اعلم بالصواب.

## د فقهاء کرامو په امت باندې احسان

دې حضراتو فقهاء کرامو چه د دین امامان دی خپل عمرونه د قرآن او حدیث نه د مسائلو په استنباط کښې تیر کړی دی، په پوره امت باندې د دوی احسان عظیم دې چه د قرآن او حدیث نه ئې د احکاماتو استنباط کولو سره د پاتې دنیا پورې د دینی مسائلو سهولتونه

پيدا كړل، يو قصه راياده شوه كومه چه په تعليم المتعلم كښې ذكر ده چه د امام محمد رحمه الله د وفات نه پس چا د هغوى نه په خوب كښې تپوس اوكړو چه د مرګ وخت په تاسو باندې څنګه تير شو؟ نو هغوى جواب وركړو چه ما ته هيڅ پته او نه لګيده چه زما روح څنګه ويستلې شو، زه خو هغه وخت د مكاتب د مسائلو په استنباط كښې مشغول أوم، الله اكبر څه عجيبه شان وو د دې خلقو! شكر الله سعيهم واجزل مثوبتهم وحشرنا ومشايخنا معهم.

په دې حديث كښې ﴿ تبرها وعينها ﴾ ذكر دې تبر وائى خالص د سرو او سپينو زرو ټكړو ته چه مضروب[۱۱۸] نه وى او عين دهغې مقابل دې چه دسكه په شكل كښې وى، رسول الله ﷺ فرمائى چه د تبر او د عين هيڅ فرق معتبر نه دې دواړه په يو حكم كښې دى.

## غنم او اوربشې په اعتبارِ د جنس متحد دي يا مختلف:

او د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چه بر (غنم) او شعير (اوربشې) دوه مختلف جنسونه دى د ائمة ثلاثه مسلك هم دا دې په دې كښې د امام مالك رحمه الله اختلاف دې هغوى دا دواړه يو منى پس امام ترمذى رحمه الله فرمائى:

حديث عبادة حديث حسن صحيح وقد روى بعضهم هذا الحديث عن خالد بهذا الاسناد وقال بيعوا البربا لشعير كيف شئتم يدا بيد، وهذا قول اكثر اهل العلم وهو قول سفيان الثورى والشافعي واحمد واسحاق، وقد كره قوم من اهل العلم ان تباع الحنطة بالشعير الا مثلا بمثل وهو قول مالك بن انس، والقول الاول اصح آهـ مختصراملخصاً.

[۳۳٤۹]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ مُسْلِمٍ الْمَكِّيِّ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ تِبْرُهَا وَعَيْنُهَا، وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ تِبْرُهَا وَعَيْنُهَا، وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ مُدْيٌ بِمُدْيٍ، وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ مُدْيٌ بِمُدْيٍ، وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ مُدْيٌ بِمُدْيٍ، وَالْمِلْحُ بِالْمِلْحِ مُدْيٌ بِمُدْيٍ، فَمَنْ زَادَ أَوِ ازْدَادَ، فَقَدْ أَرْبَى، وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ الذَّهَبِ بِالْفِضَّةِ، وَالْفِضَّةُ أَكْثَرُهُمَا يَدًا بِيَدٍ، وَأَمَّا نَسِيئَةً فَلَا، وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ الْبُرِّ بِالشَّعِيرِ، وَالشَّعِيرُ أَكْثَرُهُمَا يَدًا بِيَدٍ، وَأَمَّا نَسِيئَةً فَلَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، وَهِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ، بِإِسْنَادِهِ.

دعبادة بن الصامت رضى الله تعالى عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى: سره زربه په مقابل دسرو زروكښې برابر په برابر وركولې شي، او سپين زربه په مقابل دسپينو زروكښې برابر په برابر وركولې شي، او غنم به د غنمو په مقابل كښې يومد په يومدوركولې شي، او وربشې به د وربشو په بدل كښې برابر په برابر وركولې شي، او كهجورې به د كهجورو په بدل كښې برابر په برابر يومد په يومد وركولې شي، او څوك چه ددې نه زيات واخلي نوپه سود كښې مبتلا شواوسود ئې واخستو اوسود ئې وركړو، او په سپينو زرو سره زر اخستل سره دكمې او زياتې دفرق ساتلو څه بده خبره. نده خوپدى شرط چه نقد وي اوكه چرې نقد نه وى نوجائزنه دي، امام ابوداود فرمائى چه دا روايت سعد بن

[1] ): صحيح مسلم/المساقاة ١٥ (١٥٨٧)، سنن الترمذي/ البيوع (١٢٤٠)، سنن النسائي/البيوع ٤٢ (٤٥٦٧)، سنن ابن ماجه/التجارات ٤٨ (٢٢٥٤)، (تحفة الأشراف: ٥٠٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٤/٥، ٣٢٠) (صحيح)

أبي عروبه او هشام دستوائي دقتاده نه او هغه دمسلمه په واسطي سره بیان کړي دي.

﴿ فَمَنْ زَادَ أَوِ ازْدَادَ فَقَدْ أَرْبَى ﴾ یعنی د اتحاد د جنس په صورت کښې چه کوم انسان بل ته زیاتی ورکړی یا زیات واخلی نو هغه سود اوکړو، او بیا وړاندې دا دی چه که د ذهب بیع په فضة سره وی او هم دغه شان د بر د شعیر سره او په دې دواړو کښې یو د بل نه زیاتی وی نو دا جائز ده په دې شرط چه لاس په لاس وی، او نسیئة جائز نه ده.

حدیث عمر رضی الله عنه اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة. وحدیث عبادة بن الصامت رضی الله عنه اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة بنحوه، قاله المنذری

[۳۳۵۰](۱) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْخَبَرِ يَزِيدُ وَيَنْقُصُ، وَزَادَ، قَالَ: فَإِذَا اخْتَلَفَتْ هَذِهِ الْأَصْنَافُ، فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ.

ابو الاشعث الصنعاني دعبادة ابن الصامت رضی الله عنه نه او هغه دنبی علیه السلام نه دتیر روایت په شان روایت بیان کړي دې، لبته په دې روایت کښې دا اضافه ده چه: که چرې قسمونه مختلف شي لکه سرو زرد سپینو زرو په عوض کښې یا غنم د اوربشو په عوض کسي وي نو څنګه چه موزره غواړی خرڅولې شي مګر دا ضروري ده چه معامله به نقده وي (یعنی دقرضو معامله جائز نده اګر که دلږ وخت دپاره وي).

## بَابٌ فِي حِلْيَةِ السَّيْفِ تُبَاعُ بِالدَّرَاهِمِ

### د تورې د سپینو زرو موتی په پیسو خرڅول

[۳۳۵۱](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا إِبْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ، حَدَّثَنِي خَالِدُ بْنُ أَبِي عِمْرَانَ، عَنْ حَنَشٍ، عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، قَالَ: "أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ بِقِلَادَةٍ فِيهَا ذَهَبٌ وَخَرَزٌ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ، وَابْنُ مَنِيعٍ: فِيهَا خَرَزٌ مُعَلَّقَةٌ بِذَهَبٍ ابْتَاعَهَا رَجُلٌ بِتِسْعَةِ دَنَانِيرَ، أَوْ بِسَبْعَةِ دَنَانِيرَ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا، حَتَّى تُمَيِّزَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ، فَقَالَ: إِنَّمَا أَرَدْتُ الْحِجَارَةَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا، حَتَّى تُمَيِّزَ بَيْنَهُمَا، قَالَ: فَرَدَّهُ حَتَّى مُيِّزَ بَيْنَهُمَا"، وقَالَ ابْنُ عِيسَى: أَرَدْتُ التِّجَارَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَانَ فِي كِتَابِهِ الْحِجَارَةُ، فَغَيَّرَهُ، فَقَالَ التِّجَارَةَ.

دفضالة بن عبیده نه روایت دی فرمائی چه نبی علیه السلام ته دغزوه خیبر په کال دسرو زرو یو امیل چه غمي هم پکښې وو راوړلې شو یو سړی په اوه ایا نهه ۹ دیناره واخستو نبی علیه السلام اوفرمائیل دا خریداري درست نده، ترڅوچه سره زر دغمونه جدا کړې شوي نه وی، اخستونکی عرض اوکړو اې دالله رسوله ما دکانړو اخستلو اراده کړې وه نبی علیه السلام اوفرمائیل بالکل نه دا خریداري جائزنه ده ترڅوچه سره زر دغمونه جدا شوي نه وي، اخستونکي چه دا واوریدل نو هارئې واپس کړو تردې چه سره زر دغمونه جدا کړې شول ابوداود فرمائی چه دمحمدبن عیسي په کتاب کښې اردت الحجارة الفاظ وو هغه په

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۰۸۹) (صحیح)

(۲): صحیح مسلم/المساقاة ۱۷ (۱۵۹۱)، سنن الترمذي/البیوع ۳۲ (۱۲۵۵)، سنن النسائي/ البیوع ٤٦ (٤٥٧٧)، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۲۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹/۶، ۲۱) (صحیح)

تجارت لفظ سره بدل کړل.

﴿ عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَامَ خَيْبَرَ بِقِلاَدَةٍ فِيهَا ذَهَبٌ وَخَرَزٌ - قَالَ أَبُو بَكْرٍ وَابْنُ مَنِيعٍ فِيهَا خَرَزٌ مُعَلَّقَةٌ بِذَهَبٍ ابْتَاعَهَا رَجُلٌ بِتِسْعَةِ دَنَانِيرَ ...الخ﴾

## د مال ربوی وغير ربوی دمخلوط بيع حکم:

يعنی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې دا مسئله پيش کړې شوه چه د فتح خيبر په کال، يو اميل چه په هغې کښې سرهٔ زر او جواهرات وغيره قيمتی کاڼړی وو، او بيا په دويم روايت کښې دی چه داسې قلادة چه په هغې کښې غمی د سرو زرو سره لګيدلې وو، هغه قلاده يو سړی په نهه يا اووهٔ ديناره اخستلې وه، او په بل روايت کښې دی چه په دولسو دينارو ئې اخستلې وه، او په هغه بل روايت کښې دا هم دی چه اخستونکې سړې وائی چه کله ما د هغې قلادې اجزاء بيل بيل کړل نو په هغې کښې چه کوم سرهٔ زر راواوتل هغه د دولسو دينارو نه زيات وو (يعنی نور دوه څيزونه جواهر وغيره نه علاوه) دا مذکوره سړې وائی چه ما د هغې ذکر رسول الله ﷺ ته اوکړو نو هغوی اوفرمائيل ﴿لاتباع حتی تفصل﴾ يعنی د دې قسم هار بيع مجموعی لحاظ سره جائز نه ده تر څو چه ټول اجزاء بيل بيل نه کړې شی.

## مسئلة ثابتة بالحديث کښې مذاهب ائمة:

که په يو اميل کښې د جواهراتو نه علاوه سرهٔ زر لګيدلې وی نو د هغې بيع د خالص سرو زرو سره يا هم دغه شان په کومه قلاده کښې چه چاندی لګيدلې وی د هغې بيع په چاندئ سره د امام شافعی رحمه الله په نزد مطلقا جائز نه ده تر څو چه هر يو بيل بيل نه کړې شی د ربا د ويرې د وجې نه، د ظاهر حديث نه هم دا معلوميږی او د احنافو مذهب ددې پشان مسئله کښې دا دې چه که په څه طريقه بالجزم دا معلومه شی چه خالص سونا د هغه سونې نه کومه چه په قلاده کښې لګيدلې ده زائد ده او د قلادې والا سرهٔ زر کم دی نو په دې صورت کښې به بيع جائز وی، د يو طرف سرهٔ زر به د دويم طرف د سرو زرو په مقابله کښې شی او کوم چه خالص د سرو زرو زيادت دې هغه به په يو طرف کښې شی. او په دې صورت کښې به هيڅ ربا نه لازميږی لکه هم دا خبره ظاهره ده، دا يو صورت خو صرف د جواز دې، او که هغه ذهب مفرز (خالص سرهٔ زر وی يعنی غير مخلوط)، د ذهب مخلوط برابر يا د هغې نه اقل وی نو په دې دواړو صورتونو کښې به دا بيع ناجائز وی د لزوم د ربا د وجې نه، د امام مالک رحمه الله مسلک دا دې چه که هغه ذهب مخلوط بالغير تابع وی د غير په داسې طريقه چه د ثلث يا ثلث نه کم وی نو بيا خو دا بيع جائز ده ګڼې نه ده، د دې نه پس خان پوهه کړئ چه دلته چه په حديث کښې کوم صورت موندلې شوې دې د کوم نه چه رسول الله ﷺ منع اوفرمائيله دا هم هغه صورت دی کوم چه د احنافو په نزد هم ممنوع دې ځکه چه په دې مثال کښې خو ذهب مفرز په ځائې د اکثر کيدو برابر هم نه وو د ذهب مخلوط سره بلکه د هغې نه اقل وو او دا زمونږ په نزد هم ناجائز ده، لهذا حديث د احنافو خلاف نه دې، که يو سړې داسې اوائی چه په حديث کښې خو د دې قسم د قلادې بيع لره د تجزيه او تفصيل نه مخکښې ناجائز منلې شوې وو، د دې جواب دا دې چه د تجزيه او تفصيل نه پس چه په کوم

صورت کښې جائز وی هم په هغه صورت کښې مونږ هم هغه جائز کوو، او په کوم صورت کښې چه ناجائز وی هغې ته مونږ هم ناجائز وایو. غرض دا چه تجزیه او تفصیل د معرفت د مقدار ذریعه نه ده چه د کمی زیاتی علم پیدا شی او ربا نه لازمیږی، خو که بغیر د تجزیه او تفصیل نه معرفت د مقدار حاصل شی مونږ هم دې ته جائز وایو او بغیر د دې نه مونږ هم دې ته ناجائز وایو. والله تعالی اعلم

## مسئله مدّ عجوه او د هغې شرح او مثال

په کتابونو د شوافعو کښې دې مسئلې (۱) ته مسئله د مد عجوه نوم اخستلې شوې دې لکه چه د امام نووی رحمه الله په کلام کښې په شرح د مسلم کښې ذکر شوې دی چه د هغې صورت هغوی دا لیکلې دې چه که په یو طرف کښې مد عجوه او درهم وی (یعنی یو مد کهجورې چه د هغې سره یو درهم هم وی) او د هغې بیع اوکړې شی د مدین عجوه سره یعنی دویم طرف ته صرف تمر دې خو په ځائې د یو مد دوه مده، یا د درهمینو سره یعنی دویم طرف ته صرف دوه درهمه وی خو یو نه وی بلکه دوه نو دا جائز نه ده.

دا د قلادې والا مسئله د دې تشریح او مذاهب د ائمة امام نووی رحمه الله د حدیث الباب د لاندې په شرح د مسلم کښې ۲۲/۲ باندې ذکر کړې ده، د هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی. ففیه کلام نفیس فی شرح هذا الحدیث.

په حدیث الباب کښې دا هم دی چه کله رسول الله ﷺ د هغه امیل اخستونکې د هغې د بیع نه منع اوفرمائیلو نو هغه اووې ﴿ انما اردت الحجارة ﴾ نو رسول الله ﷺ بیا هم اجازت ورنکړو، د هغه سړی مراد دا وو چه د امیل دشراء نه زما مقصود او مطلوب هغه جواهرات دی کوم چه په هغې کښې لګیدلې دی، یعنی سره زر مقصود نه دی او دا جواهرات په اموال ربویه کښې نه دی لهذا اجازت کیدل پکار دی.

[۳۳۵۲] (۲) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي شُجَاعٍ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ أَبِي عِمْرَانَ، عَنْ حَنَشٍ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، قَالَ: "اشْتَرَيْتُ يَوْمَ خَيْبَرَ قِلَادَةً بِاثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا، فِيهَا ذَهَبٌ وَخَرَزٌ، فَفَصَّلْتُهَا، فَوَجَدْتُ فِيهَا أَكْثَرَ مِنَ اثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: لَا تُبَاعُ حَتَّى تُفَصَّلَ".

د فضالة بن عبید نه روایت دې فرمائی چه دغزوه خیبرپه ورځ مې یو امیل واخستو په دولس دیناره چه سره زر اوغمې په کښې وو نومادهار سره زر د غمونه جدا کړل نوهار راته ددولسو دینارونه دزیات مالیت قابل ښکاره شو اوددې خبرې ذکر مې نبی ﷺ ته اوکړو نسبي ﷺ اوفرمائیل چه دهار دسروزرو نغمو دجدا کولونه بغیر خرڅول منع دي.

﴿ عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ رضی الله تعالی عنه...... نُبَايِعُ الْيَهُودَ الْأُوقِيَّةَ مِنَ الذَّهَبِ بِالدِّينَارِ. قَالَ غَيْرُ قُتَيْبَةَ بِالدِّينَارَيْنِ وَالثَّلَاثَةِ ﴾

د دې حدیث مطلب خو په ظاهر کښې دا دې چه مونږ خلقو د خیبر یهودو ته دوه یا درې

---

(۱) یعنی د ربوی او غیر ربوی مال مخلوط بیع.
(۲) انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۲۷) (صحیح)

دیناره ورکولو سره یو اوقیه سرهٔ زر اخستل اوقیه نوم دې د څلویښتو درهمو، او ښکاره خبره ده چه د څلویښتو درهمو وزن برابر سرهٔ زر څوک خرڅولې شي د دوه یا درې دینارو په بدل کښې په دې وجه دا حدیث په خپل ظاهر باندې نه دې بلکه مراد دا دې چه الوقیة من ذهب وخرز وغیره یعنی داسې امیل چه د هغې وزن د څلویښتو درهمو برابر وی چه په هغې کښې سرهٔ زر او ملغلرې وغیره وې دغه شان امیل لره په دوه یا درې درهمو باندې اخستلو. قاله النووی (عون) والحدیث اخرجه مسلم، قاله المنذری.

[۳۳۵۳]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنِ الْجُلَاحِ أَبِي كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي حَنَشٌ الصَّنْعَانِيُّ، عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ، نُبَايِعُ الْيَهُودَ الْأُوقِيَّةَ مِنَ الذَّهَبِ بِالدِّينَارِ، قَالَ غَيْرُ قُتَيْبَةَ: بِالدِّينَارَيْنِ وَالثَّلَاثَةِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، فَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ، إِلَّا وَزْنًا بِوَزْنٍ".

دفضالة بن عبیده نه روایت دې فرمائی چه مونږ غزوه خیبر په ورځ باندې دنبی ﷺ سره موجود وو اود یهودیانو سره به مو خرید اوفروخت کولو ودیودیناریه عوض باندې به مو یوه اوقیه سره زر یندوه دینارو په عوض باندې به مو یوه اوقیه سره زر اخستل نبی ﷺ اوفرمائیل چه سره زر په سروزرو مه خرڅوي ترڅوچه په وزن کښې دواړه برابر نه وي.

## بَابٌ فِي اقْتِضَاءِ الذَّهَبِ مِنَ الْوَرِقِ

### دسپینوزروپه عوض کښې دسروزرو داخستلو بیان

**د مسئله مترجم بها شرح او بیان د مذاهبو:**

اقتضاء په معنی د اخذ، یعنی د اخستلو او خرڅولو په معامله کښې که په دینار سره معامله شوې ده د هغې په ځائې دراهم اخستل یا که معامله په دراهمو سره شوی وی او بیا په ځائې د دراهمو هم د هغه قیمت په اندازه دنانیر اخستل، داسې کول په حساب د قیمت متساویا خو بالاتفاق جائز دې او که بالفرض متفاضلا وی نو بیا په تراضی د طرفین سره جائز دې([2]) ځکه چه د اختلاف د جنس په صورت کښې خو کمی زیاتې جائز دې، خو دا هم ښکاره ده چه کوم انسان داسې کوی یعنی د دینارونو په مقابله کښې دراهم، یا د دراهم په عوض کښې دنانیر اخلی هغه به د قیمت په حساب سره برابر اخلی د تفاضل اصولا جائز کیدل هغه بل امر دې، خو تقابض فی المجلس ضروری دې لکه چه د ټولو اموال ربوبیه حکم دې ځکه چه دا عقد به عقد صرف وی چه په هغې کښې تقابض فی المجلس ضروری دې، خطابی رحمه الله فرمائی «وقد اختلف الناس فی اقتضاء الدراهم من الدنانیر، فذهب اکثر اهل العلم الی جوازه ومنع من ذلک ابوسلمة بن عبدالرحمن وابو شبرمة، وکان ابن ابی لیلی یکره ذلک الا بسعر یومه، ولا یعتبر غیره السعر، ولم یبالوا کان ذلک باغلی او ارخص من سعر الیوم اهـ یعنی ابن ابی لیلی رحمه الله فرمائی چه د دې قسم تبادله په هغه صورت کښې جائز ده چه په کومه ورځ

[1]: انظر حدیث رقم (۳۳۵۱)، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۲۷) (صحیح)

[2] خو دا جواز د تفاضل صرف د احنافو مسلک دې، د نورو امامانو په نزد جائز نه دې، کذافي هامش البذل عن المولف)

باندې معامله شوې وه په هغه ورځ چه د دراهمو او دنانیر کوم قیمت وو په بازار کښې د هغه قیمت اعتبار کولو سره کینې مکروه دې سعر الیوم کوم چه امام خطابی رحمه الله فرمائی هغه په حدیث الباب کښې مصرح دې ﴿ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ بَأْسَ أَنْ تَأْخُذَهَا بِسِعْرِ يَوْمِهَا مَا لَمْ تَفْتَرِقَا وَبَيْنَكُمَا شَىْءٌ » ﴾ خو دا قید په بعضو طرقو کښې شته او په بعضو کښې نشته، پس د باب حدیث ثانی کښې نشته ﴿ کما قال المصنف رحمه الله باسناده ومعناه والاول اتم لم یذکر بسعر یومها ﴾ غالبا هم په دې وجه باندې جمهورو د سعر یوم اعتبار لره ضروری نه دې منلې، د خطابی په کلام کښې د امام احمد رحمه الله مسلک نه دې ذکر شوې، د هغوی په نزد د سعر الیوم قید ضروری دې کما قال الموفق کما فی هامش البذل، وفیه ایضا :: قلت حکی الشوکانی تقییده عن احمد والیه یشیر کلام الترمذی اذ ذکر فیمن قال بالحدیث احمد، وبه جزم الموفق کما سبق. او د علامه سندی په حاشیه کښې دی چه د ﴿ بسعر الیوم ﴾ قید په طریقه د استحباب دې.

[۳۳۵۴](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ وَاحِدٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ الْمَعْنَى، قَالاَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كُنْتُ أَبِيعُ الإِبِلَ بِالْبَقِيعِ فَأَبِيعُ بِالدَّنَانِيرِ وَآخُذُ الدَّرَاهِمَ وَأَبِيعُ بِالدَّرَاهِمِ وَآخُذُ الدَّنَانِيرَ، آخُذُ هَذِهِ مِنْ هَذِهِ وَأُعْطِي هَذِهِ مِنْ هَذِهِ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي بَيْتِ حَفْصَةَ، فَقُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، رُوَيْدَكَ أَسْأَلُكَ إِنِّي أَبِيعُ الإِبِلَ بِالْبَقِيعِ فَأَبِيعُ بِالدَّنَانِيرِ وَآخُذُ الدَّرَاهِمَ، وَأَبِيعُ بِالدَّرَاهِمِ، وَآخُذُ الدَّنَانِيرَ آخُذُ هَذِهِ مِنْ هَذِهِ، وَأُعْطِي هَذِهِ مِنْ هَذِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لاَ بَأْسَ أَنْ تَأْخُذَهَا بِسِعْرِ يَوْمِهَا مَا لَمْ تَفْتَرِقَا وَبَيْنَكُمَا شَيْءٌ".

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ما به په نقیع مقام کښې اوښان خرڅول اود دینارپه حساب به مې خرڅول او په بدل کښې به مې دینارونه اغستل یعنی ددینار په عوض کښې به مې درهم اغستل اوددرهم په عوض کښې به مې دینار اغستل بیازه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم اونبی علیه السلام دام المومنین حفصه رضی الله عنها په کورکښې ناست وو ماعرض اوکړو اې دالله رسوله ماته توجه اوکړئ زه دا معلومول غواړم چه زه په نقیع مقام کښې اوښان خرڅوم او په عوض کښې ئې درهم اخلم اود درهمونوپه حساب ئې خرڅ کړم او په عوض کښې دینار واخلم عرض داچه ددرهم په عرض کښې دینار اوددینار په بدل کښې درهم اخلم. نبی علیه السلام اوفرمائیل په دې کښې هیڅ بدوالې نشته خوپه دې شرط چه ددغه ورځې په نرخ ئې واخلې اوتاسودیوبل نه ترهغې پورې جدانشئ ترڅوچه ستاسو سودا مکمل شوې نه وې.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنْتُ أَبِيعُ الإِبِلَ بِالْبَقِيعِ فَأَبِيعُ بِالدَّنَانِيرِ وَآخُذُ الدَّرَاهِمَ وَأَبِيعُ بِالدَّرَاهِمِ وَآخُذُ الدَّنَانِيرَ الخ ﴾ په دې حدیث کښې هم هغه مسئله ذکر شوې ده کومه چه مونږه پورته بیان کړه. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری.

(١): سنن الترمذي/البيوع ٢٤ (١٢٤٢)، سنن النسائي/البيوع ٤٨ (٤٥٨٦)، سنن ابن ماجه/التجارات ٥١ (٢٢٦٢)، (تحفة الأشراف: ٧٠٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٣، ٥٩، ٨٩، ١٠١، ١٣٩)، سنن الدارمي/البيوع ٤٣ (٢٦٢٣) (ضعيف)

[۳۳۵۵] (۱) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ الْأَسْوَدِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ سِمَاكٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، وَالْأَوَّلُ أَتَمُّ لَمْ يَذْكُرْ بِسِعْرِ يَوْمِهَا.

د سماك نه په دې سندسره دتير روايت په شان روايت نقل دې ليكن مخكنۍ روايت زيات كامل دې اوپه دې روايت كښې دنن ورځې دنرخ لفظ نشته.

## بَابٌ فِي الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً

### په يو ځاروى بل ځاروې د قرض په طورسره اخستل

دا باب او په دې كښې چه كومه مسئله ذكر شوې ده د دې حواله په دې كتاب كښې په ﴿ باب في حسن القضاء ﴾ كښې د استقراض الحيوان د لاندې تيره شوې ده.

[۳۳۵۶] (۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً".

د سمره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام منع فرمانيلى ده دخرڅولوديو ځاروى نه په بل باندې په قرض سره (يعنى ژوند ځاروې).

### مسئلة الباب كښې مذاهب ائمة:

بيع الحيوان بالحيوان كه يدا بيد وى نو بالاتفاق جائز دې او مساوات هم په دې كښې ضرورى نه دى تفاضلا هم جائز دې، مثلا بيع البعير بالبعيرين، يا بيع العبد بالعبدين، خو په دې كښې اختلاف دې چه بيع الحيوان بالحيوان نسيئة هم جائز دې يا نه، په دې كښې دوه امام يو طرف دې او دوه يو طرف ته، د احنافو او حنابله په نزد ناجائز دې كما في الحديث الباب نهى عن بيع الحيوان بالحيوان نسيئة، او د امام مالك او شافعى رحمهما الله په نزد دا بيع جائز دې، هم په دې وجه مصنف رحمه الله وړاندې باب قائم كړې دې، ﴿ باب في الرخصة في ذلك ﴾ خو د امام مالك رحمه الله په نزد د دې جواز د اختلاف د جنس په صورت كښې دې، مثلا يو طرف ته اوښ دې او دويم طرف ته بيزې، او د اتحاد د جنس په صورت كښې د هغوى په نزد هم جائز نه دى، نو ګويا امام مالك رحمه الله په يو صورت كښې د حنابله او احنافو سره دې او په يو صورت كښې د امام شافعى رحمه الله سره، دا ړومبى باب او د هغې حديث د احنافو او حنابلو په حق كښې دى او د شوافعو خلاف دې، امام شافعى او مالك رحمهما الله د دې حديث دا جواب وركړې دې چه دا په هغه صورت باندې محمول دې لكه چه نسيئة د جانبين نه وى چه هغې ته په اصطلاح د فقهاء كښې بيع الكالئ بالكالئ وائى او كه دجانب واحد نه وى نو هغې لره دا دواړه حضرات ممنوع نه ګرزوى هم دغه شان دا دواړه حضرات د استقراض الحيوان قائل دى ځكه چه په دې كښې نسيئة د جانب واحد نه وى او د احنافو او حنابله په نزد دا حديث په خپل عموم باندې دې يعنى كه هغه نسيئة من الجانبين وى يا

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۰۵۳) (ضعيف)

(۲): سنن الترمذي/البيوع ۲۱ (۱۲۳۷)، سنن النسائي/البيوع ۶۳ (۴۶۲۴)، سنن ابن ماجه/التجارات ۵۶ (۲۲۷۰)، (تحفة الأشراف: ۴۵۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۱۲، ۲۱، ۲۲)، سنن الدارمي/البيوع ۳۰ (۲۶۰۶) (صحيح)

من جانب واحد وی، او هم په دې وجه د هغوی په نزد استقراض الحيوان هم ناجائز دی.
والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَاب فِي الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### په يو څاروی بل څاروې د قرض په طورسره د اخستلو د جواز بيان

[۳۳۵۷](۱) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ حَرِيشٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَهُ أَنْ يُجَهِّزَ جَيْشًا، فَنَفِدَتِ الْإِبِلُ، فَأَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ فِي قِلَاصِ الصَّدَقَةِ فَكَانَ يَأْخُذُ الْبَعِيرَ بِالْبَعِيرَيْنِ إِلَى إِبِلِ الصَّدَقَةِ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام راته حکم اوکړو چه لښکر تيار کړه نو اوښان ختم شول، نو نبي عليه السلام حکم وکړو چه د صدقې داوښانو در اتلو په نيته باندې اوښان واخلئ او عبدالله بن عمرو به دخيراتي اوښانو د راتلو د نيتي پورې يو اوښ په دره اوښانو اخستلو.

﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَمَرَهُ أَنْ يُجَهِّزَ جَيْشًا فَنَفِدَتِ الإِبِلُ فَأَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ فِى قِلَاصِ الصَّدَقَةِ فَكَانَ يَأْخُذُ الْبَعِيرَ بِالْبَعِيرَيْنِ إِلَى إِبِلِ الصَّدَقَةِ ﴾
عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ هغه ته د يو لښکر د تجهيز حکم اوفرمائيلو يعنى د سامان جهاد برابرول، هغوی د دې تيارې شروع کړو، خو په مينځ کښې د اوښانو کمې راغلو هغه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو، نو رسول الله ﷺ هغوی ته حکم اوفرمائيلو چه د صدقې د اوښانو په بنياد باندې د خلقو نه مستعار واخلی، چه کله په بيت المال کښې د صدقې اوښان راشي په هغې باندې به دا دين ادا کولې شي، پس هغه به دخلقو نه د دوه دوه اوښانو په بدله کښې يو يو اوښ اخستلو.
په دې حديث کښې دوه خبرې اومونداې شوې: ﴿ استبدال الحيوان بالحيوان متفاضلا ﴾ يعنى د حيواناتو بدلون په تفاضل سره، په دې کښې هيڅ اشکال نشته، دا خو د ټولو په نزد جائز دې، دويم څيز دې نسيئة يعنى د دې جائز کيدل د مصنف رحمه الله غرض په دې باب سره جواز دنسيئة لره بيانول دی کما فی ترجمة الباب.

### د حديث الباب د احنافو او حنابله د طرف نه جواب:

دا حديث د احنافو او حنابله خلاف شو او د شوافعو موافق، د دې حضراتو يو جواب خو د دې حديث نسخ سره کړې شوې دې چه د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه حديث منسوخ دې..... ذکره الطحاوی احتمالا، علامه شوکانی رحمه الله فرمائی ﴿ لا شک ان احاديث النهی وان کان کل واحد منها لا يخلو عن مقال لکنها ثبتت من طرق ثلاثة من الصحابة، سمرة (کما فی الباب الذی قبله) وجابر بن سمرة وابن عباس وبعضها يقوی بعضا فهی ارجح من حديث واحد غير خال عن المقال وهو حديث عبدالله بن عمرو رضي الله عنه يعنى د منع روايات د متعدد صحابه کرامو رضي الله عنهم نه روايت دی حضرت

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۸۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۷۱، ۲۱۶) (ضعيف)

سمره وجابر بن سمره او ابن عباس رضی الله عنهما، او د جواز روایت کوم چه په یو طریق روایت دې او هغه هم داسې چه د کلام او ضعف نه خالی نه دې، او هسې اصولا هم دلیل دتحریم ته ترجیح ورکولې شی په دلیل د اباحت باندې. (بذل)

## بَابٌ فِي ذَلِكَ إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ

### یو ځاروی بل ځاروی باندې د نقد په صورت کښې جائز دی

[۳۳۵۸](1) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الْهَمْدَانِيُّ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، أَنَّ اللَّيْثَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرَى عَبْدًا بِعَبْدَيْنِ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام یو غلام په دوه غلامانو اخستلې وو.

﴿عَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- اشْتَرَى عَبْدًا بِعَبْدَيْنِ﴾

یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوه غلامانو په بدل کښې یو غلام واخستلو. یعنی یدا بید لکه څنګه چه په ترجمة الباب کښې دی. او دا بالاتفاق جائز ده لکه چه په وړاندې باب کښې تیر شو. والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی بأتم منه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي التَّمْرِ بِالتَّمْرِ

### کجورې په کجورو سره خرڅول

دا دواړه د تائې مثناة من فوق نه دی او په یو نسخه کښې فی الثمر بالتمر دې یعنی ړومبئ ثاء ده او دویمه تاء ده، او راجحه هم دا نسخه ثانیه ده د حدیث الباب د وجې نه.

[۳۳۵۹](2) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، أَنَّ زَيْدًا أَبَا عَيَّاشٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَأَلَ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنِ الْبَيْضَاءِ بِالسُّلْتِ، فَقَالَ لَهُ سَعْدٌ: أَيُّهُمَا أَفْضَلُ؟، قَالَ: الْبَيْضَاءُ فَنَهَاهُ عَنْ ذَلِكَ، وَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُسْأَلُ عَنْ شِرَاءِ التَّمْرِ بِالرُّطَبِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيَنْقُصُ الرُّطَبُ إِذَا يَبِسَ؟، قَالُوا: نَعَمْ، فَنَهَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ نَحْوَ مَالِكٍ.

د زید ابو العیاش نه روایت دې فرمائی چه دسعدبن ابی العاص رضی الله عنه نه مې دغنمو په سلت باندې دخرڅولو متعلق تپوس وکړو نوسعد ووئیل په دوی دواړوکښې کوم یو دیر ښه وي؟زید ووئیل چه غنم، نوهغه بیاددې نه منع اوفرمائیله اووئې وئیل چه ماد نبی علیه السلام نه اوریدلي دي کله چه دتازه کهجوروپه وچوکهجوروباندې دخرڅولو متعلق تري تپوس وکړې شونو وئې وئیل ایاتازه کهجوري چه کله اوچې شي نوکمیږي؟ صحابه کراموعرض وکړو هو؟نوددې نه ئې هم منع اوفرمائیله، امام ابوداود فرمائی چه دا روایت اسماعیل بن ابی امیه هم د مالك په شان نقل کړې دې.

---

(1): صحیح مسلم/المساقاة ۲۳ (۱۶۰۲)، سنن الترمذي/البیوع ۲۲ (۱۲۳۹)، السیر ۳۶ (۱۵۹۶)، سنن النسائي/البیعة ۲۱ (۴۱۸۹)، البیوع ٦٤ (٤٦٢٥)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۴۱ (۲۸٦۹)، (تحفة الأشراف: ۲۹۰٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۹/۳، ۳۷۲) (صحیح)

(2): سنن الترمذي/البیوع ۱٤ (۱۲۲۵)، سنن النسائي/البیوع ۳٤ (٤٥٥۹)، سنن ابن ماجه/التجارات ۵۳ (۲۲٦٤)، (تحفة الأشراف: ۳۸٥٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البیوع ۱۲ (۲۲)، مسند احمد (۱۷۵/۱، ۱۷۹) (صحیح)

﴿أَنَّ زَيْدًا أَبَا عَيَّاشٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَأَلَ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ عَنِ الْبَيْضَاءِ بِالسُّلْتِ فَقَالَ لَهُ سَعْدٌ أَيُّهُمَا أَفْضَلُ قَالَ الْبَيْضَاءُ. فَنَهَاهُ عَنْ ذَلِكَ ..............عَنْ ذَلِكَ﴾

## شرح الحديث من حيث الفقه:

مضمون د حديث دا دې چه يو سړي د سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه نه دا مسئله اوتپوسله چه آيا د حنطة بيع په سلت سره جائز ده؟ سلت د شعير يو عمده قسم وی چه د هغې قشر (پوستکې) باريک وی، يعنی اعلی قسم وربشې، کوم چه په عوامو کښې په جو پيمبری سره مشهور ده، نو په دې باندې سعد رضي الله عنه تپوس اوکړو چه په دې دواړو کښې ښه کوم يو دې؟ تپوس کونکی جواب ورکړو چه ښه خو غنم وی. هغوی چه دا جواب واؤريدو نو د بيع نه ئې منع اوفرمائيله.

دا حديث د احاديث مشکله نه دې غير واضح المعنی دې، ځکه چه نه ده معلومه چه د سائل غرض د بيع نسيئة نه دې يا يدا بيد نه، که د سوال تعلق د بيع نسيئة نه دې نو بيا خو د دې مسئلې حکم واضح دې چه بالاتفاق ناجائز دې دا دواړه د اموال ربويه نه دې، نو بيا د افضل او غير افضل متعلق د سوال کولو څه معنی؟ او که مراد د دې بيع نه هغه ده چه يدا بيد وی نو بيا په دې کښې دوه احتمالات دی، متفاضلا يا متساويا، که متساويا مراد وی نو بيا خو بالاتفاق جائز دې، او که متفاضلا مراد دې نو په دې صورت کښې هم ائمه ثلاث او د جمهورو په نزد خو جائز دې خو دا صورت د امام مالک رحمه الله په نزد ناجائز دې، ځکه چه د هغوی په نزد لکه چه مخکښې تير شو حنطه او شعير متحد الجنس دی، په دې صورت کښې د سعد رضي الله عنه جواب د به د مالکيانو د مسلک مطابق وی کيدې شی د هغوی رائې هم د امام مالک رحمه الله موافق وی، خو په دې صورت کښې د سعد رضي الله عنه استدلال کول په دې حديث سره کوم چه هغوی ذکر اوفرمائيلو يعنی بيع التمر بالرطب نه بيع متساويا مراد دې نه متفاضلا، بيا د سعد رضي الله عنه په خپله مسئله کښې د دې حديث نه استدلال کول څنګه صحيح کيدې شی په دې وجه مونږ وئيلې وو چه دا حديث مشکل دې.

### بيع الرطب بالتمر کښې د امام صاحب اختلاف او دليل:

بيع الرطب بالتمر والا مسئله خپله اختلافی دی او د علماء کرامو په مينځ کښې مشهور دې هغه دا چه بيع الرطب بالتمر متساويا د جمهور علماء ثلاثه او صاحبينو په نزد هم د دې حديث په بناء باندې ناجائز دی، ځکه چه رسول الله ﷺ د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه تپوس فرمائيلې وو چه آيا رطب د خشک کيدو نه پس کميږی، نو صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو جی کميږی ———— په دې باندې رسول الله ﷺ د دې نه منع اوفرمائيلو، ځکه چه فی الحال مساوات مونډلې کيږی خو بيا په مستقبل کښې بعد اليبس مساوات باقی نه پاتې کيږی، خو په دی مسئله کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله رائې د جمهورو خلاف د جواز بيع دې هغوی فرمائی ځکه چه رطب د دوه حالو نه خالی نه دې، يا هغه د جنس التمر نه وی يا نه. که من جنس المتر وی نو چه څنګه بيع التمر بالتمر متساويا بالاتفاق جائز دې، هم دغه شان دا هم جائز کيدل پکار دی، او که شق ثانی واخستلې شی يعنی دا چه رطب من جنس

التمر نه وی بلکه خلاف جنس نه دي نو په دې باره کښې خپله په حدیث کښې تصریح ده ﴿ واذا اختلف الجنسان فبیعوا کیف شئتم ﴾ پس حاصل دا چه که رطب د تمر د جنس نه وی نو د اول حدیث د وجې نه دا بیع جائز کیدل پکار دی، او که د خلاف جنس نه وی نو بیا د آخر حدیث د وجې نه دا بیع ناجائز کیدل پکار دی خو دا حدیث سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه په کوم کښې چه رسول الله ﷺ دا تپوس اوفرمائیلو ﴿اینقص الرطب اذا یبس ﴾ د امام ابوحنیفة رحمه الله خلاف دې د دې جواب صاحب هدایه وغیره دا ورکړې دې چه د دې حدیث بنیاد په زید بن عیاش باندې وهو مجهول، او یو جواب دا ورکړې شوې دې چه دا حدیث په بیع نسیئة باندې محمول دې لکه چه د هم دې حدیث دویم طریق کښې صراحة را روان دې، ﴿ نهی رسول الله ﷺ عن بیع الرطب بالتمر نسیئة وفی حاشیة البذل عن البحر الرائق لو صح الحدیث فهو مخالف للروایات الشهیرة التمر بالتمر مثلا بمثل، واذا اختلفا فکیف شئتم ﴾

زید بن عیاش چه د چا کنیت ابو عیاش دې د دې راوی په مجهول او معروف، هم دغه شان په ثقه او ضعیف کیدو کښې د علماء رجال اختلاف دې، په بذل المجهود کښې دا ټول اختلاف ذکر شوې دې هغې ته دې رجوع اوکړې شی.

والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۳۳٦۰]( ) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ يَعْنِي ابْنَ سَلَّامٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَنَّ أَبَا عَيَّاشٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ، يَقُولُ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الرُّطَبِ بِالتَّمْرِ نَسِيئَةً"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عِمْرَانُ بْنُ أَبِي أَنَيْسٍ، عَنْ مَوْلًى لِبَنِي مَخْزُومٍ، عَنْ سَعْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

د زید ابو العیاش نه روایت دې فرمائی چه دسعد بن أبي العاصف رضي الله عنه نه مې اوریدلی دی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلی ده دخرخولودتازه کهجوروید او چوکهجورو په طور د قرض سره. امام ابوداود فرمائی چه دا روایت عمران بن أبی أنس هم دسعد نه نقل کړې دې.

## بَابٌ فِي الْمُزَابَنَةِ

### د مزابنه بیان

**د بیع مزابنة تعریف او وجه تسمیه** :

د بیع مزابنه تعریف دا دې ﴿ بیع ما علی الشجر من التمر بالتمر المجذوذ کیلا ﴾ یعنی د باغ د مالک د هغه کهجورو کومې چه په اونو باندې لګیدلې وی اندازه لګولو سره د هغه کهجورو په بدله کښې کیل کولو سره خرخول کوم چه په زمکه باندې شوکیدلې پرتې وی ځکه چه د اونو د کهجورو مقدار صرف په اندازه سره متعین کړې شوې دې په دې وجه داسې ځان پوهه کړئ چه دا بیع التمر بالتمر جزافا دې نه کیلا، او په دې صورت کښې دکمی زیاتی قوی احتمال دې چه هغه ربا ده، هم په دې وجه دا بیع بالاجماع ناجائز ده، دا ماخوذ دې د زبن نه بمعنی الدفع، په دې بیع کښې چونکه ظن غالب وی د دې خبرې چه

( ): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۸٥٤) (شاذ)

متعاقدین کښې ډېر زیاته فائده وی او د دویم نقصان چه د هغې علم روستو کیږی، نو اوس هغه د نقصان د علم نه پس کوشش کوی د دې بیع د فسخ کولو، او د دې چه کوم مقابل دې هغه د فسخ دپاره نه تیاریږی، د هغه نفع د بیع په باقی ساتلو کښې وی په دې وجه په دې کښې د جانبینو نه مدافعت وی هم په دې وجه دې بیع ته مزابنه وائی.

[۳۳۶۱](١)حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ بِالتَّمْرِ كَيْلًا، وَعَنْ بَيْعِ الْعِنَبِ بِالزَّبِيبِ كَيْلًا، وَعَنْ بَيْعِ الزَّرْعِ بِالْحِنْطَةِ كَيْلًا".

دابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه الصلاة والسلام منع فرمائیلی ده د خرڅولو دکهجورو نه په کهجورو باندې په پیمانه کولوسره اوهمدارنګی د خرڅولو د انګورونه په اوځکوباندې په پیمانه کولوسره او همدارنګي دخرڅولود فصل په وربو باندې په پیمانه کولوسره.

قوله: ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ بِالتَّمْرِ كَيْلاً وَعَنْ بَيْعِ الْعِنَبِ بِالزَّبِيبِ كَيْلاً وَعَنْ بَيْعِ الزَّرْعِ بِالْحِنْطَةِ كَيْلاً ﴾

## شرح الحديث :

یعنی رسول الله ﷺ منع اوفرمائیله د هغه کهجورو د بیع نه کوم چه په اونه باندې لګیدلې وی د هغه کهجورو په بدله کښې کومې چه شوکیدلې دی په کیل کولو سره، د کیلا تعلق د هغه کهجورو سره دې کوم چه په زمکه باندې راشوکیدلې پرتې وی، ځکه چه کومې په اونه کښې دی د هغې ناپ او کیل کول خو ممکن نه دې، او هم دغه شان ئې منع اوفرمائیله رسول الله ﷺ د انګورو د بیع نه چه په اونو باندې دې د اوسکو په بدل کښې اوسکو لره په کیل سره، او دریم جزء د حدیث دا دی چه منع اوفرمائیله رسول الله ﷺ د ولاړ فصل د خرڅولو نه د غنمو په بدل کښې کیل کولو سره.

وجه د منع ښکاره ده چه د دې ټولو بیوعو بنیاد په تخمین باندې دې چه په هغې کښې د تفاضل احتمال قوی دې کوم چه ربا ده د اتحاد دجنس د وجې نه. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة بنحوه، قاله المنذري

# بَابٌ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا

## د بیع العرایا بیان

[۳۳۶۲](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رَخَّصَ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا بِالتَّمْرِ وَالرُّطَبِ".

---

(١): صحيح مسلم/البيوع ١٤ (١٥٤٢)، (تحفة الأشراف: ٨٢٧٣، ٨١٣١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ٨٢ (٢١٨٥)، سنن النسائي/البيوع ٣٠ (٤٥٣٧)، ٣٧ (٤٥٥٣)، سنن ابن ماجه/التجارات ٥٤ (٢٢٦٥)، موطا امام مالك/البيوع ٨ (١٠)، مسند احمد (٢/٧، ١٦٨) (صحيح)

(٢): سنن النسائي/البيوع ٣١ (٤٥٤١)، (تحفة الأشراف: ٣٧٢٣، ٣٧٠٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ٧٥ (٢١٧٣)، ٨٢ (٢١٨٤)، ٨٤ (٢١٨٨)، المساقاة ١٧ (٢٣٨٠)، صحيح مسلم/البيوع ١٤ (١٥٣٩)، سنن الترمذي/البيوع ٦٣ (١٣٠٢)، سنن ابن ماجه/التجارات ٥٥ (٢٢٦٨)، موطا امام مالك/البيوع ٩ (١٤)، مسند احمد (١٨١/٥، ١٨٢، ١٨٨، ١٩٢)، سنن الدارمي/البيوع ٢٤ (٢٦٠٠) (صحيح)

زید بن ثابت دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ په بیع عرایا (وقف کړې شوي. کښې اوچې اولدې کهجوري دیوبل په بدل کښې دورکولو اجازت) ورکړی دې.

**قوله:** ﴿ أَخْبَرَنِي خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- رَخَّصَ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا بِالتَّمْرِ وَالرُّطَبِ ﴾

## د عرایا په حقیقت او مصداق کښې اختلاف د ائمة :

عرایا د عریة جمع ده، عریه په معنی د عطیه، د دې جمع عرایا لکه عطیه جمع د عطایا، په عریه کښې د جمهور علماء او احنافو اختلاف دې. د دې په حکم کښې هم او حقیقت کښې هم، پس وړاندې مستقل باب را روان دې تفسیر العرایا د جمهورو په نزد عرایا د بیع د قبیلې نه دې، په بلکه د بیع مزابنه یو فرد دې.

او کوم حقیقت چه د بیع المزابنة دې د جمهورو په نزد هم حقیقت د عرایا دې، لکن لا مطلقا بل فی مقدار مخصوص، یعنی بیع مزابنه چه د هغې تفسیر پورته باب کښې تیر شوې دی، هغه عند الجمهور په یو مخصوص مقدار کښې جائز دې، او د هغې نه زائد کښې جائز نه دې، د هغه مقدار نه که زیاتی وی نو بیا به د هغې نوم بیع العریة نه وی بلکه بیع المزابنة به وی چه ممنوع دې، او هغه مخصوص مقدار څه دې د دې وړاندې مستقل باب را روان دې، پس امام نووی رحمه الله چه د عریه کوم تعریف کړې دې د هغې خلاصه دا ده چه یو سړې چه هغه سره اوچې کهجورې دی هغه یو باغ ته تلو سره داسې معامله اوکړی چه د خپل باغ په هغه ځو اونو باندې چه کومه میوه ده په یو خارص سره د هغې خرص اوکړی یعنی دا چه په دې باندې چه کومې شنې کجهورې لګیدلې دی د خشک کیدو نه پس د دې به څه مقدار وی نو هم د دې مقدار برابر مانه دا کهجورې واخله او دا اونې ماته حواله کړه پس هغوی دواړه تقابض فی المجلس اوکړی مشتری د کهجورو هغه مقدار صاحب نخل ته حواله کړی او صاحب نخل هغه نخیل لره مشتری ته حواله کړی، خو په مخصوص مقدار کښې دننه یعنی ما دون خمسة اوسق، او که هغه کهجورې پوره پنځه وسق وی په دې کښې د امام شافعی رحمه الله دوه قوله دی، اصح القولین د عدم جواز دې [1] او د احنافو په نزد د بیع مزابنة هیڅ فرد هم جائز او حلال نه دې، او عریه چه د هغې حقیقت عند الجمهور بیع ده. د احنافو په نزد د دې حقیقت بیع نه ده بلکه تبادلة فی الهبة ده چه د هغې شکل دا دې چه هغه سړې د لونې باغ والا دې هغه د خپل باغ ځو اونو لره یعنی هغه میوو لره یو غریب سړی ته هبه کړی چه هغه غریب شخص هم د دې اونو د میوې نه منتفع کیږی، پس هغه نادار سړې یعنی معری له وقتا فوقتا په دې باغ کښې د دې اونو نه د میوو اخستلو دپاره ورځی د هغه په دې بار بار تلو راتلو باندې هغه باغ والا ته تکلیف رسیږی ځکه چه سره د خپل اهل و عیال په باغ کښې مقیم دې نو په دې باندې هغه باغ والا د دې تکلیف نه د بچ کیدو دپاره دا صورت اختیاروی چه هغه دې معری له ته دا وائی چه ته اندازه کولو سره دا اوښایه چه په

---

[1] د بذل په عبارت کښې دلته په نقل کښې د کاتب نه خطاء واقع شوه چه په ځائې د ﴿لا یجوز﴾ په هغې کښې ﴿یجوز﴾ لیکلې شوې دې، فلیحرر.

دي اونو باندي چه کومه میوه ده هغه به څومره وی چه هم د هغې په اندازه مونږ تاته تمر یعنی شوکولې شوې کهجورې د اوچو میوو دشوکولو په وخت کښې ادا کړو. اوس ظاهره دا ده چه آیا دې غریب ته په دې کښې انکار کیدې شی هغه ته چه څه ملاویږی ویړیا دی. باقاعده څه بیع خو ده نه، هغه دا منظور وی او د دې په جائز کیدو کښې هیڅ د تردد خبره نشته، پس احناف هم دا وائی چه احادیثو کښې د عریه ذکر راغې د هغې حقیقت دا دې [۱]

یعنی د معری لره معری له ته دشنو کهجورو په بدله کښې چه کومې په اونو باندې لګیدلې دی اخستلو سره د هغې په بدل کښې تمر یعنی اوچې کهجورې ورکول په موطاء محمد کښې هم د امام مالک رحمه الله نه د عریه هم دا تفسیر منقول دې د احنافو په نزد دا معامله صرف د واهب او موهوب له ترمینځه ده او د شوافعو او حنابله په نزد چونکه د عریه حقیقت د بیع دې یعنی د بیع مزابنه یو فرد لهذا د هغوی په نزد د دې قسم معامله هرچا سره کیدې شی لکه څنګه چه بیع وی، د هغوی په نزد د دې معاملې متعلق واهب او موهوب له سره نه دې، په دې وجه دا هغوی بیع منلې ده او د هر سړی سره په مخصوص مقدار کښې دې بیع لره جائز کړه، اوس دا چه هغه مقدار مخصوص کړې دې د دې بیان وړاندې په مستقل باب کښې را روان دې، د مالکیانو مسلک په دې کښې بین بین دې پس حضرت شیخ په الابواب والتراجم کښې مذاهب اربعه په دې باره کښې داسې لیکلې دی، وحاصل اختلاف الائمة فی ذلک انها رجوع الواهب فی هبته بعوض عند الحنفية وشراء الواهب هبته عند المالكية وقال الشافعی واحمد ان هذا القدر ای مقدار خمسة اوسق مستثنی من النهی عن المزابنة فيجوز بيعه مع الواهب وغيره، کذا فی هامش اللامع آه.

[۳۳۶۳] ([۲]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ التَّمْرِ بِالتَّمْرِ، وَرَخَّصَ فِي الْعَرَايَا أَنْ تُبَاعَ بِخَرْصِهَا يَأْكُلُهَا أَهْلُهَا رُطَبًا".

دسهل بن أبی ختمة رضی الله عنه نه روایت دبې فرمائی چه نبی صلی الله علیه وسلم منع فرمائیلی ده دخرڅولو د کهجورو په کهجوروا وپه بیع عرایا کښې ئې دخرڅولو اجازت ورکړې دې ددې دپاره چه صارفینو ته تازه کجوري مهیا کړې شي.

---

[۱] په بذل کښې د بدائع نه نقل کړې دې چه د احنافو په نزد د عریه تفسیر هغه دې کوم چه امام مالک رحمه الله په موطاء کښې ذکر فرمائیلې دې ﴿ وهو يكون لرجل نخيل فيعطي رجلا منها ثمرة نخلة او نخلتين يلقطهما لعياله ثم يثقل عليه دخوله حائطه فيساله ان يتجاوز له عنهما علي ان يعطيه بمكيلتها تمر عند صرام النخل، وذلك مالا باس به عندنا، لانه لا بيع هناك بل التمر كله لصاحب النخل فان شاء سلم له ثمر النخل وان شاء اعطاه بمكيلتها من التمر الا انه سماه الراوي بيعا لتصوره بصورة البيع لا ان يكون بيعا حقيقة بل هو عطية الا تري انه لم يملكه المعري له لانعدام القبض فكيف يجعل بيعا، ولانه لو جعل بيعا لكان بيع التمر بالتمر الي اجل وانه لا يجوز بلا خلاف. الي آخر ما في البذل)

[۲]: صحيح البخاري/البيوع ۸۳ (۲۱۹۱)، المساقاة ۱۷ (۲۳۸٤)، صحيح مسلم/البيوع ١٤ (١٥٤٠)، سنن الترمذي/البيوع ٦٤ (١٣٠٣)، سنن النسائي/البيوع ٣٣ (٤٥٤٨)، (تحفة الأشراف: ٤٦٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤) (صحيح)

# بَاب فِي مِقْدَارِ الْعَرِيَّةِ

## دبیع عرایا د مقدار بیان

[۳۳٦٤]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ الْحُصَيْنِ، عَنْ مَوْلَى ابْنِ أَبِي أَحْمَدَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ لَنَا الْقَعْنَبِيُّ: فِيمَا قَرَأَ عَلَى مَالِكٍ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ وَاسْمُهُ قُزْمَانُ مَوْلَى ابْنِ أَبِي أَحْمَدَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رَخَّصَ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ" شَكَّ دَاوُدُ بْنُ الْحُصَيْنِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدِيثُ جَابِرٍ، إِلَى أَرْبَعَةِ أَوْسُقٍ.

ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دعرایادخرڅولو اجازت ورکړې دې خوپه دې شرط چه دپنځه وسقه داندازې نه کم وي یاپه پنځه وسقو کښې داخل وي ځکه چه عموما دخوراك دپاره ددې نه زیات ته ضرورت نه پیښیږي، امام ابوداود وائی دجابر په حدیث کښې دعرایا اندازه څلور وسقه ښودل شوي ده.

### د مسئلة الباب تشريح او په هغې کښې اختلاف ائمة :

یعنی په کوم مقدار کښې چه عریه جائز ده هغه څه دې؟ د ما دون خمسة اوسق په جواز کښې خو د جمهورو اتفاق دې او د ما فوق خمسة اوسق په عدم جواز باندې اتفاق دې، او خمسة اوسق یعنی پوره پنځه وسقه کښ، د دې په باره کښې په روایت کښې شک د راوی دې، لکه چه په حدیث الباب کښې دی، پورته د امام نووی رحمه الله په کلام کښې تیر شوې دی چه هغوی په دې کښې دوه اقوال دی، او اصح قول عدم جواز دې، ابن المنذر فرمائی چه په پنځه وسقو کښې دننه رخصت مشکوک فیه دې، او نهی عن المزابنة ثابت دې، پس ضروری ده چه دې پنځه وسقو کښې عریه مباح نه شی سوا د قدر متیقن نه، او بیا وړاندې فرمائی چه دې حدیث لره جابر رضی الله عنه نه هم روایت کړې دې ﴿ فانتهى به الى اربعة اوساق ﴾ یعنی د جابر رضی الله عنه په روایت کښې صرف څلور وسقه مذکور دی لهذا صرف هم په دې مقدار کښې به عریه مباح وی او د دې نه په زیات کښې محظورو ممنوع، ﴿ هذا القول صحيح وقد الزمه المزني الشافعي وهو لازم على اصله ومعناه قاله الخطابي ﴾ یعنی د امام مزنی رحمه الله تحقیق هم دا دې ([2])او هغوی د امام شافعی رحمه الله مسلک هم دا منلې دې لکه د امام شافعی رحمه الله قاعده ده آهدا اشاره ده هغه طرف ته کوم چه د امام شافعی رحمه الله نه منقول دی ﴿ اذا صح الحديث فهو مذهبي ﴾ د امام احمد رحمه الله په نزد جواز صرف په مادون الخمسة کښې او د مالکیانو په نزد راجح قول د پنځه وسقو د جواز دې او د شوافعو رحمهم الله په نزد عدم جواز دې د حنابله په شان (من التحفة وغيره) والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، قاله المنذري

[1]: صحيح البخاري/البيوع ۸۳ (۲۱۹۰)، والمساقاة ۱۷ (۲۳۸۲)، صحيح مسلم/البيوع ۱٤ (۱۵٤۱)، سنن الترمذي/البيوع ٦۳ (۱۳۰۱)، سنن النسائي/البيوع ۳۳ (٤٥٤٥)، (تحفة الأشراف: ۱٤۹٤۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۳۷) (صحيح)

[2] ) کوم چه د ابن المنذر دې یعنی څلور وسقه)

# بَاب تَفْسِيرِ الْعَرَايَا

## دعرایا تفسیر

[۳۳٦۵]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: "الْعَرِيَّةُ الرَّجُلُ يُعْرِي النَّخْلَةَ أَوِ الرَّجُلُ يَسْتَثْنِي مِنْ مَالِهِ النَّخْلَةَ أَوِ الِاثْنَتَيْنِ، يَأْكُلُهَا، فَيَبِيعُهَا بِتَمْرٍ".

دعبد ربه بن سعيد الأنصاري نه روایت دې وئیلي ئي دي عریه داده چه یوسړې چاته دکجورې ونه یا په ټول باغ کښې یوه ونه دوه ونې د استعمال دپاره جداکړې اوهغه داونه دو چوکجورو په بدل کښې واخلي اویا ددې عوض خرڅ کړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ قَالَ الْعَرِيَّةُ الرَّجُلُ يُعْرِي الرَّجُلَ النَّخْلَةَ أَوِ الرَّجُلُ يَسْتَثْنِي مِنْ مَالِهِ النَّخْلَةَ أَوْ الِاثْنَتَيْنِ يَأْكُلُهَا فَيَبِيعُهَا بِتَمْرٍ ﴾

یعنی یو سړې (صاحب نخل) دویم سړی ته ورکړی ثمر د نخل بیا روستو معری له معری لره هغه ثمر نخل خرڅوی د تمر په بدل کښ، حضرت په بذل کښې فرمائی چه دعریه دا تفسیر په دې صورت کښې د احنافو د مسلک موافق دې[2] او که ﴿ یبیعها ﴾ معنی دا واخستلې شی چه هغه معری له د معری نه علاوه د بل سړی په لاس هغه خرڅ کړی نو بیا به بیشکه زمونږ د مذهب خلاف وی، او دویم شکل چه کوم په دې حدیث کښې تفسیر عریه ذکر شوې دې یعنی ﴿ او الرجل یستثنی من ماله ﴾ د دې مطلب دا دې چه یو سړی د خپل باغ د بیع په وخت یو کرت یا دوه کرته استثناء اوکړی یعنی هغه خرڅ نه کړی د خپل خوراک دپاره خو بیا روستو د هغه دواړه اونو میوو لره د تمر په بدله کښې د هم هغه سړی په لاس خرڅ کړی، د عرایا تفسیر بالتفصیل په رومبی باب کښې تیر شوې دې.

[۳۳٦٦]() حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ عَبْدَةَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: "الْعَرَايَا أَنْ يَهَبَ الرَّجُلُ لِلرَّجُلِ النَّخَلَاتِ، فَيَشُقُّ عَلَيْهِ أَنْ يَقُومَ عَلَيْهَا، فَيَبِيعُهَا بِمِثْلِ خَرْصِهَا".

دابواسحق نه روایت دې فرمائی چه عرایادې ته وئیلې شي چه یو کس چاته دیوخو ونو میوه هبه کړي دخوراك وغیره دپاره) اوبیامالك ته ددغه کس راتلل اواوسیدل گران شي اوهغه د مالك په لاس باندې د میوې اندازه ولګئ ددې ونو اویائې په تازه کجوروباندې خرڅې کړي.

﴿ عن ابن اسحاق قال : العرایا ان یهب الرجل الرجل النخلات فیشق علیه ان یقوم علیها فیبیعها بمثل خرصها ﴾ په بذل کښې د دې په باره کښې لیکلې دی وهذا التفسیر ایضا موافق لما فسر به ابوحنیفة آهـ غور اوکړئ په فهم کښې په مو راشی، خو د بیع نه به صورت د بیع مراد وی.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۵۱) (صحیح الإسناد)
[2] خو د بیع د صورت نه به بیع مراد وی کمالا یخفی)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۲۸۵) (صحیح الإسناد)

## باب فِي بَيْعِ الثِّمَارِ قَبْلَ أَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهَا

### د ميوې د پخيدلو نه مخکښې د هغې د خرڅولو بيان

يعنی د اونو د ميوو بيع د هغه ميوو د صلاحيت ښکاره کيدو نه مخکښې کول، بدو په معنی د ښکاره والی، او د صلاح نه مراد قابليت دانتفاع.

[۳۳۶۷]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا، نَهَى الْبَائِعَ وَالْمُشْتَرِيَ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام د ميوې دتياريدو اود پخيدلو ديقين راتلونه مخکښې دخرڅولونه منع فرمائيلې ده، اغستونکې اوخرڅونکې دواړه ئې منع کړي دي.

**مسئلة مترجم بها صور مختلفة مع بيان الحكم :**

ځان پوهول پکار دی چه د بيع ثمار درې صورتونه دی قبل الظهور، قبل بدو الصلاح او بعد بدو الصلاح، په دې کښې د ړومبی صورت حکم دا دې چه بالاجماع جائز نه دې ځکه چه دا بيع معدوم ده ميوې لا ښکاره شوې هم نه وی، صرف ګلونه (يعنی غوټۍ) ښکاره کيدل شروع شوې دی، او د دريم صورت حکم دا دې ﴿ انه يجوز بالاجماع ﴾ يعنی د قابليت دانتفاع نه پس، او درميانی صورت کوم چه په ترجمة الباب او حديث الباب کښې مذکور دې يعنی بيع الثمار قبل بدو الصلاح، د هغې درې صورتونه دی بشرط الترک علی الاشجار، يعنی اخستونکې د بائع سره دا شرط ږدی چه زه به فی الحال دا ميوې شوکولو سره ستا اونې نه فارغوم، دا بالاجماع ناجائز ده، او دويم صورت ئې دا دې بيع بشرط القطع، يعنی بائع دا شرط اولګولو چه د دې ميوو په داسې حال کښې شوکولو سره به زما اونې فارغوی. دا بالاتفاق جائز دې، دريم صورت اطلاق او عدم تقييد يعنی چه نه د ترک شرط لګولې شوې وی او نه د قطع، بلکه بيع ئې مطلق پريخودلې وی، په دې صورت کښې د احنافو په نزد جائز ده او د جمهورو په نزد ناجائز، لهذا په حديث الباب کښې چه دا راغلی دی ﴿ نهی عن بيع الثمار حتی يبدو صلاحها ﴾ دا زمونږ په نزد په بيع بشرط الترک باندې محمول دې، والله تعالی اعلم كذا الذكر من الشروح.

﴿ والحديث اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری ﴾

[۳۳۶۸]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى يَزْهُوَ، وَعَنِ السُّنْبُلِ حَتَّى يَبْيَضَّ وَيَأْمَنَ الْعَاهَةَ، نَهَى الْبَائِعَ وَالْمُشْتَرِيَ".

---

[1]: صحيح البخاري/الزكاة ۵۸ (۱۴۸۶)، البيوع ۸۲ (۲۱۸۳)، ۸۵ (۲۱۹۴)، ۸۷ (۲۱۹۹)، صحيح مسلم/البيوع ۱۳ (۱۵۳۴)، سنن الترمذي/البيوع ۱۵ (۱۲۲۶)، سنن النسائي/البيوع ۲۶ (۴۵۲۶)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۲ (۲۲۱۴)، (تحفة الأشراف: ۸۳۰۲، ۸۳۵۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البيوع ۸ (۱۰)، مسند احمد (۲/۷، ۸، ۱۶، ۴۶، ۵۶، ۵۹، ۶۱، ۸۰، ۱۲۳)، سنن الدارمي/البيوع ۲۱ (۲۵۹۷) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/البيوع ۱۳ (۱۵۳۵)، سنن الترمذي/البيوع ۱۵ (۱۲۲۷)، سنن النسائي/البيوع ۳۸ (۴۵۵۵)، (تحفة الأشراف: ۷۵۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۵) (صحيح)

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی ﷺ دکجورو د پخیدونه مخکښې ددې دخرڅولونه منع فرمائیلي ده اودوګي دخرڅولونه ترڅوچه پاخه شوي نه وی اوسپین شوي نه وی اوتردې چه دافت نه محفوظي شي اوهمدارنګي خرڅونکي ئې دخرڅولونه اواخستونکي ئې داخستلونه منع کړې دې.

یعنی منع اوفرمائیله نبی کریم ﷺ د تمر د بیع نه چه ترڅو پورې دا تمر رنګدار نه شی، په کهجورو باندې رنګ راتلل سوروالې یا زیړوالې وغیره دا علامت دې ددې د صلاح (صحیح کیدو)، لهذا ددې نه مخکښې به دا نه شی خرڅولې، او دغسې منع اوفرمائیله نبی کریم ﷺ د سنبل (وګی) د بیع نه، یعنی د غنمو وغیره د وګې (بمبلو) د بیع نه، چه ترڅو پورې په دې غنمو کښې سپین والې رانه شی، او دا د آسمانی آفت نه محفوظ نه شی. په دې آخری جمله کښې اشاره ده دنهی علت طرف ته، یعنی ددې ځیزونو بیع که بالکل په شروع کښې اوکړې شی نو پته نه لګی چه دا په کوم یو آسمانی آفت سره ضائع شی چه په دې کښې د اخستونکی نقصان ښکاره دې، والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[۳۳۶۹] (¹) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ خُمَيْرٍ، عَنْ مَوْلًى لِقُرَيْشٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْغَنَائِمِ حَتَّى تُقْسَمَ، وَعَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى تُحْرَزَ مِنْ كُلِّ عَارِضٍ، وَأَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ بِغَيْرِ حِزَامٍ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی ﷺ دتقسیم نه مخکښې دغنیمت د خرڅولو نه منع فرمائیلی ده اودکجورو دخرڅولونه ئې هم منع فرمائیلی ده ترڅوچه دافت نه محفوظي شي اوبغیردکمربند نه ئې د مونځ کولونه منع فرمائیلي ده.

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْغَنَائِمِ حَتَّى تُقْسَمَ وَعَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى تُحْرَزَ مِنْ كُلِّ عَارِضٍ وَأَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ بِغَيْرِ حِزَامٍ﴾

یعنی منع اوفرمائیله رسول الله ﷺ د مال غنیمت د بیع نه ترڅو چه هغه تقسیم شوې نه وی، ځکه چه د تقسیم نه پس هغه د سړی په ملکیت کښې راځی او هم دغه شان د کهجورو د بیع نه ترڅو چه هغه محفوظ نه شی د هر قسم عارض سماوی نه (عارض مثلاً تیزه هوا، سیلۍ یا ګلۍ وغیره) او د دې نه ئې هم منع اوفرمائیله چه یو انسان مونځ کوی تهبند لره بغیر د تړلو نه حزام یعنی کمر بند وغیره، مطلب دا دې چه د مانځه نه مخکښې تهبند لره ښه برابرولو سره تړل پکار دی چه د مانځه دوران هغه درست کول نه وی، د دې نه پس نور هم د دې مضمون دوه احادیث دی.

[۳۳۷۰] (²) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ خَلَّادٍ الْبَاهِلِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سَلِيمِ بْنِ حَيَّانَ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ مِينَاءَ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُبَاعَ الثَّمَرَةُ حَتَّى تُشْقِحَ، قِيلَ: وَمَا تُشْقِحُ؟ قَالَ: تَحْمَارُّ، وَتَصْفَارُّ، وَيُؤْكَلُ مِنْهَا".

---

¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵٤۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۸۷/۲، ٤٥۸، ٤۷۲) (ضعيف الإسناد)

²): صحيح البخاري/البيوع ۸٥ (۲۱۹٦)، ۸۷ (۲۱۹۸)، ۹۳ (۲۲۰۸)، صحيح مسلم/البيوع ۱۳ (۱٥۳٦)، (تحفة الأشراف: ۲۲٥۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۹/۳، ۳٦۱) (صحيح)

دسعید بن میناء نه روایت دې فرمائی چه دجابربن عبد الله ﷺ نه مې واوریدل چه وئیل ئې نبی ﷺ منع فرمائیلی ده دخرخولود میوې نه ترڅوچه شق شوي نه وی عرض اوکړې شو چه تشقح څه شي دې؟ نوونې فرمائیل چه سره اوزیړه شوي نه وی اودخوراك قابل شوي نه وي.

[۳۳۷۱](۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ الْعِنَبِ حَتَّى يَسْوَدَّ، وَعَنْ بَيْعِ الْحَبِّ حَتَّى يَشْتَدَّ".

دانس ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائیلي ده د خرڅولو دانګورونه ترڅو چه تورشوي نه وی اودخرڅولو دغلې نه ئې منع فرمائیني ده ترڅوچه پخه شوي نه وي.

[۳۳۷۲](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنِي يُونُسُ، قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا الزِّنَادِ، عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ قَبْلَ أَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهُ، وَمَا ذُكِرَ فِي ذَلِكَ. فَقَالَ: كَانَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، يُحَدِّثُ عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: "كَانَ النَّاسُ يَتَبَايَعُونَ الثِّمَارَ، قَبْلَ أَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهَا، فَإِذَا جَدَّ النَّاسُ، وَحَضَرَ تَقَاضِيهِمْ، قَالَ: الْمُبْتَاعُ قَدْ أَصَابَ الثَّمَرَ الدُّمَانُ، وَأَصَابَهُ قُشَامٌ، وَأَصَابَهُ مُرَاضٌ، عَاهَاتٌ، يَحْتَجُّونَ بِهَا، فَلَمَّا كَثُرَتْ خُصُومَتُهُمْ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَالْمَشُورَةِ يُشِيرُ بِهَا فَإِمَّا لَا فَلَا تَتَبَايَعُوا الثَّمَرَةَ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا، لِكَثْرَةِ خُصُومَتِهِمْ وَاخْتِلَافِهِمْ".

د یونس نه روایت دې چه دابوالزناد نه مې تپوس اوکړو چه د میوې خرڅول د پخیدلونه مخکښې څنګه دې؟ او په دې باره کښې دنبی ﷺ ارشادات څه دی؟ هغه اووئیل چه عروه بن زبیر دسهل بن أبی حثمة نه روایت کړې دې اوهغه دزید بن ثابت ﷺ نه روایت کړې دې چه فرمائیل ئې خلقوبه خپلې میوې د پخیدونه مخکښې خرڅولې لیکن کله به چه خلقو دشوکولو قصد اوکړو او ددې دوصول کولو وخت به راغې نوخریدار به وئیل چه په دې میوې دمان یا قشام مرض راغلې دې په دې وجه باندې به اغستونکی دا غوښتل چه په قیمت کښې کمې اوکړې شي اویاداچه بالکل قیمت ورنکړې او خرڅونکې به دې ته تیارنه وو، کله چه نبی ﷺ ته داقسم ډیرې جګړې راغلې نوخلقوته ئې بطور مشوره اوفرمائیله چه تاسو میوې مه خرڅوئ ترڅوچه ددې دبهترین کیفیت معلوم شوې نه وی څکه چه هغوی په دې سلسله کښې ډیرې جګړې او اختلافات کړې وو.

﴿ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ كَانَ النَّاسُ يَتَبَايَعُونَ الثِّمَارَ قَبْلَ أَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهَا الخ ﴾

زید بن ثابت ﷺ فرمائی چه په شروع کښې د خلقو عادت وو چه د ثمار بیع به ئې کوله قبل بدو الصلاح بیا چه به کله اخستونکو هغه میوې شوکولې او د اخستونکو د طرف نه د ثمن تقاضا وی نو اخستونکی وائی چه په میوو کښې فلانئ بیماری پیدا شوې ده او فلانئ بیماری پیدا شوې ده چه د هغې په وجه زمونږ ډیر لوئې نقصان اوشو. دمان او قشام او مراض دا ټول عوارض او بیمارئ دی کومې چه د میوو سره متعلق دی.

﴿ فَلَمَّا كَثُرَتْ خُصُومَتُهُمْ........ فَإِمَّا لَا فَلَا تَتَبَايَعُوا الثَّمَرَةَ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهُ ﴾

---

(۱): سنن الترمذي/البيوع ۲۱ (۱۲۲۸)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۲ (۲۲۱۷)، (تحفة الأشراف: ۶۱۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البيوع ۸(۱۱)، مسند احمد (۱۱۵/۳، ۲۲۱، ۲۵۰) (صحیح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۷۱۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ۸۵ (۲۱۹۳) تعليقاً (صحيح)

## شرح کلام الراوی:

د حدیث راوی زید بن ثابت ﷺ فرمائی چه کله دا قسم خصوصیتونه او جهګړې د دې خلقو ترمنیځه ډیرې شروع شوې نو رسول الله ﷺ په طور د مشورې او خیر خواهئ دا اوفرمائیل چه که تاسونه دانه شی کیدې یعنی داچه دجهګړونه ځان بچ کړئ اوپه خپل مینځ کښې جهګړه مه کوئ نوبیاتاسوددې میووبیع په داسې طریقه باندې ولې کوئ یعنی قبل بدو الصلاح.
د زید بن ثابت ﷺ مقصد دا دې چه د رسول الله ﷺ د طرف نه د بیع الثمار قبل بدو صلاحها ممانعت حتما او لازما نه دې چه د هغې د وجې نه دا بیع فاسده اومنلې شی بلکه دا قسم بیع صحیح ده او نهی د رسول الله ﷺ د طرف نه د عارض خصومت «د جګړې» په بناء باندې دې ﴿ فاما لا ﴾ مطلب دا دې ﴿ ای ان لم تستطیعوا ان لا تنازعوا ﴾ لکه چه په ترجمه کښې مونږ دا ښکاره کړه.

[۳۳۷۳]()حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهُ، وَلَا يُبَاعُ إِلَّا بِالدِّينَارِ أَوْ بِالدِّرْهَمِ إِلَّا الْعَرَايَا".

دجابر ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده دخرڅولو د میوې نه تردې چه ددې پوخوالې اوتیاریدل ښکاره شي او میوه به نه شی خرڅولې مګر په دینار یاپه درهم سره مګر عرایا ددې نه مستثنی دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ –صلی الله علیه وسلم– نَهَى عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهُ وَلَا يُبَاعُ إِلَّا بالدنانير او بالدراهم إِلَّا الْعَرَايَا ﴾

د دې آخری جملې مطلب دا دې چه په اونو باندې د لګیدلې میوو بیع د دراهمو او دنانیرو په عوض کښې پکار ده، یعنی د تمر مجذوذ په عوض کښې نه دی کیدل پکار، ځکه چه په دې صورت کښې به هغه بیع مزابنة شی چه هغه بالاتفاق ممنوع ده، خو د عرایا رسول الله ﷺ استثناء اوفرمائیله، دا استثناء د جمهورو په مسلک باندې استثناء متصل ده او د احنافو په نزد استثناء منقطع ده، لان العریة لیست ببیع عندهم.

والحدیث اخرجه ابن ماجة مختصرا، قاله المنذری

## بَابٌ فِي بَيْعِ السِّنِينَ

### د څو کالو پورې د ونې د میوې خرڅول درست نه دی

بیع السنین ته بیع معاومه هم وائی، یعنی د دوه یا درې کلونو میوه په یو کرت باندې اخستل په حدیث کښې د دې ممانعت راغلې دې او دا بالاجماع ناجائز ده ﴿ لانه بیع المعدوم ﴾ بلکه پکار دا ده چه د هر فصل بیع هم په هغه کال کښې اوشی.

[1]): صحيح البخاري/المساقاة ۱۶(۲۳۸۷)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۲(۲۲۱۶)، (تحفة الأشراف: ۲۴۵۴)، وقد أخرجه: سنن النسائي/البيوع ۳۶ (۴۵۲۷)، مسند احمد (۳/۳۶۰، ۳۸۱، ۳۹۲) (صحيح)

[۳۳۷٤](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَيَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حُمَيْدٍ الْأَعْرَجِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَتِيقٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ [۳۳۷۳] بَيْعِ السِّنِينَ، وَوَضَعَ الْجَوَائِحَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَصِحَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الثُّلُثِ شَيْءٌ، وَهُوَ رَأْيُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ.

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام منع فرمائيلی ده دڅو کالو پورې دوني دميوو د خرڅولونه «مثلا دوه پادرې کالو پورې ميوه خرڅه کړي اوخريدارئې دنقصان رسولونه منع کړې دې.

﴿ نَهَى عَنْ بَيْعِ السِّنِينَ وَوَضَعَ الْجَوَائِحَ ﴾ يعنی امر بوضع الجوائح، د وضع معنی ده ساقط کول او معاف کول، جوائح جمع ده د جائحة يعنی هم هغه عارض او آفت سماوی کوم چه ميوو لره خراب کړی، مطلب دا دې چه د جوائح د وجې نه د ميوو اخستونکو ته کوم نقصان اورسی نو د باغ مالکانو يعنی خرڅونکو لره هغه د نقصان مقدار معاف کول پکار دی، وړاندې د څو ابوابو نه پس مستقل باب راروان دې. ﴿ باب فی وضع الجائحة ﴾ دا عفو او وضع کومه چه د حديث په حکم کښې راغلې ده د جمهورو په نزد د استحباب دپاره ده، د هغوی په نزد دا حديث معروف او د احسان د قبيلې نه دې ځکه چه په مبيع کښې کوم نقصان د مشتری د قبض کولو نه پس اوموندلې شی، هغه په ضمان د مشتری کښې وی، اصولا بائع د هغې ذمه دار نه دې، د امام احمد رحمه الله او د ډيرو محدثينو په نزد امر د وجوب دپاره دې، د هغوی په نزد معاف کول واجب دی، وړاندې يو بل روايت هم را روان دې، باب فی تفسير الجائحة، په دې باندې به کلام هم هلته راشی.

وقال المنذري: اخرج النسائي الفصلين مفترقين، واخرج مسلم وابن ماجة عن بيع السنين.

[۳۳۷۵](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، وَسَعِيدِ بْنِ مِينَاءَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الْمُعَاوَمَةِ، وَقَالَ: أَحَدُهُمَا بَيْعُ السِّنِينَ".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام منع فرمائيلی ده د معاومه نه يعنی دڅو کالو پورې دوني د ميوو دخرڅولو نه.

**قوله:** ﴿نهی عن معاومة ﴾ د دې نه مراد هم هغه بيع السنين ده، دا لفظ د عام نه مشتق دې چه هغه ئې باب مفاعلت ته يوړو، او هم دغه شان د سنه نه مسانهه او د شهر نه مشاهره، او د يوم نه مياومه، يعنی روزانه او د ورځې ورځې.

والحديث اخرجه مسلم بأتم منه، واخرجه ابن ماجة، قاله المنذري

---

(١): صحيح مسلم/البيوع ۱۷ (۱۵۳٦)، سنن النسائي/البيوع ۲۹ (٤۵۳۵)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۳ (۲۲۱۸)، (تحفة الأشراف: ۲۲٦۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۰۹/۳)، ۲۹ (٤۵۳۵) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/البيوع ۱۷ (۱۵۳٦)، سنن ابن ماجه/التجارات ٤۵ (۲۲٦٦)، (تحفة الأشراف: ۲۲٦۱) (صحيح)

## بَابٌ فِي بَيْعِ الْغَرَرِ
### د دوکې والا بيعې بيان

[۳۳۷۶](۱) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ، وَعُثْمَانُ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ"، زَادَ عُثْمَانُ وَالْحَصَاةِ.

دابوهريرة رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی صلی الله علیه وسلم منع فرمائيلی ده ددوی دبيعي نه اود گيتې غورځولو د بيعي نه.

**قوله:** ﴿ نَهَى عَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ – زَادَ عُثْمَانُ – وَالْحَصَاةِ ﴾

غرر (دهوكه) يعنی هغه بيع چه په هغې كښې د بائع يا مشتری نقصان او غرر وی رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې نه منع فرمائيلې ده دا د يوې قاعدې كليې په طور ده چه په هغې كښې ډير بيوع داخليدې شی، مثلا د شئ مجهول بيع، د عبد آبق بيع، او هم دغه شان د هر غير مقدور التسليم بيع لكه بيع السمک فی الماء وبيع الطير فی الهواء، او بيع الحصاة دا ده چه احد المتعاقدين يو بل ته دا اوائی چه ﴿ اذا نبذت اليک الحصاة فقد وجب البيع ﴾ يعنی بائع يا مشتری بل ته داسې اوائی چه كله زه ستا طرف ته دا كانړې در اولم نو پوهه شه چه دا بيع منعقد شوه، او يا دا چه دا كانړې د دې گڼو بيزو كندک ته اولم كومه يوه چه پرې اولگيده د هغې بيع به منلې شی، په دې صورت كښې جهالت د مبيع موندلې شی.

والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۳۷۷](۲) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَهَذَا لَفْظُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعَتَيْنِ وَعَنْ لِبْسَتَيْنِ، أَمَّا الْبَيْعَتَانِ فَالْمُلَامَسَةُ وَالْمُنَابَذَةُ، وَأَمَّا اللِّبْسَتَانِ فَاشْتِمَالُ الصَّمَّاءِ، وَأَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ كَاشِفًا عَنْ فَرْجِهِ أَوْ لَيْسَ عَلَى فَرْجِهِ مِنْهُ شَيْءٌ".

د ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی صلی الله علیه وسلم منع فرمائيلی ده د دوه قسمه بيعي نه اود دوه قسمه لباس استعمالولو نه، په خريد وفروخت كښې بيع ملامسه او بيع منابذة او دوه قسمه كپړونه مراد دادې او په دوه قسمه جامو كښې يو قسم صماء دې يعنی چه انسان پرې دسرنه دخپو پورې پټيږي اود كپړې دويم قسم دادې چه يو سرې احتباء يعنی زنگنونه اوترې او كينې اوستر ښكاره پريږدې يا په شرمگاه باندې پرده وانه چوې.

**قوله:** ﴿ نَهَى عَنْ بَيْعَتَيْنِ وَعَنْ لِبْسَتَيْنِ أَمَّا الْبَيْعَتَانِ فَالْمُلَامَسَةُ وَالْمُنَابَذَةُ ﴾

---

[1] ): صحيح مسلم/البيوع ۲ (۱۵۱۳)، سنن الترمذي/البيوع ۹۷ (۱۲۳۰)، سنن النسائي/البيوع ۲۵ (٤٥٢۲)، سنن ابن ماجه/التجارات ۲۳ (۲۱۹٤)، (تحفة الأشراف: ۱۳۷۹٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۵۰، ۳۷٦، ٤۳٦، ٤۳۹، ٤۹٦)، سنن الدارمي/البيوع ۲۰ (۲۵۹٦) (صحيح)

[2] ): صحيح البخاري/الصلاة ۱۰ (۳٦۷)، البيوع ٦۲ (۲۱٤٤)، ٦۳ (۲۱٤۷)، اللباس ۲۰ (۵۸۲۰)، ۲۱ (۵۸۲۲)، الاستئذان ٤۲ (٦۲۸٤)، سنن النسائي/البيوع ۲٤ (٤۵۱۹)، سنن ابن ماجه/التجارات ۱۲ (۲۱۷۰)، (تحفة الأشراف: ٤۱۵٤، ٤۵۲٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البيوع ۱ (۱۵۱۲)، مسند احمد (۳/٦، ۵۹، ٦٦، ٦۸، ۷۱، ۹۵)، دي/البيوع ۲۸ (۲٦۰٤) (صحيح)

## شرح الحدیث:

یعنی رسول الله ﷺ د دوه قسمه بیع نه منع اوفرمائیله او د دوه قسمه جامو نه، د بیعتان نه مراد بیع ملامسة او منابذه ده او د دواړو تفسیر په بل روایت کښې را روان دی، او د لبستین مصداق په حدیث کښې یو خو اشتمال صماء بیان کړې شوې دې «د اشتمال صماء دوه تفسیرونه کړې شوي دی کوم چه په کتاب الصلوة کښې په ثیاب الصلوة کښې بیان شوی دی، اول دا چه یو څادر لره په خپل ځان باندې داسې د پورته نه ښکته اغوستل چه دواړه لاسونه هم د څادر نه لاندې پاتې شی چه په هغې کښې د انسان د راغورځیدو خطره وی د لاسونو په څادر کښې د دننه کیدو د وجې نه، (قیل ماخوذ من الصخرة الصماء) څادر داسې واچولې شی چه د هغه د اغوستلو نه پس د هغې یو سر ښې یا ګس اوږې په هغه طرف باندې واچولې شی چه په هغې کښې عورت ښکاره کیږی» او د لبسه ثانیه مصداق په حدیث کښې دا مذکور دې (ان یحتبی الرجل فی ثوب واحد) چه په یو څادر کښې انسان په داسې انداز کینی چه په هغې سره ئې شرمګاه ښکاره شی، یعنی ښکته بدن ئې ښکاره شی.

[۳۳۷۸] (۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ زَادَ وَاشْتِمَالُ الصَّمَّاءِ، أَنْ يَشْتَمِلَ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ يَضَعُ طَرَفَيِ الثَّوْبِ عَلَى عَاتِقِهِ الْأَيْسَرِ، وَيُبْرِزُ شِقَّهُ الْأَيْمَنَ، وَالْمُنَابَذَةُ أَنْ يَقُولَ: إِذَا نَبَذْتُ إِلَيْكَ هَذَا الثَّوْبَ فَقَدْ وَجَبَ الْبَيْعُ، وَالْمُلَامَسَةُ أَنْ يَمَسَّهُ بِيَدِهِ، وَلَا يَنْشُرُهُ، وَلَا يُقَلِّبُهُ، فَإِذَا مَسَّهُ وَجَبَ الْبَيْعُ.

د ابوسعید خدری نه د تیر روایت په شان روایت منقول دې، لیکن په دې کښې دا اضافه ده چه: ټول بدن په یوه کپړه کښې راونغاړي او ددې کپړې پلونه په خپل اوږه اوګسه اوږه باندې راواړوي اوبیع منابذه دي ته وائی چه خرڅونکی داسې اووائی چه داکپړه زه کله تاته در اوغورزوم نوبیابه بیع ضروري وي اوبیع ملامسه دي ته وائی چه کوم شي دلاس نه اوخي نوبیعه به لازمي شي.

(وَالْمُنَابَذَةُ أَنْ يَقُولَ إِذَا نَبَذْتُ إِلَيْكَ هَذَا الثَّوْبَ فَقَدْ وَجَبَ الْبَيْعُ) یعنی بائع مشتری ته داسې اوائی چه کله ستا طرف ته د کپړې دا تهان در ګزار کړم نو پوهه شه چه بیع لازم شوه، یعنی بغیر د ایجاب او قبول نه، او یا دا وجه چه د ایجاب او قبول نفی مراد نه ده بلکه لزوم د بیع مراد دې بغیر د خیار رویت او خیار عیب وغیره نه، (وَالْمُلَامَسَةُ أَنْ يَمَسَّهُ) یعنی بیع ملامسه دا ده چه د مشتری صرف په کپړه باندې د لاس لګولو سره، بغیر د پرانستلو نه او بغیر د کتلو نه بیع لازم شی، د بیع په دې ټولو صورتونو او قسمونو کښې تراضی طرفین نشته د خیار عیب او خیار رویت وغیره امورو د نه کیدو د وجې نه او یا د فساد د وجې نه د ایجاب او قبول نه موندلې کیدل په دوه تفسیرونو کښې د یو مطابق، دا ټول بیوع د بیوع جاهلیت څیني نه دی.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة، واخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة من حدیث ابی هریرة مختصرا ومطولا، قاله المنذری

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤١٥٤) (صحیح)

[۳۳۷۹](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَامِرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَى حَدِيثِ سُفْيَانَ، وَعَبْدِ الرَّزَّاقِ، جَمِيعًا.

د ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبی ﷺ منع فرمائیلي ده اوبیا نې دپورتني حدیث په شان روایت بیان کړو اودسفیان اوعبد الرزاق وغیره تولونه داسې روایات منقول دي.

[۳۳۸۰](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ حَبَلِ الْحَبَلَةِ".

دابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه نبی ﷺ منع فرمائیلی ده باقي دتیر روایت په شان او ددې اضافي سره چه د حبل الحبله مطلب دادې چه دکومې اوښې نه بچې پیداشوې وي اوبیاهغه بچې حامله وي او ولادت ئې شوې وي.

## شرح الحدیث وفیه اربعة اوجه :

په دې دواړو الفاظو کښې حاء او با دواړه مفتوح دی، حبله کښې دوه اقوال دی یو دا چه دا جمع ده د حابل لکه د ظالم جمع ظلمة، او دا هم وئیلې شوې دی چه دا مصدر دې د مطلق حیوان په معنی کښ، ځان پوهول پکار دی چه د دې حدیث شرح کښې څلور احتمالات دی اول دا چه د حبل الحبلة نه مراد جنین دې یا جنین الجنین، او په دې دوه صورتونو کښې بیا دوه احتمالات دی یو دا چه د دې مصداق مبیع ده یا د دې نه مقصود بیع الی اجل ده، یعنی مبیع خو بل یو څیز دې خو د هغې تاجیل یعنی د ثمن ادا کولو نیټه په دې دواړو کښې یو مقرر کړې شی، لهذا دا څلور احتمالات به د دې حدیث په معنی کښې وی په دې احتمالاتو کښې به په یو صورت کښې بیع فاسد وي او په یو صورت کښې باطله، یعنی که دا په مبیع باندې محمول کړې شی نو چونکه هغه لا تراوسه پورې معدوم ده په دې وجه به بیع باطل وی، او که مبیع شئ آخر دې او دا د هغې دپاره اجل دې، په دې صورت کښې به فاسد وی، دا تفسیر د هغې خپله دلته په کتاب کښې موجود ده پس راوی وائی ﴿حَبَلُ الْحَبَلَةِ أَنْ تُنْتَجَ النَّاقَةُ بَطْنَهَا ثُمَّ تَحْمِلُ الَّتِي نُتِجَتْ﴾ په دې تفسیر کښې دا په جنین الجنین باندې محمول کړې شوې دې، خو د دې تصریح نه ده شوې چه مراد ترې نه مبیع ده که اجل، د دې تفسیر حاصل دا دې چه یو سړې داسې اوائی چه دا حامله اوښه چه مخامخ ده د دې حمل د پیدا کیدو نه پس چه کله خپله حامله شی نو د هغه دحمل ثانی بیع کوم یا هغه نیټه کوم. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری

(١): صحيح البخاري/ البيوع ٦٢ (٢١٤٤)، صحيح مسلم/ البيوع ١ (١٥١٢)، سنن النسائي/ البيوع ٢٢ (٤٥١٤)، (تحفة الأشراف: ٤٠٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/ ٩٥) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/البيوع ٦١ (٢١٤٣)، السلم ٧ (٢٢٥٦)، مناقب الأنصار ٢٦ (٣٨٤٣)، سنن النسائي/البيوع ٦٦ (٤٦٢٩)، سنن ابن ماجه/التجارات ٢٤ (٢١٩٧)، (تحفة الأشراف: ٨٣٧٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البيوع ٣ (١٥١٤)، سنن الترمذي/البيوع ١٦ (١٢٢٩)، موطا امام مالك/البيوع ٢٦ (٦٢)، مسند احمد (١/ ٥٦، ٦٣) (صحيح)

[۳۳۸۱]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَقَالَ: وَحَبَلُ الْحَبَلَةِ أَنْ تُنْتَجَ النَّاقَةُ بَطْنَهَا ثُمَّ تَحْمِلَ الَّتِي نُتِجَتْ.

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی باقی روایت دتیر روایت په شان دې.

## بَابٌ فِي بَيْعِ الْمُضْطَرِّ
### د مجبورۍ په وخت کښې د بیع بیان

**د بیع المضطر مصداق او حکم:**

د مضطر دوه معنې کیدې شی ځکه چه د اضطرار دوه قسمونه دی یو اضطرار لاجل الغیر یعنی د بل د زبردستۍ د وجې نه مجبورول چه هغې ته اکراه وائی او دویمه معنی اضطرار لاجل الفقر والحاجة یعنی د خپلې غریبۍ او مسکینۍ د وجې محتاج او مضطر کیدل، آو د مضطر بالمعنی الثانی بیع د احنافو په نزد فاسد ده آو د جمهورو په نزد جائز مع الکراهت ده، کذا اتذکر من درس الشیخ رحمه الله تعالى، مثله فی البذل عن الخطابی، او د دې نه پس په بذل کښې د در مختار نه د بیع المضطر شرح دا کړې شوې ده ﴿هو ان یضطر الرجل الی طعام او شراب او غیرهما ولا یبیعه البائع الا باکثر من ثمنها بکثیر، وکذلک فی الشراء منه﴾ یعنی یو سړی ته د خوراک څکاک ضرورت دې مثلا او دویم سړی سره هغه څیز موجود دې خو هغه هغې لره په عام قیمت باندې ورکولو ته تیار نه دې بلکه په ډیر زیات قیمت باندې ئې ورکوی داسې قسم ته په در مختار کښې فاسد وئیلې شوې ده.

[۳۳۸۲]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا صَالِحُ أَبُو عَامِرٍ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: كَذَا، قَالَ مُحَمَّدٌ، حَدَّثَنَا شَيْخٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ، قَالَ: خَطَبَنَا عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، أَوْ قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ: قَالَ ابْنُ عِيسَى: هَكَذَا حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، قَالَ: "سَيَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ عَضُوضٌ يَعَضُّ الْمُوسِرُ عَلَى مَا فِي يَدَيْهِ، وَلَمْ يُؤْمَرْ بِذَلِكَ، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ سورة البقرة آية ۲۳۷ وَيُبَايِعُ الْمُضْطَرُّونَ، وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْمُضْطَرِّ، وَبَيْعِ الْغَرَرِ، وَبَيْعِ الثَّمَرَةِ، قَبْلَ أَنْ تُدْرِكَ".

دهشیم نه روایت دې فرمائی چه علي رضی الله عنه په خطبه کښې اوفرمائیل چه یوداسې وخت به راشي چه خلق به یوبل خوري (یعنی تکلیفونه به ورته رسوي) اوڅوک چه مالداروي هغه به خپل مال په غابښونو کښې نیولې وي اوحالانکه هغه ته داحکم نشته، الله تعالى فرمائی اې خلقو په خپل مینځ کښې په یوبل سره احسان مه هیروئ، اوداسې وخت به هم راشي چه خلق به دمجبورۍ نه بیع کوي اوحالانکه نبی علیه السلام دمجبور دمال داخستلو نه منع فرمائیلې ده، او دائې هم فرمائیلي دی چه ددوکي دبیع نه ځان وساتئ اومیوه دپخیدونه مخکښې مه خرڅوئ.

﴿خَطَبَنَا عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ سَيَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ عَضُوضٌ يَعَضُّ الْمُوسِرُ عَلَى مَا فِي يَدَيْهِ وَلَمْ يُؤْمَرْ بِذَلِكَ، وَيُبَايِعُ الْمُضْطَرُّونَ وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم عَنْ بَيْعِ الْمُضْطَرِّ﴾

---

(۱): صحیح البخاري/مناقب الأنصار ۲۶ (۳۸۴۳)، صحیح مسلم/البیوع ۳ (۱۵۱٤)، (تحفة الأشراف: ۸۱٤۹) (صحیح)

(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۳۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱٦۷۱) (ضعیف)

علي رضي الله عنه فرمائي چه نزدې ده چه په خلقو باندې داسې د بخل زمانه راشي چه د مالدار حال به دا وي چه هغه به خپل مال لره په خپلو غاښونو باندې ښه مضبوط نيسي، حال دا چه خلق د هغه مامور نه دي بلکه الله پاک خو دا فرمائي چه په يو بل باندې احسان کول مه هيروئ، يعني مه ترک کوئ، وړاندې د دې بخل يو اړخ بيانوي چه مجبور قسم خلقو سره به بيع او شراء کولې شي حال دا چه رسول الله ﷺ د بيع المضطر نه منع فرمائيلې ده.
دلته په دې حديث کښې هم شارحينو د مضطر معنى کښې هم هغه دوه صورتونه ليکلي دي کوم چه پورته ذکر شو.

## باب في الشركة

### د شراکت بيان

[۳۳۸۳]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الزِّبْرِقَانِ، عَنْ أَبِي حَيَّانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، رَفَعَهُ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ، يَقُولُ: أَنَا ثَالِثُ الشَّرِيكَيْنِ مَا لَمْ يَخُنْ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ، فَإِذَا خَانَهُ خَرَجْتُ مِنْ بَيْنِهِمَا".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام اوفرمائيل چه الله تعالى فرمائيلي دي چه زه ددوه شريکانو په مينځ کښې دريم شريك يم ترڅوچه په دې دوه شريکانو کښې يوشريك دخپل ملګري سره خيانت نه وي کړې، اوکله چه په دې دواړوکښې يوتن دبل سره خيانت اوکړي نوزه ددې دواړونه او څم.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَفَعَهُ قَالَ « إِنَّ اللَّهَ يَقُولُ أَنَا ثَالِثُ الشَّرِيكَيْنِ مَا لَمْ يَخُنْ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ فَإِذَا خَانَهُ خَرَجْتُ مِنْ بَيْنِهِمَا ﴾ حاصل د حديث دا دې چه شرکت ډير د خير او برکت څيز دې په دې شرط چه په ديانت داريئ سره وي او خيانت په هغې کښې نه وي خو چرته چه په هغې کښې لږ خيانت بيا موندلې شو نو ټول خير او برکت ختم.

### اقسام د شرکت :

د شرکت ډير قسمونه دي، اول د دې دوه قسمونه دي، ۱ شرکت املاک او شرکت عقود، خو دلته په حديث کښې شرکت عقود مراد دې چه د هغې څو قسمونه دی شرکت مفاوضه، شرکت عِنان، شرکت الصنائع چه هغې ته شرکة الابدان هم وائي، شرکت الوجوه چه د هغې تفاصيل، احکام او شرائط په کتابونو د فقه کښې ذکر شوې دی دغه شان يو قسم د دې مضاربت هم دې، دا شرکتونه کوم چه شريعت مشروع کړی دی که د شرع په اصولو او ديانت سره وی نو ډير د خير او برکت څيزونه دی لکه چه په حديث الباب کښې دی خو نن صبا په دې زمانه کښې خلقو قسم قسم معاملات د مال د زياتوالي او د تجارت دپاره د خپل طرف نه اختراع کړی دی کوم قسمونه د شرکت چه شريعت مشروع کړی وو هغه څوک هم نه پيژني او نه ئې د پيژندګلو کوشش کوی، او د موجوده اختراعی طريقو چه کوم حال او انجام دې په هغې باندې ټول پوهيږی چه د هغې په وجه باندې په څنګه څنګه مصيبتونو کښې خلق اخته کيږی.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۹۳۹) (ضعيف)

# بَابٌ فِي الْمُضَارِبِ يُخَالِفُ

## د مضاربت د شرائطو نه د خلاف کولو بیان

مضاربت چه د هغې ذکر اوس تیر شو د شرکت یو قسم دې چه په هغې کښې مال د یو سړی وی او دویم طرف نه عمل ﴿ ففی القدوری المضاربة عقد علی الشرکة بمال من احد الشریکین وعمل من الآخر ولا تصح المضاربة الا بالمال الذی بینا ان الشرکة تصح به، ومن شرطها ان یکون الربح بینهما مشاعا لا یستحق احدهما منه دراهم مسماة ﴾ یعنی د صحت مضاربت یو اهم شرط دا دې چه د هغې د تجارت نه حاصله شوې نفع د صاحب مال او عامل ترمینځه مشترک وی مقدار معین نه وی، خو دا ضروری نه ده چه مساوی او علی النصف دې وی، بلکه علی النصف یا علی الثلث چه څه هم وی مشترک وی په دراهم معینه د یو دپاره نه وی.

[۳۳۸٤](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ شَبِيبِ بْنِ غَرْقَدَةَ، حَدَّثَنِي الْحَيُّ، عَنْ عُرْوَةَ يَعْنِي ابْنَ أَبِي الْجَعْدِ الْبَارِقِيِّ، قَالَ: "أَعْطَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِينَارًا يَشْتَرِي بِهِ أُضْحِيَّةً أَوْ شَاةً، فَاشْتَرَى شَاتَيْنِ، فَبَاعَ إِحْدَاهُمَا بِدِينَارٍ، فَأَتَاهُ بِشَاةٍ وَدِينَارٍ، فَدَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ فِي بَيْعِهِ، فَكَانَ لَوِ اشْتَرَى تُرَابًا لَرَبِحَ فِيهِ".

دعروه بارقی نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ راته یودینار راکړو چه دځان دپاره پرې دقربانۍ څاروې واخلم ما په هغه یودینار دوه څاروی واغستل یوڅاروې مې په یو دینار خرڅ کړو اویوڅاروې اویودینارمې نبی ﷺ ته پیش کړو هغه راته دعا وکړه چه اې الله دده په بیع کښې برکت واچوې، چنانچه همداسې اوشول چه عروه به کله خاورې اغستلې نوپه هغې کښې به نې هم ګټه کوله.

**قوله:** ﴿ عَنْ عُرْوَةَ، قَالَ أَعْطَاهُ النَّبِيُّ -صلی الله علیه وسلم- دِينَارًا يَشْتَرِي بِهِ أُضْحِيَةً أَوْ شَاةً ﴾ الخ عروة بن ابی الجعد البارقی صحابی ﷺ فرمائی چه یو کرت رسول الله ﷺ ماته یو دینار راکړو د قربانۍ د بیزې اخستلو دپاره، نو هغوی داسې اوکړل چه په یو دینار کښې ئې دوه بیزې واخستلې او بیا ئې په دې دواړو کښې یوه په یو دینار خرڅه کړه، او د رسول الله ﷺ په خدمت کښې ئې بیزه سره د دینار نه پیش کړه، رسول الله ﷺ د هغوی د دپاره د تجارت د برکت دعا اوکړه، ﴿ فَكَانَ لَوِ اشْتَرَى تُرَابًا لَرَبِحَ فِيهِ ﴾ راوی وائی چه د رسول الله ﷺ د دعا په برکت د هغوی د تجارت حال دا وو چه که خاوره به مې هم اخستله نو په هغې کښې به هم نفع کیدله د خاورې نه مراد یا خو په طریقه د مبالغې یو بیکاره او معمولی څیز دې او یا دا په حقیقت باندې محمول دې، ځکه چه د ترابو د بعض انواع بیع کولې شی، دا صحابی د رسول الله ﷺ د طرف نه وکیل وو د شراء خو هغوی په ظاهر کښې د خپل موکل مخالفت اوکړو چه بیع او شراء دواړه ئې اوکړل، او ترجمة الباب د مضارب په باره کښې دې خو وئیلې شی چه مضارب هم د رب المال دپاره په منزله د وکیل وی.

(1): صحیح البخاري/المناقب ۲۸ (۳٦٤۲)، سنن الترمذي/البیوع ۳٤ (۱۲۵۸)، سنن ابن ماجه/الاحکام ۷ (۲٤۰۲)، (تحفة الأشراف: ۹۸۹۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۳۷۵، ۳۷٦) (صحیح)

## په مسئله مترجم بها کښې مذاهب ائمة :

مضارب که د رب المال مخالفت اوکړی نو خطابی د امام شافعی رحمه الله مذهب دا نقل کړې دې چه د مخالفت په صورت کښې مضارب که سامان بعینه د رب المال نه اخستلې وی نو بیا خو بیع باطل ده او که هغه بعینه په دې مال باندې سامان نه وی اخستلې بلکه په خپله ذمه ساتلو سره ئې واخستلو او بیا ئې ادا کړو هم د دې رب المال د مال نه نو په دې صورت کښې به دا سامان د مشتری دپاره وی او مضارب به په هر حال کښې ضامن وی د رب المال د مال. آهاو څه نفع چه کیږی هغه به د مضارب وی، او خطابی د امام احمد رحمه الله مسلک دا لیکلې دې چه د مخالفت په صورت کښې به ربح د رب المال وی او نقصان به مضارب ضامن وی، او د احنافو په نزد د مخالفت په صورت کښې به ربح ټول په ټوله د مضارب دپاره وی او مضارب به ضامن هم وی، لحدیث ﴿ الغرم بالغنم ﴾ خو په مضارب باندې به د دې ربح تصدق واجب وی ځکه چه هغه کسب خبیث دې.

## بیع فضولی کښې مذاهب ائمة :

د دې حدیث نه چه کومه مسئله ثابتیږی صراحة هغه د بیع فضولی ده، مسئله اختلافی ده، د احنافو او مالکیانو په نزد دا بیع موقوفا علی اجازة المالک صحیح ده خو د احنافو په نزد صرف بیع فضولی جائز ده. شراء دفضولی نه او د امام مالک رحمه الله په نزد بیع او شراء دواړه جائز دی، پس په ارشاد السالک کښې دی ﴿ البیع والشراء کلاهما جائزان موقوفا علی اجازة المالک ﴾ او د حنابله په نزد دواړه ناجائز دی کما فی زاد المستقنع: لا یجوز البیع ولا الشرآء، او د امام شافعی رحمه الله په دې کښې دوه اقوال دی، په قول قدیم کښې جائز دی، وقواه النووی، وفی الجدید لا یجوز، د امام شافعی رحمه الله استدلال د ﴿ لا تبع ما لیس عندک الحدیث ﴾ نه دې، زمونږ د طرف نه د دې جواب دا دې چه د ﴿ ما لیس عندک ﴾ نه مراد شئ غیر مقبوض دې لکه عبد آبق، او بیا په دې حدیث کښې نفی مطلق د بیع نه ده بلکه د بیع بات نفی ده، د نهی تعلق د نفس بیع سره نه دې بلکه بت البیع سره دې بیع بات یعنی نافذ او غیر موقوف.

## حدیث الباب د احنافو او مالکیانو دلیل دې :

او حدیث الباب دلیل دې د جواز لکه چه ظاهره ده. معلومه دې وی چه مصنف رحمه الله په دې باب کښې دوه احادیث ذکر کړل د عروة البارقی او دویم چه کوم وړاندې را روان دې د حکیم بن حزام رضی الله عنه چه د هغې مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ هغوی ته یو کرت یو دینار ورکړو د قربانۍ د ځاروی اخستلو دپاره نو هغوی یو بیزه په یو دینار باندې اخستلو سره هغه په دوه دیناره خرڅه کړه او بیا ئې په یو دینار باندې بله بیزه واخستله او هغه بیزه ئې سره د دیناره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره کړه.

## د شوافعو د طرف نه جواب:

دا دواړه احادیث د امام شافعی رحمه الله د قول جدید خلاف دی، د هغوی د طرف نه د ړومبی حدیث خطابی جواب دا ورکړې دې چه د ړومبی حدیث په سند کښې ﴿ حدثنی الحی ﴾ دې

يعنى قبيله ﴿ وهو مجهول ﴾ او د دويم حديث په سند كښې شيخ من اهل المدينة دې وهو ايضا مجهول، حضرت سهارنپوری په بذل كښې د عروة بن ابى الجعد د حديث متعلق د خطابى كلام چه په دې حديث كښې حى مجهول دې دا فرمائيلې دى چه مصنف رحمه الله حديث د عروة په دوه طريقو سره ذكر كړې دې په دويم طريق كښې ﴿ عن ابى لبيد حدثنى عروة البارقى ﴾ دې، په دې سند كښې هيڅ يو راوى مجهول نشته پس امام منذرى رحمه الله فرمائى ﴿ وقد اخرج الترمذى حديث شراء الشاة من رواية ابى لبيد لمازة بن زياد عن عروة، وهو من هذا الطريق حسن آهـ﴾ او د دويم حديث يعنى حكيم بن حزام رضي الله عنه په باره كښې حضرت فرمائى چه دا په يو بل طريق سره هم مروى دې په سنن ترمذى كښې ﴿ عن حبيب بن ابى ثابت عن حكيم بن حزام ﴾ خو امام ترمذى رحمه الله په دې باندې كلام كړې دې چه د حبيب بن ابى ثابت سماع زما په نزد د حكيم بن حزام رضي الله عنه نه ثابت نه ده خو مونږ وايو چه په دې عدم سماع باندې څه دليل دې او سه پورې هيڅ دليل نه دې قائم شوې ﴿ ولا مانع من السماع، ولو سلم فالمرسل عندنا حجة ﴾ آهـ او صاحب د تحفة الاحوذى ليكى : وَحَدِيثُ عُرْوَةَ الْبَارِقِيِّ هَذَا أَخْرَجَهُ أَحْمَدُ وَالْبُخَارِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَفِي إِسْنَادِهِ مَنْ عدا الْبُخَارِيِّ سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ أَخُو حَمَّادٍ وَهُوَ مُخْتَلَفٌ فِيهِ عَنْ أَبِي لَبِيدٍ لَمَازَةَ بْنِ زياد وَقَدْ قِيلَ إِنَّهُ مَجْهُولٌ لَكِنَّهُ قَالَ (١) إِنَّهُ وَثَّقَهُ ابْنُ سَعْدٍ. وَقَالَ حَرْبٌ : سَمِعْت أَحْمَدَ يُثْنِي عَلَيْهِ وَقَالَ فِي التَّقْرِيبِ : إِنَّهُ نَاصِبِيٌّ أَجْلَدُ قَالَ الْمُنْذِرِيُّ وَالنَّوَوِيُّ : إِسْنَادُهُ صَحِيحٌ لِمَجِيئِهِ مِنْ وَجْهَيْنِ. وَقَدْ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ مِنْ طَرِيقِ ابْنِ عُيَيْنَةَ عَنْ شُعَيْبِ بْنِ غَرْقدة، سَمِعْت الْحَيَّ يُحَدِّثُونَ عَنْ عُرْوَةَ. قَالَ الْحَافِظُ : الصَّوَابُ أَنَّهُ مُتَّصِلٌ فِي إِسْنَادِهِ مُبْهَم الخ.... امام نووى رحمه الله دا حديث صحيح تسليم كړې دې لكه چه اوس پورته ذكر شو او غالبا هم په دې بنياد باندې هغوى د امام شافعى رحمه الله په قولينو كښې قول قديم د صحت د جواز د بيع فضولى د تقويت كړې دې كما سبق قريبا په دې مقام باندې فتح البارى هم كتل پكار دى چه نور بصيرت هم حاصل شى، امام بخارى رحمه الله دا حديث په مناقب كښې ﴿ باب السوال المشركين ان يريهم النبى ﷺ اية فاراهم انشقاق القمر ﴾ نه پس باب بلا ترجمه كښې ذكر كړې دې. وقد مر تخريج حديث عروة البارقى وحديث حكيم بن حزام فى اثناء البحث.

[٣٣٨٥](٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُنْذِرِ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ هُوَ أَخُو حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، حَدَّثَنَا الزُّبَيْرُ بْنُ الْخِرِّيتِ، عَنْ أَبِي لَبِيدٍ، حَدَّثَنِي عُرْوَةُ الْبَارِقِيُّ، بِهَذَا الْخَبَرِ وَلَفْظُهُ مُخْتَلِفٌ.

د عروه بارقي نه دتير روايت په شان روايت نقل شوې دې صرف د الفاظو فرق دې.

[٣٣٨٦](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْعَبْدِيُّ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي أَبُو حُصَيْنٍ، عَنْ شَيْخٍ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "بَعَثَ مَعَهُ بِدِينَارٍ يَشْتَرِي لَهُ أُضْحِيَّةً، فَاشْتَرَاهَا بِدِينَارٍ وَبَاعَهَا بِدِينَارَيْنِ، فَرَجَعَ فَاشْتَرَى لَهُ أُضْحِيَّةً بِدِينَارٍ، وَجَاءَ بِدِينَارٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَتَصَدَّقَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَدَعَا لَهُ أَنْ يُبَارَكَ لَهُ فِي تِجَارَتِهِ".

---

١) كذا في الأصل.

٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٨) (صحيح)

٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٤٣٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البيوع ٣٤ (١٢٥٧) (ضعيف)

دحکیم بن حزام رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ زه د یو دینارسره اولیږلم چه زه دهغه دپاره دقربانۍ څاروې واخلم نوپه یودیناریوڅاروې واخستو اودقربانۍ دا څاروې مې په دوه دیناره خرڅ کړو اوبیالاړم په یودینارې دقربانۍ بل څاروې واخستو اوهغه اولنې دیناری بچ کړو اود نبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم اوهغه دینار نې صدقه کړو اوزما د تجارت دپاره ئې دعا اوفرمائیله.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَتَّجِرُ فِي مَالِ الرَّجُلِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ

### داجازت نه بغير دچا په مال کښې په ښه نيت سره دتجارت کولو بيان

یعنی کوم انسان چه د بل په مال کښې تجارت کوی بغیر دهغه د اجازت نه په دې صورت کښې چه کومه ګټه حاصله شی هغه به د احنافو په نزد د سوداګر دپاره وی او هم دغه شان به تاوان هم په هغه باندې وی، خو دا کسب کسب خبیث دې لهذا د دې قسم ربح به واجب التصدق وی، چه په دې مسئله کښې د نورو امامانو د مذاهب تحقیق اوکړې شی مصنف رحمه الله د دې باب د لاندې د حدیث الغار یو حصه ذکر کړې ده کوم چه د ترجمة الباب مناسب وه باقی قصه اختصارا حذف کړې شوه، او امام بخاری رحمه الله چه په دې حدیث باندې کوم ترجمة الباب قائم کړې دې هغه دا دې ﴿ اذا اشترى شيئا لغيره بغير اذنه فرضى ﴾ او بیا نې د دې د لاندې هغوی حدیث الغار ټول ذکر کړې دې څوک چه پوره قصه کتل غواړی هغه دې دصحیح بخاری کتاب البیوع کښې ذکرکړې شوې باب ته رجوع اوکړی، امام بخاری رحمه الله د هغه حدیث نه د بیع فضولی او شراء فضولی جواز ثابت کړې دې.

[٣٣٨٧]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَمْزَةَ، أَخْبَرَنَا سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يَكُونَ مِثْلَ صَاحِبِ فَرَقِ الْأَرُزِّ، فَلْيَكُنْ مِثْلَهُ، قَالُوا: وَمَنْ صَاحِبُ فَرَقِ الْأَرُزِّ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ فَذَكَرَ حَدِيثَ الْغَارِ حِينَ سَقَطَ عَلَيْهِمُ الْجَبَلُ، فَقَالَ: "كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمُ اذْكُرُوا أَحْسَنَ عَمَلِكُمْ، قَالَ: وَقَالَ الثَّالِثُ: اللَّهُمَّ إِنَّكَ تَعْلَمُ أَنِّي اسْتَأْجَرْتُ أَجِيرًا بِفَرَقِ أَرُزٍّ، فَلَمَّا أَمْسَيْتُ عَرَضْتُ عَلَيْهِ حَقَّهُ فَأَبَى أَنْ يَأْخُذَهُ وَذَهَبَ، فَثَمَّرْتُهُ لَهُ حَتَّى جَمَعْتُ لَهُ بَقَرًا وَرِعَاءَهَا، فَلَقِيَنِي، فَقَالَ: أَعْطِنِي حَقِّي، فَقُلْتُ: اذْهَبْ إِلَى تِلْكَ الْبَقَرِ وَرِعَائِهَا فَخُذْهَا فَذَهَبَ فَاسْتَاقَهَا".

دابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې په تاسو کښې چه څوک غواړی چه دهغه چاپه شان دې شي دچاسره چه یوه پیمانه وریژې وې نودهغه په شان دې شي. صحابه عرض وکړوچه اې دالله رسوله داکومه واقعه ده نودغاروالا واقعه ئې بیان کړه، کله چه هغوی په یوغارکښې پناه اخستلې وه اویولوې کانړې دغار په خوله راپریوتو اودغارخوله ئې بنده کړه په دې وخت کښې دوی ووئیل چه په مونږ کښې دې هریوخپل نیک عمل یادکړې نو په دوی کښې دریم کس ووئیل چه اې الله تا ته معلومه ده چه مایو کس په یوفرق باندې مزدور کړې وو کله چه مابېګاه شو نوماهغه ته خپله مزدوری ورکوله نوهغه مزدوری وانه خستله اوهمداسې لاړو مادډغه کس وریژې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٧٧٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الإجارة ١٢ (٢٢٧٢)، المزارعة ١٣ (٢٣٣٣)، أحاديث الأنبياء ٥٣ (٣٤٦٥)، الأدب ٨٣ (٦١٣٣)، صحيح مسلم/الذكر ٢٧ (٢٧٤٣)، مسند احمد (١١٦٧٢)

وکړلې اودا به ډيريدلې تردې چه ماده دپاره څاروی اوشپونکيان جمع کړل، بيا څه وخت پس هغه مزدور زماسره ملا وشو اودخپلې مزدوری مطالبه ئې وکړه، ماورته ووئيل چه لاړ شه اوخپل څاروی اوشپونکيان دي بوځه نو هغه هغه څاروی اوشپونکيان بوتلل.

## د حديث الغار يوه حصه:

قوله: ﴿ « مَنِ اسْتَطَاعَ مِنكُمْ أَنْ يَكُونَ مِثْلَ صَاحِبِ فَرَقِ الأَرُزِّ (١) فَلْيَكُنْ مِثْلَهُ ». قَالُوا وَمَنْ صَاحِبُ فَرَقِ الأَرُزِّ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَذَكَرَ حَدِيثَ الْغَارِ ﴾

يعنى رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته اوفرمائيل د ترغيب په طور باندې. کوم انسان چه په تاسو کښې د دې خبرې طاقت لرى چه هغه د فرق ارز والا سړی په شان شی نو هغه له داسې کيدل پکار دی، صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ صاحب الارز څوک وو؟ وړاندې مصنف ﷺ فرمائى چه رسول الله ﷺ د صحابه کرامو ﷺ په سوال باندې حديث الغار، يعنى د غار والو قصه بيان اوفرمائيله چه کله په هغوی باندې د غر کاڼړې د پورته نه راپريوتلې وو (چه د هغې په وجه د غار خوله بنده شوې وه، دا درې ملګری وو چرته په سفر باندې روان وو په لار کښې چه کله باران راغلو نو د هغې نه د بچ کيدو دپاره د غر په غار کښې داخل شو، چه کله د غار خوله بنده شوه نو د دې درې واړو په خپل مينځ کښې رائې دا شوه چه په موږ کښې چه چا کوم عمل په خپل ژوند کښې د هغه په نزد ډير ښه کړې وی د هغې په وسيله دې د الله پاک نه سوال اوکړی.

﴿ قال وقال الثالث ﴾ د رومبى او دويم عمل په دې روايت کښې نه دې ذکر شوې په هغوی کښې دريم کس په خپلو اعمالو کښې دا عمل ذکر کړو چه اې الله ته عالم ئې چه ما په يو مزدور باندې د فرق ارز په عوض کښې کار کړې وو، او د کار نه د فراغت په وخت چه کله ما ښام په هغه باندې د هغه حق پيش کړو نو هغه د هغې د اخستلو نه انکار اوکړو او بغير د اخستلو نه لاړو، د هغه د تلو نه پس ما د هغه دې فرق ارز لره د فصل په ذريعه ښه زيات کړو تر دې چه د هغه په پيداوار او ګټې سره د هغه مزدور دپاره غويان او د هغې څرونکی پيدا شو، بيا څه موده پس هغه مزدور ما سره د ملاقات دپاره راغلو او وې وئيل چه ماته زما حق راکړه نو ما هغه غويانو او د هغې څرونکو طرف ته اشاره کولو سره هغه ته اووې چه دا ټول ستا دی، نو هغه هغه ټول بوتلل. والحديث اخرجه البخاري ومسلم بنحوه اتم منه، قاله المنذري

د دې حديث د ترجمة الباب سره په مطابقت کښې اشکال دې څکه چه ترجمه ده ﴿ تجارة فى مال الغير ﴾ او په دې قصه کښې دا اجير د خپل فرق ارز په وجه د قبضه نه کيدو مالک شوې نه وو او په دې وجه دا تجارت فى مال الغير نه شو بلکه د دې مستاجر دا تثمير التصرف فى مال نفسه وو او پس څه هم چه په دې مال کښې زيات شو هغه ټول ملک د مستاجر وو خو د دې مستاجر دا ټول څيزونه اجير ته ورکول په طور د کار خير او تصدق وو. (بذل)

---

١) دا د غلې او د غنمو د تللو يو لوښی دی،

# بَابٌ فِي الشَّرِكَةِ عَلَى غَيْرِ رَأْسِ مَالٍ

## په کاروبار کښې د راس المال نه علاوه د شراکت کولو بیان

**د ترجمة الباب تشریح او مذاهب ائمة:**

یعنی هغه شرکت چه بغیر د راس المال نه وی، ځان پوهول پکار دی چه کوم شرکت بغیر د راس المال نه وی د هغې دوه قسمونه دی شرکة فی المباحات او شرکة الصنائع والابدان د اول مثال لکه دوه سړی چه چا سره هیڅ قسم مال نه وی او خپل مینځ کښې دا معاهده اوکړی چه مونږ دواړه به ځو او په ځنګل کښې به لرګی راجمع کوو او روزانه به هغه بازار ته راوړلو سره هغه خرڅوو او په دې صورت کښې چه څه پیسې هم حاصلې شی هغه به زمونږ د دواړو مشترک وی او د دویم مثال، لکه دوه کاریګران کپړې ګنډونکی خپل مینځ کښې دا فیصله اوکړی چه مونږ دواړه یو ځائې کیدو سره چه څومره کپړه ګنډو دا ګټه به زمونږ دواړو ترمینځه مشترک وی.

اوس د دې حکم واورې د امام شافعی رحمه الله په نزد دا دواړه قسمونه ناجائز دی، د مالکیانو او حنابله په نزد دواړه جائز دی، او د احنافو په نزد شرکة الصنائع خو جائز دې خو شرکت فی المباحات نه دې جائز، د مذاهبو تحقیق هم دا دې، د علامه شوکانی رحمه الله نه په بیان د مذاهبو کښې غلطې شوې دې هغوی احناف د مالکیانو سره ذکر کړې دی، او د هغوی د کلام نه دا هم معلومیږی چه د احنافو په نزد شرکة الصنائع او شرکت فی المباحات یو څیز دې، (نبه علیه شیخ شیخنا فی البذل)

[۳۳۸۸](1) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "اشْتَرَكْتُ أَنَا، وَعَمَّارٌ، وَسَعْدٌ فِيمَا نُصِيبُ يَوْمَ بَدْرٍ، قَالَ: فَجَاءَ سَعْدٌ بِأَسِيرَيْنِ، وَلَمْ أَجِئْ أَنَا، وَعَمَّارٌ بِشَيْءٍ".

دعبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه اوعما ر اوسعد په غزوه بدرکښې په حاصلیدونکی مال کښې د یوبل سره شریک شو (کوم چه لانه وو ملا وشوې) عبدالله وائی چه سعد دوه قیدان راوستل ما او عمار هیڅ رانه وستل (ځکه چه شرعا بغیردخرچ کولودسرمایه نه شراکت درست نه دې).

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ اشْتَرَكْتُ أَنَا وَعَمَّارٌ وَسَعْدٌ فِيمَا نُصِيبُ يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ فَجَاءَ سَعْدٌ بِأَسِيرَيْنِ وَلَمْ أَجِئْ أَنَا وَعَمَّارٌ بِشَيْءٍ ﴾

مطلب خو ښکاره دې سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه زه عمار او سعد بن ابی وقاص رضی الله عنهم مونږ په خپل مینځ کښې د شرکت معامله اوکړه په جنګ بدر کښې په حاصل شوی غنیمت باندې (یعنی څۀ چه به مونږ درې واړو ته په مال غنیمت کښې ملاویږی مونږ به هغه په خپل مینځ کښې تقسیم کړو. وړاندې په روایت کښې دی عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه سعد بن ابی وقاص خو په مال غنیمت کښې دوه غلامان راوستل ، او ما او

(1): سنن النسائي/الأيمان والنذور ٤٧ (٣٩٦٩)، البيوع ١٠٣ (٤٧٠١)، سنن ابن ماجه/التجارات ٦٣ (٢٢٨٨)، (تحفة الأشراف: ٩٦١٦) (ضعيف)

عمار هیڅ نه وو راوړي).
په دې حدیث کښې چه کوم شرکت ذکر کړې شوې دې هغه د شرکت فی المباحات د قبیلې نه دې، او دا قسم د شرکت د احنافو او شوافعو دواړو په نزد ناجائز دې، لهذا د دې حدیث جواب به دا وی چه ﴿ انه فعل الصحابة رضی الله عنهم ﴾ یعنی حدیث غیر مرفوع دې، او بله دا چه منقطع دې لعدم سماع ابی عبیده من ابیه، کما فی البذل.

**په حدیث الباب باندې یو اشکال سره د جواب :**

زما دلته یو اشکال پیدا کیږی چه په کتاب الجهاد کښې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حدیث تیر شوې دې ﴿ نفلنی رسول الله صلی الله علیه وسلم یوم بدر سیف ابی جهل ﴾ او دلته هغوی دا فرمائی ﴿ولم اجئ انا وعمار بشئ ﴾ اوس یا خو دې حدیث الباب مرجوح کړې شی د انقطاع د وجې نه، او یا دې د دې تاویل اوکړې شی چه په دې حدیث کښې نفی د غنیمت عامه ده ممکنه ده چه په عام غنیمت کښې د دې دواړه حصه رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وی مقرر کړې ځکه چه په کتاب الجهاد کښې دا خبره تیره شوې ده ﴿ بان غنائم بدر کانت لرسول الله صلی الله علیه وسلم یدفعها لمن یشاء ﴾ او د ابو جهل توره کومه چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته ملاؤ شوې وه هغه خو په طور د نفل او حصه خاصه وه والله تعالی اعلم، والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجة، وهو منقطع فان اباعبیدة لم یسمع من ابیه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِی الْمُزَارَعَةِ

### په زمینداره باندې د زمکې ورکولو بیان

**د مزارعة ذکر په کتاب البیوع کښې :**

کتاب البیوع بیانیږی هم په دې ضمن کښې مصنف رحمه الله مزارعت هم ذکر کړو ځکه چه څنګه بیع او شراء او تجارت په طرق د کسب کښې دی، هم دغه شان مزارعت هم په انواع د کسب کښې دې، امام بخاری رحمه الله خو د مختلفو پیشو ذکر او د هغې ډیر ابواب په کتاب البیوع کښې ذکر کړی دی ﴿ باب ما قیل فی الصواغ، باب ذکر القین والحداد، باب الخیاط، باب النساج، باب النجار ﴾ وغیره وغیره، خو هغوی ابواب الحرث والمزارعت د کتاب البیوع نه پس مستقل بیل بیان کړل.

**د مزارعت اقسام سره د بیان د مذاهب ائمة :**

د مزارعت مختلف صورتونه او قسمونه دی چه په هغې کښې بعض بالاتفاق ناجائز دی او بعض بالاتفاق جائز دی او بعض مختلف فیه دی، مزارعت وئیلې شی د بل چا په زمکه کښې کرونده کولو ته په کرایه باندې اخستلو سره، نو ګویا مزارعت د کراء الارض نوم شو، پس که کراء الارض بالدراهم وغیره دی نو دا په اتفاق د ائمه اربعه جائز دې، او که مزارعت بقسمة الارض دې یعنی داسې معامله کول چه د زمکې په فلانئ حصه کښې چه به کومه کرونده او پیداوار کیږی د زمکې مالک اووائی چه هغه خو به زما وی او باقی د کرونده کونکی، دا بالاتفاق ممنوع دې ځکه چه په دې کښې دهوکه ده لکه چه ظاهره ده، او

يو صورت د مزارعت دا دې چه د طعام مسمى په بدل کښې وى يعنى د زمکې مالک کرونده کونکى ته اووائى چه زه تاته دا زمکه د غلې د دومره مقدار په بدله کښې په کرايه باندې درکوم، مثلا لس بورئ د غنمو، غنم مطلق کيږدى دا دې نه وائى چه د زمکې په پيداوار کښ، دا صورت د ائمة ثلاثه په نزد جائز دې او طعام مسمى به په دې صورت کښې په منزله د دراهمو وى، او د امام مالک رحمه الله په دې کښې اختلاف دې، هغوى کراء الارض بطعام مسمى ته ناجائز وائى، او يو قسم د مزارعت هغه دې کوم چه بحصته من الخارج وى يعنى د زمکې په پيدوار کښې په څه حصه باندې زمکه ورکړې شى مثلا نصف يا ثلث چه څه هم خپل مينځ کښې کيخودلې شى، هم دا هغه صورت دې کوم چه مشهور او مختلف فيه دې د ائمة ترمينځه چه هغې ته په نيمکاره باندې زمکه ورکول وائى، د صاحبينو او امام احمد رحمه الله په نز دا صورت جائز دې د باقى ائمه ثلاث امام ابوحنيفه، امام مالک او امام شافعى رحمه الله په نزد ناجائز دې. د امام ابوحنيفه او امام مالک په نزد خو مطلقا، او د امام شافعى رحمه الله په نزد لکه څنگه چه امام نووى رحمه الله فرمائى مستقلا خو ناجائز دې خو تبعا للمساقات جائز دې، زمونږ په نزد فتوى د صاحبينو په قول باندې ده يعنى په جواز باندې، خو د دې دپاره ډير شرطونه دى کوم چه د فقه په کتابونو کښې مذکور دى پس هغې ته دې رجوع اوکړې شى.

### د مساقات حکم د ائمة اربعه په نزد:

د مزارعت د قبيلې نه يوه بله معامله هم ده چه هغې ته مساقات وائى چه د هغې تعلق د باغ او اونو سره وى لکه چه د مزارعت تعلق د زمکو سره وى يعنى د باغ مالک د بل چا سره دا معامله اوکړى چه ته زمونږ د دې اونو اوبه خور او خدمت کوه، په دې کښې چه څه ميوه پيدا کيږى په هغې کښې دومره حصه ستا، دا د جمهور علماء او ائمة ثلاث او صاحبينو په نزد جائز دې خو د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد مساقات هم ناجائز دې، هغوى فرمائى دا خو کراء معدوم دې يعنى ميوه کوم ځائې موجود ده فى الحال چه په هغې باندې دا معامله اوکړې شى. هغوى فرمائى دا خو کراء معدوم دې يعنى ميوه موجوده چرته ده فى الحال چه په هغې سره دا معامله کولې شى، جمهور وائى چه د دې معاملې تعلق د عمل سره دې څنگه چه په مضاربت کښې وى هلته هم نفع فى الحال معدوم وى پس اوس دهغه اختلافاتو حاصل دا شو چه د امام صاحب او صاحبينو په نزد مزارعت او مساقات دواړه جائز دى، او د امام صاحب رحمه الله په نزد دواړه ناجائز دى، او د امام مالک او شافعى په نزد مزارعت خو ناجائز دې او مساقات جائز دې، خو دا په ذهن کښې اوساتئ لکه چه پورته تير شو چه د امام شافعى رحمه الله په نزد مزارعت تبعا للمساقات جائز دې. دا تفاصيل د ائمه اربعه د مذاهبو په اعتبار سره دى، د بعضو نورو علماء کرامو په دې کښې د دې نه علاوه مذاهب هم دى پس د طاؤس او ابن حزم ظاهرى رحمه الله په نزد مزارعت يعنى کراء الارض مطلقا په هيڅ شان هم جائز نه دې، هم دغه شان حافظ فرمائى

**قوله:** ﴿وبالغ ربيعة فقال لايجوز کراؤها الا بالذهب او الفضة﴾.

مونږ پورته دا ليکلي دي چه د احنافو په نزد په مزارعت کښې فتوی د صاحبينو په قول باندې ده چه د امام احمد رحمه الله هم دا مذهب دې او امام بخاری رحمه الله هم باب المزارعة بالشطر ونحوه قائمولو سره د ترجمة الباب د لاندې د بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم او د ډيرو تابعينو رحمهم الله اقوال تعليقا د دې په جواز کښې نقل کړی دی.

**د مزارعت د جواز حديث متفق عليه دې :**

او بيا ئې روستو د ابن عمر رضی الله عنهما حديث مسندا د هغې په جواز کښې اوفرمائيلو چه د هغې متن دا دې ﴿ عن نافع ان عبدالله بن عمر رضی الله عنهما اخبره ان النبی صلی الله علیه وسلم عامل اهل خيبر بشطر ما يخرج منها من زرع وثمر الحديث ﴾ (بخاری ۳۱۳/۲)

امام ترمذی رحمه الله هم د ټولو نه اول په باب کښې هم دا د ابن عمر رضی الله عنهما حديث ذکر فرمائيلې دې او بيا فرمائی ﴿ قال ابو عيسى هذا حديث حسن صحيح، والعمل على هذا عند بعض اهل العلم من اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم وغيرهم لم يروا بالمزارعة باسا على النصف والثلث والربع وهو قول احمد واسحاق ﴾ او بيا ئې د دې نه روستو دويم مذهب د امام مالک او شافعی رحمهما الله ذکر کړو چه هغوی دا ناجائز ګڼړی يعنی په کرايه باندې زمکه ورکول او بيا ئې وړاندې دريم مذهب دا بيان کړوچه دبعض علماء کرامو په نزد کراء الارض صرف په سرو او سپينو زرو باندې جائز ده آهـ دا آخری قول لکه چه پورته د حافظ په کلام کښې تير شو د ربيعة الرائ دې دا حديث د ابن عمر رضی الله عنهما کوم چه د جواز دليل دې کوم ته چه امام ترمذی رحمه الله حديث حسن صحيح وئيلې دې دا د صحاح سته روايت دې پس په تحفة الاخوذی کښې دی (اخرجه الجماعة).

**د مزارعت د عدم جواز حديث او په هغې کښې اضطراب سندا او متنا :**

او کوم حضرات چه مزارعت ته ناجائز وائی لکه ائمة ثلاث د هغوی دليل هغه حديث دې کوم چه امام ترمذی رحمه الله مستقلا بل باب قائمولو سره په هغې کښې ذکر کړې دې يعنی د رافع بن خديج رضی الله عنه حديث کوم چه امام ابوداؤد رحمه الله په متعدد طرقو سره په مختلفو الفاظو سره ذکر کړې دې. د دې حديث په باره کښې امام ترمذی رحمه الله فرمائی ﴿ وحديث رافع فيه اضطراب يروى هذا الحديث عن رافع بن خديج عن عمومته، ويروى عنه ظهير بن رافع وهو احد عمومته، وقد روى هذا الحديث عنه على روايات مختلفة اهـ ﴾ يعنی په دې حديث کښې سندا هم اضطراب دې او متنا هم، او دا ټول مختلف طرق د کومو طرف ته چه امام ترمذی رحمه الله اشاره فرمائيلې ده او تفصيلاً ئې هغه نه دی ذکر فرمائيلې دلته په ابوداؤد کښې دا ټول طرق مختلفه او روايات مختلفه په تفصيل سره ذکر شوی دی لکه چه ستاسو مخې ته په کتاب کښې موجود دی.

**د رافع بن خديج رضی الله عنه په حديث کښې متنا اضطراب :**

په دې حديث کښې لکه چه مونږ څنګه اووې متنا هم اختلاف دې هغه داسې چه د دې باب څلورم حديث اوګورئ چه په هغې کښې دی ﴿ قَالَ سَأَلْتُ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ عَنْ كِرَاءِ الأَرْضِ بِالذَّهَبِ وَالْوَرِقِ فَقَالَ لاَ بَأْسَ بِهَا إِنَّمَا كَانَ النَّاسُ يُؤَاجِرُونَ...... بِمَا عَلَى الْمَاذِيَانَاتِ وَأَقْبَالِ

الْجَدَاوِلِ الخ ﴾ د دې مضمون دا دې چه رافع بن خدیج رضی الله عنه فرمائی چه په کراء الارض بالدراهم والدنانیر کښې هیڅ باک نشته، ممانعت خو د دې دې لکه څنګه چه به بعض خلقو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې مزارعت کولو «د زمکې د تقسیم سره» چه کوم پیداوار د اوبو په لختو باندې اوشی او د نهر په نزدې حصو باندې اوشی هغه خو زمونږ او باقی د کرونده کونکی ﴿ ماذیانات ﴾ یعنی د اوبو د بهیدو خایونه یعنی نالۍ ﴿ اقبال الجداول ﴾ یعنی اوائل الجداول د دې روایت متن خو دا دې او د دې نه پس بیا په را روان باب کښې، ﴿باب فی التشدید فی ذلک ﴾ کښې په اووم حدیث کښې داسې راځی، ﴿إِنِّي لَيَتِيمٌ فِي حِجْرِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ وَحَجَجْتُ مَعَهُ فَجَاءَهُ أَخِي عِمْرَانُ بْنُ سَهْلٍ فَقَالَ أَكْرَيْنَا أَرْضَنَا فُلاَنَةَ بِمِائَتَىْ دِرْهَمٍ فَقَالَ دَعْهُ فَإِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنْ كِرَاءِ الأَرْضِ ﴾ اوګورئ په دې کښې د کراء الارض بالدراهم والدنانیر نه هم منع کوی. لهذا ترجیح د ابن عمر رضی الله عنهما حدیث یعنی د جواز حدیث لره ده، او هم دا د ابن عباس رضی الله عنهما د روایت نه هم معلومیږی لکه چه مونږ سره د باب په رومبی حدیث کښې تیر شوې دی.

[۳۳۸۹] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: مَا كُنَّا نَرَى بِالْمُزَارَعَةِ بَأْسًا، حَتَّى سَمِعْتُ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ، يَقُولُ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْهَا، فَذَكَرْتُهُ لِطَاوُسٍ، فَقَالَ: قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَنْهَ عَنْهَا، وَلَكِنْ قَالَ: "لَأَنْ يَمْنَعَ أَحَدُكُمْ أَرْضَهُ، خَيْرٌ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهَا خَرَاجًا مَعْلُومًا".

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ به زمکه په زمیداره ورکول بدنه ګنړل تردې چه مونږه د رافع بن حبیب رضی الله عنه نه واوریدل چه نبی علیه السلام ددې نه منع فرمائیلی ده نو ما داخبره طاوس ته بیان کړه هغه اوونیل ماابن عباس نه اوریدلی دی چه فرمائیل ئې نبی علیه السلام ددې نه منع نه ده. فرمائیلی چه څوك خپله زمکه چاته په ذمینداره بغیر کرایه ورکړی بلکه دا ددې نه بهترده چه زمکه دکرلو دپاره په کرایه ورکړي.

**قوله:** ﴿ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُولُ مَا كُنَّا نَرَى بِالْمُزَارَعَةِ بَأْسًا حَتَّى سَمِعْتُ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ يَقُولُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم نَهَى عَنْهَا، فَذَكَرْتُهُ لِطَاوُسٍ فَقَالَ قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم لَمْ يَنْهَ عَنْهَا وَلَكِنْ قَالَ « لأَنْ يَمْنَحَ أَحَدُكُمْ أَرْضَهُ خَيْرٌ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهَا خَرَاجًا مَعْلُومًا ﴾ مضمون د حدیث دا دې عمر بن دینار وائی چه ما د ابن عمر رضی الله عنه نه واوریدل هغوی به فرمائیل چه مونږ خو به په مزارعت کښې هیڅ باک نه ګنړلو «یعنی ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم» تردې چه ما د رافع بن خدیج رضی الله عنه نه واوریدل هغوی به وئیل چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې نه منع فرمائیلې ده، عمرو بن دینار وائی چه ما د ابن عمر رضی الله عنهما دا خبره طاؤس ته نقل کړه په دې باندې طاؤس اووې چه ماته زما استاد ابن عباس رضی الله عنهما دا فرمائیلې وو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د مزارعت نه منع نۀ ده فرمائیلې بلکه دا ئې فرمائیلې وو چه سړې دې خپله زمکه منیحه کړی

(۱): صحیح البخاري/ الحرث والمزارعة ۱۰ (۲۳۳۰)، الهبة ۳۵ (۲۶۳۴)، صحیح مسلم/البیوع ۲۱ (۱۵۴۷)، سنن النسائي/ المزارعة ۲ (۳۹۲۷، ۳۹۲۸) سنن ابن ماجه/الرهون ۷ (۲۴۵۰)، (تحفة الأشراف: ۵۷۳۵، ۳۵۶۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳۴/۱، ۱۱/۲، ۴۶۳، ۴۶۵، ۱۴۲/۴) (صحیح)

یعنی هم داسې دي بغیر د عوض نه د کروندې دپاره بل ته ورکړی دا زیاته غوره ده د دې نه چه په دې باندې څۀ اجرت معلومه واخلی.

د دې حاصل دا شو چه رافع بن خدیج کوم چه د حدیث نهی عن المزارعت په باره کښې روایت کوی د دې حدیث نه مقصود د رسول الله ﷺ تحریم دمزارعت لره بیانول نه دی بلکه د دې نه مقصود صرف ترغیب دې چه زمکه په خپله د کرایه ورکولو مفت ورکړې شی نو زیاته غوره ده، هم دغه شان د زید بن ثابت رضی الله عنه نه هم په حدیث د رافع باندې اعتراض راځی.

اوس دې د دې نه پس په ټولو روایاتو د باب کښې غور اوکړې شی د ټولو حاصل مونږ بیان کړو.

### د رافع بن خدیج حدیث هم په صحیحینو کښې موجود دې:

او د جمهور علماء ثلاث اتباع چا چه د رافع بن خدیج رضی الله عنه په حدیث باندې عمل کړې دې هغوی فرمائی چه دا حدیث د سنن نه علاوه د خپلو بعضو طرقو په اعتبار سره په بخاری او مسلم کښې هم دې د دې حدیث چه کوم طرق راجح وو په هم هغه طرقو سره حضرات شیخینو دا اخستلې دې او د دې په متن کښې چه پورته کوم اضطراب بیان کړې شوې دې د هغې په باره کښې محدثینو هغه طریق لره چه په هغې کښې د کراء الارض بالدراهم والدنانیر نه منع راغلې ده هغه ئې ضعیف کړې دې پس په تحفة الاحوذی کښې دی:

**قوله:** ﴿قال الحافظ فی الفتح واما ما رواه الترمذی من طریق مجاهد عن رافع بن خدیج فی النهی عن کراء الارض ببعض خراجها او بدراهم فقد اعله النسائی بان مجاهد لم یسمعه من رافع، قال الحافظ وابوبکر بن عیاش فی حفظه مقال، وقد رواه ابوعوانة وهو احفظ منه عن شیخه فیه فلم یذکر الدراهم آهـ﴾

[۳۳۹۰]() حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ الْمَعْنَى، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمَّارٍ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ أَبِي الْوَلِيدِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، قَالَ: قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ: يَغْفِرُ اللَّهُ لِرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، أَنَا وَاللَّهِ أَعْلَمُ بِالْحَدِيثِ مِنْهُ، إِنَّمَا أَتَاهُ رَجُلَانِ، قَالَ مُسَدَّدٌ: مِنَ الْأَنْصَارِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، قَدِ اقْتَتَلَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ كَانَ هَذَا شَأْنَكُمْ، فَلَا تُكْرُوا الْمَزَارِعَ". زَادَ مُسَدَّدٌ، فَسَمِعَ قَوْلَهُ: "لَا تُكْرُوا الْمَزَارِعَ".

د عروه بن زبیرنه روایت دې فرمائی چه زید بن ثابت رضی الله عنه فرمائیلی دی الله تعالی دې رافع بن خدیج ګفته مغفرت اوکړې په الله مې دې قسم وې زه دهغه نه په زیاتو احادیثو ښه پوهیږم، ده ته خوصرف دوه کسان راغلي دي، دمسدد په روایت کښې دي چه دا دواړه انصاریان وو، په باقی روایت کښې دواړه راویان متفق دي چه دوه کسان راغلل په خپل مینځ کښې ئې جګړه کړې وه نبی ﷺ ورته اوفرمائیل که چرې ستاسو داحال وي نوبیازمکه په کرایه باندې مه ورکوئ رافع بن خدیجه صرف دومره خبره اوریدلي ده چه زمي په کرایه مه ورکوئ اوددې نه مخکښې خبره ئې نه ده اوریدلي او نقل کړې ئې ده.

(): سنن النسائي/ المزارعة ۳ (۳۹۵۹)، سنن ابن ماجه/الرهون ۱۰ (۲۴۶۱)، (تحفة الأشراف: ۳۷۳۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۲/۵، ۱۸۷) (ضعيف)

**قوله:﴿ قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ يَغْفِرُ اللَّهُ لِرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ أَنَا وَاللَّهِ أَعْلَمُ بِالْحَدِيثِ مِنْهُ الخ ﴾**

زيد بن ثابت ﷛ د رافع بن خديج ﷛ په روايت باندې نقد فرمائي چه هغوی د رسول الله ﷺ د حديث په مفهوم باندې پوهيدو کښې غلطي اوکړه، زيد بن ثابت ﷛ فرمائي چه په دې حديث کښې زه د رافع بن خديج ﷛ نه زيات خبر يم اصل خبره دا ده چه دوه سړي چه هغوی په خپل مينځ کښې د مزارعت معامله کړې وه (په هغې کښې به هغوی څه ناجائزه شکل اختيار کړې وی، شرط فاسد وغيره) هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه که ستاسو حال دا وی نو بيا د مزارعت معامله مه کوئ يعنی رسول الله ﷺ د مطلق مزارعت نه منع نه ده فرمائيلې بلکه داسې مزارعت چه هغه مفضی الی النزاع وی. ﴿ فسمع قول لا تكروا المزارع ﴾ يعنی رافع بن خديج بغير د دې نه چه په سياق او سباق کښې غور اوکړی ﴿ لا تكروا المزارع ﴾ د حديث صرف دا ټکړه واوريده او هم هغه روايت کوی.

[۳۳۹۱](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عِكْرِمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَبِيبَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ سَعْدٍ، قَالَ: "كُنَّا نُكْرِي الْأَرْضَ بِمَا عَلَى السَّوَاقِي مِنَ الزَّرْعِ، وَمَا سَعِدَ بِالْمَاءِ مِنْهَا، فَنَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ وَأَمَرَنَا أَنْ نُكْرِيَهَا بِذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ".

دسعد ﷛ نه روايت دې چه مونږه به زمکه په محصول باندې ورکوله ددومره پيداوار په عوض کوم چه به دنير په غاړه ولاړ وو اوکوموته چه به اوبه پخپله ورختلې نونبی ﷺ مونږ له ددې خبرې نه منع کړو اوحکم ئې اوکړو چه زمکه په کرايه باندې د سروزرو يا دسپينوزرو په عوض ورکوئ.

[۳۳۹۲](٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، ح حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا لَيْثٌ كِلَاهُمَا، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَاللَّفْظُ لِلْأَوْزَاعِيِّ، حَدَّثَنِي حَنْظَلَةُ بْنُ قَيْسٍ الْأَنْصَارِيُّ، قَالَ: سَأَلْتُ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ عَنْ كِرَاءِ الْأَرْضِ بِالذَّهَبِ وَالْوَرِقِ؟ فَقَالَ: "لَا بَأْسَ بِهَا إِنَّمَا كَانَ النَّاسُ يُؤَاجِرُونَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا عَلَى الْمَاذِيَانَاتِ، وَأَقْبَالِ الْجَدَاوِلِ، وَأَشْيَاءَ مِنَ الزَّرْعِ، فَيَهْلِكُ هَذَا، وَيَسْلَمُ هَذَا، وَيَسْلَمُ هَذَا، وَيَهْلِكُ هَذَا، وَلَمْ يَكُنْ لِلنَّاسِ كِرَاءٌ إِلَّا هَذَا، فَلِذَلِكَ زَجَرَ عَنْهُ، فَأَمَّا شَيْءٌ مَضْمُونٌ مَعْلُومٌ فَلَا بَأْسَ بِهِ". وَحَدِيثُ إِبْرَاهِيمَ أَتَمُّ، وَقَالَ قُتَيْبَةُ: عَنْ حَنْظَلَةَ، عَنْ رَافِعٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رِوَايَةُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ حَنْظَلَةَ، نَحْوَهُ.

دحنظله بن قيس انصاري ﷛ نه روايت دې فرمائي چه رافع بن خديج ﷛ نه مې دسروزرو يادسپينو زرو په عوض دزمکې په کرايه ورکولو په باره کښې سوال اوکړو نوهغه راته جواب راکړو چه په دې کښې هيڅ حرج نشته دنبی ﷺ په زمانه کښې به خلقو داوبوخواته

---

(١): سنن النسائي/ المزارعة ٢ (٣٩٢٥)، (تحفة الأشراف: ٣٨٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٧٨، ١٨٢)، دي/ البيوع ٧٥ (٢٦٦٠) (حسن)

(٢): صحيح البخاري/ الحرث ٧ (٢٣٢٧)، ١٣ (٢٣٣٣)، ١٩ (٢٣٤٦)، الشروط ٧ (٢٧٢٢)، صحيح مسلم/ البيوع ١٩ (١٥٤٧)، سنن النسائي/ المزارعة ٢ (٣٩٣٠، ٣٩٣١، ٣٩٣٢، ٣٩٣٣)، سنن ابن ماجه/ الرهون ٩ (٢٤٥٨)، (تحفة الأشراف: ٣٥٥٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ كراء الأرض ١ (١)، مسند احمد (٣/٤٦٣، ٤/١٤٠، ١٤٢) (صحيح)

اودنالوخواته زمکې په کرایه ورکولې نوکله به فصل خایه شو اوکله به بچ پاتې کیدو ددې نه علاوه په خلقو کښې د محصول رواج نه وو نوځکه نبی ﷺ ددې نه منع اوفرمائیله اوکوم شې چه محفوظ وي نوپه هغې کښې څه خرج نشته، دابراهیم روایت مکمل دې اوقتیبه عن حنظله عن رافع وئیلي دي، امام ابوداود رحمة الله علیه فرمائی ددې روایت په شان روایت یحي بن سعید دحنظله نه هم نقل کړې دې.

[۳۳۹۳](۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ قَيْسٍ، أَنَّهُ سَأَلَ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ، عَنْ كِرَاءِ الْأَرْضِ، فَقَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كِرَاءِ الْأَرْضِ، فَقَالَ: أَبِالذَّهَبِ وَالْوَرِقِ، فَقُلْتُ: أَمَّا بِالذَّهَبِ وَالْوَرِقِ فَلَا بَأْسَ بِهِ".

د حنظله بن قیس نه روایت دې فرمائی چه درافع بن خدیج رضی الله عنه نه مې دزمکې په کرایه ورکولو په باره کښې تپوس اوکړو نوهغه اوفرمائیل نبی ﷺ ددې نه منع فرمائیلی ده (یعنی دکرلودپاره) بیاحنظله اووئیل چه درافع نه مې تپوس اوکړو که چرې دسروزرو پاسپینوزرو په عوض زمکه په کرایه ورکړې شي نوڅه حکم لری هغه اوفرمائیل په دې کښې څه حرج نشته.

﴿عَنْ سَعْدٍ قَالَ كُنَّا نُكْرِي الْأَرْضَ بِمَا عَلَى السَّوَاقِي مِنَ الزَّرْعِ وَمَا سَعِدَ بِالْمَاءِ مِنْهَا﴾

سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی چه مونږ به زمکه په کرایه باندې ورکوله د هغه پیدوار په بدل کښې کوم چه به د اوبو د نالو په خوا کښې کیدلو، او د زمکې په کومو حصو کښې چه به د سواقی اوبه پخپله رسیدې (یعنی مزارعت بقسمة الارض) پس رسول الله ﷺ مونږ د هغې نه منع اوفرمائیلو.

## بَابٌ فِي التَّشْدِيدِ فِي ذَلِكَ

### باب: زمکه په اجاره د ورکولو ممانعت

[۳۳۹۴](۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي اللَّيْثِ، حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ، كَانَ يُكْرِي أَرْضَهُ حَتَّى بَلَغَهُ، أَنَّ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ الْأَنْصَارِيَّ حَدَّثَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْهَى عَنْ كِرَاءِ الْأَرْضِ، فَلَقِيَهُ عَبْدُ اللَّهِ، فَقَالَ: يَا ابْنَ خَدِيجٍ، مَاذَا تُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي كِرَاءِ الْأَرْضِ؟ قَالَ رَافِعٌ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ: سَمِعْتُ عَمَّيَّ وَكَانَا قَدْ شَهِدَا بَدْرًا يُحَدِّثَانِ أَهْلَ الدَّارِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ كِرَاءِ الْأَرْضِ". قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: وَاللَّهِ لَقَدْ كُنْتُ أَعْلَمُ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ الْأَرْضَ تُكْرَى، ثُمَّ خَشِيَ عَبْدُ اللَّهِ أَنْ يَكُونَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْدَثَ فِي ذَلِكَ شَيْئًا لَمْ يَكُنْ عَلِمَهُ، فَتَرَكَ كِرَاءَ الْأَرْضِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَيُّوبُ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ، وَكَثِيرُ بْنُ فَرْقَدٍ، وَمَالِكٌ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ رَافِعٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ حَفْصِ بْنِ عِنَانٍ الْحَنَفِيِّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ رَافِعٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ زَيْدُ بْنُ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ أَتَى رَافِعًا، فَقَالَ: سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۵۵۳) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الحرث ۱۸ (۲۳۴۵)، صحيح مسلم/البيوع ۱۷ (۱۵۴۷)، سنن النسائي/المزارعة ۲ (۳۹۲۱)، (تحفة الأشراف: ۶۸۷۹، ۵۵۷۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۶۵/۳، ۱۴۰/۴) (صحيح)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ: نَعَمْ، وَكَذَا. قَالَ عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ: عَنْ أَبِي النَّجَاشِيِّ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ، وَرَوَاهُ الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ أَبِي النَّجَاشِيِّ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنْ عَمِّهِ ظُهَيْرِ بْنِ رَافِعٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو النَّجَاشِيِّ: عَطَاءُ بْنُ صُهَيْبٍ.

سالم بن عبدالله بن عمر خبر راکړې دي چه ابن عمر رضی الله عنهما به خپله زمکه په اجاره باندې ورکوله، بیا کله چه هغوی ته داخبر اورسیدو چه رافع بن خدیج انصاری رضی الله عنه حدیث بیان کړې دي چه رسول الله ﷺ به زمکه په اجاره ورکولونه منع کوله، نو عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دهغوی سره ملاؤ شو، او ورته ئې اووئیل: ابن خدیج! زمکه په اجاره باندې د ورکولو په سلسله کښې د رسول الله ﷺ نه آیا تاسو حدیث بیانوئ؟ رافع رضی الله عنه عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته اووئیل: ما دخپلو دواړو ترونو نه اوریدلی دی اوهغوی دواړه په جنګ بدر کښې شریک وو، هغوی کور والو ته حدیث بیانولو چه رسول الله ﷺ زمکه په اجاره باندې د ورکولو نه منع فرمائیلې ده، عبدالله بن عمر رضی الله عنهما اووئیل: په الله قسم! ماته د رسول الله ﷺ په زمانه کښې دا پته وه چه زمکه به په اجاره باندې ورکولې شوه، بیا عبدالله رضی الله عنه ته ویره شوه چه په دغه دوران کښې رسول الله ﷺ په دې باره کښې کومه نوې خبره نه وی صادر کړې او ماته پته نه وی لګیدلې، نوهغوی زمکه په اجاره باندې ورکول پریخودل، ابوداؤد وائی چه هغه ته ایوب، عبیدالله، کثیر بن فرقد او مالک د نافع نه، هغوی د رافع رضی الله عنه نه او رافع د نبی کریم ﷺ نه روایت کړې دي. او دا اوزاعی د حفص بن عنان حنفی نه اوهغوی د نافع نه او نافع د رافع رضی الله عنه نه روایت کړې دي، رافع وائی: ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی، او دغسې دا زید بن ابی انیسه د حکم نه، هغوی دنافع نه او نافع د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړې دي چه هغه رافع ته راغې اوهغه نه ئې تپوس اوکړو چه آیا تاسو د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی؟ نو هغوی آووئیل: آؤ، دغسې عکرمه بن عمار د ابونجاشی نه اوهغوی د رافع بن خدیج رضی الله عنه نه روایت کړې دي هغه وائی: ما د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی، او دا اوزاعی د ابو نجاشی نه، هغوی د رافع بن خدیج رضی الله عنه نه، رافع دخپل تره ظهیر بن رافع نه اوهغوی د نبی کریم ﷺ نه روایت کړې دي. ابوداؤد وائی: د ابونجاشی نه مراد عطاء بن صهیب دي.

**قوله:** ﴿ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُكْرِي أَرْضَهُ حَتَّى بَلَغَهُ أَنَّ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ الْأَنْصَارِيَّ ﴾ الخ

یعنی د ابن عمر رضی الله عنهما عادت کوم چه د رسول الله ﷺ د زمانې نه د مزارعت وو ترد دې چه هغوی ته د رافع بن خدیج رضی الله عنه د مزارعت دا روایت اورسیدو چه رسول الله ﷺ به د دې نه منع فرمائیله د کراء الارض نه په دې باندې عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د رافع بن خدیج رضی الله عنه ملاقات ته لاړو چه ته د رسول الله ﷺ نه د کراء الارض په باره کښې څه حدیث نقل کوې؟ نو هغوی جواب ورکړو چه ما د خپلو دوه ترونو نه واوریدل ﴿ قیل اسم العمین : ظهیر ومظهر وقیل ظهیر و مُهیر ﴾ کومو چه به زمونږ د کور د خلقو نه بیان کولو چه رسول الله ﷺ د کراء الارض نه منع اوفرمائیله، په دې باندې عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی قسم په الله پاک مونږ ته ښه پته ده چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به زمکه په دې طریقه په کرایه باندې ورکولې شوه ﴿ ثم خشی عبدالله الخ ﴾ یعنی په شروع کښې خو ابن عمر رضی الله عنهما هم داسې اوفرمائیل خو بیا ورته

روستو دا ویره پیدا شوه چه هسې نه واقعی رسول الله ﷺ په اخر کښې د دې نه منع فرمائیلې وی چه د هغې ماته خبر نه دې شوې پس هغوی مزارعت احتیاطًا ترک کړو.

[۳۳۹۵] (۱) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ يَعْلَى بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ، قَالَ: "كُنَّا نُخَابِرُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ أَنَّ بَعْضَ عُمُومَتِهِ أَتَاهُ، فَقَالَ: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَمْرٍ كَانَ لَنَا نَافِعًا، وَطَوَاعِيَةُ اللَّهِ وَرَسُولِهِ أَنْفَعُ لَنَا، وَأَنْفَعُ، قَالَ: قُلْنَا: وَمَا ذَاكَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَزْرَعْهَا، أَوْ فَلْيُزْرِعْهَا أَخَاهُ، وَلَا يُكَارِهَا بِثُلُثٍ، وَلَا بِرُبُعٍ، وَلَا بِطَعَامٍ مُسَمًّى".

د سلیمان بن یسار نه روایت دې فرمائي چه رافع بن خدیج رضی الله عنه وئیلی دی چه مونږ به د نبی ﷺ په زمانه کښې زمکه په زمینداره ورکوله او اوئې وئیل چه یوځل زما یوتره راغې او وئې وئیل چه نبی ﷺ د دې معاملې نه منع فرمائیلې ده په کومه کښې چه زمونږ فائده وه لیکن دالله تعالی اودهغه درسول تابعداری کول زمونږ دپاره ډیرفائده مند عمل دې مونږ ورته عرض وکړوچه هغه نبی ﷺ اوفرمائیل دهرچاسره چه زمکه وي نویاخودې پخپله وکري او یا دې بل چاته په زمینداره ورکړي او په برخودې ئې نه ورکوي.

﴿ وَلاَ يُكَارِيهَا بِثُلُثٍ وَلاَ بِرُبُعٍ وَلاَ بِطَعَامٍ مُسَمًّى ﴾

### د امام مالک رحمه الله د مسلک تائید:

د دې حدیث نه د امام مالک رحمه الله د مسلک تائید کیږی چه زمکې لره د طعام مسمی په بدل کښې نه دی ورکول پکار، د جمهورو د طرف نه د دې جواب دا کیدی شي چه د طعام مسمی نه مراد د غلې مقدار معین پنځه بورئ یا لس بورئ مراد نه دی بلکه د دې نه مراد هغه غله ده ﴿ ما علی السواقی والماذیانات ﴾ کوم چه بالاتفاق ممنوع دی.

[۳۳۹٦] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، قَالَ: كَتَبَ إِلَيَّ يَعْلَى بْنُ حَكِيمٍ، أَنِّي سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ يَسَارٍ بِمَعْنَى إِسْنَادِ عُبَيْدِ اللَّهِ وَحَدِيثِهِ.

دایوب نه روایت دې فرمائي چه یعلی بن حکیم ماته لیکلی ووچه ما دسلیمان بن یسار نه آوریدلی دی په اود روایت متن اوسند ئې دعبیدالله دروایت په شان دی.

[۳۳۹۷] (۳) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ ابْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: جَاءَنَا أَبُو رَافِعٍ، مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَمْرٍ كَانَ يَرْفُقُ بِنَا وَطَاعَةُ اللَّهِ وَطَاعَةُ رَسُولِهِ أَرْفَقُ بِنَا نَهَانَا أَنْ يَزْرَعَ أَحَدُنَا إِلَّا أَرْضًا يَمْلِكُ رَقَبَتَهَا، أَوْ مَنِيحَةً يَمْنَحُهَا رَجُلٌ".

د رافع بن خدیج رضی الله عنه خوي د خپل پلار نه روایت کوی فرمائي چه زما پلارمونږ ته د نبی ﷺ دخوانه راغې او وئې وئیل چه مونږ نبی ﷺ دهغه کارنه منع کړی یو کوم چه زمونږ دپاره

[1]: صحيح مسلم/البيوع ۱۸ (۱۵٤۸)، سنن النسائي/المزارعة ۲ (۳۹۰٤، ۳۹۰۵، ۳۹۲٦)، (تحفة الأشراف: ۳۵۵۹، ۳۵۵۹، ۱۵۵۷۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/كراء الأرض ۱ (۱)، مسند احمد (٤٦٤/۳، ٤٦٥، ٤٦٦) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۵۵۹، ۱۵۵۷۰) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۳۳) (حسن)

اسان دي، ليکن زمونږ دپاره دهرڅه نه اسان دالله تعالی اودهغه درسول تابعداري کول دي، مونږ نبی ﷺ ددې نه منع کړی يو چه په مونږ کښې دی يوکس دچاز مکه وکړي مګرهله به ئې کړي چه مالك په خپله وې اويائې بل څوك ده ته دهدئې په طور ورکړي.

[۳۳۹۸](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، أَنَّ أُسَيْدَ بْنَ ظُهَيْرٍ، قَالَ: جَاءَنَا رَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "يَنْهَاكُمْ عَنْ أَمْرٍ كَانَ لَكُمْ نَافِعًا، وَطَاعَةُ اللَّهِ وَطَاعَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْفَعُ لَكُمْ، إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَاكُمْ عَنِ الْحَقْلِ، وَقَالَ: مَنِ اسْتَغْنَى عَنْ أَرْضِهِ، فَلْيَمْنَحْهَا أَخَاهُ أَوْ لِيَدَعْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَكَذَا رَوَاهُ شُعْبَةُ، وَمُفَضَّلُ بْنُ مُهَلْهِلٍ، عَنْ مَنْصُورٍ، قَالَ شُعْبَةُ: أُسَيْدٌ ابْنُ أَخِي رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ.

داسيد بن ظهيرنه روايت دې فرمائي چه رافع بن خديج مونږته راغې اوونې وئيل چه نبی ﷺ تاسوديوکارنه منع کړي يئ په کوم کښې چه ستاسو دپاره څه قدرې فائده ده ليکن دالله تعالی اودهغه درسول تابعداري کول ستاسو دپاره عظيمه فائده ده يقينانبی ﷺ تاسودحقل (زمکه په زميداره ورکولو نه منع کړي يئ اوفر مائيلي ئې دي څوك چه په تاسوکښې خپلې زمکې ته ضرورت نه لری نوخپل مسلمان رورته دې هديه کړی (عاريتاياهبتا). امام ابوداؤد فرمائي چه دا روايت شعبه اومفضل بن مهلهل هم د منصور نه نقل کړي دي، اوشعبه وئيلی دی اسيد درافع بن خديج وراره دې.

[۳۳۹۹](²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ الْخَطْمِيُّ، قَالَ: بَعَثَنِي عَمِّي أَنَا، وَغُلَامًا لَهُ، إِلَى سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، قَالَ: فَقُلْنَا لَهُ شَيْءٌ بَلَغَنَا عَنْكَ فِي الْمُزَارَعَةِ، قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ لَا يَرَى بِهَا بَأْسًا حَتَّى بَلَغَهُ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ حَدِيثٌ، فَأَتَاهُ فَأَخْبَرَهُ رَافِعٌ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَتَى بَنِي حَارِثَةَ، فَرَأَى زَرْعًا فِي أَرْضِ ظُهَيْرٍ، فَقَالَ: "مَا أَحْسَنَ زَرْعَ ظُهَيْرٍ، قَالُوا: لَيْسَ لِظُهَيْرٍ، قَالَ: أَلَيْسَ أَرْضُ ظُهَيْرٍ؟ قَالُوا: بَلَى، وَلَكِنَّهُ زَرْعُ فُلَانٍ. قَالَ: فَخُذُوا زَرْعَكُمْ، وَرُدُّوا عَلَيْهِ النَّفَقَةَ"، قَالَ رَافِعٌ: فَأَخَذْنَا زَرْعَنَا، وَرَدَدْنَا إِلَيْهِ النَّفَقَةَ، قَالَ سَعِيدٌ: أَفْقِرْ أَخَاكَ أَوْ أَكْرِهِ بِالدَّرَاهِمِ".

دابوجعفرخطمی نه روايت دې فرمائي چه زه خپل تره اويونې راسره خپل غلام سعيد بن المسيب نه وليږلومونږ ورته ووئيل چه دمزارعت په حقله مونږ ته ستادخوانه خبر را کړې شوې دې هغه ووئيل چه ابن عمر ﷺ به ددې څه باك نه ګنړلو، تردې درافع بن خديج دطرف نه ورته روايت ورسيدونوهغه رافع بن خديج ته ورغې رافع ورته خبر ورکروچه نبی ﷺ بنی حارثه ته لاړو اود ظهير په زمکه کښې ئې فصل اوليدونو اوئې فرمائيل دظهيرفصل څومره ښکلې دې، صحابه کرامو ورته ووئيل دا دظهير نه دې، نبی ﷺ اوفرمائيل اياداد ظهيرزمکه نه ده هغوی ووئيل ولې نه ليکن فلانی ته ئې په زميداره ورکړې ده نبی غليه السلام اوفرمائيل خپل فصل واخلئ اوهغه ته مصرف واپس کړئ رافع وائی چه مونږ خپل فصل واخستواوهغه ته مومصرف واپس کړو. دسعيدپه روايت کښې دی چه اوس دوه صورتونه دي يا خو دخپل ورور محتاجی رفع کړئ يعنی دعاريت نه بغير ورته زمکه

¹): سنن النسائي/المزارعة ٢ (٣٨٩٤)، سنن ابن ماجه/الرهون ١٠ (٢٤٦٠)، (تحفة الأشراف: ٣٥٤٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/كراء الأرض ١ (١)، مسند احمد (٤٦٤/٣، ٤٦٥، ٤٦٦) (صحيح)

²): سنن النسائي/المزارعة ٢ (٣٩٢٠)، (تحفة الأشراف: ٣٥٥٨) (صحيح الإسناد)

ورکړئ اوکله چه زمکه فارغه شي نو واپس ئې واخلئ اویائي ورته ددراهمو په عوض په کرایه ورکړئ.

**قوله:** ﴿قَالَ سَعِيدٌ أَفْقِرْ أَخَاكَ أَوْ أَكْرِهِ بِالدَّرَاهِمِ﴾ دا د اکره الاکراء نه ماخوذ دې، په کرایه باندې ورکول، سعید بن المسیب رحمه الله فرمائی چه خپل رور ته دې زمکه هم داسې ویړیا ورکړی یا د دراهمو په بدل کښې، یعنی په نیمه دې نه ورکوی.

[۳۴۰۰] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا طَارِقُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ، وَقَالَ: إِنَّمَا يَزْرَعُ ثَلاَثَةٌ رَجُلٌ لَهُ أَرْضٌ فَهُوَ يَزْرَعُهَا، وَرَجُلٌ مُنِحَ أَرْضًا فَهُوَ يَزْرَعُ مَا مُنِحَ، وَرَجُلٌ اسْتَكْرَى أَرْضًا بِذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ".

د رافع بن خدیج نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده د محاقلې اومزابنې نه، اووئیلې ئې دي چه زراعت په درې قسمه وي یو خودهغه کس زراعت دې دچاچه ذاتي زمکه وي بل هغه کس دې چاچه دبل نه سوالي زمکه اخستلې وي اوهغه په دې کښې مزارعت کوي، اوبل هغه کس دې چاچه په سپینو یا سرو زرو زمکه په کرایه اخستلې وي.

**قوله:** ﴿نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ﴾ محاقلة وائی بیع الزرع بالحنطة ته یعنی د ولاړ فصل بدلول د هغې اندازه لګولو سره په تیار فصل باندې، یا د دې نه مراد بیع الزرع په وړو کښې صلاحیت ته د رسیدو نه مخکښې اوئیلې شوې دی چه د دې نه مراد مزارعت بالثلث ونحوه دې.

[۳۴۰۱] (۲) قَالَ أَبُو دَاوُد: قَرَأْتُ عَلَى سَعِيدِ بْنِ يَعْقُوبَ الطَّالَقَانِيِّ، قُلْتُ لَهُ: حَدَّثَكُمُ ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سَعِيدٍ أَبِي شُجَاعٍ، حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ سَهْلِ بْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: "إِنِّي لَيَتِيمٌ فِي حِجْرِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ وَحَجَجْتُ مَعَهُ فَجَاءَهُ أَخِي عِمْرَانُ بْنُ سَهْلٍ، فَقَالَ: أَكْرَيْنَا أَرْضَنَا فُلاَنَةَ بِمِائَتَيْ دِرْهَمٍ، فَقَالَ: دَعْهُ، فَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ كِرَاءِ الأَرْضِ".

دعثمان بن سهل بن رافع بن خدیج نه روایت دې فرمائی چه زه یتیم وم اود رافع بن خدیج په پرورش کښې وم اودهغه سره حج ته تلې وم نوهغه ته دعمران بن سهل وررور راغې عرض ئې وکړوچه مونږ فلانی زمکه په کرایه ورکړه په دوه سوه درهمه هغه ورته ووئیل چه داپریږده یقینا نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده دزمکې په کرایه ورکولونه.

[۳۴۰۲] (۳) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا بُكَيْرٌ يَعْنِي ابْنَ عَامِرٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ، حَدَّثَنِي رَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ، أَنَّهُ زَرَعَ أَرْضًا، "فَمَرَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَسْقِيهَا، فَسَأَلَهُ، لِمَنِ الزَّرْعُ، وَلِمَنِ الأَرْضُ؟، فَقَالَ: زَرْعِي بِبَذْرِي، وَعَمَلِي لِي الشَّطْرُ، وَلِبَنِي فُلاَنٍ الشَّطْرُ، فَقَالَ: أَرْبَيْتُمَا، فَرُدَّ الأَرْضَ عَلَى أَهْلِهَا وَخُذْ نَفَقَتَكَ".

---

[1]: سنن النسائي/ المزارعة ۲ (۳۹۲۱)، التجارات ٥٤ (۲٦٦۷)، سنن ابن ماجه/الرهون ۷ (۲٤٤۹)، (تحفة الأشراف: ۳٥٥۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ كراء الأرض ۱ (۱) مسند احمد (۳/٤٦٤، ٤٦٥، ٤٦٦) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/المزارعة ۳ (۳۹٥۸)، (تحفة الأشراف: ۳٥٦۹) (شاذ)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳٥٦۸) (ضعيف الإسناد)

درافع بن خديج نه روايت دې فرمائي چه مايوه زمكه كرلې وه اونبى ﷺ په دې باندې تيريدو اوما اوبه كوله نبى ﷺ تپوس وكړودافصل دچا دې؟ او زمكه دچاده؟ ما ووئيل فصل زمادې او تخم او محنت هم زما دې خونيم پيداوار به زما وى اونيم به د زمكې دمالك وى نبى ﷺ اوفرمائيل تاسو ربا كړې ده (يعنى عقد ناجائزدې) زمكه مالك ته واپس كړه اوخپله خرچه ورنه واخله.

## بَابٌ فِي زَرْعِ الْأَرْضِ بِغَيْرِ إِذْنِ صَاحِبِهَا

[۳۴۰۳](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ زَرَعَ فِي أَرْضِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ، فَلَيْسَ لَهُ مِنَ الزَّرْعِ شَيْءٌ وَلَهُ نَفَقَتُهُ".

درافع بن خديج نه روايت دې فرمائي چه نبى ﷺ فرمائيلى دى چاچه دچازمكه بغير اجازته وكرله نوادې زمكې په فصل كښې دده هيڅ حصه نشته اودده دپاره دده خرچه ده.

﴿ مَنْ زَرَعَ فِي أَرْضِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ فَلَيْسَ لَهُ مِنَ الزَّرْعِ شَيْءٌ وَلَهُ نَفَقَتُهُ ﴾ يعنى كوم سړې چه د بل په زمكه كښې بغير د هغه د اجازت نه كرونده اوكړى نو د كرونده كونكى دپاره په هغه پټى كښې هيڅ نشته، يعنى ټول فصل به د زمكې د مالک وى او د كرونده كونكى دپاره به هغه وى كوم چه د هغه محنت او خرچه شوې ده.

دا حديث د جمهورو د مسلک خلاف دې ځكه چه د دې حديث نه خو دا معلوميږى چه په داسې صورت كښې به فصل د پټى د مالک دپاره وى او د مزارع دپاره به مطلقا نه وى حال دا چه د جمهور فقهاء كرامو مسلک دا دې ﴿ الزرع لصاحب البذر مطلقا وللآخر كراء الارض او اجر الخدمة ﴾ يعنى په دې صورت كښې به فصل د هغه سړى دپاره وى د چا چه تخم وى كه هغه د زمكې د مالک وى يا د فصل د خاوند، او د بل دپاره به كه هغه د زمكې مالک وى نو كراء الارض وى او كه كاشتكار وى نو د هغه دپاره به د محنت مزدورئ اجر وى، خو ظاهر دا ده چه كله بغير د مالک د اجازت نه كرونده كوى نو تخم به هغه كرونده كونكې د خپل طرف نه اچوى او په داسې صورت كښې د فقهاء كرامو فيصله دا ده چه فصل به د كرونده كونكى دپاره وى حال دا چه په دې حديث كښې دا دى چه د زمكې د مالک دپاره به وى. د دې محدثانه جواب خو دا دې چه دا حديث د محدثينو په نزد غير ثابت دې كما قال الخطابى، او يا دې بيا دا تاويل اوكړې شى چه په حديث كښې چه كوم حكم مذكور دې په هغه صورت كښې دې چه كله تخم هم د زمكې د مالک وى، يعنى حديث عام نه دې بلكه په يو خاص صورت باندې محمول دې. والحديث اخرجه الترمذى وابن ماجة، قاله المنذرى

١): سنن الترمذي/الأحكام ٢٩ (١٣٦٦)، سنن ابن ماجه/الرهون ١٣ (٢٤٦٦)، (تحفة الأشراف: ٣٥٧٠)، وقد أخرجه: مسند أحمد (٤٦٥/٣، ١٤١/٤) (صحيح)

## بَابٌ فِي الْمُخَابَرَةِ

### د مخابرې (زمکه په حصه د ورکولو) بیان

[٣٤٠٤](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ حَمَّادًا، وَعَبْدَ الْوَارِثِ حَدَّثَاهُمْ كُلُّهُمْ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، قَالَ: عَنْ حَمَّادٍ، وَسَعِيدِ بْنِ مِينَاءَ، ثُمَّ اتَّفَقُوا، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُحَاقَلَةِ، وَالْمُزَابَنَةِ، وَالْمُخَابَرَةِ، وَالْمُعَاوَمَةِ"، قَالَ: عَنْ حَمَّادٍ، وَقَالَ أَحَدُهُمَا: وَالْمُعَاوَمَةِ، وَقَالَ الْآخَرُ: بَيْعُ السِّنِينَ، ثُمَّ اتَّفَقُوا، وَعَنِ الثُّنْيَا وَرَخَّصَ فِي الْعَرَايَا.

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روایت دي چه نبي ﷺ منع فرمائیلي ده دولار فصل دخروڅولونه اودخرڅولو دمیوونه په ونوکښې اودمخابرې یعنی په برخه او دبیع معاومه نه (دڅوکالو دپاره خرڅولو ته معاومه وئیلي شي، یعنی دائنده راروانو فصلونو خرڅول معاومه ده او دناجائزدي). دڅوکالو پورې، او داستثناء کولونه، اوددینه یو مقدار وښکل، او اجازت ئې ورکړې دي دعرایا (کوم چه پورته په مفصل طورسره ذکر شول).

﴿ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ وَالْمُخَابَرَةِ.... وَعَنِ الثُّنْيَا ﴾

د مزابنه معنی په مستقل باب کښې تیره شوې ده او د محاقله معنی اوس تیره شوه، د مخابره نه مراد هم هغه مزارعت او په نیمه باندې زمکه ورکول دی، دا د لفظ خیبر نه جوړ دې. او وئیلي شوي دی چه په مخابره او مزارعت کښې فرق دا دې چه په مزارعت کښې بذر د مالک ارض د طرف نه وی په خلاف د مخابره چه په هغې کښې د زمیندار د طرف نه وی وقیل غیر ذلک.

[٣٤٠٥](2) بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُزَابَنَةِ، وَالْمُحَاقَلَةِ، وَعَنِ الثُّنْيَا إِلَّا أَنْ يُعْلَمَ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روایت دي چه نبي ﷺ منع فرمائیلي ده دخرڅولودمیوونه په ونو کښې، اود ولاړفصل دخروڅولونه اود استثناء کولونه، مګر کله چه ددې مقدار معلوم وي.

﴿ وعن الثنيا ﴾ ثنیا په معنی د استثناء او مراد د دې نه استثناء مجهول ده چه په بیع وغیره کښې استثناء مجهول مضر او ناجائز ده هم په دې وجه وراندې په دویم روایت کښې راځی ﴿ الا ان يعلم ﴾ یعنی که معلوم وی نو هیڅ حرج او باک نشته لکه چه څوک د میوو د بیع په وخت کښې د خپل باغ معامله کولو په وخت داسې اوائی ﴿ مګر پنځه اونې ﴾ او تعیین ئې اونکړې چه کومې پنځه اونې یا داسې اوائی چه څو اونې او دا استثناء مجهول ده بیع به فاسده شي.

(1): صحيح مسلم/البيوع ١٦ (١٥٣٦)، سنن الترمذي/البيوع ٥٥ (١٢٩٠)، ٧٢ (١٣١٣)، سنن النسائي/الأيمان ٤٥ (٣٨٨٦)، البيوع ٧٢ (٤٦٣٨)، سنن ابن ماجه/التجارات ٥٤ (٢٢٦٦)، (تحفة الأشراف: ٢٦٦٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المساقاة ١٧ (٢٣٨٠)، مسند احمد (٣/٣١٣، ٣٥٦، ٣٦٠، ٣٦٤، ٣٦، ٣٩٢) (صحيح)

(2): سنن الترمذي/البيوع ٥٥ (١٢٩٠)، سنن النسائي/المزارعة ٢ (٣٩١١)، (تحفة الأشراف: ٢٤٩٥) (صحيح)

[۳۴۰۶](¹) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ رَجَاءٍ يَعْنِي الْمَكِّيَّ، قَالَ ابْنُ خُثَيْمٍ: حَدَّثَنِي، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ لَمْ يَذَرِ الْمُخَابَرَةَ، فَلْيَأْذَنْ بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ".

دجابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلي وو چه فرمائیل ئې چاچه مخابره پرې نخوده نودې دې خبرشي دالله اودرسول په جنګ باندې دده سره.

﴿مَنْ لَمْ يَذَرِ الْمُخَابَرَةَ فَلْيَأْذَنْ بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ يعنی کوم انسان چه د مخابره پریخودلو دپاره تیار نه وی او هغه دومره جری دې نو هغه له پکار دی چه اعلان اوکړی الله او د هغه رسول ﷺ سره د جنګ، د وعید په طور وئیلې شی چه یو قدم دې نور هم وړاندې شی، ﴿كما فی قوله تعالی: فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ یعنی که تاسو نه پریږدئ نو تیار شئ د جنګ دپاره الله او د هغه رسول ﷺ سره، او صاحب د عون المعبود دا په صیغه د مجهول ضبط کړې دې ﴿ای لیخبر وبالفارسية﴾ آگاه کرده شود. یعنی داسې سړې دې خبر کړې شی د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ د طرف نه د جنګ دپاره، یعنی هغه د الله پاک او د هغه رسول ﷺ سره جنګ کوی، یا دا چه اوس به هغه سره د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ د طرف نه جنګ کیږی، والله تعالی اعلم، او په بذل کښې لیکلې دی چه مخابره چونکه عقد فاسد دې کوم چه د ربا په حکم کښې دې او الله پاک د ربا په نه ترک کولو باندې په قرآن کریم کښې دا وعید فرمائیلې دې ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ، فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ لهذا مخابره نه پریخودنکې هم د دې وعید مستحق دې.

[۳۴۰۷](²) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ بُرْقَانَ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُخَابَرَةِ، قُلْتُ: وَمَا الْمُخَابَرَةُ؟ قَالَ: أَنْ تَأْخُذَ الْأَرْضَ بِنِصْفٍ، أَوْ ثُلُثٍ، أَوْ رُبُعٍ".

دزید بن ثابت نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائیلې ده د مخابرې نه یعنی د زمکې دحاصل نه دریمه خلورمه برخه اخستل.

## بَابٌ فِي الْمُسَاقَاةِ

### د مساقاة بیان (باغ په حصه ورکول)

[۳۴۰۸](³) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "عَامَلَ أَهْلَ خَيْبَرَ بِشَطْرِ مَا يَخْرُجُ مِنْ ثَمَرٍ أَوْ زَرْعٍ".

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۷۷۵) (ضعيف)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۶۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۷/۵) (صحيح)

³): صحيح البخاري/الحرث ۸ (۲۳۲۹)، صحيح مسلم/المساقاة ۱ (۱۵۵۱)، سنن الترمذي/الأحكام ۴۱ (۱۳۸۳)، سنن ابن ماجه/الرهون ۱۴ (۲۴۶۷)، (تحفة الأشراف: ۸۱۳۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۷/۲، ۲۲، ۳۷)، سنن الدارمي/البيوع ۷۱ (۲۶۵۶) (صحيح)

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه نبی علیه السلام داهل خیبر والاسره دهغوی دزمکي په نیم پیداوار یا پوره پیداوار باندي معامله کړي وه.

قوله: ﴿ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- عَامَلَ أَهْلَ خَيْبَرَ بِشَطْرِ مَا يَخْرُجُ مِنْ ثَمَرٍ أَوْ زَرْعٍ ﴾

ابن عمر رضي الله عنهما چونکه خپله د مزارعت قائل وو لکه چه په تیر باب کښي ذکر شوه او هم دغه شان هغه د مساقات د جواز هم قائل وو لکه چه ____ هغوی په دي حدیث مرفوع کښي روایت کوی، په دي حدیث کښي د مزارعت او مساقات دواړو ذکر دي.

## د رسول الله ﷺ معامله د خیبر د یهودو سره د مزارعت وه که د خراج؟

د حضرت گنگوهی رحمه الله تقریر په الکوکب الدری کښي ﴿ باب ما جاء فى المزارعة ﴾ کښي دا لیکلي شوي دي چه اکثر اراضی د خیبر رسول الله ﷺ عنوة فتح کړي وې، او بیا ئي هم دغه شان زمکي پس د اخراج الخمس نه په غانمین کښي تقسیم کړي وي (چه دهغي صحابه کرام رضي الله عنهم مالکان شوی وو) خو بیا داسي اوشوه چه یهود ئي د عمل دپاره هم هلته برقرار اوساتل پس دا معامله د مزارعت شوه او کومي زمکي د خیبر چه صلحا فتح شوي وې (هغه رسول الله ﷺ په ځائي د دي چه صحابه کرامو رضي الله عنهم کښي ئي تقسیم کړی) گویا یهودو ته هبه کړي وې (د هغه وخت دپاره) او په هغي باندي ئي خراج مقاسمت [1] مقرر فرمائیلي وو خو د امام ابوحنیفه رحمه الله د رائي استقرار په دي باندي اوشو چه دا ټوله معامله د خراج مقاسمت وه په دي کښي صاحبینو د امام صاحب رحمه الله مخالفت اوکړو او هغوی په دي باره کښي تفصیل ثابت کړو (یعنی دا چه د بعض زمکو معامله د یهودو سره په طور د مزارعت وه او د بعضو په طریق د خراج مقاسمت) بیا حضرت فرمائي او صحیح هم دا تفصیل دي کوم چه صاحبینو اختیار کړي دي (اوس پاتي شوه دا چه په بعض روایاتو کښي رسول الله ﷺ د مزارعت نه نهی ولي اوفرمائیله د دي په باره کښي حضرت فرمائي چه) په دي احادیثو کښي د مزارعت نه دا نهی د بعض شروط فاسده د اقتران د وجي نه ده او یا نهی تنزیهی ده د مهاجرینو د افلاس د وجي نه په هغه وخت کښي آهـ حضرت د دي لیکلو حاصل دا دي چه صاحبین کوم چه د مزارعت قائل دی د هغوی استدلال د رسول الله ﷺ د یهودو سره په معامله باندي دي، ځکه چه د صاحبینو په تحقیق کښي دا معامله د مزارعت وه لهذا دلیل د جواز شو، او امام صاحب کوم چه د مزارعت قائل نه دي هغوی دا د یهودو معامله په خراج باندي محمول کړي د نه په مزارعت باندي.

[۳۴۰۹] ([2]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ اللَّيْثِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ غَنَجٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "دَفَعَ إِلَى يَهُودِ خَيْبَرَ نَخْلَ خَيْبَرَ، وَأَرْضَهَا عَلَى أَنْ يَعْتَمِلُوهَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ، وَأَنَّ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَطْرَ ثَمَرَتِهَا".

---

[1]) ځکه چه کومه ارض مفتوحه بغیر د تقسیم نه په کفارو باندي پریخودلي شی هغه خراجی وی، کما تقدم في كتاب الخراج في بيان انواع الاراضي فتذكر)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۸۴۲۴) (صحيح)

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دي فرمائي چه نبي ﷺ خیبر والاته دهغوی ونې او زمکې په دې شرط واپس کړې وی چه دوی به دازمې ابادوی او په ټول پیداوارکښې به نیم پیداوار نبي ﷺ ته ورکوي.

[۳۴۱۰](١) حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ مُحَمَّدٍ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ بُرْقَانَ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ مِهْرَانَ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "افْتَتَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ، وَاشْتَرَطَ أَنَّ لَهُ الْأَرْضَ وَكُلَّ صَفْرَاءَ وَبَيْضَاءَ"، قَالَ: أَهْلُ خَيْبَرَ، نَحْنُ أَعْلَمُ بِالْأَرْضِ مِنْكُمْ فَأَعْطِنَاهَا عَلَى أَنَّ لَكُمْ نِصْفَ الثَّمَرَةِ وَلَنَا نِصْفٌ، فَزَعَمَ أَنَّهُ أَعْطَاهُمْ عَلَى ذَلِكَ، فَلَمَّا كَانَ حِينَ يُصْرَمُ النَّخْلُ بَعَثَ إِلَيْهِمْ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَوَاحَةَ، فَحَزَرَ عَلَيْهِمُ النَّخْلَ وَهُوَ الَّذِي يُسَمِّيهِ أَهْلُ الْمَدِينَةِ الْخَرْصَ، فَقَالَ: فِي ذِهْ كَذَا وَكَذَا، قَالُوا: أَكْثَرْتَ عَلَيْنَا يَا ابْنَ رَوَاحَةَ، فَقَالَ: فَأَنَا أَلِي حَزْرَ النَّخْلِ، وَأُعْطِيكُمْ نِصْفَ الَّذِي قُلْتُ، قَالُوا: هَذَا الْحَقُّ وَبِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ قَدْ رَضِينَا أَنْ نَأْخُذَهُ بِالَّذِي قُلْتَ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دي فرمائي چه نبي ﷺ خیبر فتح کړو اوداشرط ئې مقرر کړو چه زمکه، سره زر، اوسپین زر به زمونږ وي دخیبر وسیدونکو عرض اوکړو اې دالله رسوله ستاسو په نسبت باندې مونږ د زمکو په کارونوباندې ښه پوهیږو تاسو په دې شرط باندې دازمې مونږ ته راکړئ چه مونږ به درته نیم پیداوار درکوو او نیم پیداوار به مونږ دخان سره ساتو، دراوی خیال دې چه نبي ﷺ په دې شرط باندې دخیبر زمکې د خیبر وسیدونکو ته ورکړې، کله چه به دکجورو دشکولو وخت راتلو نونبي ﷺ عبدالله بن رواحه داندازاې لږولو دپاره لیږلو اودې اندازې لګولوته اهل مدینه الخرص وائی اوداسې به ئې وئیل چه په دې باغ کښې به دومره کجورې کیږي، خیبر والا به ورته وئیل اې عبدالله بن رواحه تاخو ډیره زیاته اندازه ولګوله هغه به ورته اووئیل زه اول دکجور و شوکولو انتظار کوم او څومره اندازه چه مې لږولې ده دومره کجورې تاسوته درکوم خیبر والاچه به داواوریدل وئیل به ئې یقینا دا اندازه حقه ده اوددې په وجه باندې زمکه او اسمان قائم دي، مونږ ستاسو دلګولې اندازې مطابق میوې اخستلوته تیاریو..

﴿ فَلَمَّا كَانَ حِينَ يُصْرَمُ النَّخْلُ بَعَثَ إِلَيْهِمْ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَوَاحَةَ فَحَزَرَ عَلَيْهِمُ النَّخْلَ وَهُوَ الَّذِي يُسَمِّيهِ أَهْلُ الْمَدِينَةِ الْخَرْصَ الخ ﴾

مضمون د حدیث دا دې چه رسول الله ﷺ کله خیبر فتح کړو او مسلمانان د خیبر د زمکې مالکان شو نو د خیبر یهودو رسول الله ﷺ ته دا درخواست اوکړو چه کرونده باندې مونږ ستاسو نه زیات پوهیږو لهذا دا باغونه او زمکې مونږ ته حواله کړئ په داسې طریقه چه نیمه میوه او نیمه غله به زمونږ دپاره او نیمه به ستاسو دپاره وی، رسول الله ﷺ د هغوی دا خبره منظور کړه ،مګر چونکه یهود غیر امناء وو دیانت دار نه وو په دې وجه به رسول الله ﷺ دا تدبیر فرمائیلو چه، چه کله به د میوو د شوکولو زمانه راتله نو رسول الله ﷺ به عبدالله بن رواحه رضي الله عنه کوم چه د شوکې یعنی د باغونو د میوو په صحیح اندازه لګولو کښې ماهر وو لیږلو د یهودو دې باغونو ته د حزر یعنی د شوکې دپاره نو هغوی په د اونو اندازه اخستلو نه پس مقدار متعین اوفرمائیلو چه په دې باغ کښې دومره دې او په هغه باغ کښې

(١): سنن ابن ماجه/الزكاة ١٨ (١٨٢٠)، (تحفة الأشراف: ٦٤٩٤) (حسن صحيح)

دومره دي، لهذا هم د دې مقدار به تاسو ورکړه کوئ يهودو به هغوی ته وئيل ﴿ أَكْثَرْتَ عَلَيْنَا يَا ابْنَ رَوَاحَةَ ﴾ چه تا ډير لوئې مقدار متعين کړو نو هغوی به اوفرمائيل ﴿ فَأَنَا أَلِي حَزْرَ النَّخْلِ﴾ دا الی د واحد متکلم صيغه ده ﴿ ولی يلی وليا ﴾ چه د هغې معنی د ذمه دارئ اخستلو ده، او حزر دلته د محزور په معنی کښې دې، يعنی د ميوو کوم مقدار چه ما بيان کړو زه د هغې ذمه داری اخلم، يعنی تاسو د ميوو د تياريدو نه پس د هغې نه جدا شئ زه به تاسو ته د هغې نيمه درکړم نو په دې باندې هغوی اووې چه نه، چه تاسو څه اووې هم دغه شان صحيح ده په هغه ذات قسم چه د هغه په حکم زمکه او اسمان قائم دی مونږ په هغه مقدار باندې راضي يو کوم چه تاسو بيان کړو.

[٣٤١١](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَبِي الزَّرْقَاءِ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ بُرْقَانَ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: فَحَزَرَ، وَقَالَ عِنْدَ قَوْلِهِ وَكُلَّ صَفْرَاءَ وَالْفِضَّةَ لَهُ.

دجعفربن برقان نه دتيرشوي روايت په شان روايت منقول دې اوپه دې کښې دلفظ فحزر اوکل صفراء اوبيضاء اضافه ده دکوم چه تشريح په سرو زرو اوچاندي سره شوي ده.

﴿ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ قَالَ فَحَزَرَ ﴾ مصنف رحمه الله په لفظ د حديث کښې د راويانو اختلاف بيانوی په ړومبی سند کښې ايوب وو د هغوی په روايت کښې ﴿ فحزر عليهم ﴾ يعنی د زا په تقديم سره او صحيح هم هغه دې، او په دويم روايت کښې راوی زيد بن ابی الزرقاء دې هغوی په ځائې د ﴿ حزر ﴾ ﴿ حرز ﴾ اووې، قال النووی وفی بعض الروايات بتقديم الراء وهو مصحف (بذل) والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذري.

[٣٤١٢](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا كَثِيرٌ يَعْنِي ابْنَ هِشَامٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ بُرْقَانَ، حَدَّثَنَا مَيْمُونٌ، عَنْ مِقْسَمٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حِينَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ، فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ زَيْدٍ، قَالَ: فَحَزَرَ النَّخْلَ، وَقَالَ: فَأَنَا أَلِي جُذَاذَ النَّخْلِ، وَأُعْطِيكُمْ نِصْفَ الَّذِي قُلْتُ.

د مقسم رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام کله خيبر فتح کړو، باقي روايت دتير شوي روايت په شان دې او په دې کښې دا اضافه چه عبدالله بن رواحه کله دکجورو اندازه ولګوله نووئې فرمائيل زه به دکجورو شکلولو پورې انتظارکوم اوچه کومه اندازه مې لګولې ده ددې دنيم په برابر کجورې به تاسوته درکوم.

## بَابٌ فِي الْخَرْصِ

### په ونو کښې د ميوو د اندازې لګولو بيان

د خرص باب په ﴿ کتاب الزکوة ﴾ کښې هم تير شوې دې د خرص تعريف او د هغې سره متعلق ټول مباحث او اختلافات هلته تير شوی دی، دلته د دې باب نه مخکښې دوه بابونه تير شوی دی باب المزارعت او باب المساقات، د مساقات او مضارعت دواړو حکم هم تير شوي دې د مزارعت جواز مختلف فيه دې او مساقات تقريبا د ټولو امامانو په نزد جائز دې

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٤٩٤) (صحيح الإسناد)

(٢): انظر حديث رقم: (٣٤١٠)، (تحفة الأشراف: ٦٤٩٤) (صحيح الإسناد)

سوا د امام صاحب رحمه الله نه، رسول الله ﷺ د یهودو سره دا دوه معاملې اوفرمائیلې د مزارعت هم او د مساقات هم. دا دریم باب کوم چه د خرص په باره کښې دې دا مصنف رحمه الله دلته په دې مناسبت سره ذکر کړې دې چه د رسول الله ﷺ معمول وو چه هغوی به عبدالله بن رواحه رضی الله عنه خیبر ته لیږلو د هغوی د باغاتو د خرص کولو دپاره کوم چه رسول الله ﷺ او مسلمانانو د خیبر یهودو ته په طور د مساقات ورکړې وو.

[۳۴۱۳]([1]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أُخْبِرْتُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَبْعَثُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَوَاحَةَ، فَيَخْرُصُ النَّخْلَ حِينَ يَطِيبُ، قَبْلَ أَنْ يُؤْكَلَ مِنْهُ، ثُمَّ يُخَيِّرُ يَهُودَ، يَأْخُذُونَهُ بِذَلِكَ الْخَرْصِ، أَوْ يَدْفَعُونَهُ إِلَيْهِمْ بِذَلِكَ الْخَرْصِ، لِكَيْ تُحْصَى الزَّكَاةُ قَبْلَ أَنْ تُؤْكَلَ الثِّمَارُ وَتُفَرَّقَ".

ام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ به عبدالله بن رواحه خیبر ته لیګلو د کجورو داندازې لګولو دپاره اوهغه به دکجورو اندازه لګوله کله چه به کجورې ښې پخې شوې مخکښې ددینه چه دخوراك قابلې شي، بیابه نبی ﷺ یهودیانوته اختیار ورکړه چه تاسوددې اندازې نیم ځان ته حواله کړئ او وئې ساتئ اویا ددې اندازې دنیم برابر مسلمانانو ته ورکړئ ددې دپاره چه په زکات کښې حساب شي، مخکښې ددینه چه کجورې اوخوړلې شي او جدا کړې شي.

## عدم جواز الخرص فی المزارعة وکذا فی المساقاة و جوازه فی الزکوة عند الجمهور دون الحنفیة

خو دا یاد ساتئ چه په کتاب الزکوة کښې په باب الحرص کښې دا مسئله تیره شوې ده ﴿ان الخرص لا یجوز فی الحبوب بالاجماع﴾ او حافظ ابن عبدالبر رحمه الله - کما فی التعلیق الممجد - د دې خبر تصریح کړې ده چه خرص فی المساقاة د چا په نزد هم جائز نه دې اوس په دې باندې دا اشکال پیدا شو چه هر کله خرص فی المساقاة ناجائز دې نو بیا د عبدالله بن رواحه رضی الله عنه په لیږلو باندې خرص ولې کولې شو؟ د دې جواب هغوی هم دا ورکړې دې چه دا خرص د یو خارجی مصلحت دپاره وو «د الزام دحکم دپاره نه وو» ځکه چه یهود غیر امناء وو په دې وجه به هغوی د صحیح مقدار نه خبرولې شو چه د زکوة یعنی د عشر په مسئله کښې نقصان او خلل واقع نه شی، ([2]) پس عائشة د دې خرص په باره کښې فرمائی ﴿لکی تحصی الزکوة قبل ان توکل الثمار وتفرق﴾ خو عشر کوم چه د مسلمانانو په باغونو کښې په هغوی

[1]: انظر حدیث رقم: (۱۶۰۶)، (تحفة الأشراف: ۱۶۵۳۱، ۱۶۷۵۲) (ضعیف الإسناد)

[2] ویعبارة اخرې په دې خان داسې پوهه کړئ چه دا خرص د مساقیین د حصو د تقسیم دپاره نه وو، یعنی د اصل معاملې سره د دې تعلق نه وو بلکه زکوة یعنی عشر کوم چه د اونو په کل پیداوار کښې واجب وی د هغې د محفوظ او معین کولو دپاره وو، د میوو د پخیدو او تیاریدو نه مخکښې او د یهودو په دې کښې د تصرف کولو نه مخکښې چه د عشر په مقدار کښې څه کمې رانشی، مثلاً د خرص نه پس خارص اووې چه په دې باغ کښې سل وسقه کهجورې دی لهذا په دې مقدار کښې به عشر یعنې لس وسقه د زکوة په نوم باندې اخستلې شی د دې نه پس به په وخت د شوکې د مساقین حصې د قاعدې مطابق کیلا (په تول او وزن سره) تقسیمولې شی، هغه وخت به د خارص د خرص لحاظ نه شی کولې، وهذ معنې قول عائشة رضی الله عنها لکې تحصې الزکوة قبل ان توکل الثمار وتفرق والله تعالې اعلم)

باندي واجبيږي په دې کښې د جواز خرص بلکه د وجوب خرص شوافع وغيره حضرات قائل دی، او احناف کوم چه د خرص فی الزکوة قائل نه دی د هغوی دلائل په کتاب الزکوة کښې دجمهورو د دلائلو سره تير شوی دی فارجع اليه لو شئت.

[٣٤١٤](¹) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي خَلَفٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ طَهْمَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّهُ قَالَ: "أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ خَيْبَرَ، فَأَقَرَّهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا كَانُوا، وَجَعَلَهَا بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمْ، فَبَعَثَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَوَاحَةَ فَخَرَصَهَا عَلَيْهِمْ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی کله چه الله تعالی خيبر نبی ﷺ ته په انعام کښې ورکړو نو نبی ﷺ ددغه ځائې خلق پخپل حال پريخودل او په فصلونو کښې ورسره شريك شو اوبيا ئې عبدالله بن رواحه رضی الله عنه ورواليږلو عبدالله چه کله خيبرته ورسيدو نودميوو اندازه ئې ولګوله.

[٣٤١٥](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: خَرَصَهَا ابْنُ رَوَاحَةَ أَرْبَعِينَ أَلْفَ وَسْقٍ، وَزَعَمَ أَنَّ الْيَهُودَ لَمَّا خَيَّرَهُمُ ابْنُ رَوَاحَةَ، أَخَذُوا الثَّمَرَ، وَعَلَيْهِمْ عِشْرُونَ أَلْفَ وَسْقٍ.

دجابر بن عبدالله رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه عبدالله بن رواحه دکجورو اندازه څلويښت زره وسقه مقرر کړه، دراوی خيال دې چه کله عبدالله بن رواحه له دخيبر يهوديانوته اختيار ورکړو نوهغوی ميوې پخپل تحويل کښې واخستلې او شل زره وسقه کجورې اداکول ئې منظور کړل.

﴿ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ خَرَصَهَا ابْنُ رَوَاحَةَ أَرْبَعِينَ أَلْفَ وَسْقٍ الخ ﴾

يعنی يو کرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه د دې باغونو د خرص کولو نه پس، چه کوم مقدار متعين کړې وو هغه څلويښت زره وسقه وو چه د هغې د نصف يعنی شلو زرو وسقو ذمه داری يهودو قبوله کړې وه، يو وسق اته صاع وی د څلويښتو زرو وسقو حساب اولګوئ څومره حساب جوړيږی زمونږ په حساب سره څو څليرشت لاکهه صاع جوړيږی چه د هغې نيمه به يقيناً مسلمانانو ته ملاؤ شوې وی د معاهدې مطابق، هم په دې وجه وئيلې شی چه د خيبر د فتوحاتو نه پس مسلمانان مالدار شوی وو.

# كِتَابُ الْإِجَارَةِ

## داجارې بيان

امام بخاری رحمه الله د کتاب البيوع په آخر کښې د کتاب السلم باب قائم کړې دی د دې نه پس کتاب الشفعة مستقلا دې، د هغې نه پس کتاب الاجارة او هغوی د کتاب الاجارة لاندې ټول ابواب داجارې متعلق ذکرکړی دی اوامام ابوداؤد رحمه الله د کتاب البيوع ترمينځه د کتاب الاجاره عنوان قائمولو سره او د هغې نه پس بيا څو ابواب د اجارې متعلق ذکر کولو نه پس باقی ابواب البيوع چه په هغې کښې بيع السلم او شفعه هم داخله ده هغه ذکر کړې دی.

(¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٦٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٦٧) (صحيح)

(²): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢٨٦٩) (صحيح الإسناد)

خان پوهول پكار دي چه د تمليک دوه قسمونه دي تمليک الاعيان او تمليک المنافع، او بيا په دې دواړو کښې د هر يو دوه قسمونه دی بعوض وبلا عوض، دغه شان دا څلور صورتونه جوړيږی، تمليک العين بالعوض بيع ده او تمليک العين بلا عوض دا هبه ده، او تمليک المنافع که بالعوض دې نو هغه اجاره ده او که بغير د عوض نه وی نو هغه عارية او اعاره ده.

## بَابٌ فِي كَسْبِ الْمُعَلِّمِ

### د تعليم ورکونکی دپاره په تعليم باندې د اجرت اخستلو بيان

**استئجار على الطاعات کښې اختلاف ائمة :**

د علوم دينيه په ذريعه کسب او ګټه د شوافعو او مالکيانو په نزد جائز ده، د احنافو او حنابله په نزد ناجائز ده د حديث الباب نه چه د هغې مضمون وړاندې را روان دې د احنافو او د حنابله دمسلک يعنی عدم جواز تائيد کيږی، مصنف رحمه الله على القول الاشهر حنبلي دې، د استئجار على الطاعت مسئله په ابواب الاذان ﴿ واتخذ موذنا لا ياخذ على اذانه اجرا ﴾ الحديث د لاندې په الدر المنضود جلدِ اول کښې تيره شوې ده، او هم دغه شان په کتاب النکاح ﴿ زوجتک بما معک من القرآن ﴾ د لاندې هم.

[۳۴۱۶](1) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، وَحُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الرُّوَاسِيُّ، عَنْ مُغِيرَةَ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ ثَعْلَبَةَ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: "عَلَّمْتُ نَاسًا مِنْ أَهْلِ الصُّفَّةِ الْكِتَابَ وَالْقُرْآنَ، فَأَهْدَى إِلَيَّ رَجُلٌ مِنْهُمْ قَوْسًا، فَقُلْتُ: لَيْسَتْ بِمَالٍ وَأَرْمِي عَنْهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ لَآتِيَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَأَسْأَلَنَّهُ، فَأَتَيْتُهُ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، رَجُلٌ أَهْدَى إِلَيَّ قَوْسًا مِمَّنْ كُنْتُ أُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ وَالْقُرْآنَ، وَلَيْسَتْ بِمَالٍ وَأَرْمِي عَنْهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ، قَالَ: إِنْ كُنْتَ تُحِبُّ أَنْ تُطَوَّقَ طَوْقًا مِنْ نَارٍ فَاقْبَلْهَا".

دعبادة بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دی فرمائی چه ما په اصحاب صفه کښې يو څو کسانوته دقران کريم د زده کولو او دليکلو تعليم ورکړې وو، زما په شاګردانو کښې يو کس ماته په تحفه کښې يوه لينده راکړه ما دا سوچ اوکړو چه دا څو کوم قيمتي څيزنه دې اوزه به په دې باندې دالله په لاره کښې غشي ولم خو بيا هم زه د نبی صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې وکړو اې دالله رسوله ماچه چاته د قران کريم دزده کولو اودليکلو تعليم ورکړې رو په هغوی کښې يو کس ماته يوه لينده په تحفه کښې راکړې وه اوزه به دالله په لارکښې په دې باندې جهاد کوم، نبی صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل که چرې ته داور يو طوق په غاړه کښې اچول غواړې نو داليندو دخان سره وساته.

**قوله:** ﴿ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ عَلَّمْتُ نَاسًا مِنْ أَهْلِ الصُّفَّةِ الْقُرْآنَ وَالْكِتَابَ فَأَهْدَى إِلَيَّ رَجُلٌ مِنْهُمْ قَوْسًا ﴾ عبادة رضي الله عنه فرمائی چه ما څو اهل صفه ته قرآن اوښودلو او کتابت يعنی ليکل، نو په هغوی کښې يو سړی ماته ليندهٔ هديه کړه نو ما په خپل زړه کښې اووې چه دا څه داسې مال خو دې نه يعنی چه هغې ته اجرت اووئيلې شی بلکه دا چه زه به دا په جهاد کښې

(1): سنن ابن ماجه/التجارات ۸ (۲۱۵۷)، (تحفة الأشراف: ۵۰۶۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۵/۵) (صحيح)

استعمال کړم (په خپل ضرورت کښې نه) خو بيا هم ما دا اراده اوکړه چه د رسول الله ﷺ د اجازت نه بغير ئې نه اخلم پس زه د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شوم او د دې ليندۍ په باره کښې مې ترې نه تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائيل ﴿إِنْ كُنْتَ تُحِبُّ أَنْ تُطَوَّقَ طَوْقًا مِنْ نَارٍ فَاقْبَلْهَا﴾ يعنی که ته دې په بدل کښې د اورطوق مرئ ته اچول غواړې نو دا هديه قبوله کړه.

د دې حديث د لاندې امام خطابی رحمه الله په ﴿ اخذ الاجرة على القرآن ﴾ کښې د علماء کرامو درې مذاهب نقل کړی دی يو مطلقا د عدم جواز، ﴿ وقال اليه ذهب الزهری وابوحنيفة واسحاق بن راهويه ﴾ دويم مذهب دا دې چه که بغير د شرط نه څوک معاوضه ورکړی نو د هغې په قبول کښې څه باک نشته وهو قول الحسن البصری وابن سيرين والشعبی.... او دريم مذهب مطلقا د جواز وهو مذهب عطاء ومالک والشافعی، او د شوافعو دليل ﴿زوجتکها بما معک من القرآن ﴾ بيان کړې دې.

**توجيه الحديث عن الشافعية :**

او د حديث الباب جواب د شوافعو د طرف نه هغوی دا ورکړې دې چه د هغې وجه دا ده چه عباده رضی الله عنه د تعليم د ابتداء په وخت د تبرع او احتساب نيت کړې وو په دې وجه رسول الله ﷺ د دې نيت احتساب نه پس د اجرت اخستلو نه منع اوکړه د ابطال اجر نه د بچ کيدو دپاره، او د دې مثال داسې دې چه که څوک د چا يو پټ مال اولتوی يا که د چا مال په درياب کښې غرق شوې وو هغه حسبة او تبرعا د درياب نه راوباسی نو د دې نيت نه پس د هغه اجرت اخستل جائز نه دی، خو که هغه د عمل نه مخکښې په دې کار باندې اجرت مقرر کړی نو بيا اخستل جائزدی. الی آخرما ذکر. اوحضرت گنگوهی په تقرير کښې دی چه په دې حديث کښې د دومره سخت وعيد منشاء کيدې شی چه دا وی چه دلته معلم او متعلم خپل مينځ کښې د اجرت شرط لګولې وی يا دا چه اجرت اخستل منوی وی، ځکه رسول الله ﷺ دخپلو صحابه کرام رضی الله عنهم دپاره دا کار ناخوښه کړو اگر چه مجرد نيت حرام نه وو. الی آخرما فی بسط (من البذل مختصرا) والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

[۳۴۱۷] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، وَكَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنِي بِشْرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ عَمْرٌو، حَدَّثَنِي عُبَادَةُ بْنُ نُسَيٍّ، عَنْ جُنَادَةَ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، نَحْوَ هَذَا الْخَبَرِ وَالْأَوَّلُ أَتَمُّ، فَقُلْتُ: مَا تَرَى فِيهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ فَقَالَ: جَمْرَةٌ بَيْنَ كَتِفَيْكَ تَقَلَّدْتَهَا أَوْ تَعَلَّقْتَهَا.

دعباده رضی الله عنه بن صامت بدنه دتيرشوی روايت په شان روايت منقول دې ليکن اولنې روايت زيات کامل دې اوپه دې روايت کښې دا اضافه ده چه ما عرض اوکړو اې دالله رسوله په دې سلسله کښې ستاسو څه رائې ده؟ نبی ﷺ اوفرمائيل دا د اور يوه سکروټه ده چه تا دخپلو اوږوپه مينځ کښې زوړنده کړې ده يا دې تړلې ده.

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۰۷۹) (صحيح)

## بَابٌ فِي كَسْبِ الْأَطِبَّاءِ

### د طبيبانو د پاره د اجرت اخستلو بيان

[۳۴۱۸] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، "أَنَّ رَهْطًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْطَلَقُوا فِي سَفْرَةٍ سَافَرُوهَا، فَنَزَلُوا بِحَيٍّ مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ، فَاسْتَضَافُوهُمْ، فَأَبَوْا أَنْ يُضَيِّفُوهُمْ، قَالَ: فَلُدِغَ سَيِّدُ ذَلِكَ الْحَيِّ فَشَفَوْا لَهُ بِكُلِّ شَيْءٍ لَا يَنْفَعُهُ شَيْءٌ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَوْ أَتَيْتُمْ هَؤُلَاءِ الرَّهْطَ الَّذِينَ نَزَلُوا بِكُمْ لَعَلَّ أَنْ يَكُونَ عِنْدَ بَعْضِهِمْ شَيْءٌ يَنْفَعُ صَاحِبَكُمْ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّ سَيِّدَنَا لُدِغَ فَشَفَيْنَا لَهُ بِكُلِّ شَيْءٍ، فَلَا يَنْفَعُهُ شَيْءٌ، فَهَلْ عِنْدَ أَحَدٍ مِنْكُمْ شَيْءٌ يَشْفِي صَاحِبَنَا؟ يَعْنِي رُقْيَةً، فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: إِنِّي لَأَرْقِي، وَلَكِنِ اسْتَضَفْنَاكُمْ فَأَبَيْتُمْ أَنْ تُضَيِّفُونَا، مَا أَنَا بِرَاقٍ حَتَّى تَجْعَلُوا لِي جُعْلًا، فَجَعَلُوا لَهُ قَطِيعًا مِنَ الشَّاءِ، فَأَتَاهُ، فَقَرَأَ عَلَيْهِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَيَتْفُلُ حَتَّى بَرَءَ، كَأَنَّمَا أُنْشِطَ مِنْ عِقَالٍ، فَأَوْفَاهُمْ جُعْلَهُمُ الَّذِي صَالَحُوهُ عَلَيْهِ، فَقَالُوا: اقْتَسِمُوا، فَقَالَ الَّذِي رَقَى: لَا تَفْعَلُوا حَتَّى نَأْتِيَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَسْتَأْمِرَهُ، فَغَدَوْا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرُوا ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مِنْ أَيْنَ عَلِمْتُمْ أَنَّهَا رُقْيَةٌ؟ أَحْسَنْتُمْ وَاضْرِبُوا لِي مَعَكُمْ بِسَهْمٍ".

دابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دصحابه کرامويوه ډله په سفر روانه شوه اودعربو يوې قبيلې ته ورسيدل اودهغوی نه ئې د ميلمستيا مطالبه وکړه ليکن هغوی د ميلمنو قبلولونه انکار وکړو بيا ددغه قبيلې سردار مار يالوم وچيچل دهغه دعلاج دپاره خلقو هرقسم کوشش اوکړو ليکن هغه نه جوړيدو په دوی کښې يوکس اووئيل کوم کسان چه په ميلمستيا راغلې دي هغوی ته ځوك وليږي کيدې شی چه دهغوی سره د زهرو دپاره څه علاج وي، په کومه باندې چه به ده ته فائده ورسيږی بيا په دوی کښې يوځوکسان صحابه کراموته ورغلل او ورته ئې اووئيل چه زمونږ سردار مار يا لړم چيچلې دې ايا په تاسوکښې ځوك دمګرې شته؟ يوکس اووئيل هو، زه به ورباندې دم واچوم، ليکن مونږه ستاسونه دميلمستيا مطالبه اوکړه اوتاسوانکار وکړو اوس زه دم نه اچوم ترڅوچه تاسوماته ددې اجرت رانکړئ، نو ددغه علاقې خلقو ددوی دپاره دچيلويوه رمه مقررکړه بيا دغه کس ورغې او سورة فاتحه ئې ولوستله او توکانړې پرې توکرې تردې چه هغه جوړ شو اوداسې روغ شولکه غوته چه کولاو کړې شي، بياچه هغوی کومه معاوضه مقررکړې وه هغه ئې ورکړه صحابه کرامو عرض اوکړو راې وړې چه مونږ ئې تقسيم کړو مګر چا چه دم اچولې وو هغه اووئيل نه تاسوصبر وکړئ چه دنبی ﷺ نه تپوس اوکړو بيادنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شول او واقعه ئې ورته بيان کړه نبی ﷺ اوفرمائيل داخبره تاسو دکوم ځائې نه معلومه کړې ده چه سورة فاتحه دم دې ډيرښه کار موکړې دې اوزما دپاره دخپلو څانونو سره حصه مقررکړئ.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَهْطًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– انْطَلَقُوا فِي

---

¹): صحيح البخاري/ الإجارة ۱۶ (۲۲۷۶)، الطب ۳۳ (۵۷۳۶)، صحيح مسلم/ السلام ۲۳ (۲۲۰۱)، سنن الترمذي/ الطب ۲۰ (۲۰۶۳)، سنن ابن ماجه/ التجارات ۷ (۲۱۵۶)، (تحفة الأشراف: ۴۲۴۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳، ۴۴) ويأتي هذا الحديث في الطب (۳۹۰۰) (صحيح)

سَفْرَةٍ سَافَرُوهَا الخ ﴾:

**مضمون د حدیث د دم یوه قصه :**

دا ده چه ابوسعید خدری ﷺ فرمایی چه د صحابه کرامو ﷺ یو جماعت په یو سفر باندې روان وو په لار کښې یو ځائې په عربو کښې هغه جماعت کوز شو او د هغه ځائې د دستور مطابق ئې د هغوی نه میلمستیا طلب کړه، هغوی د میلمستیا دپاره تیار نه شو، اتفاق سره د هغه قبیلې سردار لره یو زهریله څیز اوچیچلو چه د هغې هغوی هر قسمه علاج اوکړو خو هیڅ فائده او نه شوه، د هغوی خپل مینځ کښې مشوره دا راغله چه دا د مسافرو قافله راغلې ده کیدې شی چه په دوی کښې چا سره د دې علاج وی پس هغوی هغه صحابه کرامو ﷺ ته راغلل او د دم کولو درخواست ئې اوکړو، په هغوی کښې یو صحابی اوفرمائیل چه ما سره یو دم دې خو مونږ بغیر د اجرت نه علاج نه کوو لکه چه تاسو زمونږ میلمستیا نه ده کړې ﴿ فَجَعَلُوا لَهُ قَطِيعًا مِنَ الشَّاءِ ﴾ یعنی هغوی د ګډو بیزو یو کنډک ورکولو باندې فیصله اوکړه، د دې نه مراد دیرش بیزې دی لکه چه په هغه روایت کښې دی کوم چه مصنف ﷺ په کتاب الطب کښې ﴿ باب کیف الرقی ﴾ کښې ذکر کړې دې فقد اعاد المصنف ﷺ هذا الحدیث هناک او وئیلې شوې دی چه دا جماعت هم د دیرشو کسانو وو، دې صحابی په هغه باندې سورة فاتحه لوستلو سره دم کوله او خپلې لاړې مبارکې ئې په هغه باندې مږلې تردې چه هغه چیچلې شوې سردار بالکل روغ شو، لکه څاروی چه د پړی نه خلاص کړې شی او دې خلقو هغه حضراتو ته د خپلې وعدې مطابق د هغوی هغه عوض ورکړو. دې ملګرو خپل مینځ کښې اووې چه دا بیزې دې تقسیم کړې شی، خو اصل دم کونکی اووې چه تر څو پورې مونږ رسول الله ﷺ ته نه یو رسیدلی او د هغوی نه مو معلومات نه وی کړې تر هغه وخته پورې نه، بیا د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو او رسول الله ﷺ ته ئې د دې واقعې ذکر اوفرمائیلو نو رسول الله ﷺ د خوشحالئ اظهار اوفرمائیلو او تپوس ئې اوفرمائیلو چه تاسو ته څنګه معلومه شوه چه سورة فاتحه رقیه ده او د دې صحابه کرامو ﷺ د نورې تسلئ دپاره ئې اوفرمائیل چه د خپل ځان سره زما حصه هم مقرر کړئ.

[۳۴۱۹](۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَخِيهِ مَعْبَدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ.

معبدبن سیرین (دمحمد بن سیرین درورر) دابوسعید خدری ﷺ نه دتیرشوی روایت په شان روایت بیان کړې دې.

[۳۴۲۰](۲) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ الصَّلْتِ، عَنْ عَمِّهِ، "أَنَّهُ مَرَّ بِقَوْمٍ فَأَتَوْهُ، فَقَالُوا: إِنَّكَ جِئْتَ مِنْ عِنْدِ هَذَا الرَّجُلِ بِخَيْرٍ، فَارْقِ لَنَا هَذَا

---

(۱): صحيح البخاري/ فضائل القرآن (۵۰۰۷)، صحيح مسلم/ الطب ۲۳ (۲۲۰۱)، (تحفة الأشراف: ۴۳۰۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸۳/۳) (صحيح)

(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۱/۵) ويأتي هذا الحديث في الطب (۳۸۹۶، ۳۹۰۱) (صحيح)

الرَّجُلَ، فَأَتَوْهُ بِرَجُلٍ مَعْتُوهٍ فِي الْقُيُودِ، فَرَقَاهُ بِأُمِّ الْقُرْآنِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً، وَكُلَّمَا خَتَمَهَا جَمَعَ بُزَاقَهُ، ثُمَّ تَفَلَ، فَكَأَنَّمَا أُنْشِطَ مِنْ عِقَالٍ فَأَعْطَوْهُ شَيْئًا، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَهُ لَهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلْ فَلَعَمْرِي لَمَنْ أَكَلَ بِرُقْيَةِ بَاطِلٍ، لَقَدْ أَكَلْتَ بِرُقْيَةٍ حَقٍّ".

خارجه بن الصلت دخپل تره نه روایت کوی فرمائی چه دده دیو داسې قوم په خوا کښې تیریدل اوشول کوم چه ده ته راغلل او وئې وئیل چه تاد دغه سړی (نبی ﷺ) نه خیر راوړی دی نو زمونږ په دې کس باندې ئې اولوله اوهغوی لاړل او په پړوتړلي شوي یولیونې ئې راوستونو هغه دغه لیونې درې ورځې سحر اوماښام په سورت فاتحه باندې دم کړواوهره پیره چه به ئې فاتحه ختموله نوخپلې توانړې به لې راجمع کړې او په ده باندې به ئې وتوکلې بهرحال هغه کس داسې شو لکه دقیدنه چه خلاص شي نوهغه خلقو ورته یوڅه ورکړل نوده ددوی ددې واقعې اوددوی ورکړې ذکرنبی ﷺ ته وکړونو په دې وخت کښې نبی ﷺ اوفرمائیل: ددینه خوره زما دې په خپل عمرباندې قسم وي خلق ددروغوپه عمل (منترو باندې خوراك کویتا خودرښتیاودم کړې دي (یعنی سورت فاتحه دهر مرض دپاره شفاء ده).

دویمه قصه :

د دې نه پس مصنف رحمه الله هم د دې قسم یو بل حدیث چه د هغې راوی عم خارجه دې ذکر فرمائیلې دې چه د هغې مضمون دا دې چه هغوی په سفر باندې روان وو په لاره کښې په یو کلی کښې هغه څه خلقو رامنع کړو چه ته داسې بزرګ ته روان ئې یعنی رسول الله ﷺ ته، زمونږ یو مریض دې معتوه یعنی لیونې کوم چه په زنځیرونو کښې تړلې شوې دې په هغه باندې دم واچوئ هغوی تر د درې ورځو پورې سحر او ماښام په سورة فاتحه باندې دم کړو، هر کرت به ئې د دمولو په وخت په هغوی باندې خپلې لاړې مبارک ورتوکلې پس هغه بالکل روغ شو، ﴿ فَأَعْطَوْهُ شَيْئًا ﴾ یعنی دې خلقو هغه صحابی رضی الله عنه ته څه هدیه پیش کړه، د بعضو روایاتو نه معلومیږی چه هغه سل بیزې وې لکه خپله په ابوداؤد کښې دا حدیث د کتاب الاطعمة په آخر کښې را روان دې هلته ددې عدد تصریح ده، هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو او وې فرمائیل ﴿ کل فلعمری لمن اکل برقیة باطل ﴾ (د دې جزا محذوف ده فعلیه وباله) رسول الله ﷺ اوفرمائیل ته دا خوړلې شې او قسم دې زما په نفس باندې چه کوم انسان په باطله رقیه باندې خوراک اوکړی په هغه باندې ګناه ده د هغې، ته خو د برحق رقیه په ذریعه خوراک کوې په دې کښې څه باک دې.

استنباط المصنف بحدیث الباب :

مصنف رحمه الله په تعلیم القرآن باندې د اجرت عدم جواز لره لکه چه د حنابله مسلک دې د عبادة رضی الله عنه د حدیث نه ثابت کړو ﴿ ان کنت تطوق طوقا من نار فاقبلها ﴾ او په هغې باندې ئې ترجمة قائم کړه ﴿ کسب المعلم ﴾ او د ابو سعید خدری رضی الله عنه، او هم دغه شان د عم خارجه حدیث چه د هغې جواز دجُعل ثابتیږی په دې باندې ئې ترجمه قائم کړه ﴿ باب فی کسب الاطباء ﴾ هغوی دا دویمه واقعه په علاج وغیره باندې محمول کولو سره د دې په ذریعه د طبیب د اجر جواز ثابت کړو، کوم چه بالاتفاق جائز دې، امام ابوداؤد رحمه الله دلته د ډیر لوئې

فقاهت ثبوت ورکړې دې، په احادیثو باندې چه په کتب احادیث کښې کوم عنوان او تراجم قائمولې شی هغه ډیر لوئې اهمیت لری، پس مشهوره ده «فقه المحدث فی تراجمه» لکه چه یو جمله دا هم مشهوره ده، «فقه البخاری فی تراجمه» امام ترمذی رحمه الله د ابوسعید خدری رضی الله عنه په حدیث باندې دا ترجمه قائم کړې ده «باب ما جاء فی اخذ الاجر علی التعویذ» هغوی هم دا حدیث د مصنف رحمه الله په شان په رقیه او علاج باندې محمول کړې دې خو هغوی د حدیث د لاندې لیکی «ورخص الشافعی للمعلم ان یاخذ علی تعلیم القرآن اجرا ویری له ان یشترط علی ذلک واحتج بهذا الحدیث» امام ابوداؤد رحمه الله حدیث د عباده او حدیث د ابو سعید خدری رضی الله عنه چه د هغې مضمون په ظاهر کښې تعارض لری په دواړو باندې د یو بل نه پس بیل بیل تراجم قائم کولو سره صحیح صورت حال واضح کړو چه د حدیث عباده رضی الله عنه تعلق د تعلیم القران سره دې او د حدیث ابی سعید رضی الله عنه محمل علاج او معالجه او د کسب دطبیب دې، فلله در المصنف. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری

## باب فِي كَسْبِ الْحَجَّامِ

### په ښکر لګولو باندې د اجرت اخستو بیان

**ایضاح المسئلة :**

دلته دوه څیزونه دی یو پیشه د حجامت یعنی حرفه، دویمه د هغې ګټه، د جمهورو په نزد دواړه جائز دی او د امام احمد رحمه الله او د یو جماعت رائې دا ده چه د آزاد سړی په حق کښې احتراف بالحجامة مکروه دې یعنی دا پیشه اختیارول او د دې ګټه په خپل ځان باندې خرچ کول د هغوی په نزد حرام دی، هغوی فرمائی چه که حر دا پیشه اختیار کړی نو د دې ګټه دې په څارووو او غلامانو باندې خرچ کړی، او د غلام په حق کښې د هغوی په نزد نه په دې پیشه اختیارولو کښې څه ګناه شته او نه د دې په ګټه خوړلو کښې، قاله الحافظ.

[٣٤٢١] (1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أَخْبَرَنَا أَبَانُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ قَارِظٍ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَسْبُ الْحَجَّامِ خَبِيثٌ، وَثَمَنُ الْكَلْبِ خَبِيثٌ، وَمَهْرُ الْبَغِيِّ خَبِيثٌ".

د رافع بن خدیج رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی د ښکر لګولو نه کسب جوړول او بیا ورباندې اجرت اخستل بدعمل دې او د سپی قیمت ناپاکه دې او بدکارې ښځې اجرت ناکاره دې.

«عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «كَسْبُ الْحَجَّامِ خَبِيثٌ»

**شرح الحدیث :**

د خبیث اطلاق په دوه معنو باندې کیږی حرام او نجس، دویم خلاف الطیب یعنی بیکاره څیز د جمهورو په نزد هم دا معنی مراد ده کذا قال القاری، خو د امام احمد رحمه الله په نزد که

(1): صحيح مسلم/المساقاة ٩ (١٥٦٨)، سنن الترمذي/البيوع ٤٦ (١٢٧٥)، سنن النسائي/الذبائح ١٥ (٤٢٩٩)، (تحفة الأشراف: ٣٥٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦٤/٣، ٤٦٥، ١٤١/٤) (صحيح)

حجام حر وی نو بیا به په دې صورت کښې د خبیث دویمه معنی مراد وی یعنی حرام.
وراندې مصنف رحمه الله ددې نه پس دوه احادیث نور ذکر کړی دی په هغې کښې هم غور اوکړئ.

[۳٤۲۲](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنِ ابْنِ مُحَيِّصَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي إِجَارَةِ الْحَجَّامِ، فَنَهَاهُ عَنْهَا، فَلَمْ يَزَلْ يَسْأَلُهُ وَيَسْتَأْذِنُهُ، حَتَّى أَمَرَهُ أَنْ أَعْلِفْهُ نَاضِحَكَ وَرَقِيقَكَ".

ابن محیصه دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه دنبی ﷺ نه ئې اجازت وغوښتوپه باره داجرت دښکرلګولوکښې نونبی ﷺ ورنه منع کړواوهغه به بار بار داسوال تکرار ولواواجازت به ئې غوښتلوتردې چه حکم ئې ورته وکړو په دغه اجرت باندې خپل اس له ګیاه واخله اویائې خپل غلام ته ورکړه.

﴿عن ابن شهاب عن ابن محیصه عن ابیه انه استاذن رسول الله ﷺ فی اجارة الحجام﴾
یعنی محیصة د رسول الله ﷺ نه د حجام د اجرت په باره کښې اجازت اوغوښتلو نو رسول الله ﷺ هغه منع کړو هغه د رسول الله ﷺ نه د دې په باره کښې تپوسونه کول تر دې چه رسول الله ﷺ په آخر کښې هغه ته داسې اوفرمائیل ﴿ اعْلِفْهُ نَاضِحَكَ وَرَقِيقَكَ ﴾ چه د دې ګټه په خپلو غلامانو او څاروو باندې خوړلې شي. ددې حدیث نه د حنابله تائید کیږی.

[۳٤۲۳](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "احْتَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَعْطَى الْحَجَّامَ أَجْرَهُ، وَلَوْ عَلِمَهُ خَبِيثًا لَمْ يُعْطِهِ".

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی نبی ﷺ ښکر ولګولواوښکرلګونکې ته ئې دهغه اجرت ورکړو، که چرې دانا پاکه وې نوښکر لګونکې ته به ئې هیڅ کله اجرت نه وو ورکړې.
د دې حدیث نه د حنابله تائید کیږی.

﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ احْتَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَعْطَى الْحَجَّامَ أَجْرَهُ وَلَوْ عَلِمَهُ خَبِيثًا لَمْ يُعْطِ ﴾
ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ ښکر اولګولو او حجام ته ئې اجرت هم ورکړو.
وراندې ابن عباس رضی الله عنهما خپل استنباط بیانوی که چرې رسول الله ﷺ د حجام اجرت حرام ګڼرلو نو ولې به ئې ورکولو، د دې حدیث نه د جمهورو تائید کیږی، خو په دې استدلال باندې دا نقد کیدې شی چه ظاهره دا ده چه د دې حجام نه مراد ابو طیبه دې لکه چه د دې نه پس په روایت کښې دی او هغه حر نه وو بلکه مملوک وو، خو جمهور دا وئیلې شی چه که ابوطیبه مملوک وو نو د دې نه دا استدلال څنګه صحیح دې چه غیر مملوک ته اجرت ورکول ناجائز دی یا د هغه په حق کښې حرام دی دا خو اتفاقی امر دې چه په چا باندې رسول الله ﷺ ښکر اولګولو هغه مملوک وو حر نه وو. والله تعالی اعلم

(۱): سنن الترمذي/البيوع ٤٧ (۱۲۷۷)، سنن ابن ماجه/التجارات ۱۰ (۲۱٦٦)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۳۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاستئذان ۱۰ (۲۸)، مسند احمد (٤۳٥/٥، ٤۳٦) (صحيح)
(۲): صحيح البخاري/البيوع ۳۹ (۲۱۰۳)، الإجارة ۱۸ (۲۲۷۹)، (تحفة الأشراف: ٦۰٥۱)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ۱۱ (۱۲۰۲)، مسند احمد (۳٥۱/۱) (صحيح)

[٣٤٢٤]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ قَالَ: "حَجَمَ أَبُو طَيْبَةَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَ لَهُ بِصَاعٍ مِنْ تَمْرٍ، وَأَمَرَ أَهْلَهُ أَنْ يُخَفِّفُوا عَنْهُ مِنْ خَرَاجِهِ".

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي ابو طيبه نبي عليه السلام ته ښكر ولګولو اونبي عليه السلام دهغه دپاره ديوصاع كجورو وركولو حكم وكړو اودده مالكانو ته ئې حكم وكړو چه دده سره په خراج كښې دتخفيف معامله وكړئ.

**قوله:** ﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ قَالَ حَجَمَ أَبُو طَيْبَةَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَأَمَرَ لَهُ بِصَاعٍ مِنْ تَمْرٍ وَأَمَرَ أَهْلَهُ أَنْ يُخَفِّفُوا عَنْهُ مِنْ خَرَاجِهِ﴾: يعنى ابو طيبه رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم له ښكر اولګولو نو هغوى د دې په اجرت كښې هغه ته يو صاع د كهجورو وركولو حكم اوفرمائيلو او د هغه مالكانو ته ئې حكم اوكړو چه د هغه په ګټه كښې چه كوم معين مقدار اخلئ په هغې كښې تخفيف اوكړئ، د ابوطيبه نوم بعضو نافع ليكلې دې، خو صحيح دا ده چه د هغوى نوم معلوم نه دې، دا د انصارو غلام وو چونكه دې په ښكر لګولو باندې پوهيدو په دې وجه باندې د هغه مالک په هغه باندې هم دا كار كولو، او د ورځې ورځې يو معين مقدار مال به ئې د هغه نه اخستلو، د هغې نه پس به باقى د هغه وو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه مالكانو ته اوفرمائيل چه تاسو چه د هغه نه كوم مقدار د اخستلو مقرر كړې دې په هغې كښې لږ كمې اوكړئ. والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي كَسْبِ الإِمَاءِ

### دوينځو د امدنئ اخستلو بيان

[٣٤٢٥]([2]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حَازِمٍ، سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كَسْبِ الإِمَاءِ".

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام منع فرمائيلې ده دوينځود امدن نه.

[٣٤٢٦]([3]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، حَدَّثَنِي طَارِقُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقُرَشِيُّ، قَالَ: جَاءَ رَافِعُ بْنُ رِفَاعَةَ إِلَى مَجْلِسِ الأَنْصَارِ، فَقَالَ: "لَقَدْ نَهَانَا نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَوْمَ فَذَكَرَ أَشْيَاءَ وَنَهَى عَنْ كَسْبِ الأَمَةِ إِلَّا مَا عَمِلَتْ بِيَدِهَا، وَقَالَ: هَكَذَا بِأَصَابِعِهِ نَحْوَ الْخَبْزِ، وَالْغَزْلِ، وَالنَّفْشِ".

دطارق بن عبد الرحمن قرشي نه روايت دې فرمائي چه دانصارو يو مجلس ته لاړو او وئې وئيل يقينا مونږ نبي عليه السلام منع كړې وو دامدن دوينځو مګر هغه كوم چه هغه په خپل لاس وګټي. اووئې وئيل داسې او په خپلو لاسونوئي اشاره وكړه لكه پخلي، ورئ ريشل، يادنقش نګار روزګار كول.

---

[1] ): صحيح البخاري/البيوع ٣٩ (٢١٠٢)، ٩٥ (٢٢١٠)، الإجارة ١٩ (٢٢٧٧)، الطب ١٣ (٥٦٩٦)، المساقاة ١١ (٢٣٧٠)، (تحفة الأشراف: ٧٣٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البيوع ٤٨ (١٢٧٨)، سنن ابن ماجه/التجارات ١٠ (٢١٦٤)، مسند احمد ١٠٧/٣، ٢٨٢)، سنن الدارمي/البيوع ٧٩ (٢٦٦٤) (صحيح)

[2] ): صحيح البخاري/الإجارة ٢٠ (٢٢٨٣)، الطلاق ٥١ (٥٣٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٣٤٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٧/٢، ٣٤٧، ٣٨٢، ٤٣٧، ٤٥٤، ٤٨٠)، سنن الدارمي/البيوع ٧٧ (٢٦٦٢) (صحيح)

[3] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٥٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤١/٤) (حسن)

[۳۴۲۷](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ هُرَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعٍ هُوَ ابْنُ خَدِيجٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كَسْبِ الْأَمَةِ حَتَّى يُعْلَمَ مِنْ أَيْنَ هُوَ".

درافع بن خدیج رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی ﷺ منع فرمائیلې ده دامدن د وینځې نه ترڅو چه معلومه شوي نه وي چه دائي دکوم ځائې به حاصل کړي دي.

﴿ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– عَنْ كَسْبِ الإِمَاءِ ﴾

د جاهلیت په زمانه کښې به خلقو په خپلو وینځو باندې حرامه ګټه کوله او دا به ئې جائز ګڼړله او د هغوی په نزد دا هیڅ د شرم خبره نه وه، صرف دا نه بلکه د زنا په ذریعه به ئې نسب هم ثابت منلو لکه چه په کتاب الطلاق کښې ﴿ باب فی ادعاء ولد الزنا ﴾ کښې دا حدیث تیر شوې دې ﴿ لا مساعاة فی الاسلام ﴾ اسلام راتلو سره زنا او زنا ته دعوت ورکونکی او د زنا ګټه دا ټول څیزونه حرام کړل، وراندې په بل روایت کښې دا زیادت دې ﴿ نَهَانَا عَنْ كَسْبِ الأَمَةِ إِلاَّ مَا عَمِلَتْ بِيَدِهَا. وَقَالَ هَكَذَا بِأَصَابِعِهِ نَحْوَ الْخَبْزِ وَالْغَزْلِ وَالنَّفْشِ ﴾ یعنی د وینځې د هغه ګټې نه ئې منع اوفرمائیله کومه چه د حرام کارئ په ذریعه وی نه مطلقا، لهذا که د نورو جائز کارونو په ذریعه ګټه اوکړی لکه د چا ډوډئ پخول یا جولا ګری کول هم دغه شان مالوچ وهل، دا ګټه د هغې جائز ده، په بذل کښې لیکلې دی چه هغه چه د شرح وقایه په بعضو حواشی کښې دی چه ﴿ ان اجرة الزانیة حلال ﴾ د هغې نه مراد اجرة الزنا نه دې بلکه مطلب دا دې چه که یو وینځه چه زانیه هم ده د دې باوجود که هغه په څه بله څه طریقه باندې کسب کوی نو د هغې کسب جائز دې لکه چه دلته په حدیث الباب کښې دی.آه

حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه البخاری، قاله المنذری

[۳۴۲۸](٢) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ "نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ، وَمَهْرِ الْبَغِيِّ، وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ".

د ابومسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ د سپی قیمت، د زناکارې ښځې ګټه، اود کاهن (پالګر) د مزدورئ اخستلو نه منع فرمائیلې ده.

## بَابٌ فِي عَسْبِ الْفَحْلِ

### د څاروی په مال کولو باندې د اجرت اخستلو بیان

[۳۴۲۹](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحَكَمِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ".

---

[١]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٥٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤١/٤) (حسن) بما قبله

[٢]): صحيح البخاري/البيوع ١١٣ (٢٢٣٧)، الإجارة ٢٠ (٢٢٨٢)، الطلاق ٥١ (٥٣٤٦)، الطب ٤٦ (٥٧٦١)، صحيح مسلم/المساقاة ٩ (١٥٦٧)، سنن الترمذي/البيوع ٤٦ (١٢٧٦)، النكاح ٣٧ (١١٣٣)، الطب ٢٣ (٢٠٧١)، سنن النسائي/الصيد والذبائح ١٥ (٤٢٩٧)، سنن ابن ماجه/التجارات ٩ (٢١٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٠٠١٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البيوع ٢٩ (٦٨)، مسند احمد (١١٨/٤، ١٢٠، ١٤٠، ١٤١)، سنن الدارمي/البيوع ٣٤ (٢٦١٠) (صحيح)

[٣]): صحيح البخاري/الإجارة ٢١ (٢٢٨٤)، سنن الترمذي/البيوع ٤٥ (١٢٧٣)، سنن النسائي/البيوع ٩٢ (٤٦٧٥)، (تحفة الأشراف: ٨٢٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤/٢) (صحيح)

د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه الصلاة والسلام دخاروي په مال کولو (جفتي کولو) باندې داجرت اخستونه منع فرمائيلې ده.

**شرح الحديث:**

بفحل يعنی نر خاروې مطلقا فرسا کان او جملا او تيسا او عسب په معنی د ماء الحيوان او د هغې ضراب يعنی جفتی دواړه معنې ليکلې شوی دی، او په حديث الباب کښې دی ﴿نَهَى رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم- عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ﴾ دلته په عبارت کښې مضاف محذوف دې يعنی ﴿عن کراء عسب الفحل﴾ يعنی د نر د جفتی کولو د اجرت نه رسول الله ﷺ منع اوفرمائيله. اووئيلې شوې دی چه د عسب اطلاق په اجرت اضراب باندې هم کيږی لهذا په دې صورت کښې به د مضاف د حذف منلو ضرورت نه وی د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه مذهب هم دا دې چه نر لره د جفتی کولو دپاره په کرايه باندې ورکول حرام دی ولې چه په دې کښې غرر دې ځکه چه نر کله جفتی کوی او کله نه کوی کله په هغې سره علوق يعنی حمل راځی او کله نه راځی بله دا چه ماء الفحل يعنی د دې منی مال غير متقوم دې. د اجرت اخستلو په صورت کښې ګويا دا د هغې بيع ده چه فاسد ده خو په سوال باندې فحل ورکول پکار دی دا مندوب اليه ده پس په حديث کښې راځی ﴿ومن حقها اطراق فحلها﴾ خو په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف منقول دې په داسې طريقه چه د ضراب موده معين کړې شی مثلا ساعت يا نصف ساعت نو په دې باندې چه کوم اجرت واخستلې شی هغه به د ثمن په طور نه وی بلکه تا خپل خاروې د بل د کار دپاره د معينې مودې دپاره ورکړې دې دا د هغې مزدوری ده، د جمهورو په نزد په اجرت ورکول خو ممنوع دی خو که مستعير په طور د کرامت که څۀ ورکړی نو د هغې اخستل جائز دی. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الصَّائِغِ

### د زرګر متعلق بيان

**(د صائغ لغوی تحقيق):**

صائغ او صواغ دواړه لغتونه دی او صياغ هم واؤ لره په ياء سره بدلوی، د صياغت معنی يو مادې لره ويلې کولو سره په يو خاص هيئت باندې يو څيز جوړونکې، او هم د دې نه ده صائغ الحلی يعنی زرګر، د سرو او سپينو زرو کالی جوړول، په مجمع البحار کښې دی، ﴿وفيه واعدت صواغا من بنی قينقاع، وهو صائغ الحلی، من صاغ يصوغ، ومنه اکذب الناس الصواغون،

د مصنف رحمه الله غرض د دې ترجمة الباب نه د صياغت دحرفې کراهت لره بيانول دی لکه چه د حديث الباب نه معلوميږی.

[۳۴۳۰](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي مَاجِدَةَ، قَالَ: "قَطَعْتُ مِنْ أُذُنِ غُلَامٍ أَوْ قُطِعَ مِنْ أُذُنِي، فَقَدِمَ عَلَيْنَا أَبُو بَكْرٍ حَاجًّا، فَاجْتَمَعْنَا إِلَيْهِ، فَرَفَعَنَا إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، فَقَالَ عُمَرُ: إِنَّ هَذَا قَدْ بَلَغَ الْقِصَاصَ ادْعُوا لِي حَجَّامًا لِيَقْتَصَّ مِنْهُ، فَلَمَّا دُعِيَ الْحَجَّامُ،

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۷) (ضعيف)

قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: إِنِّي وَهَبْتُ لِخَالَتِي غُلَامًا، وَأَنَا أَرْجُو أَنْ يُبَارَكَ لَهَا فِيهِ، فَقُلْتُ لَهَا: لَا تُسَلِّمِيهِ حَجَّامًا، وَلَا صَائِغًا، وَلَا قَصَّابًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ ابْنُ مَاجِدَةَ: رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَهْمٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ.

دابوماجده نه روايت دې فرمائي چه ما ديوهلك غوږ پريکړو يازماغوږ چاپريکړو «دراوی شك دې چه ابوماجده کومه جمله وئيلې ده» بيابوبکر صديق زمونږ خواته دحج دپاره راغې، مونږ ټول هغه ته را جمع شو هغه مونږه عمرهته اوليږلو، عمر چه اوفرمائيل په دې کښې قصاص واجب کيدې شي تاسو يونائې راوغواړئ چه هغه په قصاص کښې دده غوږ پريکړې کله چه نائي راغې نوعمر نه. اوفرمائيل مادنبی ﷺ نه اوريدلی دی چه فرمائيلي ئې وو کله چه ما خپلې ترور ميمونه ؓ ته يوغلام په طور دحبه پيش کړې وو زمادا اميدوو چه په دې غلام کښې به ددوی دپاره خيروبرکت وي، خو ما ورته وئيلي وو چه داغلام به ښکرلګونکي يا زرګريا قصاب ته نه حواله کوئ.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي مَاجِدَةَ قَالَ قَطَعْتُ مِنْ أُذُنِ غُلَامٍ - أَوْ قُطِعَ مِنْ أُذُنِي ﴾

**شرح الحديث:**

ابو ماجدة وائی چه ما د يو هلک غوږ کټ کړو، وړاندې د راوی شک دې چه يا هغوی وئيلي وو چه زما غوږ پرې کړې شو، بيا دا سې اوشوه چه مونږ ته د حج په زمانه کښې ابوبکرصديق ؓ تشريف راوړو مونږ هغوی ته جمع شو او ګويا د هغوی مخې ته د هغې اذن ذکر راغلو ﴿ فَرَفَعَنَا إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ﴾ يعنی ابوبکرصديق ؓ زمونږ دا مقدمه د عمر ؓ په خدمت کښې اوليږله، نو عمر ؓ واقعه اوريدو سره اوفرمائيل چه دا قصه خو د قصاص حد ته اورسيده يعنی دا فعل سبب د قصاص دې، او وې فرمائيل چه ما ته حجام راولئ چه د دې قاطع نه قصاص واخستلې شی، راوی وائی چه کله حجام راغلو «نو عمر ؓ ته يو حديث راياد شو چه په هغې باندې هغوی اوفرمائيل» ما د رسول الله ﷺ نه په يو موقع باندې اوريدلي وو. هغوی اوفرمائيل چه ما خپلې تررو ته يو غلام هبه کړې وو او زه اميد کوم د دې خبرې چه زما د ترور دپاره به په دې کښې خير او برکت وی او ما ترور ته د ورکړې په وخت وئيلي وو چه دا سړې حجام يا صائغ يا قصاب ته مه حواله کوه، يعنی په دې کسبونو کښې ورته يوه هم مه ښايه، پورته د مجمع البحار نه د صواغين په باره کښې اکذب الناس کيدل تير شو، علماء کرامو ليکلي دی چه د صائغ مذمت خکه کړې شوې دې چه هغه کالو جوړولو کښې ملاوټ کوی، بله دا چه د هغوی په کلام کښې ټال مټول او د دروغو وعدې ډيرې مونډلې کيږی، او د حجام او د قصاب کراهت د هغه نجاست د وجې نه دې چه هغې سره د هغوی تعلق راځی.

[۳۴۳۱] (¹) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُرَقِيِّ، عَنِ ابْنِ مَاجِدَةَ السَّهْمِيِّ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ.

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۱۳) (ضعيف)

ابوماجده سهمی دعمربن الخطاب فتنه اوهغه دنبی علیه الصلاة والسلام نه دمخکني روایت په شان روایت نقل کړې دې.

[۳٤۳۲](١) حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُرَقِيُّ، عَنِ ابْنِ مَاجِدَةَ السَّهْمِيِّ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.

ابوماجده سهمی دعمربن الخطاب رضی الله عنه نه اوهغه دنبی علیه الصلاة والسلام نه دتیرشوی روایت په شان روایت بیان کړې دې.

## بَابٌ فِي الْعَبْدِ يُبَاعُ وَلَهُ مَالٌ

### بابه که چرې یوغلام په داسې حال کښې خرڅ کړې شی چه مال ورسره موجود وی ( نو ددغه مال حقدار به څوک وی )

[۳٤۳۳](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ بَاعَ عَبْدًا، وَلَهُ مَالٌ، فَمَالُهُ لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَهُ الْمُبْتَاعُ، وَمَنْ بَاعَ نَخْلًا مُؤَبَّرًا، فَالثَّمَرَةُ لِلْبَائِعِ، إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ".

سالم دخپل پلار عبدالله رضی الله عنه نه روایت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلي دي: څوک چه داسې غلام خرڅ کړي چه مال ورسره وي نو خرڅونکي ددې حقدار دي مګرهله چه خریدار شرط لګولې وي، چاچه پیوند شوي کجوره خرڅه کړه نوددی میوه به دخرڅونکي حق وي مګر داچه اخستونکې دخرڅونکي سره شرط مقرر کړي (چه کجوره به سره د میوو اخلم او خرڅونکې داشرط قبول کړي نوددې میوه به خریداراخلي).

**قوله:** ﴿ مَنْ بَاعَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُهُ لِلْبَائِعِ إِلاَّ أَنْ يَشْتَرِطَهُ الْمُبْتَاعُ وَمَنْ بَاعَ نَخْلاً مُؤَبَّرًا فَالثَّمَرَةُ لِلْبَائِعِ إِلاَّ أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ ﴾

### شرح الحديث مع استنباط المسئلة :

یعنی کوم انسان چه خپل داسې غلام خرڅ کړی چه د هغه دپاره مال وی نو هغه مال به د مالک یعنی د بائع وی د مشتری دپاره به نه وی، مګر دا چه مشتری شرط اولګوی د هغه د مال هم، د ائمه اربعه هم دا مذهب دې، خو دلته سوال دا واردیږی چه آیا عبد هم د څه مال مالک کیدې شی؟ د دې جواب دا دې چه د جمهور علماء او ائمه ثلاث په نزد په عبد کښې د مالک جوړیدو صلاحیت نشته لهذا په حدیث کښې د مال اضافت د عبد طرف ته مجازاً دې یعنی هغه سره چه کوم مال دې اګر که د هغه نه دې، په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف منقول دې هغوی فرمائی چه که مالک خپل غلام لره د څه مال مالک جوړ کړی نو هغه به مالک شی او هم دا د اهل ظاهر قول دې، په دې اختلاف باندې شارحانو په طور د

(١): انظر حديث رقم: (٣٤٢٩)، (تحفة الأشراف: ١٠٦١٣) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/البيوع ٩٠ (٢٢٠٣)، ٩٢ (٢٢٠٦)، المساقاة ١٧ (٢٣٧٩)، الشروط ٢ (٢٧١٦)، صحيح مسلم/البيوع ١٥ (١٥٤٣)، سنن الترمذي/البيوع ٢٥ (١٢٤٤)، سنن النسائي/البيوع ٧٤ (٤٦٤٠)، سنن ابن ماجه/التجارات ٣١ (٢٢١٠)، (تحفة الأشراف: ٦٨١٩، ٨٣٣٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البيوع ٧ (١٠)، مسند احمد (٦/٢)، سنن الدارمي/البيوع ٢٧ (٢٦٠٣) (صحيح)

اختلاف ثمر دا مسئله هم لیکلي ده چه د جمهورو په نزد د غلام دپاره تسری (۱) یعنی وطی بملک الیمین، او د امام مالک رحمه الله په نزد جائز ده، دویمه مسئله په دې حدیث کښې د بیع نخل ده که یو سړی خپلې د کهجورو اونې د تابیر نه پس خرڅې کړې نو په دې صورت کښې به میوه د اونو تابع نه وی بلکه د بائع دپاره به وی مګر دا که مشتری صراحة شرط اولګوی نو بیا به د مشتری دپاره وی یعنی په بیع کښې به داخله شی، جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاث په دې حدیث کښې د موبرا د قید اعتبار کولو سره هم دا وئیلي دی چه دا حکم د نخل موبر دې او که نخل غیر موبر وی نو په دې صورت کښې به ثمر د بائع دپاره نه وی بلکه د اونو تابع کیدو سره به د مشتری دپاره وی، او د احنافو په نزد دا قید اتفاقی دې احترازی نه دې، د هغوی په نزد قبل التابیر او بعد التابیر په دواړو صورتونو کښې به میوه د بائع دپاره وی. او دلته یو دریم مذهب هم دې هغه دا چه د ثمر به په دواړو صورتونو کښې د مشتری دپاره وی، دې طرف ته تلې دې ابن ابی لیلی، د جمهورو استدلال په طریقه د مفهوم مخالف دې او احناف چونکه د مفهوم مخالف اعتبار نه کوی په دې وجه هغوی دا اختیار نه کړو، هغوی دا وائی چه ثمر مستقل څیز دې او اونې مستقل.

[٣٤٣٤](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِقِصَّةِ الْعَبْدِ، وَعَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِقِصَّةِ النَّخْلِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَاخْتَلَفَ الزُّهْرِيُّ، وَنَافِعٌ، فِي أَرْبَعَةِ أَحَادِيثَ هَذَا أَحَدُهَا.

نافع دعبدالله ابن عمر رضی الله عنهما نه اوهغه دنبی علیه السلام نه صرف دغلام واقعه نقل کړې ده او همدارنګې نافع دابن عمرنه په بل روایت کښې صرف دکجورې واقعه نقل کړې ده. امام ابوداؤد فرمائی چه زهري اونافع په څلورو احادیثو کښې اختلاف کړې اویو دهغوی نه دادې.

﴿عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِقِصَّةِ الْعَبْدِ وَعَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- بِقِصَّةِ النَّخْلِ﴾

مصنف رحمه الله د راویانو اختلاف بیانوی، د دې حدیث رومبې طریق سالم عن ابن عمر دې او دویم طریق ئې نافع عن ابن عمر دې، د سالم نه روایت کونکې امام زهری رحمه الله دې، او د نافع نه روایت کونکې مالک، نو دلته د سالم او د نافع اختلاف راځی هغه دا چه سالم د حدیث دواړه اجزاء یعنی بیع نخل او بیع عبد دا دواړه د خپل پلار ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړل، او نافع بیع النخل خو د ابن عمر نه روایت کړو، او بیع العبد ئې عن ابن عمر عن عمر رضی الله عنه نه روایت کړو، یعنی د یو جزء راوی ئې عمر رضی الله عنه کړو او د یو جزء راوی ابن عمر رضی الله عنهما په خلاف د سالم چه هغوی دواړه اجزاء د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړل.

په بعض نسخو کښې یو عبارت دې چه د هغې مطلب دا دې چه د محدثینو په نزد څلور احادیث داسې دی چه په هغې کښې د نافع او زهری اختلاف دې په هغه څلورو کښې یو دا هم دې، یاد دی چه د رفع یدین په بحث کښې د ابن عمر رضی الله عنهما د حدیث د لاندې دا تیر شوی

---

(۱) تسری، د سریة نه ماخوذ دې هغه وینځې ته وائی چه هغه انسان د وطی دپاره ساتی.
(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۸۳۳۰، ۱۱۵۵۸) (صحيح)

دی چه د سالم او نافع په څلورو احاديثو کښې په رفع او وقف کښې اختلاف دې يو د هغې نه د رفع اليدين والا حديث هم دې کوم چه سالم مرفوعا او نافع موقوفا روايت کړې دې.

وحديث سالم اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[٣٤٣٥](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، حَدَّثَنِي مَنْ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ بَاعَ عَبْدًا، وَلَهُ مَالٌ فَمَالُهُ، لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ".

د جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلي دي: څوك چه داسې غلام خرڅ کړي چه مال ورسره وي نو خرڅونکي د دې حقدار دې مگر هله چه خريدار شرط لګولې وي.

## بَابٌ فِي التَّلَقِّي

### بازارته د راتلو نه مخکښې د سوداګرو سره د ملاويدو بيان

[٣٤٣٦](2) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ، وَلَا تَلَقَّوُا السِّلَعَ حَتَّى يُهْبَطَ بِهَا الْأَسْوَاقَ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی څوك دې دچا په سوداباندې سودانه کوي (يعنی يوخريدار دې دبل خريدارپه سودا کښې کارنه لری اوسودادې کامل کيدوته پريږدې) اوترڅوپورې چه تاجر بازارته خپل مال نه وي راوړې ددينه مخکښې ورسره سوداکول منع دي.

### د مسئلة الباب تشريح مع اختلاف ائمة :

د تلقی نه مراد تلقی الجلب دې لکه چه د باب په حديث ثانی کښې دی ﴿ نهی عن تلقی الجلب ﴾ جلب مصدر په معنی د مجلوب يعنی هغه سامان چه هغې لره د کلی نه ښهر ته د خرڅولو او تجارت دپاره راوړلې شی او تلقی په معنی د استقبال، لهذا مطلب دا شو چه کوم مال باندچيان د کلونه د ښهرونو منډئ ته د خرڅولو دپاره راوړی، که د ښهر يو فرد د هغه راتلونکې قافلې استقبال د هغه ښهر ته د رسيدو نه مخکښې اوکړی او هغه سامان هم هلته په لاره کښې واخلی منډئ ته رسيدو ته ئې نه پريږدی نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې نه منع فرمائيلې ده. د جمهورو په نزد تلقی رکبان مطلقا ممنوع دې او په دې کښې اختلاف دې چه حرام دې که مکروه، او ابن المنذر د احنافو مذهب دا نقل کړې دې چه د هغوی په نزد بغير د کراهت نه جائز دې خو په دې باندې حافظ تعقب کولو سره فرمائيلې دی چه په کتب د احنافو کښې خو دا دی چه تلقی په دوه صورتونو کښې مکروه دې، يو دا چه اهل بلد ته د هغې نه ضرر رسيږی، يا دا چه د دې ښهر والا د طرف نه تلبيس سعر اومندلې شی، يعنی هغه غلط بيانی اوکړی او دې قافلې ته د بازار صحيح قيمت بيان نه کړی بلکه د هغې نه ئې ورته کم ياد کړی آه حافظ صحيح فرمائيلې دی چه د احنافو په نزد نه تلقی مطلقا مباح ده

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣١٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٠١) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/البيوع ٧١ (٢١٦٨)، صحيح مسلم/البيوع ٥ (١٥١٧)، سنن النسائي/البيوع ١٨ (٤٥٠٧)، سنن ابن ماجه/التجارات (٢١٧٩)، (تحفة الأشراف: ٨٣٢٩، ٨٠٥٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ البيوع ٤٥ (٩٥)، مسند احمد (٢/٧، ٢٢، ٦٣، ٩١) (صحيح)

او نه مطلقا مکروه لکه چه د جمهورو په نزد ده بلکه هم په دې دوه صورتونو کښې کراهت
دې ګیني نشته کما في البذل عن الهدایة وابن الهمام.

[۳۴۳۷]([1]) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو الرَّقِّيَّ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ تَلَقِّي الْجَلَبِ فَإِنْ تَلَقَّاهُ مُتَلَقٍّ مُشْتَرٍ، فَاشْتَرَاهُ، فَصَاحِبُ السِّلْعَةِ بِالْخِيَارِ إِذَا وَرَدَتِ السُّوقَ"، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ: سَمِعْتُ أَبَا دَاوُدَ، يَقُولُ: قَالَ سُفْيَانُ: لَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ، أَنْ يَقُولَ: إِنَّ عِنْدِي خَيْرًا مِنْهُ بِعَشَرَةٍ.

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ بازارته دراوتلونه مخکښې دمال اخستلونه منع فرمائیلې ده او څوك چه مخکښې لاړ شي اومال واخلي (یعنی په کم قیمت نودغلې مالك لره اختیار دې بازارته دوتلو پورې. امام ابوداؤد فرمائی چه سفیان وئیلی دی په تاسوکښې دې یوکس دیوکس په سوداباندې دې سودانه کوي یعنی داسې به نه وائی چه زماسره ددینه بهتره سوداده او په لس روپۍ ده.

﴿فان تلقاه متلق مشتر فاشتراه فصاحب السلعة بالخيار اذا وردت السوق﴾ یعنی که یو انسان د دې راتلونکې قافلې نه یو څیز واخلی نو ښهر ته د رسیدو نه پس صاحب سلعة یعنی بائع ته په د رجوع عن البیع اختیار وی، د دې خیار رجوع اکثر علماء کرام قائل نه دی سوا د شافعی رحمه الله نه فانه اثبت الخيار للبائع قولا بظاهر الحديث قاله الخطابی، د باب رومبی حدیث کښې ﴿ لَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ ﴾ مذکور دی په دې باره کښې د امام سفیان ثوری رحمه الله کلام مصنف رحمه الله نقل فرمائی ﴿قال ابوداؤد قال سفيان﴾ یعنی د بیع علی بیع اخیه چه د هغې په حدیث کښې ممانعت دې سفیان رحمه الله د هغې تفسیر کوی.

## د بیع علی بیع اخیه، وضاحت :

چه دوه سړی په خپل مینځ کښې د اخستلو او خرڅولو خبره اوکړی نو په مینځ کښې ورته دریم سړې دا اوائی مشتری ته چه زه په دې ثمن کښې دا څیز د دې نه غوره تاته درکولې شم خو دا کراهت په هغه وخت کښې دې چه د اصل بائع او مشتری بیع کولو نه پس په څه مقدار ثمن باندې استقرار شوې وی، او ترڅو پورې چه استقرار نه وی شوې بلکه د کمی او زیاتی خبره شروع وی نو بیا د دې ګنجائش شته، بیع علی بیع اخیه کوم چه په حدیث کښې راځی د دې شرح تفصیلا په کتاب النکاح کښې ﴿لا يخطب على خطبة اخيه الحديث﴾ د لاندې تیره شوې ده ﴿فارجع اليه لو شئت﴾ وحديث ابن عمر رضی الله عنه اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة مختصرا ومطولا، وحديث ابی هريرة رضی الله عنه اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[1]: سنن الترمذي/البيوع (۱۲۲۱، ۱۲۲۳)، (تحفة الأشراف: ۱٤٤٤٨)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البيوع ٥ (۱٥۱۹)، سنن النسائي/البيوع ۱٦ (٤٥٠٥)، سنن ابن ماجه/التجارات ۱٦ (۲۱۷۹)، مسند احمد (۲/۲۸٤، ٤٠٣، ٤٨٨)، سنن الدارمي/البيوع ۳۲ (۲٦٠٨) (صحيح)

# بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ النَّجْشِ

**د نجش (یعنی نورو اخستونکو ته د دهوکې ورکولو دپاره نرخ زیاتولو) د ممانعت بیان**

[۳۴۳۸](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَنَاجَشُوا".

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلي دي: چه نجش مه کوئ (نجش دې ته وائی چه دیوې سودا اخستل دخریدار مقصود نه وي بلکه صرف نرخ زیاتول اودوکه ورکول ئې غرض وی)

**د مسئلة الباب تشریح عند الفقهاء:**

د نجش (٢) مطلب دا دې چه د یو څیز د اخستونکی مخکښې زیات قیمت اولګولې شی سره د دې چه د اخستلو اراده ئې هم نه وی چه هغه اخستونکې د دې څیز په ثمن کښې اضافه اوکړی، په دې حدیث کښې د دې ممانعت دې. ﴿ لا تناجشو ﴾ ځکه چه دا دهوکه ده خو په بدائع کښې لیکلې شوې دی چه د نجش کراهت په هغه صورت کښې دې چه کله مشتری هغه سامان لره د ثمن په مثل باندې اخلی یعنی پوره قیمت لګولو سره، او که هغه دې څیز لره اخستل غواړی د ثمن مثل نه په کم باندې نو په دې صورت کښې څوک نجش اوکړی چه هغه خریدار دا څیز په ثمن مثل باندې واخلی یعنی په بازار کښې چه کوم د هغه څیز قیمت وی نو بیا دا نجش مکروه نه دې، اګر چه د ناجش اراده د اخستلو نه وی. آه (بذل) او امام نووی رحمه الله فرمائی چه نجش بالاجماع حرام دې او بیع صحیح ده او منعقد کیږی او ګناه د ناجش سره خاص ده که دا نجش بغیر د علم د بائع نه وی، او که د دواړو په موافقت او سازش سره وی نو بیا به دواړه ګناهګار وی، او د امام مالک رحمه الله یو روایت دا دې چه د نجش په صورت کښې بیع باطل ده هغوی نهی لره مقتضی د فساد منلې ده. (عون)

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة مختصرا، قاله المنذری

# بَابٌ فِي النَّهْيِ أَنْ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ

**د بانديچی دپاره دې ښار والا سودا نه خرڅوی**

حاضر یعنی حضری، ښهر والا، باد په معنی د باندچی او کلی وال.

[۳۴۳۹](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ،

---

[1]: صحيح البخاري/البيوع ٥٨ (٢١٤٠)، صحيح مسلم/النكاح ٦ (١٤١٣)، والبيوع ٤ (١٥٢٠)، سنن الترمذي/البيوع ٦٥ (١٣٠٤)، سنن النسائي/البيوع ١٢ (٤٤٩٢)، سنن ابن ماجه/التجارات (٢١٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٣١٢٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البيوع ٤٥ (٩٦)، مسند احمد (٢٣٨/٤، ٢٥٤، ٣٩٤، ٤٠٢، ٤١٠) (صحيح)

[2]) النجش بفتحين وروي النجش بالسكون، اصله من نجش الصيد وهو اثارته (مغرب ملخصا) من هامش محمد عوامه، وفي البذل قال النووي رحمه الله النجش بسكون الجيم ان يزيد في الثمن لا لرغبته بل ليخدع غيره)

[3]): صحيح البخاري/البيوع ٦٨ (٢١٥٨)، ٧١ (٢١٦٣)، الإجارة ١٤ (٢٢٧٤)، صحيح مسلم/البيوع٦ (١٥٢١)، سنن النسائي/البيوع ١٦ (٤٥٠٤)، سنن ابن ماجه/التجارات ١٥ (٢١٧٧)، (تحفة الأشراف: ٥٧٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٨/١) (صحيح)

قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ، فَقُلْتُ: مَا يَبِيعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ؟، قَالَ: لَا يَكُونُ لَهُ سِمْسَارًا".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرماني چه نبی علیه السلام منع فرمائيلې ده ددينه چه يوښار والا سړې د بانډچې دپاره سوداخرڅه کړي، ماعرض اوکړوددې څه مطلب دې؟ نبی علیه السلام اوفرمائيل دهغه دلالي دې نه کوي.

**قوله:** ﴿ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم- أَنْ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ ﴾

**د مسئلة الباب تشريح :**

وړاندې په روايت کښې دی چه شاګرد د استاد نه تپوس اوکړو چه د دې حديث څه مطلب دې نو هغوی اوفرمائيل مطلب دا دې چه د ښهر سړی لره د کلي وال دپاره دلال جوړيدل نه دی پکار، کلي وال چه د کلي نه کوم مال ښهر ته د خرڅولو دپاره راوړی نو چونکه په ښهر کښې د هغوی د قيام باقاعده ځائې نه وی نو هغوی دې څيز لره بسعر اليوم خرڅ کړی او لاړ شی، يعنی د هغه څيز چه هغه ورځ په منډئ کښې کوم نرخ وی په هغې سره، او چونکه په منډئ کښې د څيز نرخ کميږی زياتيږی په دې وجه يو ښهر والا خپل پيژندګلو کلي وال ته دا اووائی چه ته خپل سامان ماسره کيږده په کومه ورځ باندې چه د منډئ نرخ مناسب وو په هغه ورځ باندې به زه دا ستا د طرف نه خرڅ کړم نو په هغې کښې اګر چه د دې کلي وال خو فائده ده خو د عامو خلقو نقصان دې په دې وجه شريعت په دې انفرادی فائده باندې اجتماعی فائدې لره ترجيح ورکولو سره د داسې کولو نه منع اوفرمائيله پس د باب په آخری حديث کښې راځی ﴿ لا يبع حاضر لباد وذروا الناس يرزق الله بعضهم من بعض ﴾ يعنی دا کلي وال پريږدئ او څنګه چه هغوی معامله په خپله کوی د ښهر والو سره ارزانه يا ګرانه هر څنګه چه وی پريږدئ چه اوکړی، الله پاک د يو نه بل ته فائده رسوی.

**په مسئلة الباب کښې مذاهب د ائمة :**

اوس پاتې شوه دا خبره چه دا ممانعت په کوم صورت کښې دې د جمهورو مسلک دا دې چه کراهت مطلقا دې په دې شرط چه هغه څيز د خلقو عام حاجت او ضرورت وی، او په شرط د علم بالنهی، او د احنافو په نزد يو خو شرط هم دغه دې چه کوم څيز داسې وی چه هغې ته اهل مصر محتاج وی، او دويمه دا چه زمانه د ګرانئ وی (عندنا مختص بزمن الغلاء وبما يحتاج اليه اهل المصر)

**(د امام بخاری رحمه الله مسلک)**

دريم مذهب د امام بخاری رحمه الله وغيره دې چه دا کراهت او نهی په دې صورت کښې ده چه کله د ښهر والا دا کار په مزدورئ باندې اوکړی (کميشن) والا فلا يکره، وقال النبی صلی الله علیه وسلم اذا استنصح احدکم اخاه فلينصح له،ورخص فيه عطاء، شارحينو د امام بخاری رحمه الله مسلک هم دا ليکلې دې چه کراهت د اجر په صورت کښې دې ګينې بيا په دې کښې هيڅ کراهت نشته، بلکه هغه خو د باب د نصيحت نه دې، خو د اجرت اخستلو په صورت کښې نصيحت نشته بلکه خود غرضی ده. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۳۴۴۰] ([1]) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ الزِّبْرِقَانِ أَبَا هَمَّامٍ حَدَّثَهُمْ، قَالَ زُهَيْرٌ: وَكَانَ ثِقَةً، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَبِيعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ، وَإِنْ كَانَ أَخَاهُ أَوْ أَبَاهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْت حَفْصَ بْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: حَدَّثَنَا أَبُو هِلَالٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ يُقَالُ لَا يَبِيعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ، وَهِيَ كَلِمَةٌ جَامِعَةٌ لَا يَبِيعُ لَهُ شَيْئًا، وَلَا يَبْتَاعُ لَهُ شَيْئًا.

دا دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی د باندچی دپاره دي دښار والاسودا نه خرڅوی اگرکه دده ورور يا پلاروي. امام ابوداؤد وائي دحفص بن عمر نه مي آوريدلي دی وئيل ئي چه ماته حديث بيان کړي دي ابوهلال هغه د محمد نه آوريدلي دي اوهغه انس بن مالك رضي الله عنه نه چه فرمائيل ئي خلقوبه وئيل چه دار د باندچی دپاره دي ښار والاسودا نه خرڅوی، يوجامع کلام دې دده دپاره به نه څه شې خرڅوی اونه به دده دپاره خريداري کوی.

[۳۴۴۱] ([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَالِمٍ الْمَكِّيِّ، أَنَّ أَعْرَابِيًّا حَدَّثَهُ، أَنَّهُ قَدِمَ بِحَلُوبَةٍ لَهُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَزَلَ عَلَى طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، فَقَالَ: "إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ، وَلَكِنِ اذْهَبْ إِلَى السُّوقِ فَانْظُرْ مَنْ يُبَايِعُكَ، فَشَاوِرْنِي حَتَّى آمُرَكَ أَوْ أَنْهَاكَ".

د سالم مکی نه روايت دې فرمائي چه يوباندچي راته وئيلی دی دنبي عليه السلام په زمانه کښې مې يوه النکه اوښه ياد تجارت سامان راوړو او طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه ته لاړم هغه راته اووئيل چه نبي عليه السلام د باندچي دپاره د ښاری د سودا خرڅولونه منع فرمائيلې ده، پخپله بازار ته لاړ شه هلته به اوگوري چه څوك درسره داخستلواوخرڅولو معامله کوي، بيابه زمانه مشهوره واخلي زه به درته اووايم چه خرڅ ئې کړه پاڼې مه خرڅوه (مگردانشي کيدې چه زه درسره لاړشم اوستا دپاره دلال جوړشم).

**قوله:** ﴿عَنْ سَالِمٍ الْمَكِّيِّ أَنَّ أَعْرَابِيًّا حَدَّثَهُ أَنَّهُ قَدِمَ بِحَلُوبَةٍ لَهُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَنَزَلَ عَلَى طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ الخ﴾ يعنی يو اعرابی خپله واقعه بيان کړه چه هغه خپله يوه پئ ورکونکي اوښه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کښې د باندې نه ښهر ته راوستله، او د طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه سره کوز شو (او هلته په کوزيدو کښې د دې باندچي مقصد دا وو چه فورا دا اوښه منډئ ته بوتلو سره د خرڅولو په خاتې د هغوی کړه ولاړه وی او دې په خپل اختيار څه مناسب موقع باندې چه کله د دې خرڅول اوغواړی بازار ته بوتلو سره خرڅه کړی) خو طلحه رضي الله عنه د دې دپاره تيار نه شو او وې فرمائيل چه گوره رورهٔ رسول الله صلى الله عليه وسلم د بيع الحاضر للبادی نه منع فرمائيلې ده لهذا ته خپله دا بازار ته بوځه بيا چه د چا په لاس باندې ستا د خرڅولو رائې وی راشه او ما سره مشوره اوکړه، د دې نه زيات زه نه شم کولې.

وحديث جابر رضي الله عنه آخر احاديث الباب اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری.

---

[1]): سنن النسائي/البيوع ۱۵ (۴۴۹۷)، (تحفة الأشراف: ۵۲۵، ۱۴۵۴)، حديث حفص بن عمر قد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ۷۰ (۲۱۶۱)، صحيح مسلم/البيوع ۶ (۱۵۲۳)، وحديث زهير بن حرب قد أخرجه (صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۰۱۹) (ضعيف الإسناد)

[۳۴۴۲] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَبِعْ حَاضِرٌ لِبَادٍ، وَذَرُوا النَّاسَ يَرْزُقِ اللَّهُ بَعْضَهُمْ مِنْ بَعْضٍ".

دجابر بن عبدالله ﷺ نه روایت دی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دباندچی دپاره دي ښاروالاسودانه خرڅوی، اوخلق پریږدئ چه الله تعالی بعضوته دبعضوپه ذریعه رزق ورکړی.

## باب مَن اشْتَرَى مُصَرَّاةً فَكَرِهَهَا

### که چرې څوک لنګه چیلئ یو وخت ونه لوشي او خرڅه ئې کړي نو خریدار به څه کوی؟

[۳۴۴۳] (۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَلَقَّوُا الرُّكْبَانَ لِلْبَيْعِ، وَلَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ، وَلَا تُصَرُّوا الْإِبِلَ وَالْغَنَمَ، فَمَنِ ابْتَاعَهَا بَعْدَ ذَلِكَ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ، بَعْدَ أَنْ يَحْلُبَهَا فَإِنْ رَضِيَهَا أَمْسَكَهَا، وَإِنْ سَخِطَهَا رَدَّهَا وَصَاعًا مِنْ تَمْرٍ".

دابوهریره ﷺ نه روایت دی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دسوداګرو د قافلو مخوته مه ورځئ (دارزان اخستلو اوګران خرڅولو دپاره) او یوڅوک دي دبل چاپه سودا سودانه کوي او داوښو اوچیلو په غلانځوکښې شوده مه جمع کوئ، اوڅوک چه داسې اوښه یاچیلئ واخلي نوهغه ته دپیو ویستلونه پس دقبول کولو او واپس کولو اختیاردې که چرې خوښه ئې وي نوساتلې شي اوکه واپس کول غواړي نودیوصاع کجوروسره دي واپس کړي.

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ...... وَلاَ تُصَرُّوا الإِبِلَ وَالْغَنَمَ فَمَنِ ابْتَاعَهَا بَعْدَ ذَلِكَ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ بَعْدَ أَنْ يَحْلِبَهَا فَإِنْ رَضِيَهَا أَمْسَكَهَا وَإِنْ سَخِطَهَا رَدَّهَا وَصَاعًا مِنْ تَمْرٍ او دي نه روستو طریق کښې داسې دی ﴿ فَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلاَثَةَ أَيَّامٍ ﴾ او وراندې دی ﴿ رَدَّهَا وَصَاعًا مِنْ طَعَامٍ لاَ سَمْرَاءَ ﴾ او د هغې نه روستو په حدیث د ابن عمر ﷺ کښې دی ﴿ فَإِنْ رَدَّهَا رَدَّ مَعَهَا مِثْلَ أَوْ مِثْلَيْ لَبَنِهَا قَمْحًا ﴾

### د حدیث المصراة شرح او په دې باندې کلام من حیث الفقه:

په دې باب کښې یو اهم او مشهور اختلاف مسئله ذکر شوې ده یعنی مسئله د بیع المصراة، مصراة د اسم مفعول صیغه ده د تصریه نه چه د هغې لغوی معنی حبس ده یعنی (بندول) او په عرف کښې وائی په غلانځه کښې پئ بندولو ته، چه د هغې شرح دا ده چه بعض خلق چه کله د پیو والا یو څاروې خرڅول غواړی نو هغوی دا حرکت کوی چه په اراده د بیع سره یو دوه ورځې مخکښې د هغې پئ لوشل بند کړی چه پئ د هغې په غلانځه کښې نو هغه مشتری دا ګنړی چه دا څاروې ډیر زیات پئ ورکونکې دې او هغه هم په دې ګنړلو باندې اخلی بیا چه کله هغه کور ته راوستلو سره اوتړی نو یو ورځ دوه پس د هغه په پیو کښې کمې راشی نو هغه پریشانه شی او هغه ته د بائع د هوکې ورکولو علم اوشی داسې

(۱): صحيح مسلم/البيوع ٦ (١٥٢٢)، (تحفة الأشراف: ٢٧٢١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البيوع ١٣ (١٢٢٣)، سنن النسائي/البيوع ١٥ (٤٥٠٠)، سنن ابن ماجه/التجارات ١٥ (٢١٧٧)، مسند احمد (٢/٣٧٩، ٤٦٥) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/البيوع ٦٤ (٢١٥٠)، صحيح مسلم/البيوع ٤ (١٥١٥)، سنن النسائي/ البيوع ١٥ (٤٥٠١)، سنن ابن ماجه/التجارات ١٣ (٢١٧٢)، (تحفة الأشراف: ١٣٨٠٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البيوع ١٣ (١٢٢٣)، موطا امام مالك/البيوع ٤٥ (٩٦)، مسند احمد (٢/٣٧٩، ٤٦٥) (صحيح)

څاروی ته په عرف کښې مصراة وئیلې شی، اوس دا چه په دې قسم معامله کښې څوک اخته شی نو د هغې حل او حکم څه دې په حدیث الباب کښې دا دی چه په داسې صورت کښې هغه ته دواړه اختیاره دی که دې څاروی لره په دې موجوده حالت کښې ساتل غواړی نو او دې ساتی، او که واپس کول غواړی نو واپس دې کړی، او په یو روایت کښې په دې کښې د درې ورځو قید دې چه په درې ورځو کښې دننه دننه ئې واپس کولې شی نو واپس دې کړی، او په یو روایت کښې په دې کښې د درې ورځو قید هم دې چه په درې ورځو کښې دننه دننه ئې واپس کولې شی د دې نه پس نه، دا پکښې هم ده چه کله دا مصراة واپس کړی نو د دې سره دې یو صاع د تمر هم واپس کړی.

**مذاهب د ائمة :**

په دې حدیث باندې د ائمه ثلاث او امام ابویوسف رحمه الله عمل دې دا حضرات تصریه عیب ګڼړی او د عیب په صورت کښې چونکه خیار درکولو کیږی په دې وجه دلته هم د رد خیار منی طرفین یعنی امام ابوحنیفه او امام محمد رحمه الله وفی روایة لمالک ایضا: تصریه عیب نه دې څکه چه د دې تعلق د ذات د مبیع سره نه دې بلکه وصف د مبیع سره دې، لهذا د تصریه د وجې نه به خیار رد نه حاصلیږی، بله دا چه خیار عیب د درې ورځو سره نه شی مقید کولې بلکه مطلقاً وی او دلته په حدیث کښې درې ورځو سره مقید دې چه په درې ورځو کښې ئې رد کولې شی روستو نه، بهر حال احنافو په دې حدیث باندې عمل نه دې کړې.

**حدیث المصراة د اصولو مخالف دې د اتو وجو نه :**

علامه عینی رحمه الله فرمائی ﴿ واقوی وجوه فی ترک العمل بها مخالفتها للاصول من ثمانیة اوجه، یعنی د احنافو په دې حدیث باندې د عمل نه کولو وجه دا ده چه دا حدیث د اصولو او د قواعدو کلیو خلاف دې د اتو وجو نه، بیا هغوی دغه وجوه ثمانیه په تفصیل سره بیان کړل، د علامه عینی دا پوره کلام په بذل المجهود کښې موجود دی، بعض د هغه وجوه نه دادی چه په دې حدیث کښې د صاع من تمر ورکولو حکم دې نو ښکاره خبره ده چه دا د هغه [۳٤٤۳] پیو عوض دې کوم چه مشتری خپل ځائې ته راوستلو سره رالوشلی دی، یعنی د هغې تاوان دې، خو په ضمان کښې خو مماثلت ضروری دې لقوله تعالی : ﴿ وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ ﴾ چه د هغې نه معلومیږی چه د ضمان دپاره ضروری ده چه هغه دې بالمثل وی، او د مثل دوه قسمونه دی مثل صوری کوم چه په ذوات الامثال کښې کیدې شی (او لبن په ذوات الامثال کښې دې) او دویم مثل معنوی، یعنی قیمت کوم چه ذوات القیم وی لکه حیوانات وغیره، او صاع تمر خو نه مثل صوری دې او نه مثل معنوی، بله دا چه دلته ردد صاع کوم چه د ضمان په طور دې هغه کیدل نه دی پکار څکه چه قاعده منصوصه دا ده ﴿ الغرم بالغنم، الخراج بالضمان ﴾ یعنی فائده هم د هغه وی چه په چا باندې ضمان واجب وی، او دلته دا حیوان یعنی مصراة په ضمان د مشتری کښې وو چه په دې دوران کښې چه هغه څاروې هلاک شی نو ظاهره ده چه د دې ضامن به مشتری وی لهذا په دې صورت کښې د دې څناور چه نفع او ثمره دې یعنی پې هغه هم د مشتری دپاره کیدل پکار دی بیا به په هغه باندې ضمان ولې واجب وی، په دې

حدیث کښې دی ﴿ ردها وصاعا من تمر ﴾ د ظاهر حدیث تقاضه ده چه صاع دتمر د هر مصراة په مقابله کښې دې که یو وی یا زیات، خو اکثر هغه حضرات کوم چه په حدیث د مصراة باندې د عمل قائل دی د هغوی مسلک دا دې چه هر یوه بیزه یا چه کوم هم څاروې وی مصراة به د هغې په بدله کښې یو یو صاع وی، د مصراة د عدد مطابق، لکه بعض شوافع لکه ابوالحسن ماوردی د هغوی په نزد دا حکم مطلق مصراة دپاره دې که یو وی او که د هغې نه زیات وی، ﴿من شاة وکذا من الف شاة ﴾ په دې حدیث کښې دی ﴿صاعا من طعام لا سمراء ﴾ چه د هغې مطلب دا دې چه هغه صاع د غنمو نه دی کیدل پکار د دې نه علاوه د بل خوراک څیز به وی، علامه شوکانی رحمه الله فرمائی ﴿ وينبغى ان يحمل الطعام على التمر المذكور فى اكثر الروايات ﴾ بیا وړاندې هغه لیکی چونکه د طعام متبادر معنی غنم وو په دې وجه راوی د هغې نفی اوکړه بقوله ﴿ لا سمراء ﴾ خو د دې نه روستو روایت کښې راځی ﴿ رد معها مثل او مثلى لبنها قمحا ﴾ په دې دواړو کښې تعارض ظاهر دې چه په رومبی حدیث کښې د غنمو نفی وه او په دې کښې اثبات، قلت اجاب عنه الحافظ بان اسناد هذا الحديث ضعيف، قال وقال ابن قدامة انه متروك الظاهر بالاتفاق، قال المنذرى، واخرجه ابن ماجة، وقال الخطابى وليس اسناده بذاك آهـ من العون، معلومه شوه چه دا دویم روایت د ابوداؤد نه علاوه صرف د ابن ماجه دې، او هغه روایت چه په هغې کښې ﴿ لا سمراء ﴾ راغلې دې. هغه د صحیح مسلم روایت دې.

اهل اصول لیکلی دی چه حدیث المصراة خبر واحد دې، او په خبر واحد باندې د عمل شرط دا دې چه هغه د اوصول خلاف نه وی، او حدیث المصراة خلاف الاصول دې اگر چه سندا ثابت او صحیح دې، ځکه چه دا حدیث د صحیحینو بلکه د صحاح ستة روایت دې او د حضرت اقدس گنگوهی په افادات درسیه کښې کوم لره چه زمونږ د شیخ والد مولانا محمد یحیی کاندهلوی نور الله مرقده قلم بند کړې دې، او کوم چه سهارنپوری دلته په بذل المجهود کښې نقل فرمائیلې دې، د دې حاصل دا دې چه دا روایات د احنافو په نزد د خپل موارد سره خاص دی، د قواعد کلیه او د نورو نصوصو د خلاف کیدو د وجې نه، او کلمه د من کومه چه په دې روایاتو کښې ده د هغې دپاره عموم جنسی یا نوعی لازم نه دې، ډیر کرته دا لفظ په قضیه شخصیه کښې مستعمل کیږی ځکه چه په خپل مقام باندې دا خبره ثابته ده چه اسم موصول ډیر کرته د عهد دپاره هم استعمالیږی لکه چه د عموم دپاره استعمالیږی، او امام شافعی رحمه الله اگر چه د دې خبرې اقرار کوی چه دا روایات مخالف دی د کلیاتو ملخصاً خو د هغوی رائې دا ده چه دا روایات عام دی د خپل مورد سره خاص نه دی. آهـ

[۳۴۴۴]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، وَهِشَامٍ، وَحَبِيبٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ اشْتَرَى شَاةً مُصَرَّاةً فَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ إِنْ شَاءَ رَدَّهَا

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٤٣١، ١٤٥٦٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ٦٤ (٢١٤٩)، ٦٥ (٢١٥١)، صحيح مسلم/البيوع ٧ (١٥٢٥)، سنن الترمذي/البيوع ٢٩ (١٢٥٢)، سنن النسائي/البيوع ١٤ (٤٤٩٤)، سنن ابن ماجه/التجارات ٤٢ (٢٢٣٩)، موطا امام مالك/البيوع ٤٥ (٩٦)، مسند احمد (٢/٢٤٨، ٣٩٤، ٤٦٠، ٤٦٥)، سنن الدارمي/البيوع ١٩ (٢٥٩٥) (صحيح)

وَصَاعًا مِنْ طَعَامٍ لَا سَمْرَاءَ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی چاچه تصريه شوي (غلانز ئي دځوورځونه ډکه وي) چيلی واخستله نودغه کس ته د دريو ورځو پورې اختيار دي دواپس کولو ياد ساتلو خوددي سره به يو صاع خوراك ورکوي نه غنم.

[٣٤٤٥] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَخْلَدٍ التَّمِيمِيُّ، حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنِي زِيَادٌ، أَنَّ ثَابِتًا مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدٍ، أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اشْتَرَى غَنَمًا مُصَرَّاةً احْتَلَبَهَا فَإِنْ رَضِيَهَا أَمْسَكَهَا، وَإِنْ سَخِطَهَا فَفِي حَلْبَتِهَا صَاعٌ مِنْ تَمْرٍ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی چاچه تصريه شوي (غلانز ئي دځوورځونه ډکه وي) چيلی واخستله نودغه کس ته اختيار دي که چرې خوښه ئي شي نو ساتلې شي. اوکه چرې خوښه ئي نه وي نوددي دلولو په عوض کښې به يو صاع کجورې ورکوي.

[٣٤٤٦] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ جُمَيْعِ بْنِ عُمَيْرٍ التَّيْمِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ ابْتَاعَ مُحَفَّلَةً فَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، فَإِنْ رَدَّهَا رَدَّ مَعَهَا مِثْلَ أَوْ مِثْلَيْ لَبَنِهَا قَمْحًا".

دعبدالله بن عمر نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی چاچه ډکه کړې شوي غلانزې والا چيلی واخستله نوده ته ددريو ورځو پورې اختيار دي که چرې واپس کوی ئي نو چه څومره پی ئې ورنه لوشلي وي نو دهغې په برابر يا دهغې دوچنده غنم به ورسره واپس کوي.

## بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ الْحُكْرَةِ

### د ذخيره اندوزی کولو بيان

حکرة او حکرة او احتکار د دې ټولو لغوی معنی د جمع او امساک ده، يو څيز لره بندول.

### د احتکار حقيقت او تعريف:

د احتکار چه په کوم حديث کښې ممانعت دې د هغې تعريف امام نووی رحمه الله دا ليکلی دي چه غلې لره د ګرانئ په زمانه کښې د تجارت په نيت باندې اخستلو سره ږدل او فی الحال هغه نه خرڅول د نورې ګرانئ په انتظار چه پيسې زياتې حاصل شی، او ممانعت په دې صورت کښې دې چه کله دې غلې لره په خپل ښهر کښې اخستلو سره منع کړی، او که د بل ځائې نه ئې اخستلو سره راوړې وی يا ئې ارزان اخستلې وی او بيا هغه بند کړی د ګرانئ په زمانه کښې د خرڅولو دپاره، نو په دې کښې هيڅ ګناه نشته، او په بدائع کښې ليکلې دی چه احتکار دا دې چه د خپل ښهر نه غله اخستلو سره ږدل او هغه نه خرڅول سره د دې چه د ښهر خلقو ته د دې نه نقصان رسيږی او که لوئې ښهر وی چرته چه په داسې کولو باندې خلقو ته نقصان نه رسيږی نو دا احتکار ممنوع نه دې، هم دغه شان ئې که د يوې لرې علاقې نه غله راوړی او په خپل ښهر کښې هغه راوړلو سره هغه منع کړی بيا به هم په دې

---

(١): صحيح البخاري/البيوع ٦٥ (٢١٥١)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٢٧)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البيوع ٧ (١٥٢٤) (صحيح)

(٢): سنن ابن ماجه/التجارات ٤٢ (٢٢٤٠)، (تحفة الأشراف: ٦٦٧٥) (ضعيف)

کنبې اعتکار نه وی، او که یو ښهر ته نژدې ئې د آبادئ نه راوړلو سره چه د هغې غله دې ښهر ته راځي جمع کړی او ښهر هم ورو کې وی نو بیا به هم محتکر وی. دا خو د احتکار ممنوع تعریف شو.

## احتکار په کومو کومو څیزونو کښې منع دې:

دویمه مسئله دلته دا ده چه احتکار په کومو کومو څیزونو کښې ممنوع دې دا مسئله مشهوره اختلافی ده، د امام شافعی او امام احمد په نزد ﴿ ما فیه عیش الناس واقوات البشر ﴾ یعنی په کوم څیز باندې چه د انسان د ژوند بنیاد وی چه د هغې په خوړلو سره خلق عام طور سره ژوند تیروی، او د طرفین (امام ابوحنیفه او محمد) په نزد ﴿ ما فیه عیش الناس وعیش البهائم ﴾ یعنی د انسانانو او څاروو دواړو په غذا او خوراک کښې، او د امام مالک رحمه الله په نزد ﴿ فی کل شئ غیر الفواکه ﴾ او د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد ﴿ فی کل ما تعم الحاجة الیه ﴾ یعنی هغه ټول څیزونه چه د عام حاجت او ضرورت وی.

[۳۴۴۷]([1]) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ مَعْمَرِ بْنِ أَبِي مَعْمَرٍ أَحَدِ بَنِي عَدِيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحْتَكِرُ إِلَّا خَاطِئٌ"، فَقُلْتُ لِسَعِيدٍ: فَإِنَّكَ تَحْتَكِرُ، قَالَ: وَمَعْمَرٌ كَانَ يَحْتَكِرُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَسَأَلْتُ أَحْمَدَ، مَا الْحُكْرَةُ؟ قَالَ: مَا فِيهِ عَيْشُ النَّاسِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: الْمُحْتَكِرُ مَنْ يَعْتَرِضُ السُّوقَ.

د معمربن ابی معمرنه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دنافرمانو اوګنهګارونه علاوه بل څوك ذخیره اندوزي نه کوي ددې په اوریدلوسره، محمد بن عمرو اووئیل چه ماسعید بن مسیب ته عرض وکړو چه تا خو ذخیره اندوزی کوله، امام ابوداؤد فرمائی ماداحمدبن حنبل نه تپوس اوکړو چه ذخیره اندوزي څه شې دې؟ هغه اووئیل په کوم څیزباندې چه دخلقوژوند روان وي، امام اوزاعي وئیلی دی محتکر هغه چاته وئیلې شي چه غلې بازارته د راتلونه منع کوي.

﴿ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ يَحْتَكِرُ إِلاَّ خَاطِئٌ ». فَقُلْتُ لِسَعِيدٍ فَإِنَّكَ تَحْتَكِرُ قَالَ وَمَعْمَرٌ كَانَ يَحْتَكِرُ ﴾ د سعید بن المسیب رحمه الله شاګرد هغوی ته اووې چه تاسو د نهی عن الاحتکار حدیث بیانوئ او تاسو خپله احتکار کوئ، هغوی جواب ورکړو چه زما استاد به هم احتکار کولو.

د هغوی مطلب دا وو چه احتکار په هر څیز کښې نه وی، امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه ما د امام احمد رحمه الله نه تپوس اوکړو چه احتکار څه څیز دې نو هغوی جواب راکړو، ﴿ ما فیه عیش الناس ﴾ وړاندې مصنف رحمه الله د امام اوزاعی نه نقل کوی ﴿المحتکر من یعترض السوق ﴾ یعنی محتکر هغه سړې دې چه د خپل ښهر د بازار نه غله اخستلو سره کیږدی او که څوك د دې قسم څیزونه د بهر نه راوړلو سره په خپل ښهر کښې جمع کړی نو هغه احتکار نه دې.

[1]: صحیح مسلم/المساقاة ۲۶ (۱۶۰۵)، سنن الترمذي/البیوع ۴۰ (۱۲۶۷)، سنن ابن ماجه/التجارات ۶ (۲۱۵۴)، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۴۵۳، ۶/۴۰۰)، سنن الدارمي/البیوع ۱۲ (۲۵۸۵) (صحیح)

[٣٤٤٨] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَيَّاضٍ، حَدَّثَنَا أَبِي. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْفَيَّاضِ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: "لَيْسَ فِي التَّمْرِ حُكْرَةٌ"، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: قَالَ: عَنِ الْحَسَنِ، فَقُلْنَا لَهُ: لَا تَقُلْ عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ عِنْدَنَا بَاطِلٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، يَحْتَكِرُ النَّوَى وَالْخَبَطَ وَالْبِزْرَ. وَ أَحْمَدَ بْنَ يُونُسَ، يَقُولُ: سَأَلْتُ سُفْيَانَ، عَنْ كَبْسِ الْقَتِّ، فَقَالَ: كَانُوا يَكْرَهُونَ الْحُكْرَةَ، وَسَأَلْتُ أَبَا بَكْرِ بْنَ عَيَّاشٍ، فَقَالَ: اكْبِسْهُ.

دقتاده رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه په کجورو کښې احتکار نشته، ابن مثنی هم دا دحسن نه نقل کړي دي، محمد بن یحي وئیلی دی چه مونږ ورته اووئیل چه داسې مه وایه چه دا حدیث حسن بصری نه مروی دې، امام ابوداؤد فرمائی دا روایت زمونږ په نزدباندې باطل دې امام ابوداؤد فرمائی چه سعید بن مسیب به زړي ذخیره کول امام ابوداؤد فرمائی ما داحمدبن یونس نه آوریدلی دی چه وئیل نې ما دسفیان نه دښاروو دچراه ګاه په باره کښې تپوس اوکړو نوهغه راته په جواب کښې اووئیل چه سلفو داهم ښه نه دي ګڼډلي ماهم ددې خبرې تپوس ابوبکر بن عیاش نه وکړو هغه راته اووئیل چه ددې ساتل جائزدي (یعنی ددې په ذخیره اندوزي کولو کښې څه حرج نشته).

﴿ قال ابن المثنى قال عن الحسن فقلنا له لا تقل عن الحسن ﴾

د مصنف رحمه الله په دې حديث کښې دوه استاذان دی محمد بن یحیی او محمد بن المثنی، او د هغوی دواړو استاد یحیی بن فیاض دې، ددې نه پس سند داسې دې ﴿عن همام عن قتادة﴾ نو مصنف رحمه الله فرمائی چه زما استاد محمد بن المثنی په دې سند کښې د قتاده نه پس، ﴿عن الحسن﴾ هم زیاتی کړو، نو مونږ هغوی ته اووې چه ﴿عن الحسن﴾ مه وایه، غالبا دا په دې وجه چه ﴿ليس في التمر حكرة﴾ د امام قتاده رحمه الله قول دې حسن د دې قائل نه دې.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ كَانَ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ يَحْتَكِرُ النَّوَى وَالْخَبَطَ وَالْبِزْرَ ﴾

امام ابوداؤد رحمه الله د دې ځائې نه د بعض علماء کرامو مذاهب نقل فرمائی په دې باره کښې چه احتکار په کومو څیزونو کښې ممنوع دې او په کومو څیزونو کښې نه پس فرمائی چه سعید بن المسیب د اونو د پاڼړو او د کهجورو د هډوکو او د نور قسمونو د تخم احتکار کولو یعنی د هغوی په نزد په دې کښې احتکار ممنوع نه وو.

وړاندې په روایت کښې دی ﴿ سالت عن كبس القت ﴾ یعنی د سفیان ثوری رحمه الله د نه ښاروو د خوراک د احتکار په باره کښې تپوس اوشو نو هغوی جواب ورکړو ﴿ كانوا يكرهون الحكرة﴾ چه د هغې غالبا مطلب دا دې چه او علماء په دې کښې هم احتکار ناجائز ګڼړی او په دې جمله کښې دا احتمال هم دې چه هغوی د کبس القت د حکم بیانولو نه ځان ساتلې وی په وجه د علم یقینی نه کیدو په دې وجه نې مطلقا اوفرمائیل چه علماء کرام احتکار لره مکروه ګڼړی، مجمله شان خبره ئې اوکړه ﴿ وسالت اباېكر بن عياش ﴾ یعنی ما د ابوبکر بن عیاش نه هم د دې سوال اوکړو یعنی د کبس القت نو هغوی د دې جواب دا ورکړو چه او دا ساتلې شی.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٧٦٥) (صحيح)

# بَابٌ فِي كَسْرِ الدَّرَاهِمِ
## د سکي د ماتولو بيان

[۳۴۴۹](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ فَضَاءٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُكْسَرَ سِكَّةُ الْمُسْلِمِينَ الْجَائِزَةُ بَيْنَهُمْ، إِلَّا مِنْ بَأْسٍ".

علقمه بن عبدالله دخپل پلار نه روايت کوی فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائيلې ده ددينه چه څوک دمسلمانانو سکه ماته کړي (کومه چه په مسلمانانو کښې رائج ري) مگر دضرورت په وجه باندې باك نشته.

**قوله:** ﴿ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم أَنْ تُكْسَرَ سِكَّةُ الْمُسْلِمِينَ الْجَائِزَةُ بَيْنَهُمْ إِلاَّ مِنْ بَأْسٍ ﴾

### شرح الحديث:

يعنی رسول الله ﷺ د هغه سکې چه د مسلمانانو ترمينځه ئې رواج وی د ماتولو نه منع فرمائيلې ده مگر دا چه څه ضرورت يا مجبوری وی، د دې منع په علت کښې مختلف اقوال دی وئيلې شوی دی چه چونکه په سکه کښې ډير کرته د الله پاک نوم ليکلې شوې وی حروف وی، په دې کښې د هغې بې ادبی ده، او وئيلې شوی دی چه په دې کښې د مال ضائع کول دی ځکه چه د سکې قيمت زيات وی د مطلق سرو او سپينو زرو نه، او وئيلې شوې دی چه د کسر نه مراد ماتول نه دی بلکه د دراهمو او دنانيرو غاړې نرئ نرئ اخستل دی چه په کوم صورت د دراهم او دنانير سره معامله عددا وی نو بعض د هغې غاړې داسې واخلی چه د هغې وزن کم کړی د غلا او دهوکې د وجې نه د دې نه منع فرمائيلې شوې ده. والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

# بَابٌ فِي التَّسْعِيرِ
## د نرخ مقررولو بيان

تسعير د سعر نه اخستلې شوې دې، يعنی د څيزونو نرخ او قيمت متعين کول.

[۳۴۵۰](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ الدِّمَشْقِيُّ، أَنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ بِلَالٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنِي الْعَلَاءُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَجُلًا جَاءَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، سَعِّرْ، فَقَالَ: بَلْ أَدْعُو، ثُمَّ جَاءَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، سَعِّرْ، فَقَالَ: بَلِ اللَّهُ يَخْفِضُ، وَيَرْفَعُ، وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَلْقَى اللَّهَ وَلَيْسَ لِأَحَدٍ عِنْدِي مَظْلَمَةٌ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه يو کس دنبی ﷺ په خدمت کښې حاظر شو اوعرض ئې اوکړواې دالله رسوله دڅيزونو نرخونه مقررکړه، نبی ﷺ اوفرمائيل حقيقت دادې چه نرخونه الله تعالی مقرروې اوزياتوې، زه دالله تعالی سره په داسې حال کښې ملاويدل غواړم چه زمادطرف نه په چاباندې زياتې نه وي شوې (يعنی که چرې زه نرخ مقررکړم اوددې په وجه باندې کوم خريدار يا سوداګرته نقصان ورسيږی نودا يوقسم زياتې دې اوزه

---

(١): سنن ابن ماجه/التجارات ٥٢ (٢٢٦٣)، (تحفة الأشراف: ٨٩٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٩/٣) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٤٠٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣٧/٢، ٣٧٢) (صحيح)

دا نه خوښوم چه زه په چاباندې دزياتي په حال کښې د الله سره ملا وشم.

﴿ أَنَّ رَجُلاً جَاءَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ سَعِّرْ. فَقَالَ « بَلْ أَدْعُو » ﴾

## شرح الحديث او مذاهب الائمة په مسئلة الباب کښې :

يو سړي د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو يا رسول اللهﷺ! نرخ متعين کړئ، په ظاهر کښې غله يا کوم څيز چه د هغې قائم مقام وی نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل تسعير نه کوم بلکه دعا کوم، بيا يو بل سړي هم راغلو هغه هم دغه درخواست اوکړو نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل (په تسعير سره چرته گراني ختميږي بلکه) د څيزونو نرخ د الله پاک په لاس کښې دي دا هم هغه کموی او زياتوی، او زه اميد کوم د دې خبرې (يعني زما کوشش دا دې) چه زه د الله پاک سره ملاقات اوکړم په هغه حال کښې چه د چا حق په ما باندې نه وی، مظلمة وائی د چا هغه حق ته چه لاندې کړې شی او ادا نه کړې شی، په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه د حاکم وخت تسعير د خلقو او سوداګرو په حق کښې ظلم دې، په هدايه کښې ليکلي دی چه د قاضي يا حاکم دپاره دا جائز نه دی چه هغه تسعير اوکړی مګر دا چه د طعام خاوندان د حد نه تجاوز اوکړی نو بيا هيڅ باک نشته، هم دغه شان په در مختار کښې دی او په هغې کښې دا هم دی چه امام مالکؒ فرمائی چه والی له پکار دی د گرانئ په زمانه کښې تسعير اوکړی. آهـ من هامش المنهل.

[۳۴۵۱] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، وَقَتَادَةُ، وَحُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ النَّاسُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، غَلَا السِّعْرُ، فَسَعِّرْ لَنَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمُسَعِّرُ الْقَابِضُ، الْبَاسِطُ، الرَّازِقُ، وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَلْقَى اللَّهَ وَلَيْسَ أَحَدٌ مِنْكُمْ يُطَالِبُنِي بِمَظْلَمَةٍ فِي دَمٍ وَلَا مَالٍ".

دانس بن مالك ونه روايت دې فرمائی خلقونبیﷺ ته عرض اوکړو اې دالله رسوله دضرورت اشياء گران شول زمونږ دپاره نرخونه مقررکړه نبیﷺ اوفرمائيل نرخ مقررکونکې الله تعالی دې هغه تنگي هم راولي اووسعت هم راولي اورزقونه ورکوي اوزما اميددې چه زه به دالله تعالی سره په داسې حال کښې مخامخ کيږم چه په تاسوکښې به داسې څوك نه وي چه زمانه دخپل حق مطالبه کوي نه دمال په لحاظ باندې اونه دويني په لحاظ باندې (لهذا زه نرخ نشم مقرر کولې).

## باب فِي النَّهْيِ عَنِ الْغِشِّ

### د ملاوټ کولو د ممانعت بيان

[۳۴۵۲] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَرَّ بِرَجُلٍ يَبِيعُ طَعَامًا، فَسَأَلَهُ كَيْفَ تَبِيعُ؟، فَأَخْبَرَهُ، فَأُوحِيَ إِلَيْهِ أَنْ أَدْخِلْ يَدَكَ فِيهِ، فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهِ، فَإِذَا هُوَ مَبْلُولٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ مِنَّا مَنْ غَشَّ".

---

[1]: سنن الترمذي/البيوع ۷۳ (۱۳۱۴)، سنن ابن ماجه/التجارات ۲۷ (۲۲۰۰)، (تحفة الأشراف: ۳۱۸، ۱۱۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۸۶/۳)، دي/البيوع ۱۳ (۲۵۸۷) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الإيمان ۴۳ (۱۰۲)، سنن الترمذي/البيوع ۷۴ (۱۳۱۵)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۶ (۲۲۲۴)، (تحفة الأشراف: ۱۴۰۲۲)، وقد أخرجه: حم(۲۴۲/۲) (صحيح)

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ په یوداسې کس باندې تیریدلو چه دخوراك څه شې کې خرڅولو نبی ﷺ ورنه تپوس اوکړو څنګه ئې خرڅوې؟ نوهغه ورته خبر ورکړو، نبی ﷺ ته وحې راغله چه لاس ورته داخل کړه او ونې ګوره نبی علیه السلام ورته لاس داخل کړو نومعلومه شوه چه هغه دننه لمده وه، نبی ﷺ اوفرمائیل څوك چه ملاوت کوې هغه زمونږ نه نه دې.

﴿أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- مَرَّ بِرَجُلٍ يَبِيعُ طَعَامًا فَسَأَلَهُ « كَيْفَ تَبِيعُ » الخ﴾ یعنی رسول الله ﷺ په یو داسې سړی باندې تیر شو کوم چه د غلې دپاره ناست وو د بیع او تجارت دپاره نو رسول الله ﷺ د هغه نه د بیع په باره کښې سوال اوکړو غالبا قیمت ئې ترې نه معلوم کړو هغه اووې، هم هغه وخت په رسول الله ﷺ باندې وحی راغله چه د دې غلې په ډیری کښې لاس وردننه کړئ، چه رسول الله ﷺ هغې ته لاس وردننه کړو نو د هغه ډیری دننه حصه لونده راووتله، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿لَيْسَ مِنَّا مَنْ غَشَّ﴾،

[٣٤٥٣] ([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنْ يَحْيَى، قَالَ: كَانَ سُفْيَانُ يَكْرَهُ هَذَا التَّفْسِيرَ لَيْسَ مِنَّا، لَيْسَ مِثْلَنَا.

د یحي نه روایت دې فرمائی چه سفیان، به دلیس منا تشریح په لیس مثلنا باندې کوله.

﴿كَانَ سُفْيَانُ يَكْرَهُ هَذَا التَّفْسِيرَ لَيْسَ مِنَّا لَيْسَ مِثْلَنَا﴾ یعنی سفیان ثوری رحمه الله به علماء چه د دې حدیث کوم تاویل کوی او د دې چه کومه معنی مرادی بیانوی هغوی به دا تاویل نه خوښولو ځکه چه د خلقو مخکښې د تاویل بیانولو په صورت کښې هغې سره د متکلم غرض فوت کیږی، یعنی تخویف او توبیخ تاویل اصولا خو ضروری دې د اهل سنت والجماعت د مسلک مطابق، خو د عامو خلقو مخکښې به ئې د دې اظهار غوره نه ګڼړلو، او تاویل په دې وجه ضروری دې چه د ظاهر حدیث نه دا معلومیږی چه کوم سړې مسلمان ته دهوکه ورکړی هغه د جماعت المسلمین نه خارج دې حال دا چه د غش د وجې نه د اسلام نه خو نه خارج کیږی، او دا تاویل چه کړې شوې دې هغه دا دې چه کوم مسلمان نورو ته دهوکه ورکړی هغه زمونږ په طریقه باندې نه دې، او زمونږ په سیرت باندې نه دې.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة، بنحوه، قاله المنذري

## بَابٌ فِي خِيَارِ الْمُتَبَايِعَيْنِ

### داخستونکی او خرڅونکی په مینځ کښې د خیار بیان

[٣٤٥٤] ([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُتَبَايِعَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ عَلَى صَاحِبِهِ، مَا لَمْ يَفْتَرِقَا إِلَّا بَيْعَ الْخِيَارِ".

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٧٦٩) (صحيح الإسناد)

[2]: صحيح البخاري/البيوع ٤٢ (٢١٠٧)، ٤٣ (٢١٠٩)، ٤٤ (٢١١١)، ٤٥ (٢١١٢)، ٤٦ (٢١١٣)، صحيح مسلم/البيوع ١٠ (١٥٣١)، (تحفة الأشراف: ٨٣٤١، ٨٢٨٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البيوع ٢٦ (١٢٤٥)، سنن ابن ماجه/التجارات ١٧ (٢١٨١)، موطا امام مالك/البيوع ٣٨ (٧٩)، مسند احمد (٢/٤، ٩، ٥٢، ٥٤، ٧٣، ١١٩، ١٣٥) (صحيح)

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمالي چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دسودا خرڅونکو اواخستونکې په مینځ کښې ترهغې پورې اختیاردې ترڅوچه دیوبل نه جدا شوې نه وي علاوه ددینه چه خیارئې مقررکړې وي.

## د خیار مجلس په ثبوت کښې د علماء کرامو اختلاف :

په بیع کښې چه کوم خیار وی د هغې څو قسمونه دی لکه چه تاسو په هدایه ثالث کښې لوستلي دی خیار شرط، خیار عیب، خیار رویت وغیره، یو قسم د خیار بل دې کوم چه مصنف رحمه الله دلته بیانوی یعنی خیار مجلس چه د هغې شوافع او جنابله قائل دی، احنافو او مالکیان ئې قائل نه دی، او د خیار مجلس مطلب د کوم چه شوافع قائل دی دا دې چه د بائع او مشتری ترمینځه د ایجاب او قبول کیدو نه پس چه ترڅو پورې متعاقدین په مجلس عقد کښې موجود دی نو په هغوی دواړو کښې هر یو که بائع وی او که مشتری وی د بیع د باقی ساتلو او د فسخ کولو اختیار وی او د مجلس د ختمیدو نه پس باقی نه پاتې کیږی. ګویا د هغوی په نزد په ایجاب او قبول سره بیع تام خو شی، خو لازمیږی نه، او د دې حضراتو استدلال د حدیث الباب نه دې ﴿ الْمُتَبَايِعَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ عَلَى صَاحِبِهِ مَا لَمْ يَفْتَرِقَا إِلاَّ بَيْعَ الْخِيَارِ ﴾ یعنی په بائع او مشتری کښې هر یو ته دا اختیار حاصل دې په خپل ملګری باندې یعنی د بیع د باقی ساتلو او نه ساتلو تر څو چه هغوی دواړه جدا شوې نه وی. ﴿ الا بیع الخیار ﴾ د دې استثناء تشریح به مونږ روستو کوو، په دې حدیث کښې د افتراق نه مراد د شوافعو په نزد د مجلس نه جدا کیدل دی یعنی تفرق بالابدان، او احناف او مالکیان کوم چه د خیار مجلس قائل نه دی د هغوی په نزد د افتراق نه مراد افتراق بالبدن نه دې بلکه افتراق بالقول دې او د حدیث مطلب دا دې چه په متعاقدینو کښې هر یو ته د خپل قول نه د رجوع کولو اختیار دې تر څو پورې چه هغوی دواړه خپلې خبرې وئیلو سره فارغ شوې نه وی، په اصل کښې ایجاب وائی اول کلام صدر عن احد المتعاقدین ته که هغه مشتری وی او که بائع، لهذا مطلب دا شو چه په بایع او مشتری کښې چه کوم هم رومبی خبره اوکړی او ایجاب اوکړی نو د دویم د قبلولو نه مخکښې دې صاحب ایجاب ته اختیار دې د دې خبرې چه هغه د خپل قول نه رجوع اوکړی، او د بیع خبره ختمه کړی که د حدیث هم دا مطلب واخستلې شی نو بیا خبره بالکل صفا او واضحه ده یعنی دا معقول خبره ده چه احد المتعاقدین ته اختیار دې د دې خبرې چه هغه د خپل کلام د تلفظ نه پس فورا هغه کالعدم کړی، دا خو شو عدم تفرق، او په حدیث کښې دی چه د د تفرق نه پس اختیار نه پاتې کیږی یعنی دواړه چه کله د خپل کلام نه فارغ شی او د ایجاب نه پس قبول هم اوشی نو اوس د هغې دپاره اختیار باقی نه پاتې کیږی بلکه د ایجاب او قبول نه پس بیع محقق او لازمه شوه او عقد مضبوط شو، ښکاره خبره ده چه که د حدیث مطلب دا واخستلې شی لکه چه احنافو اخستلې دې نو بیا په دې صورت کښې خیار مجلس هیڅ څیز نه دې بلکه د خیار مجلس خو د دې نه نوره هم نفی کیږی، او که څوک دا اووائی چه د تفرق نه متبادر او ظاهری معنی تفرق بالبدن یعنی د مجلس نه پاسیدل دی او د دې تفرق بالقول

کوم چه تاسو بیانوئ ددې څه مثال بیان کړئ نو د هغې جواب دا دې چه آیت کریمه ﴿ وَإِنْ يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِنْ سَعَتِهِ ﴾ چه په دې کښې هم د تفرق نه تفرق بالقول مراد دې ځکه چه په طلاق کښې خو تفرق بالقول وی، هم دغه شان د احنافو نور تائیدات وړاندې هم را روان دی.

په دې حدیث کښې دا وو ﴿ الا بیع الخیار ﴾ چه د هغې په باره کښې مونږ وئیلي وو چه د هغې وضاحت به په آخر کښې لیکو. د دې استثناء په شرح کښې امام نووی رحمه الله د علماء کرامو درې اقوال لیکلي دی اول (۱) دا چه د دې نه مراد تخایر فی المجلس دې او امضاء البیع یعنی د ایجاب او قبول نه پس د مجلس د قیام پورې متبایعین ته د بیع د باقی ساتلو او نه ساتلو اختیار وی خو د تخایر په صورت کښې سره د قیام مجلس هم خیار باقی نه پاتې کیږی، یعنی که په مجلس کښې د ایجاب او قبول نه پس خپل مینځ کښې بیع اختیار کړی هر یو بل ته اووائی چه او ما دا څیز واخستلو دویم دا اووائی چه او ما خرڅ کړو نو اوس بیع لازمه شوه خیار مجلس باقی نه پاتې کیږی، اوس دا نه فسخ کیږی، (۲) دثمه د دې نه مراد بیع بشرط الخیار ده یعنی الا بیعا شرط فیه خیار الشرط یعنی که د بیع په وخت خیار شرط اومونډلې شی درې ورځې یا د دې نه کم نو په دې صورت کښې به د افتراق باوجود خیار فسخ باقی وی مدة مشروطه پورې. (۳) دریمه معنی دا چه د متبایعین دپاره چه تر څو پورې د هغوی افتراق نه وی شوې د هغوی دپاره به خیار باقی وی مگر دا چه د عدم خیار شرط اولګولې شی نو په دې صورت کښې به سره د عدم تفرق خیار مجلس نه حاصلیږی، د دې دریمې معنی په باره کښې هغوی فرمائی وهذا تاويل من يصح البيع على هذا الوجه، والاصح عند اصحابنا بطلانه بهذا الشرط. یعنی دا دریمه معنی د دې جملې د هغه خلقو په نزد ده کوم چه په دې طریقه باندې بیع جائز ګڼړی، ګینې د شوافعو اصح قول خو دا دې چه داسې بیع صحیح نه ده یعنی په کوم کښې چه د خیار مجلس نه کیدو شرط اولګولې شی. آه (بذل) والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري.

[۳۴۵۵](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ قَالَ، أَوْ يَقُولُ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: اخْتَرْ.

عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دنبی ﷺ نه دتیرشوی روایت په شان روایت بیان کړې دې (یعنی چه هغه دواړه دلې ترڅوپورې دیوبل نه جدا شوې نه وي یا داچه یوکس په دوی کښې بل ته روائی چه تاته اختیار دې.

﴿عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- بِمَعْنَاهُ قَالَ « أَوْ يَقُولُ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ اخْتَرْ ﴾ یعنی په دې روایت کښې په ځائې د ﴿ الا بیع الخیار ﴾ نور الفاظ دی زه وایم دا چه نور الفاظ دی داهم هغه معنی اوله ده په هغه معانی ثلاثه کښې کوم چه پورته د ﴿ الا بیع الخیار ﴾ په شرح کښې تیر شو، امام نووی رحمه الله دې معنی اول ته اصح الاقوال وئیلې دې، او د دې نه

(۱): صحيح البخاري/ البيوع ۴۳ (۲۱۰۹)، صحيح مسلم/ البيوع ۱۰ (۱۵۳۱)، (تحفة الأشراف: ۷۵۱۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۴، ۷۳) (صحيح)

په روستو روايت کښې دی ﴿ مَا لَمْ يَفْتَرِقَا إِلاَّ أَنْ تَكُونَ صَفْقَةَ خِيَارٍ ﴾ دا په ظاهر کښې په دغه معانی ثلاثه کښې معنی ثانی ده.

[۳٤٥٦] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُتَبَايِعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَفْتَرِقَا إِلَّا أَنْ تَكُونَ صَفْقَةَ خِيَارٍ، وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يُفَارِقَ صَاحِبَهُ خَشْيَةَ أَنْ يَسْتَقِيلَهُ".

دعبدالله بن عمرو بن العاص نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی اغستونکې خرڅونکی چه ترڅوپورې ديوبل نه جدا شوې نه وې دوی ته اختياری (داغستلويا دواپس کولو) مګرداچه اختيارمقررکړې شي نوبيا د جدا کيدونه پس هم اختيارباقی پاتې کيږی او په اخستونکې اوخرڅونکي دواړوکښې د يودپاره هم حلال نه دي چه د خرڅې شوي سودا دواپس کيدو دويرې د وجې نه ديوبل نه جداشي (يعنی مجلس بدل کړی).

**د حديث نه د مسلک احناف تائيد :**

قوله: ﴿ وَلاَ يَحِلُّ لَهُ أَنْ يُفَارِقَ صَاحِبَهُ خَشْيَةَ أَنْ يَسْتَقِيلَهُ ﴾:

دا د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده روايت دې کوم چه په ابوداؤد، ترمذی او نسائی کښې دی، په دې کښې چه کومه آخری جمله ده، ﴿ ولا يحل له ان يفارق الخ ﴾ دا جمله د خيار مجلس منافی ده چه د هغې شوافع وغيره قائل دی، ځکه چه د استقاله معنی طلب او اقاله ده او اقاله د لزوم بيع نه پس راځی د دې نه معلومه شوه چه خيار مجلس هيڅ څيز نه دې، ځکه که خيار مجلس متبايعين ته حاصليدې نو بيا په دې صورت کښې په متبايعين کښې به هر يو ته د فسخ اختيار وې، د طلب اقاله ضرورت به نه وو(²) اوس به په دې صورت کښې د دې پوره حديث مطلب دا وی چه د متبايعين دپاره د ايجاب او قبول نه پس دا مناسب نه دی چه د مجلس نه زر پاسی او لاړ شی په دې ويره چه هسې نه بل د بيع د فسخ کولو فرمائش اونکړی بلکه د نصيحت او خير خواهئ تقاضه دا ده چه داسې سوچ دې نه کوی.

سهارنپوری رحمه الله د حکيم بن حزام رضی الله عنه په حديث کښې کوم چه وړاندې را روان دې د هغې په شرح کښې په دې مسئله کښې د مذهب حنفی په ترجيح کښې مختصر او جامع کلام فرمائيلې دې چه د هغې په اخير کښې دا دی﴿ ويؤيد الحنفية ما رواه البخاری عن ابن عمر رضی الله عنهما ان رسول الله ﷺ اشتری من عمر بكر اصعبا فوهبه رسول الله ﷺ لابن عمر بعد الشراء قبل ان يتفرقا، فلو لم يكن التصرف حلالا لاقبل التفرق ولم يتم البيع كيف وهب رسول الله ﷺ البكر لابن عمر بذلك ان التصرف فی المبيع بعد العقد ان لم يخير احدهما الآخر جائزا ﴾ اهـ

وحديث عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

¹): سنن الترمذي/البيوع ٢٦ (١٢٤٧)، سنن النسائي/البيوع ٩ (٤٤٨٨)، (تحفة الأشراف: ٨٧٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٣/٢) (حسن)

²) ځکه چه د اقالة مطلب خو دا وی چه په بائع او مشتری کښې يو بل ته د معاملې د فسخ کولو درخواست اوکړی)

[۳۴۵۷](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ جَمِيلِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي الْوَضِيءِ، قَالَ: غَزَوْنَا غَزْوَةً لَنَا فَنَزَلْنَا مَنْزِلًا، فَبَاعَ صَاحِبٌ لَنَا فَرَسًا بِغُلَامٍ، ثُمَّ أَقَامَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا وَلَيْلَتِهِمَا، فَلَمَّا أَصْبَحَا مِنَ الْغَدِ حَضَرَ الرَّحِيلُ، فَقَامَ إِلَى فَرَسِهِ يُسْرِجُهُ، فَنَدِمَ فَأَتَى الرَّجُلَ وَأَخَذَهُ بِالْبَيْعِ، فَأَبَى الرَّجُلُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: بَيْنِي وَبَيْنَكَ أَبُو بَرْزَةَ صَاحِبُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَيَا أَبَا بَرْزَةَ فِي نَاحِيَةِ الْعَسْكَرِ، فَقَالَا: لَهُ هَذِهِ الْقِصَّةَ، فَقَالَ: أَتَرْضَيَانِ أَنْ أَقْضِيَ بَيْنَكُمَا بِقَضَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا"، قَالَ هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ: حَدَّثَ جَمِيلٌ، أَنَّهُ قَالَ: مَا أَرَاكُمَا افْتَرَقْتُمَا.

د ابوالوضي رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ جهاد ته تلي وو اویو مقام ته راغلو اوزمونږ یوملګري غلام داس په بدل کښې خرڅ کړو اوبیا اخستونکي او خرڅونکې دواړه تړوله ورځ اوشپه دلته موجود وو کله چه راتلونکی سحر راغې نو د روانیدو وخت شو چاچه اس خرڅ کړې وو هغه پاڅیدو او پخپل اس باندې ئې زین تړلو په دې وخت کښې دده ملګرې پیمانه شویعنی اس خرڅول ئې ښه ونه ګڼړل هغه اخستونکي ته داس دواپس کولو په اراده ورغې هغه داس دواپس کولونه انکار وکړو ده ورته اووئیل رازه چه ابوبرزه صحابي ته دفیصلي دپاره لاړشو بیا دوی دواړه دلښکر په یوه کناره کښې ابوبرزه ته ورغلل او - واقعه ئې ورته بیان کړه هغه ورته اووئیل ایا تاسودواړه په دې باندې خوشحاله ئې چه زه ستاسو په مینځ کښې دنبی ﷺ دفیصلي مطابق فیصله وکړم؟ اوبیا ئې اووئیل نبی ﷺ فرمائیلی دی اخستونکې اوخرڅونکی ته اختیار دې ترڅوچه دیوبل نه جدا شوي نه دي او ماته خوداسې ښکاري چه تاسودواړه خو لاجدا شوې نه یئ.

﴿ عَنْ أَبِي الْوَضِيءِ قَالَ غَزَوْنَا غَزْوَةً لَنَا فَنَزَلْنَا مَنْزِلاً فَبَاعَ صَاحِبٌ لَنَا فَرَسًا بِغُلَامٍ ثُمَّ أَقَامَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا وَلَيْلَتِهِمَا الخ ﴾

## مضمون حدیث :

مضمون د روایت دا دې چه مونږ د یو غزوې په سفر کښې وو (په عرف الشذی کښې په حواله د بیهقی لیکلې دی چه دا واقعه د کشتئ په سفر کښې پیښه شوې وه، کذافی هامش البذل) په لار کښې یو ځائې کښې کوز شو نو زمونږ یو ملګری خپل آس د بل ملګری په لاس باندې د یو غلام په عوض کښې خرڅ کړو او په دې واقعه باندې د ورځ باقی حصه او تړوله شپه تیره شوه، بیا په بله ورځ د سحر په وخت کښې د هغه منزل نه د تلو وخت راغلو نو د هغه اس اخستونکی د خپل اس خواله لاړو او په هغه باندې ئې کته برابر کړه د سوریدو دپاره، په دې موقع باندې هغه خرڅونکې په دې خپله بیع باندې پښیمانه شو او دې مشتری ته لاړو او د دې بیع فسخ کولو سره ئې خپل اس واپس اخستل اوغوښتل مشتری د واپس کولو نه انکار اوکړو، بائع اووې چه په دې معامله کښې زما او ستا ترمینځه ابو برزه صحابی رضی الله عنه قاضی او فیصله کونکې دې، پس دا دواړه د هغوی په خدمت کښې حاضر شو او هغوی دواړو د دې خپلې بیع قصه بیان کړه، هغوی اوفرمائیل چه آیا ته په دې باندې راضی ئې چه زه ستا په دې مسئله کښې د رسول الله ﷺ والا فیصله نافذ کړم، او بیا ئې

¹): سنن ابن ماجه/التجارات ۱۷ (۲۱۸۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۲۵/۴) (صحیح)

ورته دا حديث واورولو، ﴿ البيعان بالخيار مالم يتفرقا ﴾ او دا ئې هم اوفرمائيل ﴿ اما اراكما افترقتما ﴾ چه زما رائې دا ده چه ستاسو دواړو د دې بيع نه پس تر اوسه پورې افتراق نه دې شوې (لهذا خيار مجلس باقي دې چه د هغې په وجه باندې دبيع د فسخ هر يو ته اختيار دې)

دا د هغه صحابي خپل اجتهاد وو هغوی د افتراق په مفهوم کښې ډير وسعت پيدا کړو او ګويا يو لښکر او د يو سفر په معامله ئې د مجلس واحده معامله اوګرزوله، د دې خو څوک هم قائل نه دی. (بذل)

[٣٤٥٨](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ الْجَرْجَرَائِيُّ، قَالَ مَرْوَانُ الْفَزَارِيُّ: أَخْبَرَنَا، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، قَالَ: كَانَ أَبُو زُرْعَةَ إِذَا بَايَعَ رَجُلًا خَيَّرَهُ، قَالَ: ثُمَّ يَقُولُ: خَيِّرْنِي، وَيَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَفْتَرِقَنَّ اثْنَانِ إِلَّا عَنْ تَرَاضٍ".

د يحيي بن ايوب نه روايت دې فرمائي چه کله به ابوزرعه اخستل خرڅول کول نو هغه بل کس ته به ئې اختيار ورکول اوبيابه ئې وئيل ماته هم اختيار راکړه اودابه ئې هم وئيل مادابوهريره رضي الله عنه نه آوريدلی دی چه فرمائيل ئې نبي عليه السلام فرمائيلی دی چه تاسودواړه يعنی اخستونکی خرڅونکي دې ديوبل نه نه جدا کيږي مګر د دواړو په رضا سره.

﴿ كَانَ أَبُو زُرْعَةَ (٢) إِذَا بَايَعَ رَجُلاً خَيَّرَهُ قَالَ ثُمَّ يَقُولُ خَيِّرْنِي ﴾ يعنی د ابوزرعه دا معمول وو چه کله به هغه د يو سړی سره د بيع معامله کوله نو د ايجاب و قبول نه پس به ئې خپل ملګري ته په مجلس عقد کښې اختيار ورکولو، يعنی هغه ته به ئې وئيل چه که ته په دې معاملې باندې راضی ئې نو باقي ئې پريږده ګينې فسخ ئې کړه، او بيا به ئې دې ملګری ته دا وئيل چه هم دغه شان ته هم ماته اختيار راکړه (چه د دواړو طرفونه په ښه طريقه باندې تراضی اوشی) او بيا به ئې هغه ته دا حديث اورولو، ﴿ لاَ يَفْتَرِقَنَّ اثْنَانِ إِلاَّ عَنْ تَرَاضٍ ﴾ چه بائع مشتري دې د څه معامله کولو نه پس بغير د اظهار رضامندئ نه د يو بل نه نۀ جدا کيږي.

والحديث اخرجه الترمذي ولم يذكر قصته ابي زرعة، قاله المنذري

[٣٤٥٩](٣) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَفْتَرِقَا فَإِنْ صَدَقَا وَبَيَّنَا بُورِكَ لَهُمَا فِي بَيْعِهِمَا، وَإِنْ كَتَمَا، وَكَذَبَا مُحِقَتِ الْبَرَكَةُ مِنْ بَيْعِهِمَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، وَ حَمَّادٌ، وَأَمَّا هَمَّامٌ، فَقَالَ: حَتَّى يَتَفَرَّقَا أَوْ يَخْتَارَ ثَلَاثَ مِرَارٍ.

د حکيم بن حزام نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلی دی دوه سوداګونکو ته اختيار د ترڅوچه جدا شوې نه وي که چرې دوی دواړه پخپل مينځ کښې صحيح عقد وکړي اوسوداعيب بيان کړي نو ددوی دپاره به په دې سوداکښې برکت واچولې شي اوکه چرې

(١): سنن الترمذي/البيوع ٢٧ (١٢٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٣٦/٢) (حسن صحيح)

(٢) دا حافظ ابو زرعه رازی نه دی بلکه دا ابوزرعه بن عمرو بن جرير البجلی د تابعينو ثقاتو نه دی)

(٣): صحيح البخاري/البيوع ١٩ (٢٠٧٩)، ٢٢ (٢٠٨٢)، ٤٢ (٢١٠٨)، ٤٤ (٢١١٠)، ٤٦ (٢١١٤)، صحيح مسلم/البيوع ١ (١٥٣٢)، سنن الترمذي/البيوع ٢٦ (١٢٤٦)، سنن النسائي/البيوع ٤ (٤٤٦٢)، (تحفة الأشراف: ٣٤٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٢/٣، ٤٠٣، ٤٣٤) (صحيح)

دوی دسودا عیب پټ کړي اودروغ اووائي نوبرکت به ختم کړې شي، امام ابوداؤد فرمائی چه دحماد اودسعیدنه هم ددې روایت په شان روایت مروی دې لیکن دهمام په روایت کښې داسې دي چه نبی ﷺ اوفرمائیل چه اخستونکې اوخرڅونکي ته اختیارحاصل دې ترڅو چه دواړه دیوبل نه جدا شوې نه وي اویاداچه درې پیرې ئې اختیار شرط مقرر کړې نه وي.

## بَابٌ فِي فَضْلِ الْإِقَالَةِ

### داقالې یعنی د بیعې د واپس کولو بیان

اقاله په معنی د فسخ د باب افعال نه، او په مجرد کښې د سمع یسمع نه، قال یقال ففی القاموس : وقلته البیع بالکسر واقلته فسخته، واستقاله طلب الیه ان یقیله..... (بذل)

[۳۴٦۰](۱) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَقَالَ مُسْلِمًا أَقَالَهُ اللَّهُ عَثْرَتَهُ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلي دي:څوک چه دیو مسلمان سره اقاله قبوله کړي نو الله تعالی به دقیامت په ورځ دده ګناهونه معاف کړي.

**قوله:**﴿ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلی الله علیه وسلم– « مَنْ أَقَالَ مُسْلِمًا أَقَالَهُ اللَّهُ عَثْرَتَهُ ﴾

یعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې د تمام بیع نه پس د خپل ملګری سره اقاله اوکړی یعنی قبول کړی نو الله پاک به د قیامت په ورځ باندې د هغه ګناهونه معاف کړی، د دې صورت به دا وی چه دوه کسانو خپل مینځ کښې د بیع او شراء معامله اوکړه، د معاملې د تکمیل نه پس یو کس په هغې باندې پښیمانه شو په اخستلو یا خرڅولو باندې خفه وو او خپل ملګری ته ئې اووې چه که ته دا معامله فسخ کړې نو مهربانی به وی، بل د هغه دا درخواست قبول کړو، په دې حدیث کښې د اقاله قبلونکي دپاره د هغه د ګناهونو د معاف کیدو زیرې دې.

اوګورئ بیع او شراء څه عبادت خو نه دې یو مباح کار دې کوم چه انسان د خپلو ضروریاتو دپاره اختیاروی خو که څوک په شریعت باندې عمل اوکړی او احادیث مخې ته کیږدی نو مباحات هم د هغه د مغفرت ذریعه اوګرځی، د عباداتو به څه وائې. والله تعالی الموفق والحدیث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

## بَابٌ فِيمَنْ بَاعَ بَيْعَتَيْنِ فِي بَيْعَةٍ

### په یوه معامله کښې د دوه بیعو کولو د مما نعت بیان

[۳۴٦۱](۲) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ زَكَرِيَّا، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ بَاعَ بَيْعَتَيْنِ فِي بَيْعَةٍ فَلَهُ أَوْكَسُهُمَا أَوِ الرِّبَا".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلي دي: څوک چه په یوه معامله

---

(۱): سنن ابن ماجه/التجارات ۲٦ (۲۱۹۹)، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۷۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۵۲) (صحیح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۱۰۵)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البیوع ۱۸ (۱۲۳۱)، سنن النسائي/البیوع ۷۳ (٤٦٣٦/۷)، موطا امام مالك/البیوع ۳۳ (۷۳)، مسند احمد (۲/٤۳۲، ٤۷۵، ۵۰۳) (حسن)

کښې دوه بيعې وکړي نوپه بيعه کښې چه کومه معامله کمه وي هغه دي اختياري ورنه دامعامله د سود ده.

## حديث الباب او د دې مقام کامله تشريح :

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ بَاعَ بَيْعَتَيْنِ فِى بَيْعَةٍ فَلَهُ أَوْكَسُهُمَا أَوِ الرِّبَا ﴾ دا حديث په ترمذی کښې هم دې خو په هغې کښې داسې دی، ﴿ نهى رسول الله ﷺ عن بيعتين فى بيعة ﴾ قال ابوعيسى حديث ابى هريرة حديث حسن صحيح، په دې باندې په تحفة الاحوذی کښې دا ليکلې دی قال الحافظ فى بلوغ المرام ﴿ رواه احمد والنسائى وصححه الترمذی وابن حبان، ولابى داؤد : من باع بيعتين فى بيعة فله اوكسهما او الربا انتهى ﴾ تاسو اوکتل چه د ابوداؤد په دې روايت کښې په دې حديث کښې يو زيادت دې کوم چه په دويم حديث کښې نشته، په دې زيادت باندې به مونږ کلام او د هغې شرح وړاندې کوو، ځکه چه د دې زيادت په وجه باندې معامله ګرانه شوه، ړومبی دې د اصل او مشهور حديث په مطلب باندې ځان پوه کړې شی، پس امام ترمذی رحمه الله فرمائی ﴿ والعمل على هذا عند اهل العلم ﴾ او بيا هغوی د دې حديث په شرح کښې دوه صورتونه او مثالونه ليکلې دی اول دا چه په يو بيع کښې د دوه بيعو د ممانعت د کوم چه ممانعت کولې شی د هغې شکل دا دې چه يو انسان اخستونکی ته داسې اوائی چه دا کپړه تاته په نقدو خو په لس درهمو درکوم او که په قرض باندې ئې اخلې نو په شل درهمو ئې درکوم اوس دا په يو بيع کښې دوه بيع شوې يو د لس درهمو والا او يو د شلو درهمو والا، نو اوس که قبل التفرق متبايعين په دې دوو کښې د يو تعين اوکړی او د تعين نه پس جدا شی نو بيا خو په دې کښې هيڅ ګناه نشته بلکه جائز دې او که بغير د تعين نه مبهم شان معامله اوکړی او جدا شی نو دا بالاتفاق ممنوع دې د جهالت د ثمن د وجې نه . په حديث کښې هم د دې صورت نهی وارد ده، او بيا امام ترمذی رحمه الله د دې حديث په شرح کښې يو بل صورت اوليکلو چه يو سړی بل ته اووائی چه ﴿ابيعک داری هذا بكذا على ان تبيعنى غلامک بكذا الخ ﴾ يعنی زه په تا باندې دا کور په دومره پيسو خرڅوم په دې شرط چه ته په ما باندې خپل غلام په دومره پيسو خرڅ کړې پس که ته د خپل غلام بيع ما سره په دومره پيسو کوې نو بيا به زما د کور بيع هم ستا دپاره اوشی، ﴿ وهذا تفارق عن بيع بغير ثمن معلوم، ولا يدری كل واحد منهما على ما وقعت عليه صفقته﴾ دا چه دويم مثال دې په دې کښې هيڅ يو شق د بيع د صحت نشته ځکه چه دا خو بيع بغير د ثمن معلومه نه ده، ځکه چه د کور بائع په هغې باندې بغير د غلام د بيع نه تيار نه دې چه د هغې نه معلوميږی چه په دې بيع د غلام کښې د هغه ګټه ده نو ګويا د ثمن څه حصه په دې بيع د غلام کښې داخله ده، او هغه خومره ده دا معلومه نه ده، په دې وجه دا وئيلې کيدې شی چه دا بيع د ثمن مجهول ده، او دا هم وئيلې کيدې شی چه دا بيع په شرط سره ده او د بيع بشرط په حديث کښې ممانعت راغلې دې د دې تولو نه پس تاسو د ابوداؤد حديث واخلئ چه د هغې سياق ددې مشهورحديث نه بالکل مختلف دې ځکه چه ددې مضمون دا دې چه کوم انسان په يوبيع کښې دوه بيع اوکړی نودهغه دپاره﴿اوکس الثمنين

یعنی اقل الثمنین ﴾ والا بیع جائز ده، او که هغه داسې نه کوی نو بیا به ربا لازمیږی، د ربا نه مراد فساد د بیع دې ځکه چه عقود فاسده چه څومره دی هغه په حکم د ربا کښې داخل ګنړلې شی.

اوس د ابوداؤد د دې حدیث حاصل خو دا شو چه مونږ پورته د بیعتین فی بیعة چه کوم مخکښې مثال لیکلې وو چه زه دا څیز په قرض دومره باندې درکوم او په نقدو باندې په دومره درکوم نو په دې معامله کښې که بائع او مشتری د لسو درهمو والا صورت روستو اختیاروی نو بیا خو دا معامله صحیح ده، او که د زائد ثمن والا شق اختیاروی نو بیا دا بیع فاسد ده حال دا چه دا د چا مذهب هم نه دې چه بیع المذکور اقل ثمن والا خو صحیح کیدې شی او اکثر ثمن والا نه شی کیدې، ﴿ لم یذهب الیه احد من الائمة الاربعة ﴾ خو د امام اوزاعی رحمه الله نه هم دا منقول دی کوم چه د ابوداؤد په دې حدیث کښې دی، هم په دې وجه مونږ په شروع کښې وئیلی وو چه دا ابوداؤد دا حدیث ډیر ګران دې، امام خطابی رحمه الله د دې حدیث توجیه دا کړې ده چه دا دې په یو خاص صورت باندې محمول کړې شی یعنی د بیع سلم په یو خاص شکل باندې هغه دا چه یو سړی د قفیز حنطة بیع په یو دینار کښې آو کړه تر یوې میاشتې پورې، بیا چه کله موده پوره شوه یعنی یو میاشت نو بائع اووې مشتری ته چه ستا چه کومه قفیز حنطة زما په ذمه دې هغه یو قفیز لره د قفیزین په بدله کښې زما په لاس باندې خرخ کړه تر د دوه میاشتو پورې نو په دې خاص صورت کښې چه کومه رومبۍ بیع وه هغه اوکس البیعتین وه، نو په دې صورت کښې خو به هغه جائز وی او دا دویم فاسد [1] او حضرت په بذل کښې د حضرت اقدس ګنګوهی د تقریر نه د دې یو بله توجیه نقل کړې ده هغه دا چه د بیعتین فی بیعة دپاره چه مونږ په شروع کښې کوم مثال لیکلې وو چه دا څیز که مشتری نقد واخلی نو د دومره پیسو دې او که قرض ئې واخلی نو د دومره پیسو دې او بیا د هغوی تفرق اوشو بغیر د احد البیعتین د تعین نه نو دا بیع د حدیث په رنړا کښې فاسد ده د دې حکم دا وو چه دا بیع واجب الفسخ وه خو دلته دا اوشوه چه مبیع د مشتری سره هلاک شو یا هغه اوخوړلو نو اوس په دې صورت کښې بائع ته پکار دی چه د اصل ثمن اخستلو په ځانې یا خو د هغه مبیع مثل واخلی (ان کان من ذوات الامثال) یعنی مبیع لره د فسخ کولو په نیت سره یا د هغې قیمت، او قیمت چه کوم وی ([2]) عادة اوکس من الثمن وی، او که بائع په صورة مذکورة کښې په ځائې د مثل یا قیمت ثمن واخلی نو ابقاء د بیع به وی، حال دا چه هغه بائع مامور دې د دې په فسخ باندې، او بیع فاسد بلکه ټول عقود فاسده د ربا په حکم کښې داخل دی هم دې ته په حدیث کښې وئیلې شوې دی چه ﴿فله اوکسهما او الربا ﴾ چه که اوکس نه اختیاروی نو ربا به لازمیږی.

.........

[1] دا د خطابی والامثال خو واقعی د حدیث الباب مطابق هم دې او د جمهورو د رائې موافق هم دې.
[2] قیمت خو د یو څیز د بازار په اعتبار سره وی هغه چه په څومره ملاویږی او ثمن هغې ته وائی چه د متعاقدینو ترمینځه مقرر شی.

# بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ الْعِينَةِ

## باب: بیع عینه منع ده

## د بيع عينه تعريف او حکم:

د بيع عينه تعريف ئې دا ليکلې دې ﴿ شراء ما باع باقل مما باع قبل نقد الثمن الاول ﴾ او که غواړئ نو داسې بيان کړئ ﴿ بيع ما اشترى باقل مما اشترى قبل نقد الثمن الاول ﴾ يعنى يو سړى خپل يو څيز په بل سړى باندې په لس درهمه باندې خرڅ کړو تر يو نيټې پورې لا تر اوسه پورې مشترى هغه ته ثمن نه وو ادا کړې چه بائع د ثمن د ادا کولو تقاضا اوکړه او چه کله مشترى هغه ورنکړې شوه نو بائع مشترى ته اووې چه که تا نه دا نشى کيدې نو داسې اوکړه چه هغه څيز په ما باندې په پنځه درهمه خرڅ کړه بيا به ستا په ځما پنځه درهمه باقى پاتې شى هغه روستو ادا کړه د دې په باره کښې ئې دا ليکلې دى چه دا بيع د ائمه ثلاث په نزد ناجائز ده او امام شافعى رحمه الله او د هغه اصحاب دا جائز کړې ده ﴿ قاله الشوکانى فى النيل ﴾ (عون) او په بذل کښې ئې د درمختار نه نقل کړې دى چه بيع عينه مکروه ده او شرعا مذموم ده ځکه چه په دې کښې اعراض عن الاقراض دې يعنى بائع اول د قرض نه د بچ کيدلو دپاره دا صورت اختياروى چه صورة قرض هم اوشى او خپله نفع ئې هم اوشى، په شامى کښې دى چه امام محمد رحمه الله فرمائى ﴿ هذا البيع فى قلبى کامثال الجبال، ذميم اخترعه اکلة الربا ﴾ يعنى هغوى فرمائى چه د دې بيع بوجهـ زما په زړه باندې د غرونو په شان دې، دا بيع ډيره مذمومه ده چه سود خورو پيدا کړې ده.[1]

[٣٤٦٢](٢) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ ح وحَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ التِّنِّيسِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَحْيَى الْبُرُلُّسِيُّ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، عَنْ إِسْحَاقَ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ سُلَيْمَانُ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْخُرَاسَانِيِّ، أَنَّ عَطَاءً الْخُرَاسَانِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّ نَافِعًا حَدَّثَهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا تَبَايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ، وَأَخَذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ، وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ، وَتَرَكْتُمُ الْجِهَادَ، سَلَّطَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ ذُلًّا لَا يَنْزِعُهُ حَتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ" قَالَ أَبُو دَاوُد: الْإِخْبَارُ لِجَعْفَرٍ، وَهَذَا لَفْظُهُ.

دعبدالله بن عمر رضى الله عنه نه روايت دې فرمائى چه دنبى عليه السلام نه مې اوريدلى دى چه فرمائيل ئې کله چه تاسو بيع عناء وکړئ اودغوا لکئ ونيسئ او کر کرونده شروع کړئ او په دې خوشحاله اوشئ (يعنى هر وخت ددنيا په کارونو کښې خوشحاله يئ) اوجهاد هم پريږدئ نوالله تعالى به په تاسو باندې ذلت راوليږي او ذلت به ستاسو نه لرې نکړي ترڅوچه تاسو خپل دين ته واپس رانشئ، امام ابوداؤدفرمائى چه دا د جعفر د روايت الفاظ دي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ « إِذَا تَبَايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ وَأَخَذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ وَتَرَكْتُمُ الْجِهَادَ سَلَّطَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ ذُلاًّ لاَ يَنْزِعُهُ حَتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ ﴾

[1] ) وفي الشرح الكبير من باع سلعة بثمن موجل ثم اشتراها باقل منه نقدا لم يجز، روي ذلك عن ابن عباس وعائشة والحسن وابن سيرين والشعبي والنخعي وبه قال الثوري والاوزاعي ومالك واسحق واصحاب الرائي واجازه الشافعي لانه ثمن يجوز بيعها به من غير بائعها فجاز من بائعها كما لو باعها بمثل ثمنها... الي آخر ما في الاوجز ٧/٥)

[2] ): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٢٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢/٢) (صحيح)

### د مسلمانانو دپاره په ترک جهاد باندې سخت وعید :

په دې حدیث کښې د بیع عینه په اختیارولو او ترک جهاد باندې ډیر سخت وعید دې پس رسول الله ﷺ فرمائی چه اې خلقو چه کله تاسو بیعه عینه کوئ او په پټو باندې راضی کیدو سره د غویانو لکئ اونیسئ او جهاد شاته ګزار کړئ نو الله پاک به په تاسو باندې داسې ذلت مسلط کړی چه هغه به الله پاک تر هغه وخته پورې نه لرې کوی تر څو چه تاسو خپل دین ته رجوع نه وی کړې، او په قرینه د سیاق حدیث د رجوع الی الدین نه مراد بیع عینه لره پریخودل او جهاد لره په پټی باندې ترجیح ورکول دی، د دې حدیث په شرح کښې شارحینو لیکلې دی چه په اصل کښې جهاد کښې د اسلام اعزاز او د هغې غلبه ده په باقی ادیانو باندې، نو چه کله مسلمانان دا څیز پریږدی چه په هغې کښې د اسلام عزت او غلبه ده نو د دې په سزا کښې به الله پاک په هغوی باندې د عزت نقیض یعنی ذلت مسلط کړی.

## بَابٌ فِي السَّلَفِ

### د بیع سلف یعنی بیع سلم بیان

په دې کښې دویم لغت سلَم دې. سلف د اهل عراق لغت دې او سلم د اهل حجاز، د دې بیع تعریف دا کړې شوې دې، بیع موصوفه فی الذمة، یعنی بائع د مبیع په ښه طریقې سره اوصاف وغیره بیانولو سره مکمل طریقې سره او هغه په خپله ذمه کښې اخستلو سره د نقد ثمن په مقابله کښې خرڅ کړی، د دې تعریف داسې هم کیدې شی، ﴿بیع آجل بعاجل﴾ یعنی د شئ موجل بیع په ثمن معجل سره، د دې بیع شریعت اجازت ورکړې دې خلاف قیاس دفعا لحاجة المفالیس یعنی د غریبانانو حاجت او ضرورت لره په خیال کښې ساتل سره، ګینې د قیاس تقاضا دا ده چه دا بیع دې جائز نه وی ځکه چه دا د هغه څیز بیع ده کوم چه غیر موجود عند البائع دې، په دې وجه د دې بیع د صحت دپاره د ډیرو شرطونو موجود کیدل ضروری دی.

### د صحت د سلم دپاره شرائط :

پس په قدروی کښې دی : ﴿ولا یصح السلم عند ابی حنیفة الا بسبع شرائط تذکر فی العقد جنس معلوم، ونوع معلوم، وصفة معلوم، ومقدار معلوم، واجل معلوم، ومعرفة مقدار راس المال، وتسمیة المکان الذی یوافیه فیه اذا کان له حمل ومؤنة آهـهم دغه شان په کومو څیزونو کښې چه دا بیع جائز ده هغه هم متعین دی ﴿ ففی القدوری السلم جائز فی المکیلات والموزونات والمعدودات التی لا تتفاوت کالجوز والبیض،وفی المذروعات، ولا یجوز السلم فی الحیوان، الی آخره ﴾ په دې کښې بعض نور اختلافی مسائل هم دی کوم چه وړاندې د حدیث په ضمن کښې را روان دی. معلومه دې وی چه په بیع سلم کښې ثمن ته راس المال او مبیع ته مسلم فیه، بائع ته مسلم الیه او مشتری ته رب السلم وائی.

[۳۴۶۳](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُمْ يُسْلِفُونَ فِي التَّمْرِ السَّنَةَ وَالسَّنَتَيْنِ وَالثَّلَاثَةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَسْلَفَ فِي تَمْرٍ، فَلْيُسْلِفْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ، وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ، إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ".

دعبدالله بن عباس نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ کله مدینې منورې ته راغې او هلته به خلقو په میوو کښې په یو کال کښې دوه دوه او درې درې سلمونه کول نو ددې مطالق نبی ﷺ اوفرمائیل چاچه دمیوو داخستلو دپاره ایدوانس رقم ورکړې وي هغه لره پکاردي چه ددې موده وزن یاناپ مقرر کړي.

**قوله:** ﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم الى المدينة وَهُمْ يُسْلِفُونَ فِي التَّمْرِ السَّنَةَ وَالسَّنَتَيْنِ وَالثَّلَاثَةَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ أَسْلَفَ فِي تَمْرٍ فَلْيُسْلِفْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ ﴾

یعنی چه کله رسول الله ﷺ هجرت فرمائیلو سره مدینې منورې ته تشریف یوړو نو رسول الله ﷺ اهل مدینه ته اوکتل چه هغې به په کهجورو کښې د بیع سلم معامله کوله، د یو کال کهجورې یا د دوه کالو، او هم دغه شان د درې کالو، نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې د کهجورو په بیع کښې د تمر معامله کوی نو چونکه تمر کیلی دی په دې وجه کیل معلومیدل پکار دی یعنی د دې مقدار کیلا متعین کیدل پکاردی او که د دې بیع تعلق د شئ موزون سره وی نو د مبیع وزن معلومیدل پکار دی او د دې نه علاوه یو شرط هغوی دا بیان اوفرمائیلو چه د بیع سلم موده هم معلومیدل پکار دی، په دې آخری مسئله کښې د جمهور او ائمه ثلاث رائې خو دا ده خو د امام شافعی رحمه الله په دې کښې اختلاف دې، هغوی سلم حال لره جائز گنړی هغوی د دې حدیث تاویل دا کړی دې چه د رسول الله ﷺ مراد دا دې که چرې بیع سلم الی اجل وی نو بیا هغه معلومیدل پکار دی.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

[۳۴۶۴](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي مُحَمَّدٌ أَوْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُجَالِدٍ، قَالَ: "اخْتَلَفَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَدَّادٍ، وَأَبُو بُرْدَةَ فِي السَّلَفِ، فَبَعَثُونِي إِلَى ابْنِ أَبِي أَوْفَى فَسَأَلْتُهُ، فَقَالَ: إِنْ كُنَّا نُسْلِفُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالتَّمْرِ وَالزَّبِيبِ"، زَادَ ابْنُ كَثِيرٍ إِلَى قَوْمٍ مَا هُوَ عِنْدَهُمْ، ثُمَّ اتَّفَقَا، وَسَأَلْتُ ابْنَ أَبْزَى، فَقَالَ: مِثْلَ ذَلِكَ.

دعبدالله بن مجالد نه روایت دې فرمائی چه دعبدالله بن شداد او د ابوبرده په مینځ کښې په سلف کښې اختلاف راغې نوزه ئې ولیږلم ابن ابی اوفیه ته اومادهغه نه تپوس اوکړو هغه اووئیل مونږ به نبی ﷺ اودابوبکره اودعمر په زمانه کښې په غنمو وربشو کجورو او

---

(۱): صحيح البخاري/السلم ۱ (۲۲۳۹)، ۲ (۲۲۴۰)، ۷ (۲۲۵۳)، صحيح مسلم/المساقاة ۲۵ (۱۶۰۴)، سنن الترمذي/البيوع ۷۰ (۱۳۱۱)، سنن النسائي/البيوع ۶۱ (۴۶۲۰)، سنن ابن ماجه/التجارات ۵۹ (۲۲۸۰)، (تحفة الأشراف: ۵۸۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۷/۱، ۲۲۲، ۲۸۲، ۳۵۸)، سنن الدارمي/البيوع ۴۵ (۲۶۲۵) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/السلم ۲ (۲۲۴۲)، سنن النسائي/البيوع ۵۹ (۴۶۱۸)، ۶۰ (۴۶۱۹)، سنن ابن ماجه/التجارات ۵۹ (۲۲۸۲)، (تحفة الأشراف: ۵۱۷۱)، وقد أخرجه: حم (۳۵۴/۴، ۳۸۰) (صحيح)

وخکو کښې سلف کولر ابن کثیر دا اضافه کړې ده مونږ به دهغه خلقوسره دا معامله کوله دکوموسره چه به میوې موجودې نه وه باقی روایت ددواړو راویانو یوشان دې، دابن ابی ابزي نه تپوس اوکړې شو هغه هم دارنګې بیان وکړو لکه څرنګه چه ابن ابی اوفی کړې دې،
**قوله:** ﴿أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ أَخْبَرَنِي مُحَمَّدٌ أَوْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُجَالِدٍ قَالَ اخْتَلَفَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَدَّادٍ وَأَبُو بُرْدَةَ فِي السَّلَفِ الخ﴾ شعبه‌رحمه‌الله فرمائی چه ماته خبر راکړو محمد بن مجالد یا عبدالله بن مجالد (کذا فی اکثر النسخ، والصحیح ابن ابی مجالد، کذا فی البذل) چه د عبدالله بن شداد او د ابوبرده اختلاف شو د بیع سلم په باره کښې نو هغه وائی (محمد بن ابی مجالد یا عبدالله بن ابی مجالد) چه هغوی دواړو زه عبدالله بن ابی اوفی صحابی ته اولیږلم، ما د هغوی نه تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چه مونږ به درسول الله ﷺ اودحضرات شیخین په زمانه کښې بیع سلم کوله په حنطه شعیر تمر او زبیب تولو څیزونو کښې، او دا معامله به مو د داسې خلقو سره کوله چه هغوی سره به هغه مبیع د عقد په وخت موجود نه وو.

## شرح السند:

وړاندې په روایت کښې راځی ﴿الصَّوَابُ ابْنُ أَبِي الْمُجَالِدِ وَشُعْبَةُ أَخْطَأَ فِيهِ﴾ امام ابوداؤد رحمه‌الله فرمائی چه صحیح ابن ابی المجالد دې د شعبه نه په دې کښې خطاء واقع شوې ده زمونږ په دې نسخه کښې هم داسې دی خو په دې نسخه باندې د مصنف رحمه‌الله د کلام مطلب واضحه نه دې ځکه چه شعبه خو ابن ابی المجالد وئیلې وو د حضرت تحقیق دا دې په بذل کښې. چه په عبارت کښې داسې پکار دې ﴿والصواب عبدالله بن ابی المجالد﴾ په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه صحیح خو عبدالله بن ابی المجالد دې، خو د شعبه نه په دې کښې غلطی شوې ده چه هغوی د راوی نوم محمد بن المجالد یا عبدالله بن ابی المجالد په شک سره بیان کړو ﴿إِلَى قَوْمٍ مَا هُوَ عِنْدَهُمْ﴾ کښې یو مسئله مضمر ده، یعنی سلم فی المنقطع چه د هغې تفصیل به انشاء الله وړاندې راشی. والحدیث اخرجه البخاری وابن ماجة، قاله المنذری.

[۳۴۶۵]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، وَابْنُ مَهْدِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي الْمُجَالِدِ، وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ أَبِي الْمُجَالِدِ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: عِنْدَ قَوْمٍ مَا هُوَ عِنْدَهُمْ؟ قَالَ أَبُو دَاوُد: الصَّوَابُ ابْنُ أَبِي الْمُجَالِدِ، وَشُعْبَةُ أَخْطَأَ فِيهِ.

دعبدالله بن ابی مجالد یا ابن مجالدنه هم داسې روایت نقل شوې دې چه هغوی به ددې خلقوسره بیع سلم کولو دکوموسره چه به مال موجودنه وو، امام ابوداؤد فرمائی ابن ابی مجالد درست دې اوپه دې روایت کښې دشعبه نه غلطی شوې ده.

[۳۴۶۶]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي غَنِيَّةَ، حَدَّثَنِي أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى الْأَسْلَمِيِّ، قَالَ: "غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشَّامَ، فَكَانَ يَأْتِينَا أَنْبَاطٌ مِنْ أَنْبَاطِ الشَّامِ، فَنُسْلِفُهُمْ فِي الْبُرِّ وَالزَّيْتِ سِعْرًا مَعْلُومًا وَأَجَلًا مَعْلُومًا، فَقِيلَ لَهُ: مِمَّنْ لَهُ ذَلِكَ، قَالَ: مَا كُنَّا نَسْأَلُهُمْ".

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۱۱۷) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۱۶۸)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/السلم ۳ (۲۲۴۱)، ۷ (۲۲۵۳) (صحيح)

دعبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږه دنبی ﷺ سره دشام دجهاد په سفرکښې شریك وو هلته به زمونږ خواته دشام زمینداران راتلل او مونږ به دهغوی سره په تیلو اوغنموکښې سلف کولو یعنی مخکښې به موقیت اداکړو، ددې څیزونو قیمت به مواداکولو اوددې میعاد به مو معین کولو، ددوینه چاتپوس اوکړو چه ایا تاسوبه ددوی سره سلف کولو دچاسره چه مال موجود وي هغوی جواب ورکړو مونږ به ددوینه ددې خبرې تپوس نه کولو (چه ایا ستاسوسره داڅیزونه موجود دي اوکه نه دي).

**قوله:** ﴿قَالَ غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– الشَّامَ فَكَانَ يَأْتِينَا أَنْبَاطٌ مِنْ أَنْبَاطِ الشَّامِ فَنُسْلِفُهُمْ فِي الْبُرِّ وَالزَّيْتِ سِعْرًا مَعْلُومًا وَأَجَلاً مَعْلُومًا فَقِيلَ لَهُ مِمَّنْ لَهُ ذَلِكَ قَالَ مَا كُنَّا نَسْأَلُهُمْ﴾

عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د ملک شام په غزوه کښې شریک شو، په ظاهر کښې د دې نه مراد غزوه تبوک ده ﴿ فانها وقعت فی نواحی الشام ﴾ (بذل) نو د دې سفر په دوران کښې به د ملک شام نبطیان مونږ ته راتلل نو مونږ به د هغوی سره په دې اشیاء مذکوره فی الحدیث کښې د بیع سلم معامله کوله په سعر معلوم او اجل معلوم سره، چا د عبدالله بن ابی اوفی نه تپوس اوکړو چه ستاسو خلقو دا د بیع سلم معامله به آیا د هغه خلقو سره کیدله چا سره چه به هغه شئ مسلم فیه موجود وو؟ نو هغوی جواب ورکړو چه دا خبره به مونږ د هغوی نه نه تپوسله.

## د مسئله سلم فی المنقطع تفصیل :

معلومه دې وی چه معامله خو هم د هغه چا سره وی د جمهورو په نزد چه د هغه سره مبیع یعنی مسلم فیه د عقد په وخت موجود نه وی، خو مسئله دا ده چه د مسلم فیه په بازار کښې موجود کیدل ضروری دی یا دا هم ضروری نه دی، په دې لحاظ سره د دې مسئلې څلور صورتونه دی، پس علامه عینی په شرح د بخاري کښې، ﴿ باب السلم الی من لیس عنده اصل ﴾ د لاندې فرمائیلي دی چه د مصنف (امام بخاری رحمه الله) اشاره د سلم المنقطع طرف ته ده چه د احنافو په نزد جائز نه ده او بیا فرمائی چه د دې مسئلې څلور صورتونه کیدې شی ۱: یو دا چه مسلم فیه د عقد په وخت کښې موجود وی او عند الاجل منقطع وی، دا بالاتفاق ناجائز دې. ۲: چه مسلم فیه په بازار کښې د عقد د وخت نه د نیتې پورې موجود وی دا بغیر د خلاف نه جائز دې. ۳: دا چه منقطع وی د عقد په وخت او موجود وی د اجل په وخت ۴: دا چه په وخت د عقد او اجل موجود وی او په مینځ کښې منقطع وی دا دریم او څلورم دواړه صورتونه د احنافو په نزد ناجائز دی او د ائمه ثلاث په نزد جائز دی. آهـ(الابواب والتراجم) پس حاصل دا چه د احنافو په نزد د مسلم فیه په بازار کښې موجود کیدل د عقد د وخت نه الی حلول الاجل ضروری دی او د جمهورو په نزد په وخت د نیته کښې موجود کیدل ضروری دی.

په دې حدیث کښې د انباط ذکر دې نبط یو عجمی قوم دې کوم چه د عراقیانو ترمینځه اباد وو. آهـمصباح اللغات، د عربو یو قوم دې کوم چه د رومیانو سره شامل شوې وو او په شام کښې مقیم وو. (بذل)

## بَابٌ فِي السَّلَمِ فِي ثَمَرَةٍ بِعَيْنِهَا

### دخاص ونې په میوه کښې د سلم کولوبیان

[۳۴۶۷](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ رَجُلٍ نَجْرَانِيٍّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَجُلًا أَسْلَفَ رَجُلًا فِي نَخْلٍ، فَلَمْ تُخْرِجْ تِلْكَ السَّنَةَ شَيْئًا، فَاخْتَصَمَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: بِمَ تَسْتَحِلُّ مَالَهُ ارْدُدْ عَلَيْهِ مَالَهُ؟ ثُمَّ قَالَ: لَا تُسْلِفُوا فِي النَّخْلِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهُ".

دابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوکس دیوخاص وني په میوه باندې دسلم معامله وکړه په دې کال کښې په دې ونه کښې میوه ونشوه دواړه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شول اوجګړه ئې پیش کړه، نبی ﷺ خرخونکی ته وفرمائیل ته ددې کس مال دڅه شي په عوض کښې اخلې؟ ته دده مال واپس کړه، اوبیا ئې اوفرمائیل دکجورې دونې په میوه باندې دسلم معامله مه کوئ ترڅوچه میوه پخه شوې نه وي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَجُلاً أَسْلَفَ رَجُلاً فِي نَخْلٍ فَلَمْ تُخْرِجْ تِلْكَ السَّنَةَ شَيْئًا ﴾

په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده هغه دا ده چه د اشجار معینه په میوو کښې بیع سلم جائز نه دې، ځکه چه ممکنه ده په دې کال په دې اونو باندې میوه رانشي، په دې صورت کښې به مسلم فیه غیر مقدور التسلیم شی حال دا چه مقدور التسلم کیدل ضروری دی، ﴿ ففی القدروی، ولا فی طعام قرية بعينها، ولا فی ثمرة نخلة بعينها ﴾ آهـ

پس د حدیث الباب مضمون هم دا دې چه یو سړی نخله معینه کښې د سلم معامله اوکړه او بیا په هغه کال په هغې باندې میوه رانغله، چه په هغې باندې رسول الله ﷺ تنبیه اوفرمائیله ﴿ بِمَ تَسْتَحِلُّ مَالَهُ ارْدُدْ عَلَيْهِ مَالَه، ثم قال، لاَ تُسْلِفُوا فِي النَّخْلِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلاَحُهُ ﴾ دا په ظاهر کښې مستقل یو بل حکم دې کوم چه مخکښې تیر شوې دې یعنی نهی د بیع نه قبل بدو الصلاح.

## بَابُ السَّلَفِ لَا يُحَوَّلُ

### په بیع سلم کښې چه د کوم څیز خرڅول متعین شوې وي دهغې بدلول منع دی

[۳۴۶۸](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا أَبُو بَدْرٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ خَيْثَمَةَ، عَنْ سَعْدٍ يَعْنِي الطَّائِيَّ، عَنْ عَطِيَّةَ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَسْلَفَ فِي شَيْءٍ فَلَا يَصْرِفْهُ إِلَى غَيْرِهِ".

دابوسعید خدری رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله فرمائیلی دی څوك چه دیوشي قیمت مخکښې اداکړي نوهغه شې په نورو څیزونو مه بدلوئ.

﴿ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « مَنْ أَسْلَفَ فِي شَيْءٍ فَلاَ يَصْرِفْهُ إِلَى غَيْرِهِ ﴾

---

[1]: سنن ابن ماجه/التجارات ٦١ (٢٢٨٤)، (تحفة الأشراف: ٨٥٩٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البيوع ٢١ (٤٩)، مسند احمد (٢/٢٥، ٤٩، ٥١، ٥٨، ١٤٤) (ضعيف)

[2]: سنن ابن ماجه/التجارات ٦٠ (٢٢٨٣)، (تحفة الأشراف: ٤٢٠٤) (ضعيف)

## شرح الحديث مع بيان المذاهب :

د دې حديث په مطلب کښې ئې دوه احتماله ليکلي دی، اول دا چه کوم سړې د بل سره په يو ځيز کښې د بيع سلم معامله کوی نو د دې معاملې کولو دپاره، يعنی د مشتری دپاره دا خبره جائز نه ده چه دې مسلم فيه ځيز لره خپل غير ته منتقل کړی په اعتبار د بيع يا هبه، يعنی قبل القبض، او دويم احتمال دا چه کوم سړی د چا سره د کوم ځيز معامله کړې ده نو د دې مسلم فيه په بدله کښې قبل القبض بل څه ځيز وانخلی يعنی د مسلم فيه استبدال د بل څه سره قبل القبض کول جائز نه دی، که رب السلم د مسلم فيه په عوض کښې بل څه ځيزاخستل غواړی نو په شئ اول باندې د قبضې کولو نه مخکښې دا استبدال جائز نه دې، د قبضې نه پس ورته اختيار دې، د احتمال اول په صورت کښ، د ﴿ غيره ﴾ ضمير به د ﴿ من ﴾ طرف ته راجع وی، فی قوله ﴿ من السلف ﴾ او په دويم صورت کښې به دا ضمير د شئ طرف ته راجع وی چه د هغې نه مراد مسلم فيه دې، مشهوره دا ده چه په مسلم فيه کښې استبدال قبل القبض د جمهورو په نزد چه په هغوی کښې احناف هم دی جائز نه دې او د امام شافعی رحمه الله په نزد جائز دې، لهذا دا حديث په دې مسئله کښې د جمهورو دليل دې.

والحديث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری

## بَابٌ فِي وَضْعِ الْجَائِحَةِ

**که چرې په فصل باندې کوم قسم آفت راشی نو خريدار لره نقصان وضع کول پکار دی مسئله اختلافيه :**

ددې مسئلې متعلق حديث په ﴿ باب فی بيع السنين ﴾ کښې هم تيرشوې دې ﴿ ووضع الجوائح ﴾ هلته دا هم تير شوې دی چه ﴿ امر بوضع الجوائح عند الجمهور من باب المعروف والاحسان ﴾ دې او د امام احمد او اکثر محدثينو په نزد علی الوجوب دې، د جمهورو د طرف نه دا هم وئيلې شوې دی چه که حديث په وجوب باندې محمول کړې شی نو دا به په يو خاص صورت کښې وی يعنی چه کله هغه ميوه هلاکه شی قبل التسليم الی المشتری فانها حينئذ فی ضمان البائع، په دې وجه دې صورت کښې به ټول نقصان د بائع وی.

[۳۴۶۹] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: "أُصِيبَ رَجُلٌ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثِمَارٍ ابْتَاعَهَا فَكَثُرَ دَيْنُهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَصَدَّقُوا عَلَيْهِ، فَتَصَدَّقَ النَّاسُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَبْلُغْ ذَلِكَ وَفَاءَ دَيْنِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خُذُوا مَا وَجَدْتُمْ وَلَيْسَ لَكُمْ إِلَّا ذَلِكَ".

دابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی عليه السلام په زمانه کښې يوکس ميوه واخستله اوبيا په دغه ميوه باندې څه افت نازل شو اودغه اخستونکې قرضدارې شونبی عليه السلام خلقونه اوفرمائيل چه ده ته صدقه ورکړئ خلقوورته صدقه ورکړه په هغه صدقه باندې

(۱): صحيح مسلم/المساقاة ٤ (١٥٥٦)، سنن الترمذي/الزكاة ٢٤ (٦٥٥)، سنن النسائي/البيوع ٢٨ (٤٥٣٤)، ٩٣ (٤٦٨٢)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٢٥، (٢٣٥٦)، (تحفة الأشراف: ٤٢٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٥٦، ٥٨) (صحيح)

هم دده قرض ادانشونو په دې وخت کښې نبی ﷺ دده قرضداړونه اوفرمائيل تاسوته چه دده دطرف نه څه ملاوشي هغه واخلئ اوددينه علاوه به تاسوته څه نه ملاويږي.

﴿ أُصِيبَ رَجُلٌ فِى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِى ثِمَارٍ ابْتَاعَهَا فَكَثُرَ دَيْنُهُ ﴾

د حديث مضمون واضح دې، وړاندې په دې حديث کښې دی ﴿ خُذُوا مَا وَجَدْتُمْ وَلَيْسَ لَكُمْ إِلاَّ ذَلِكَ ﴾ يعنى د خلقو د صدقې کولو نه پس په مشتری باندې، مشتری سره چه څومره پيسې جمع شوې وې هغه ئې ورکړې کومې چه د دين برابر نه وې د هغې نه کمې وې نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه بس هم دا يوسه ستا دپاره نور هيڅ نشته. د دې مطلب به د اصولو مطابق دا اخستلې شي چه د رسول الله ﷺ مراد دا دې چه فی الحال ستا دپاره هم دغه دی باقی به درته روستو ادا کيږی.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[٣٤٧٠](1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالاَ: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ جُرَيْجٍ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ الْمَعْنَى، أَنَّ أَبَا الزُّبَيْرِ الْمَكِّيَّ أَخْبَرَهُ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنْ بِعْتَ مِنْ أَخِيكَ تَمْرًا، فَأَصَابَتْهَا جَائِحَةٌ فَلاَ يَحِلُّ لَكَ أَنْ تَأْخُذَ مِنْهُ شَيْئًا بِمَ تَأْخُذُ مَالَ أَخِيكَ بِغَيْرِ حَقٍّ".

دجابر بن عبدالله ؓ نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی که چرې تاسو پخپل مسلمان ورورباندې ميوه خرڅه کړئ او بيا په دې ميوه باندې کوم افت راشي نوستاسو دپاره دا اخستونکي نه څه شې وصول کول جائزنه دي دخپل ورور مال په ناجائزه طريقه باندې څنګه اخلئ؟.

﴿ بِمَ تَأْخُذُ مَالَ أَخِيكَ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ دا حديث د حنابله په نزد خو په خپل ظاهر باندې دې او د جمهورو په نزد موؤل دې ای فی التقوی، يا قبل التسليم الی المشتری باندې محمول دې لکه چه مخکښې تير شو، اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

## بَابٌ فِي تَفْسِيرِ الْجَائِحَةِ

[٣٤٧١](2) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عُثْمَانُ بْنُ الْحَكَمِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: "الْجَوَائِحُ كُلُّ ظَاهِرٍ مُفْسِدٍ مِنْ مَطَرٍ، أَوْ بَرَدٍ، أَوْ جَرَادٍ، أَوْ رِيحٍ، أَوْ حَرِيقٍ".

ابن جريج دعطاء نه روايت کوی چه دافت نه مراد ښکاره تباهي ده لکه باران، يخني، ګلئ، ملخان، باد، سوزيدل.

﴿ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ الْجَوَائِحُ كُلُّ ظَاهِرٍ مُفْسِدٍ مِنْ مَطَرٍ أَوْ بَرَدٍ أَوْ جَرَادٍ أَوْ رِيحٍ أَوْ حَرِيقٍ ﴾

يعنی جوائح چه د هغې د ساقط کولو او معاف کولو په حديث کښې حکم راغلې دې د دې نه داسې آفت مراد دې کوم چه بالکل ښکاره وی، ميوو لره خرابونکې وی، لکه

[1]: صحيح مسلم/المساقاة ٣ (١٥٥٤)، سنن النسائي/البيوع ٢٨ (٤٥٣١)، سنن ابن ماجه/التجارات ٣٣ (٢٢١٩)، (تحفة الأشراف: ٢٧٩٨)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/البيوع ٢٢ (٢٥٩٨) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٠٦٤) (حسن)

باران او ګلئ، او ملخان، ځکه چه د هغوی قطار کوم باغ ته هم اورسيږی هغه تباه کوی. او هم دغه شان طوفان او تيزه هوا او اور لګيدل.

په حديث کښې د ﴿ ظاهر ﴾ قيد په دې وجه لګولې شوې دې چه په دې صورت کښې به د مشتری نقصان متيقن وی، او که هغه څيز ښکاره نه وی بلکه مشتری يو مخفی امر لره بيان کړی نو په دې کښې احتمال د هغه د کذب دې، پس د ښکاره کيدو په صورت کښې به چه په هغې باندې کوم حکم مرتب کيږی هغه به ختمی وی، او په دويم صورت کښې به د عفو حکم صرف ديانة وی. (بذل من تقرير الجنجوهي)

| |
|---|
| [۳۴۷۲] (¹) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عُثْمَانُ بْنُ الْحَكَمِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا جَائِحَةَ فِيمَا أُصِيبَ دُونَ ثُلُثِ رَأْسِ الْمَالِ". قَالَ يَحْيَى: وَذَلِكَ فِي سُنَّةِ الْمُسْلِمِينَ. |

ديحي ابن سعيدنه روايت دې فرمائی که چرې ددريمې حصې نه په کم مال باندې افت راشي نودې ته افت نه وئيل کيږي يحي وئيلی دی دا د مسلمانانو طريقه ده که چرې ددريمې حصې نه کم مال ته نقصان ورسيږي نود خريدار دپاره نقصان وضع کول نشته.

| |
|---|
| [۳۴۷۱] ﴿ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ أَنَّهُ قَالَ لَا جَائِحَةَ فِيمَا أُصِيبَ دُونَ ثُلُثِ رَأْسِ الْمَالِ - قَالَ يَحْيَى - وَذَلِكَ فِي سُنَّةِ الْمُسْلِمِينَ ﴾ |

**ترجمه:** يحی بن سعيد وائی چه د راس المال د دريمې حصې نه په کم مال باندې چه آفت راشی نو هغې ته به آفت نه شی وئيلې، يحی وائی چه په مسلمانانو کښې هم دا طريقه مشهوره ده.

**تشريح:** يحيی بن سعيد رحمه الله فرمائی چه د ميوو د نقصان پوره کولو چه په حديث کښې کوم حکم دې نو هغه په دې صورت کښې دې چه کم از کم ثلث مال په هغه آفات سماويه سره ضائع شی، او که د ثلث نه کم خراب شوې وی نو هغې لره اعتبار نشته ځکه چه لږ ډير نقصان خو کيږی په سوداګرئ کښ، وړاندې يحيی رحمه الله فرمائی چه زموږ په زمانه کښې د مسلمانانو عمل (عادت) هم دا دې.

## بَابٌ فِي مَنْعِ الْمَاءِ

### دفصل نه داوبو د منع کولو دممانعت بيان

| |
|---|
| [۳۴۷۳] (²) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُمْنَعُ فَضْلُ الْمَاءِ لِيُمْنَعَ بِهِ الْكَلَأُ". |

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی دزياتې شوو اوبونه دې څوک منع کول نه کوی ددې دپاره چه ګياه بچ پاتې شی.

**قوله:** ﴿ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لَا يُمْنَعُ فَضْلُ الْمَاءِ لِيُمْنَعَ بِهِ الْكَلَأُ ﴾

---

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۵۳٤) (حسن)

(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۵۷)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المساقاة ۲ (۲۳۵۳)، صحيح مسلم/المساقاة ۸ (۱۵٦٦)، سنن الترمذي/البيوع ٤٥ (۱۲۷۲)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۱۹ (۲٤۲۸)، موطا امام مالك/الأقضية ۲۵ (۲۹) (صحيح)

## شرح الحديث :

مقصد دا دې چه کومې اوبه د انسان د خپل ضرورت نه زياتې وی د هغې د ورکړې نه انکار کول نه دی پکار دا نفی فی نفسه عام ده خو دلته دا حديث د يو خاص صورت سره ذکر کړې شوې ده يعنی ﴿ لِيُمْنَعَ بِهِ الْكَلأُ ﴾ يعنی د اوبو د ورکړې نه څکه انکار کوی چه هغه ذريعه جوړه کړی د ګيا د نه راختلو، چه د هغې مثال شارحينو دا ليکلې دې چه يو سړی په ارض موات کښې د هغې احياء کولو سره په هغې کښې کوهئ اوکنستلو چه د هغې په وجه باندې هغه د هغې کوهی مالک شو او صورت حال دا دې چه د هغې په خوا کښې چه کوم موات قسم زمکې پرتې دی چه په هغې کښې اتفاق سره ګيا وغيره هم راټوکيږی نو چونکه دې سړی دا زمکې نه دی احياء کړې په دې وجه د دې مالک شوې هم نه دې، په دې وجه اوصولا د دې زمکو ګيا باندې د هغه حق نشته چه نور خلق د دې نه منع کوی چه هغوی خپل څاروی دلته راولی او وې څروی، خو چه څاروی هلته د څريدو دپاره راځی نو هغوی ته به د ګيا سره د اوبو ضرورت هم راځی، اوس دا سړې يعنی صاحب الماء دې څاروو لره د خپل کوهی د اوبه څکلو نه منع کوی چه خلق دلته خپل څاروی راوستل پريږدی، نو په دې طريقه به د صاحب الماء دپاره دا ګيا محفوظه شی، په دې حديث کښې د دې نه منع راغلې ده چه د خپل ضرورت نه زياتی اوبه مه منع کوئ چه د هغې په ذريعه خلق د ګيا نه منع کړې شی. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة من حديث الاعرج عن ابی هريرة رضی الله عنه قاله المنذری.

[۳۴۷۴] (¹) حَدَّثَنَا أَبُوبَكْرِبْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: رَجُلٌ مَنَعَ ابْنَ السَّبِيلِ فَضْلَ مَاءٍ عِنْدَهُ، وَرَجُلٌ حَلَفَ عَلَى سِلْعَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ، يَعْنِي كَاذِبًا، وَرَجُلٌ بَايَعَ إِمَامًا فَإِنْ أَعْطَاهُ وَفَى لَهُ، وَإِنْ لَمْ يُعْطِهِ لَمْ يَفِ لَهُ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی درې قسمه کسان داسې دې چه الله تعالی به ورسره دقيامت په ورځ خبرې ونکړې يوهغه کس دې دچاسره چه سيوائې اوبه موجود وې اودمسافرنه ئې منع کړې، دويم هغه کس دې څوک چه دمازيګرنه پس دخپلې سوداد خرڅولو دپاره په دروغه قسم وخورې دريم هغه کس دی چاچه دامام سره بيعت کړې وې بيا که چرې امام ده ته مال ورکړې نودې ورسره لوظ پوره کوی اوکه امام څه ورنکړې نودې ورسره لوظ نه پوره کوی (يعنی دده بيعت ددنيا حاصلولودپاره وې).

**قوله:** ﴿ ثَلَاثَةٌ لاَ يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ مَنَعَ ابْنَ السَّبِيلِ فَضْلَ مَاءٍ عِنْدَه الخ ﴾

يعنی درې سړی داسې دی چه الله پاک به د قيامت په ورځ باندې هغوی سره د (نرم) کلام او رحم او کرم معامله نه کوی يو هغه سړې چه مسافر ته د خپل ضرورت نه د زياتی اوبو ورکولو نه انکار اوکړی. د دې اوبو دوه صورتونه دی که دا د هغه خپل ملک وی نو بيا خو

(¹): سنن الترمذي/السير ۳۵ (۱۵۹۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۴۷۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الشهادات ۲۲ (۲۶۷۲)، الأحکام ۴۸ (۷۲۱۲)، المساقاة ۱۰ (۲۳۶۹)، صحيح مسلم/الإيمان ۴۶ (۱۰۸)، سنن النسائي/البيوع ۶ (۴۴۶۷)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۰ (۲۲۰۷)، الجهاد ۴۲ (۲۸۷۰)، مسند احمد (۲/۲۵۳، ۴۸۰) (صحيح)

د هغه دپاره دا حکم دې چه قيمت اخستلو سره هغه ته ورکول ضروري دی سره د قيمت ورکولو نه انکار جائز نه دې او که اوبه د هغه په ملک کښې نه دی نو په دې صورت کښې انکار مطلقا ممنوع دې، وړاندې د حديث مضمون واضح دې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[٣٤٧٥](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ قَالَ: وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ، وَقَالَ فِي السِّلْعَةِ: بِاللَّهِ لَقَدْ أُعْطِيَ بِهَا كَذَا وَكَذَا، فَصَدَّقَهُ الْآخَرُ فَأَخَذَهَا.

دا روايت دتيرشوي روايت په شان اوهم مثل دې البته په دې کښې دا اضافه ده چه الله تعالى به ددغه درې قسمه کسانو سره خبرې ونکړي اونه به دوی دګناهونونه پاك کړي اودوی ته به عذاب ورکړي، او په سامان خرڅولوباندې قسم خوړل دي ته وائی چه په الله تعالى قسم دا فلانی په دومره پيسو اخستې خريدار چه دا واوري نودده خبره صحيح وګڼي او دغه سامان په دغه قيمت واخلي.

[٣٤٧٦](2) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا كَهْمَسٌ، عَنْ سَيَّارِ بْنِ مَنْظُورٍ رَجُلٍ مِنْ بَنِي فَزَارَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ امْرَأَةٍ يُقَالُ لَهَا: بُهَيْسَةُ، عَنْ أَبِيهَا، قَالَتْ: "اسْتَأْذَنَ أَبِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَمِيصِهِ، فَجَعَلَ يُقَبِّلُ وَيَلْتَزِمُ، ثُمَّ قَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ قَالَ: الْمَاءُ، قَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ قَالَ: الْمِلْحُ، قَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ قَالَ: أَنْ تَفْعَلَ الْخَيْرَ خَيْرٌ لَكَ".

بهيسه دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه زما پلاردنبی عليه السلام نه اجازت وغوښتو اوبيا ئې دنبی عليه السلام قميص مبارك اوچت کړو اوسرئې وردننه کړو اونبی عليه السلام ئې ښکل کړو اوخان ئې ورسره جوخت کړو بيا ئې اووئيل اې دالله نبی هغه کوم کوم څيزونه دي چه منع کول ئې جائز نه دي نبی عليه السلام اوفرمائيل اوبه بيا ئې عرض اوکړو چه بل دکوم څيز منع کول جائز نه دي نبی عليه السلام اوفرمائيل مالګه بيا ئې عرض اوکړو چه بل دکوم څيز منع کول جائز نه دي نبی عليه السلام اوفرمائيل څومره چه ته نيکي زياته کوې نوبهتره ده.

﴿ عَنِ امْرَأَةٍ يُقَالُ لَهَا بُهَيْسَةُ عَنْ أَبِيهَا ﴾ دا حديث په کتاب الزکوة کښې تير شوې دې او په دې باندې کلام او شرح هم، دلته چه په بذل کښې په دې باندې څه ليکلي دی د هغې خلاصه دا ده چه ﴿ فی هذا الحديث ثلاثة مسالک للعلماء (١)النهی علی التحريم، (٢) من باب المعروف والاحسان، (٣)لا يجوز المنع لكن يجب لصاحب الماء القيمة، وهذا اذا المراد بالماء ماء البئر التی حفرها فی الموات واحياها، وان كان الماء الذی جمعه فی صهريج او حوض فان له ان يمنعه ﴾ آهـ

[٣٤٧٧](3) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ اللُّؤْلُؤِيُّ، أَخْبَرَنَا حَرِيزُ بْنُ عُثْمَانَ، عَنْ حِبَّانَ بْنِ زَيْدٍ الشَّرْعَبِيِّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ قَرْنٍ. ح، حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا حَرِيزُ بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو خِدَاشٍ، وَهَذَا لَفْظُ عَلِيٍّ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

[1]: صحيح البخاري/ الشهادات ٢٢ (٢٦٧٢)، صحيح مسلم/ الإيمان ٤٦ (١٠٨)، سنن النسائي/ البيوع ٦ (٤٤٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٣٣٨) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم: (١٦٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٦٩٧) (ضعيف)

[3]: تفرد به أبوداود، مسند احمد (٣١٤/٥) (صحيح)

وَسَلَّمَ ثَلَاثًا، أَسْمَعُهُ يَقُولُ: "الْمُسْلِمُونَ شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ: فِي الْكَلَإِ، وَالْمَاءِ، وَالنَّارِ".

ابو خداش په مهاجرينو صحابه کرامو کښې د يو کس نه روايت کوی فرمائيل ئې چې ما د نبی ﷺ سره جهاد کړې دې ما د هغه نه درې پيرې آوريدلی دی چه فرمائيل ئې مسلمانان د يو بل سره په درې څيزونو يعنی گيا، اوبه، او اور کښې شريک دي.

﴿الْمُسْلِمُونَ شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ فِي الْكَلَإِ وَالْمَاءِ وَالنَّارِ﴾

د اوبو په باره کښې تفصيل په کتاب الزکوة کښې تير شوې دې چه اوبه درې قسمه دی د هر يو حکم څانله څانله دې د کلاء په باره کښې هم اوس خبره تيره شوه چه په ارض موات کښې چه کومه گيا وی چا د پاره هم جائز نه دی چه د هغې نه خلق منع کړی، او دريم څيز په دې حديث کښې چه په هغې کښې ئې د مسلمانانو شرکت ښودلې دې هغه اور دې، په بذل کښې ليکلی دی چه په اور کښې د شرکت کيدل د هغې د رڼړا او د گرميدولو په اعتبار سره دې چه د هغې په خوا کښې د گرميدو نه څوک منع نه کړی، او د دې نه گرمې سکروټې مراد نه دی، نه په ده باندې هغوی ته ورکول واجب دی او نه د بل د پاره اخستل بغير د مالک د اجازت نه جائز دی.

## بَابٌ فِي بَيْعِ فَضْلِ الْمَاءِ

### د زياتی اوبو د خرڅولو بيان

[۳۴۷۸] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَطَّارُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ عَبْدٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ بَيْعِ فَضْلِ الْمَاءِ".

د اياس بن عبد نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ د زياتی او بود خرڅولو نه منع فرمائيلې ده.

﴿نَهَى عَنْ بَيْعِ فَضْلِ الْمَاءِ﴾ يعنی د خپل ضرورت نه د زياتی اوبو خرڅولو نه، يعنی پيسې اخستلو سره هغه ته د ورکولو نه رسول الله ﷺ منع اوفرمائيله، اوبه که د صاحب الماء ملکيت دې نو بيا خو د دې د بيع نه منع د معروف او احسان د باب نه ده، يعنی دا به خلاف اولی وی، او که غير مملوک دې نو بيا به دا نهی د تحريم د پاره وی لکه چه اوس وړاندې تير شو دا تفصيل. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، وقال الترمذی حديث حسن صحيح، قاله المنذری

## بَابٌ فِي ثَمَنِ السِّنَّوْرِ

### د پيشو د قيمت اخستلو د ممانعت بيان

د ثمن کلاب باب کوم چه وړاندې را روان دې هغه خو مختلف فيه دې خو ثمن سنور يعنی د دې بيع په اتفاق د علماء کرامو جائز ده اگر چه د بعض سلفو په دې کښې هم اختلاف دې پس په بذل کښې د خطابی نه نقل دی. ﴿وکره بيعه ابوهريرة وجابر وطاوس ومجاهد رحمهم الله﴾ آه.

(١): سنن الترمذي/البيوع ٤٤ (١٢٧١)، سنن النسائي/البيوع ٨٦ (٤٦٦٥)، سنن ابن ماجه/الرهون ١٨ (٢٤٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/١٣٨، ٤١٧)، سنن الدارمي/البيوع ٦٩ (٢٦٥٤) (صحيح)

[۳۴۷۹]([1]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ. ح، وحَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، وَعَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عِيسَى، وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ، أَخْبَرَنَا، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ، وَالسِّنَّوْرِ".

جابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ دپيشو اودسپي دخرڅولونه اودهغې دقيمت اخستلونه منع فرمائيلې ده.

[۳۴۸۰]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ زَيْدٍ الصَّنْعَانِيُّ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْهِرَّةِ".

دجابربن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ دپيشود قيمت اخستلونه منع فرمائيلې ده.

﴿ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَالسِّنَّوْرِ ﴾ او د دې نه په روستو حديث کښې صرف د هرة ذکر دې.

﴿نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْهِرَّةِ ﴾ ثمن هرة خو د جمهورو په نزد جائز دی په دې وجه د دې حديث څو جوابونه کړې شوې دی، په دې دوه احاديثو کښې د رومبي حديث په باره کښې خو امام ترمذي رحمه الله فرمائي: ﴿ هذا حديث في اسناده اضطراب الى آخر ما ذكر﴾ او د دويم حديث په باره کښې په بذل کښې ليکلې دی ﴿ قال الترمذي غريب ﴾ ______ وقال النسائي هذا منكر اهـ او دويم جواب د نسخ ورکړې شوې دې، او دريم جواب دا دې چه دا په متوحش باندې محمول دې، يعنې کومه پيشو چه عادته نه وي د ځنګلي ځناورو په شان وي نو چونکه هغه غير مقدور التسليم وي په دې وجه د هغې بيع ناجائز ده.

حديث جابر الثاني اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي أَثْمَانِ الْكِلَابِ

### دسپو دقيمت اخستلو بيان

[۳۴۸۱]([3]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ "نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ، وَمَهْرِ الْبَغِيِّ، وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ".

د ابومسعود رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ دسپي دقيمت. اخستلو اود زناکارې ښځې داجرت اخيستلو اودفال کتونکې دامدن نه منع فرمائيلې ده.

قوله: ﴿ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَمَهْرِ الْبَغِيِّ وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ ﴾

### مذاهب د ائمة

په دې حديث کښې د بيع د کلب نه منع کړې شوې ده، د امام شافعي او احمد رحمهما الله مذهب هم

[1]: سنن الترمذي/البيوع ٤٩ (١٢٧٩)، (تحفة الأشراف: ٢٣٠٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساقاة ٩ (١٥٦٧)، سنن النسائي/الذبائح ١٦ (٤٣٠٠)، البيوع ٩٠ (٤٦٧٢)، سنن ابن ماجه/التجارات ٩ (٢١٦١)، مسند احمد (٣/٣٣٩) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/البيوع ٤٩ (١٢٨٠)، سنن ابن ماجه/الصيد ٢٠ (٣٢٥٠)، (تحفة الأشراف: ٢٨٩٤) ويأتي هذا الحديث في الأطعمة (٣٨٠٧) (صحيح)

[3]: انظر حديث رقم: (٣٤٢٨)، (تحفة الأشراف: ١٣٤٠٧، ١٠٠١٠) (صحيح)

دا دي د احنافو په نزد بيع د كلب جائز ده كه هغه معلم وي او كه غير معلم، د امام مالك رحمه الله درې روايتونه دي د جواز او د عدم جواز، والثالث يجب القيمة لا الثمن، يعنى بيع خو ئې اګر كه جائز بالكل هم نه ده خو كه يو سړې د بل چا سپې مړ كړي يا ئې ضائع كړي، نو بيا د هغې قيمت يعنى ضمان وركول واجب وي، او د امام ابو يوسف رحمه الله نه يو روايت دا دې چه د كلب عقور بيع جائز نه ده او عطاء او ابراهيم نخعى فرمائي ﴿ يجوز بيع كلب الصيد دون غيره، ويدل عليه ما اخرجه النسائى من حديث جابر قال نهى رسول الله ﷺ عن ثمن الكلب الا كلب صيد ﴾ الى آخر ما فى العون.

دا حديث د شوافعو او د حنابله خو موافق دې نو احنافو د دې جواب دا وركړې دې چه دا حديث د هغه زمانې دې چه كله په امر د كلاب كښې تشديد وو تردې چه د هغوى د قتل حكم وركړې شوې وو او چه روستو د اكثرو په نزد منسوخ شو، په امر د كلاب كښې د تشديد بحث په كتاب الطهارة ﴿ باب الوضوء من سؤر الكلب ﴾ كښې تير شوې دې. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[٣٤٨١] (١) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ، عَنْ قَيْسِ بْنِ حَبْتَرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ، وَإِنْ جَاءَ يَطْلُبُ ثَمَنَ الْكَلْبِ، فَامْلَأْ كَفَّهُ تُرَابًا".

د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت سه فرمائي چه نبى عليه السلام د سپى دقيمت اخستونه منع فرمائيلې ده، اوكچري څوك درته د سپى د قيمت اخستودپاره راشي نودده لپه دخاورونه ډكه كړئ (يعنى قيمت مه وركوئ).

[٣٤٨٣] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي عَوْنُ ابْنُ أَبِي جُحَيْفَةَ، أَنَّ أَبَاهُ، قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ".

ابوجحيفه دخپل پلارنه روايت كوى فرمائي چه نبى عليه السلام دسپى دقيمت اخستونه منع فرمائيلې ده.

[٣٤٨٤] (٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي مَعْرُوفُ بْنُ سُوَيْدٍ الْجُذَامِيُّ، أَنَّ عُلَيَّ بْنَ رَبَاحٍ اللَّخْمِيَّ، حَدَّثَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحِلُّ ثَمَنُ الْكَلْبِ، وَلَا حُلْوَانُ الْكَاهِنِ، وَلَا مَهْرُ الْبَغِيِّ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى حلال نه دى دچا دپاره دسپى قيمت اخستل اونه دفالګردنده اونه دزناكارې ښځې اجرت.

په دې حديث كښې دوه اجزاء نور دى چه د هغې نه منع كړې شوې ده ﴿ مهر البغى ﴾ يعنى د زنا كارې د اجرت نه، چه هغې ته مجازا مهر وئيلې شوې دې او دويم څيز ﴿ حلوان كاهن ﴾ ي

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٥، ٢٧٨، ٢٨٩، ٣٥٠، ٣٥٦) (صحيح الإسناد)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٨١٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ١١٣ (٢٢٣٧) (صحيح)
(٣): سنن النسائي/الصيد والذبائح ١٥ (٤٢٩٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٦٠) (صحيح)

هغه ته ورکړې شي، کاهن ته تلل، د هغه د تصديق دپاره او هغه ته په کهانت باندې اجرت ورکول، ټول حرام دي، بلکه د دې خبرې تصديق خو کفر دې که دهغه د علم غيب په اعتقاد سره وي، په کوکب الدرى کښې ليکلې دی چه که د کاهن تصديق ترې په داسې انداز اوکړې شي چه بعض جنات د هغه تابع وي او هغوی راځی ده ته خبر ورکوی نو په دې صورت کښې به تصديق کفر نه وي.

## بَاب فِي ثَمَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْتَةِ

### د شرابو او د مردارې د قيمت اخستو بيان

[٣٤٨٥] (١) عَنْ عَبْدِ الْوَهَّابِ بْنِ بُخْتٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ الْخَمْرَ وَثَمَنَهَا، وَحَرَّمَ الْمَيْتَةَ وَثَمَنَهَا، وَحَرَّمَ الْخِنْزِيرَ وَثَمَنَهُ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی الله تعالی شراب او دشرابو قيمت او مرداره اودمردارې قيمت اوخنزير اودخنزير قيمت حرام کړې دې.

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ الْخَمْرَ وَثَمَنَهَا وَحَرَّمَ الْمَيْتَةَ وَثَمَنَهَا وَحَرَّمَ الْخِنْزِيرَ وَثَمَنَهُ ﴾

### شرح الحديث من حيث الفقه :

په دې حديث کښې د بيع د خمر او بيع د ميتة او هم دغه شان د بيع خنزير د دې درې واړو حرمت يو ځائې بيان کړو. د فقهاء په نزد د دې څيزونو تحريم او د بيع په نوعيت کښې فرق دې، د هدايه په متن کښې خو دا دی ﴿ واذا کان احد العوضين او کلاهما محرما فالبيع فاسد کالبيع بالميتة والدم والخمر والخنزير ﴾ په دې باندې صاحب هدايه فرمائي چه د مصنف دا کلام مجمل دې تفصيل ته محتاج دې کوم چه به مونږ بيانوو، بيا وړاندې په تفصيل کښې هغوی فرمائي چه بيع بالميتة والدم او هم دغه شان بالحرية خو بيع باطل ده لانعدام رکن [٣٤٨١] البيع وهو مبادلة المال بالمال په دې وجه دا څيزونه د چا په نزد هم مال نه شميرلې کيږي، او بيا وړاندې فرمائي چه بيع الخمر والخنزير دا دواړه بيع فاسدې دی نه باطل، د حقيقت بيع د موجود کيدو د وجې نه، يعنی مبادلة المال بالمال ځکه چه خمر مال دې، او خنزير هم د بعضو په نزد مال دې يعنی عند اهل الکتاب، او بيع باطل د ملک دپاره مفيده نه وي په خلاف د بيع فاسد چه هغه مفيد د ملک وي پس د قبض نه..د دې نه پس بيا صاحب هدايه نور تفصيل کړې دې او د فرق صورتونه ئې بيان کړی دی هغې ته رجوع اوکړه که غواړې.

د دې نه په روستو روايت کښې د ميتة او د خنزير نه پس د و الاصنام زيادت دې يعنی بيع صنم حرامه کړې شوې ده په کوکب دری کښې ليکلې دی چه بيع د اصنام حرام ده په داسې حال کښې چه د اصنام بيع د اصنام کيدو په حيثيت سره اوکړې شي خو که يو سړې د هغې بيع په بل نيت سره اوکړی لکه يو سړې د لرګو بيع اوکړی چه په هغې کښې د لرګو نه تراشلې شوې بتان هم وی نو دا بيع به جائز وی په دې شرط چه دا بتان د لرګو په قيمت

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٧٩٢) (صحيح)

باندې خرڅ کړي، مګر دا چه د يو داسې سړي په لاس باندې بيع کيږي چه د هغه په باره کښې دا معلومه وي چه دا سړې به د دې صنم تعظيم يا عبادت کوي. آهـ(کوکب ۳/۳۰۸)

[۳۴۸٦](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ عَامَ الْفَتْحِ وَهُوَ بِمَكَّةَ: "إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ بَيْعَ الْخَمْرِ وَالْمَيْتَةِ وَالْخِنْزِيرِ وَالْأَصْنَامِ، فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ شُحُومَ الْمَيْتَةِ فَإِنَّهُ يُطْلَى بِهَا السُّفُنُ، وَيُدْهَنُ بِهَا الْجُلُودُ، وَيَسْتَصْبِحُ بِهَا النَّاسُ، فَقَالَ: لَا، هُوَ حَرَامٌ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذَلِكَ: قَاتَلَ اللَّهُ الْيَهُودَ، إِنَّ اللَّهَ لَمَّا حَرَّمَ عَلَيْهِمْ شُحُومَهَا أَجْمَلُوهُ، ثُمَّ بَاعُوهُ فَأَكَلُوا ثَمَنَهُ".

دجابربن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه دنبي ﷺ نه مې دمې دفتر په کال باندې آوريدلى دى اوهغه په مکه کښې وو فرمائيل ئې چه الله تعالى دشرابوخرڅول اودمرداري اودخنزير خرڅول اودبتانو خرڅول حرام کړيدي، په دې وخت کښې عرض اوکړې شواې دالله رسوله په وازدر دمرداره کښې ستا څه خيال دې په دې باندې کشتى ته رنګ ورکولى شي اوددې تيل په څرمنوباندې لګولې شي اودرنړادپاره ئې خلق استعمالوي نبي ﷺ اوفرمائيل دا په هرحال کښې حرام دې او په همدې وخت کښې نبي ﷺ اوفرمائيل: الله تعالى دې په يهوديانولعنت اوکړي هغوى په خلقوباندې وازده حرامه کړيده هغوى پخه کړه اوبيا ئې خرڅه کړه اودهغې قيمت ئې وخوړلو.

**قوله:** ﴿فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ شُحُومَ الْمَيْتَةِ فَإِنَّهُ يُطْلَى بِهَا السُّفُنُ وَيُدْهَنُ بِهَا الْجُلُودُ وَيَسْتَصْبِحُ بِهَا النَّاسُ فَقَالَ لاَ هُوَ حَرَامٌ﴾

## شرح الحديث:

يعنى چه کله رسول الله ﷺ د مردارې د خرڅولو نه منع اوفرمائيله نو په دې باندې بعض صحابه کرامو رضي الله عنهم رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ د مردارې د وازګې څه حکم دې خکه چه دا په کشتو باندې مرلې شي (چه د غوړ والى د وجې نه دننه اوبه خورې نه شي) او هم دغه شان په څرمنو باندې مرلې شي د نرمولو دپاره او هم دغه شان خلق د دې په ذريعه رنړا حاصلوى يعنى په مصباح او ډيوه کښې ئې بلوى رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا جائز نه ده بلکه حرام ده.

په کوکب کښې ليکلې دى چه دلته دا سوال واردېږى چه کله رسول الله ﷺ د بيع د ميتة حکم بيان فرمائيلې وو چه هغه حرام دې نو په ميتة کښې د هغې ټول اجزاء داخل شوې وو، نو بيا د مردارې د وازګې په باره کښې مستقل سوال کول د څه په وجه باندې وو؟ د دې جواب ئې دا ليکلې دې چه چونکه صحابه کرامو رضي الله عنهم ته دا خبره د مخکښې نه معلومه وه چه بعض اجزاء د ميتة داسې دى کوم چه جائز الاستعمال دى لکه د هغې څرمن او هم دغه شان عظام دميتة نو په دې وجه هغوى د شحم دميتة په باره کښې سوال اوکړو چه

١): صحيح البخاري/البيوع ١١٢ (٢٢٣٦)، المغازي ٥١ (٤٢٩٦)، تفسير سورة الأنعام ٦ (٤٦٣٣)، صحيح مسلم/المساقاة ١٣ (١٥٨١)، سنن الترمذي/البيوع ٦١ (١٢٩٧)، سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٧ (٤٢٦١)، البيوع ٩١ (٤٦٧٣)، سنن ابن ماجه/التجارات ١١ (٢١٦٧)، (تحفة الأشراف: ٢٤٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٢٤، ٣٢٦، ٣٧٠) (صحيح)

ممکنه ده چه هغه هم د اهاب وغیره په شان وی خصوصا چه هر کله د شحم د میتة په ډیرو څیزونو کښې ضرورت راځی چه د هغې طرف ته صحابه کرامو ﷺ په خپله خپل سوال کښې اشاره کړې ده، بیا وړاندې په کوکب کښې لیکلې دی چه د رسول الله ﷺ د جواب حاصل دا دې چه د میتة د اجزاء نه د انتفاع د جواز بنیاد د رطوبات نجسه په زوال باندې دې، او د شحم نه زوال رطوبت ممکن نه دې، بیا د دې نه روستو رسول الله ﷺ دا حرمت موکد اوفرمائیلو په روستو جمله کښې ﴿ قاتل الله الیهود الخ ﴾ آهـ د دې جملې تشریح دا ده رسول الله ﷺ فرمائی چه الله پاک دې هلاک او برباد کړی یهودو لره چه الله پاک په هغوی باندې کله د مړی وازګه حرامه کړې وه نو هغوی د دې د تحلیل دا حیله اختیار کړه چه وازګه ئې په اور باندې ویلې کړه او بیا ئې هغه خرڅوله او د هغې د ثمن نه ئې فائده اوچتوله، دا حیله په دې لحاظ سره وه چه په شحم باندې د شحم اطلاق تر هغه وخته پورې وی چه ترڅو هغه په اور باندې ویلې نه کړې شی او د ویلې کولو نه پس د هغې نوم بدل شی او په ځائې د وازګې ورته ډل وائی. خو په داسې کولو سره د هغې حقیت او حکم خو نه بدلیږی، امام خطابی رحمه الله په دې باندې لیکی چه د دې نه د هر هغه حیلې بطلان ثابتیږی چه هغه وسیله جوړه شی یو حرام ته د رسیدو، او دا چه صرف د هیئت په تغیر او د اسم په تبدیل سره د حرام څیز حکم نه بدلیږی. آهـ

﴿ فقال : لا هو حرام ﴾ د دې په شرح کښې اختلاف دې هغه دا چه هو ضمیر څه ته راجع دې حافظ وائی چه بعض علماء کرام چه په هغوی کښې امام شافعی رحمه الله هم دې د دوی په نزد دا ضمیر دبیع طرف ته راجع دې یعنی د شحوم دمیتة بیع حرامه ده، او اکثر علماء کرامو ددې ضمیر راجع کړې دې د انتفاع طرف ته، لهذا د هغوی په نزد نه صرف بیع د میتة ناجائز ده بلکه مطلقا انتفاع د هغې د ټولو اجزاء نه ناجائز ده سوا د هغې نه چه د هغې په تخصیص باندې دلیل قائم دې یعنی جلد مدبوغ (داکلام خو وو د شحم میتة سره متعلق) د دې نه پس هغوی د دهن متنجس یعنی کوم تیل وغیره چه د څه نجس څیز غورزیدو سره ناپاک شی په دې باره کښې ئې د علماء کرامو اختلاف بیان کړې دې هغه دا چه دجمهورو په نزد د هغې نه انتفاع جائز ده او د امام احمد رحمه الله او ابن الماجشون مالکی په نزد ناجائز ده. آهـ (من التحفة) امام خطابی رحمه الله هم د ﴿ لا هو حرام ﴾ تعلق د بیع سره بیان کړې دې (غالبا د امام شافعی رحمه الله د مسلک په تائید کښې لکه چه د حافظ نه مخکښې نقل کړې شو) پس هغوی لیکی: وفیه دلیل علی جواز الاستصباح بزیت نجس وان بیعه لا یجوز ﴾ آهـ خطابی شحم دمیتة او دهن متنجس په یو درجه کښې اوساتل د شوافعو د مسلک د وجې نه ګینې د جمهورو په نزد د دواړو په حکم کښې فرق دې، ځکه چه دشحم د میتة نه انتفاع د جمهورو په نزد ناجائز ده، او قسم ثانی یعنی د دهن متنجس نه انتفاع فی غیر الاکل مثل الاستصباح جائز ده. خلاف ثابت دې امام احمد او ابن الماجشون لره لکه چه اوس تیر شو په کلام د حافظ کښې. عرف الشذی ۳۰۱ کښې د دې حدیث د لاندې لیکلې دی چه په حدیث الباب کښې اشاره ده دې طرف ته چه د نجس العین بیع باطله ده، امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائی چه شحم میتة نجس دې،

د دې نه مطلقا انتفاع جائز نه ده، او هغه غوړي يا تيل چه کوم د څه عارض په وجه باندې ناپاک شي مثلا سقوط د مږې چه په پريوتلو سره په دې کښې مړه شي نو دا تيل ناپاک ضرور دې خو نجس العين نه دې، د دې بيع هم جائز ده او انتفاع يعنی استصباح هم جائز ده، او د امام شافعي رحمه الله په نزد د شحم د ميتة نه هم انتفاع او استصباح جائز ده. آهـ پس خلاصه دا شوه چه د شحم د ميتة بيع خو بالاتفاق ناجائز ده او انتفاع فی غير الاكل والشرب کښې اختلاف دې د جمهورو په نزد هغه هم ناجائز ده، د امام شافعي رحمه الله په نزد جائز دې، او د دهن متنجس نه انتفاع د جمهورو په نزد جائز ده د امام احمد رحمه الله په نزد هغه هم ناجائز ده اوس پاتې شوه دا چه د دې د بيع څه حکم دې نو ښکاره خبره دا ده چه هر کله انتفاع جائز ده نو بيع او شراء به هم جائز وی پس په عرف الشذی کښې د احنافو په نزد د دې بيع ته جائز وئيلې شوې دی د نورو امامانو د مسلک دې تحقيق اوکړې شی. والله تعالى اعلم.

[۳۴۸۷]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، قَالَ: كَتَبَ إِلَيَّ عَطَاءٌ، عَنْ جَابِرٍ، نَحْوَهُ، لَمْ يَقُلْ هُوَ حَرَامٌ.

دجابر رضی الله عنه نه ددې روايت په شان روايت منقول دې اليکن په دې روايت کښې دا الفاظ نشته چه نبی عليه السلام اوفرمائيل نه هغه خو حرامه وه.

[۳۴۸۸]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ بِشْرَ بْنَ الْمُفَضَّلِ، وَخَالِدَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَاهُمُ الْمَعْنَى عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ بَرَكَةَ، قَالَ مُسَدَّدٌ فِي حَدِيثِ، خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ بَرَكَةَ أَبِي الْوَلِيدِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا عِنْدَ الرُّكْنِ، قَالَ: فَرَفَعَ بَصَرَهُ إِلَى السَّمَاءِ فَضَحِكَ، فَقَالَ: "لَعَنَ اللَّهُ الْيَهُودَ ثَلَاثًا: إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَيْهِمُ الشُّحُومَ فَبَاعُوهَا، وَأَكَلُوا أَثْمَانَهَا، وَإِنَّ اللَّهَ إِذَا حَرَّمَ عَلَى قَوْمٍ أَكْلَ شَيْءٍ حَرَّمَ عَلَيْهِمْ ثَمَنَهُ". وَلَمْ يَقُلْ فِي حَدِيثِ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الطَّحَّانِ رَأَيْتُ، وَقَالَ: "قَاتَلَ اللَّهُ الْيَهُودَ".

دعبدالله ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام مې درکن (حجراسود) يا رکن شامي سره ناست وليدو راوی وائی چه وئې فرمائيل او آسمان طرف ته ئې وکتل او درې خل ئې وخندل اوبيا ئې اوفرمائيل الله تعالى دې په. يهوديانو لعنت وکړې، کله چه الله تعالى په دوی باندې دځارور وازده حرامه کړه نودرې به خرڅوله اوددې قيمت به ئې استعمالولو اويقينا کله چه به الله تعالى په کوم قوم باندې د کوم شي خوړل حرام کړل نو دهغې قيمت به ئې ورباندې هم حرامولو. دخالد بن عبدالله په حديث کښې ددې ذکرنشته چه ما کعبې درکن په خواکښې نبی عليه السلام وليدو او په دې روايت کښې داسې دې چه الله تعالى دې يهوديان برباد کړي.

[۳۴۸۹]([3]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، وَوَكِيعٌ، عَنْ طُعْمَةَ بْنِ عَمْرٍو الْجَعْفَرِيِّ، عَنْ عُمَرَ بْنِ بَيَانٍ التَّغْلِبِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ بَاعَ الْخَمْرَ فَلْيُشَقِّصِ الْخَنَازِيرَ".

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۲۴۹۴) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۳۷۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۴۷، ۲۹۳، ۳۲۲) (صحيح)
[3]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۲۵۳)، سنن الدارمي الأشربة ۹ (۲۱۴۷) (ضعيف)

د مغیره بن شعبه نه روایت دې فرمائي چه نبي ﷺ فرمائیلي دي چاچه دشرابو خرڅول وکړل نوهغه دي بیا دخنزیرانو غوښې هم ټکړي ټکړي کوي څکه چه داهم دشرابوپه شان حرام کاروباردې).

## شرح الحدیث :

**قوله:** ﴿عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ بَاعَ الْخَمْرَ فَلْيُشَقِّصِ الْخَنَازِيرَ ﴾ د تشقیص معنی الذبح بالمشقص، مشقص وائي د غشي تیرهٔ سوکې ته، په دې صورت کښې به دا ماخوذ وی د مشقص نه، او یا به د دې معنی جعل الشئ شقصا شقصا یعنی د یو څیز څانله څانله ټکړې کول لکه چه د څاروی د ذبح کولو نه پس د غوښې د اصلاح دپاره د هغې جدا جدا ټکړې کولې شی، د دې حدیث نه مخکښې احادیثو کښې د بیع دخمر او بیع د خنزیر د دواړو حکم یعنی په تحریم کښې مساوی کیدل تیر شو څو د ډیرو حلقو حال دا وی چه هغوی خنزیر لره څو عملا او اکلا حرام منی څو د شرابو څکلو او د دې د تجارت نه نه بچ کیږی او نه دا څه عیب ګنړی، په دې وجه رسول اللهﷺ د تحریم خمر تاکید دا فرمائی چه کوم سړې عملا د شرابو د بیع او د هغې د تجارت نه څان نه ساتی نو هغه له پکار دی چه د خنزیر د غوښې تجارت هم شروع کړی او د هغې خوراک دې هم جائز اوګنړی څکه چه شرعا په دواړو کښې څه فرق نشته.

[۳۴۹۰]() حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "لَمَّا نَزَلَتِ الآيَاتُ الأَوَاخِرُ مِنْ سُورَةِ الْبَقَرَةِ، خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَأَهُنَّ عَلَيْنَا، وَقَالَ: حُرِّمَتِ التِّجَارَةُ فِي الْخَمْرِ".

ام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی کله چه دسورة بقره اخری ایت نازل شو نونبی ﷺ تشریف راوړو اودغه ایت ئې مونږ ته واورولو اوونې فرمائیل دشرابو تجارت حرام کړې شو.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا نَزَلَتِ الآيَاتُ الأَوَاخِرُ مِنْ سُورَةِ الْبَقَرَةِ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَرَأَهُنَّ عَلَيْنَا وَقَالَ « حُرِّمَتِ التِّجَارَةُ فِي الْخَمْرِ ﴾

عائشه رضي الله عنها فرمائی چه کله د سورة بقرة آخری آیتونه نازل شو (چه په هغې کښې د ربا حرام والې ذکر دې) نو رسول اللهﷺ بهر تشریف راوړو او مونږ ته ئې هغه آیتونه واورول او وې فرمائیل چه د شرابو تجارت حرام دې.

## په ظاهر د حدیث باندې یو اشکال او د هغې جواب :

ددې حدیث په شرح کښې شارحینو لیکلي دی چه د تحریم خمر ذکر په سورة مائده کښې دې او د هغه آیت د ربا نه کوم چه د سورة بقرة په اواخرو کښې دې ډیر مخکښې نازل شوي وو، څکه چه مشهور ده چه آیت ربا آخر ما نزل یا من آخر ما نزل من القرآن دې، او د دې

(): صحيح البخاري/الصلاة ۷۳ (۴۵۹)، والبيوع ۲۵ (۲۰۸۴)، ۱۰۵ (۲۲۲۶)، وتفسير آل عمران ۴۹ (۴۵۴۰)، ۵۲ (۴۵۴۳)، صحيح مسلم/المساقاة ۱۲ (۱۵۸۰)، سنن النسائي/البيوع ۸۹ (۴۶۶۹)، سنن ابن ماجه/الأشربة ۷ (۳۳۸۲)، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۳۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۴۶، ۱۰۰، ۱۲۷، ۱۸۶، ۱۹۰، ۲۸۷)، سنن الدارمي/البيوع ۳۵ (۲۶۱۲) (صحيح)

حدیث سیاق د دې ترتیب منافی دې، د دې نه د تحریم خمر متاخر کیدل ښکاره کیږی، نو د هغې توجیه دې حضراتو دا کړې ده چه اګر که دا صحیح ده چه تحریم الخمر د ربا نه مخکښې دې خو کیدې شی چه د تجارت دخمر تحریم وی کوم چه په دې حدیث کښې ذکر موخر وی د تحریم الخمر نه نو هیڅ اشکال پاتې نه شو او دا هم ممکنه ده چه رسول الله ﷺ د تحریم خمر په وخت هم د تحریم د تجارت خبر ورکړې وی او بیا دوباره مکرر آیت نزول ربا نه پس ئې هم د تحریم د تجارت خبر ورکړې وی د تاکید او مبالغې دپاره امام بخاری رحمه الله په ابواب المساجد کښې باب قائم کړو ﴿باب تحريم تجارة الخمر في المسجد﴾ یعنی په جمات کښې د خلقو مخکښې د تجارت خمر حرمت بیانول چه تجارت خمر حرام دې، لکه څنګه چه د نورو څیزونو نصیحت په مساجدو کښې کیږی لهذا في المسجد دا ظرف د تحریم سره متعلق دې نه د تجارت سره، ګینې مطلب به فاسد شی یعنی په جمات کښې د شرابو د تجارت حرام کیدل، نو آیا په غیر د مسجد نه تجارت د خمر حرام نه دې؟، پس د بخاری په حدیث الباب کښې دی چه د نزول د آیات نه پس رسول الله ﷺ مسجد ته تشریف یوړو او بیا ئې د تجارت د خمر د حرمت اعلان اوکړو.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري

[۳۴۹۱] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: الْآيَاتُ الْأَوَاخِرُ فِي الرِّبَا.

د اعمش نه تیر شوي روایت په شان روایت منقول دې البته په دې روایت کښې داسې ذکردي چه د سورة بقرې آخری ایت دسود درحمت په باره کښې نازل شوې دې۔

## بَابٌ فِي بَيْعِ الطَّعَامِ قَبْلَ أَنْ يُسْتَوْفَى

### بیان د غلې خرڅولو مخکښې د قبضې کولو نه

[۳۴۹۲] (۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا، فَلَا يَبِعْهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت ئې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلي دي څوک چه دخوراك څه شي واخلي نودهغه وخته پورې دي دغه شي نه خرڅوی ترڅوچه ئې قبضه کړي نه وي.

﴿عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلاَ يَبِعْهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ ﴾ او د دې نه پس د ابن عمر رضي الله عنهما په بل حدیث کښې داسې دی ﴿ كُنَّا فِي زَمَنِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نَبْتَاعُ الطَّعَامَ فَيَبْعَثُ عَلَيْنَا مَنْ يَأْمُرُنَا بِانْتِقَالِهِ مِنَ الْمَكَانِ الَّذِى ابْتَعْنَاهُ فِيهِ إِلَى مَكَانٍ سِوَاهُ قَبْلَ أَنْ نَبِيعَهُ - يَعْنِى - جُزَافًا ﴾

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷٦۳٦) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/البيوع ۵۱ (۲۱۲٦)، ۵٤ (۲۱۳۳)، ۵۵ (۲۱۳٦)، صحيح مسلم/البيوع ۸ (۱۵۲٦)، سنن النسائي/البيوع ۵۳ (٤۵۹۹)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۷ (۲۲۲٦)، (تحفة الأشراف: ۸۳۲۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البيوع ۱۹ (٤۰)، مسند احمد (۱/۵٦، ٦۳، ۲/۲۳، ٤٦، ۵۹، ٦٤، ۷۳، ۷۹، ۱۰۸، ۱۱۱، ۱۱۳)، سنن الدارمي/البيوع ۳٦ (۲٦۰۲) (صحيح)

[۳۴۹۳] (¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ قَالَ: "كُنَّا فِي زَمَنِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبْتَاعُ الطَّعَامَ، فَيَبْعَثُ عَلَيْنَا مَنْ يَأْمُرُنَا بِانْتِقَالِهِ مِنَ الْمَكَانِ الَّذِي ابْتَعْنَاهُ فِيهِ إِلَى مَكَانٍ سِوَاهُ، قَبْلَ أَنْ نَبِيعَهُ" يَعْنِي جُزَافًا.

د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه مونږ دنبی ﷺ په زمانه کښې دخوراك څيزونه اخستل اونبی ﷺ به مونږ ته يو کس راليږلو او مونږ ته به ئې احکم کولو چه ددې ځائې نه غلې يوسې چرته ته تاسو خستلي دي ودخرڅولونه مخکښې ئې وزن کړئ.

په دې ترجمة الباب او د دې په احاديثو کښې د بيع الطعام قبل الاستيفاء ممانعت دې، استيفاء بمعنى قبض او وصول کول، يعنى که يو سړې د غلې د قسم څه څيز واخلي او د اخستلو نه پس هغه خرڅول غواړي نو هغه له پکار دی چه اول په هغې باندې قبضه اوکړی د هغې نه پس هغه خرڅ کړی، خو د هر يو څيز قبضه او استيفاء د هغه څيز د حال مناسب وی، د بعضو څيزونو قبضه دا ده چه هغه څيز د بل په لاس کښې ورکړې شی او د بعضو څيزونو قبضه په تخليه سره کيږی، يعنى بائع څيز لره د خرڅولو نه پس مشترى ته دا اوائی چه ستا څيز مې دا دې کيخودلې دې ته چه دا د دې ځائې نه کله اوچتول غواړې اوچت ئې کړه، او په بعض صورتونو کښې قبضه په نقل د هغه څيز باندې کيږی يعنى مشترى چه هغه مبيع د کوم ځائې نه اخستلې ده د هغه ځائې نه هغه بل خوا منتقل کړی، او دا هلته کيږی چه له کوم ځائې کښې د غلې بيع جزافا وی يعنى غلې لره د يو ځائې نه بل ځائې ته منتقل کول د بيع جزافا په صورت کښې هم دا د دې قبضه ده لکه چه د باب په حديث ثانی کښې دی او که څيز کيلا يا وزنا خرڅ کړې شی نو هلته د هغې کيل کول يا وزن کول هم دا د هغې قبضه ده.

### د بيع قبل القبض نه نهی په کومو څيزونه کښې ده:

د دې نه پس په دې ځان پوهه کول پکار دی چه دا حکم په طعام کښې خو متفق عليه دې چه د هغې بيع قبل القبض جائز نه ده په ډيرو احاديثو کښې د دې تصريح ده، د طعام نه علاوه به په کومو کومو څيزونو کښې دا حکم جاری کيږی په دې کښې د علماء کرامو اختلاف دې.------په دې کښې څلور اقوال مشهور دی:

۱: د امام شافعي او محمد رحمهما الله په نزد د هر يو څيز حکم هم دا دې ﴿سواء کان من المکيلات او الموزونات، ومن الماکول او المشروب والمنقول وغير المنقول﴾

۲: او د شيخينو امام ابوحنيفة او ابويوسف رحمهما الله په نزد عقار «زمکه» نه علاوه د ټولو منقولاتو دا حکم دې، په دې مذهب کښې صرف د عقار استثناء ده، په خلاف د اول مذهب چه په هغې کښې د يو څيز استثناء هم نشته.

۳: د امام احمد رحمه الله په نزد د ټولو مکيلاتو او موزوناتو هم دا حکم دې، د دې نه علاوه د باقی څيزونو دا حکم نه دې.

۴: د امام مالک رحمه الله په نزد دا حکم صرف د ماکول او مشروب دې.

¹): صحيح مسلم/البيوع ۸ (۱۵۲۷)، سنن النسائي/البيوع ۵۵ (٤٦٠٩)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۱ (۲۲۲۹)، (تحفة الأشراف: ۸۳۷۱)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ٥٤ (۲۱۳۱)، ٥٦ (۲۱۳۷)، ۷۲ (۲۱٦٦)، موطا امام مالك/البيوع ۱۹ (٤۲)، مسند احمد (۱/٥٦، ۲/۱۱۲، ۷، ۱٥، ۲۱، ٤۰، ٥۳، ۱٤۲، ۱٥۰، ۱٥۷) (صحيح)

## د امام مالک او جمهورو یو بل اختلاف:

د دې نه پس دلته یو اختلاف بل دې په هغې باندې هم ځان پوهول پکار دی هغه دا چه د جمهور علماء کرامو او ائمة ثلاث په نزد بیع طعام مطلقا قبل القبض جائز نه ده، یعنی که هغه جزافا اخستلې شوې وی او که کیلا، او د امام مالک رحمه الله په مشهور قول کښې په جزاف او غیر جزاف کښې فرق دی هغه دا چه هغه غله چه جزافا اخستلې شوې وی د هغې بیع قبل القبض جائز ده او کوم چه کیلا اخستلې شوې وی د هغې بیع قبل القبض جائز نه ده او د مشتری دې څیز لره کیل کول هم دا د دې قبضه ده، د امام مالک رحمه الله استدلال د باب د څلورم حدیث نه دې چه د هغې الفاظ دا دی

**قوله:** ﴿ نهى ان يبيع احد طعاما اشتراه بكيل حتى يستوفيه ﴾ یعنی رسول الله ﷺ منع اوفرمائیله د دې خبرې نه چه څوک هغه طعام لره کوم چه هغه کیلا اخستلې وی هغه د دې بیع د استیفاء نه مخکښې اوکړی په دې حدیث کښې د اشتراه بکیل قید ذکر شوې دې، جمهور دا وائی ﴿ اشتراه بكيل ﴾ دا قید احترازی نه دې، چه د هغې قرینه د باب حدیث اول دې کوم چه مطلق دې، هم دغه شان د باب په حدیث ثانی او ثالث کښې سره د بیع جزاف د تصریح نه د هغې د منتقل کیدو حکم کړې شوې دې، او هم دا نقل خو استیفاء ده كما تقدم قريبا ان قبض كل شئ بحسبه.

حديث ابن عمر رضي الله عنهما الاول اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة، والثاني اخرجه مسلم والنسائي، والثالث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة بنحوه، والرابع اخرجه النسائي، قاله المنذري.

[۳۴۹۴](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، أَخْبَرَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانُوا يَتَبَايَعُونَ الطَّعَامَ جُزَافًا بِأَعْلَى السُّوقِ، فَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَبِيعُوهُ حَتَّى يَنْقُلُوهُ".

د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه د بازار په برنی حصه کښې به خلقو دغلې ډیرې اخستل نونبی ﷺ ددې خرڅولونه منع اوفرمائیله ترڅوچه داغله ددې ځائې نه بل ځائې ته نقل نکړې شی ددې دپاره چه داولې خریدار په قبضه کښې راشی).

[۳۴۹۵](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا عَمْرٌو، عَنِ الْمُنْذِرِ بْنِ عُبَيْدٍ الْمَدِينِيِّ، أَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يَبِيعَ أَحَدٌ طَعَامًا اشْتَرَاهُ بِكَيْلٍ حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ ددینه منع فرمائیلې ده چه څوك دې غله نه خرڅوی کومه چه یې په ناپ یاتول باندې اخستلې وي ترڅوچه ده قبضه کړې نه وي.

(۱): صحيح البخاري/ البيوع ۷۲ (۲۱۶۷)، سنن النسائي/ البيوع ۵۵ (۴۶۱۰)، (تحفة الأشراف: ۸۱۵۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/ ۱۵، ۲۱) (صحيح)

(۲): سنن النسائي/ البيوع ۵۴ (۴۶۰۸)، (تحفة الأشراف: ۷۳۷۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/ ۱۱۱) (صحيح)

[۳۴۹۶] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ، وَعُثْمَانُ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِعْهُ حَتَّى يَكْتَالَهُ"، زَادَ أَبُو بَكْرٍ، قَالَ: قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ: لِمَ؟ قَالَ أَلَا تَرَى أَنَّهُمْ يَتَبَايَعُونَ بِالذَّهَبِ وَالطَّعَامُ مُرَجًّى؟.

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلي دي: څوك چه غله واخلي نوهغه وخته پورې دې ئې نه خرڅوی ترڅوچه ده پيمانه کړې نه وي، ابوبکر دا اضافه کړيده فرمائي چه ابن عباس ته مې اووئيل چه دا ممانعت په څه وجه باندې دې؟ هغه اوفرمائيل خلقو به دسرو زرو په بدل کښې غله خرڅوله اوحالانکه دوی ته به ددې غلې دملاويد وامېد هم وو.

**قوله**: ﴿قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ لِمَ قَالَ أَلَا تَرَى أَنَّهُمْ يَتَبَايَعُونَ بِالذَّهَبِ وَالطَّعَامُ مُرَجَّاء﴾ (۲)

ابن عباس رضي الله عنهما چه کله د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا حديث نقل کړو چه کوم انسان غله واخلي نو ترڅو پورې چه هغه کيل نه کړی د بل په لاس باندې دې هغه نه خرڅوی نو شاګرد يعنی طاؤس رحمه الله د هغوی نه تپوس اوکړو چه داسې ولې ده؟ نو هغوی د دې منع وجه په يو خاص مثال سره بيان اوفرمائيله چه آيا ته ګورې نه چه ډير خلق په درهم او دينار سره اخلي غله حال دا چه هغه غله موخر او موجل وی، هغوی دا مثال د بيع سلم ورکړو چه په هغې کښې مبيع موجل وی، د ابن عباس رضي الله عنهما د جواب حاصل دا دې چه په قبل القبض بيع کولو کښې ربا مونډلې شی لکه چه يو سړی د بل سره بيع سلم اوکړه يعنی د يو دينار په بدل کښې ئې قفيز د حنطة واخلی نو مشتری د قبض کولو نه مخکښې هغه په دوه ديناره باندې د چا په لاس باندې خرڅ کړو او وې وئيل چه د فلانی ځائې نه ئې اوچت کړه نو اوس صورت حال دا شو چه بيع الدينار بالدينارين شوه کوم چه سراسر ربا ده ځکه چه مشتری د هغه غلې شکل هم نه دې ليدلې بلکه نتيجه دا شوه چه يو دينار لاړو او د هغې په بدل کښې دوه راغلل، او د دې معاملې حرمت ښکاره او بديهی دې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي، وابن ماجة بنحوه، قاله المنذري

[۳۴۹۷] (۳) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، وَهَذَا لَفْظُ مُسَدَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا اشْتَرَى أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلَا يَبِعْهُ، حَتَّى يَقْبِضَهُ"، قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ: حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ، زَادَ مُسَدَّدٌ قَالَ: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَأَحْسِبُ أَنَّ كُلَّ شَيْءٍ مِثْلُ الطَّعَامِ.

---

[۱]): صحيح البخاري/البيوع ٥٤ (۲۱۳۲)، ٥٥ (۲۱۳۵)، صحيح مسلم/البيوع ۸ (۱۵۲۵)، سنن النسائي/البيوع ٥۳ (٤٦۰۱)، (تحفة الأشراف: ۵۷۰۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۱۵، ۲۲۱، ۲۵۱، ۲۷۰، ۲۸۵، ۳۵٦، ۳۵۷، ۳٦۸، ۳٦۹) (صحيح)

[۲]) د دې لفظ په ضبط کښې نسخې مختلف دی په بعضو کښې خو داسې دی کوم چه مونږ اختيار کړو يعنی په تخفيف د جيم سره او روستو د هغې نه همزه، وفي بعض النسخ بدون همزة مرجا، وفي بعض النسخ مرجى بتثقيل الجيم وبعدها همزة، وفي بعض النسخ مرجى، وفي النهاية اي موجلا موخرا ويهمز ولا يهمز، وفي كتاب الخطابي على اختلاف نسخه مرجي بالتشديد للمبالغة (كذا في تعليق الشيخ محمد عوامه)

[۳]): صحيح البخاري/ البيوع ٥٥ (۲۱۳٥)، صحيح مسلم/ البيوع ۸ (۱۵۲۵)، سنن الترمذي/ البيوع ٥٦ (۱۲۹۱)، سنن النسائي/ البيوع ٥۳ (٤٦۰۲)، سنن ابن ماجه/ التجارات ۳۷ (۲۲۲۷)، (تحفة الأشراف: ۵۷۳٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۱۵، ۲۲۱، ۲۷۰، ۲۸۵) (صحيح)

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلي دي: کله چه يوکس په تاسوکښي غله واخلي نوهغه دي نه خرڅوی ترڅوچه دده په قبضه کښې نه وي راغلي اودقبضي ذکر سليمان بن حرب هم په خپل روايت کښې کړي دي، اومسدد په دې روايت کښې دا اضافه کړې ده چه ابن عباس رضی الله عنهما ووئيل زما خيال دي چه هريوخوراکي څيزد طعام په شان دي.

**قوله:** ﴿ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَأَحْسِبُ أَنَّ كُلَّ شَيْءٍ مِثْلُ الطَّعَامِ ﴾

د دې نه د ابن عباس رضی الله عنهما مذهب معلوم شو چه د هغوی په نزد دا حکم بالکل عام دې، وړاندې د دې نه پس په دې باب کښې دوه روايتونه نور دی چه د هغې مفهوم ښکاره دې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي، وابن ماجة بنحوه قاله المنذري.

[۳۴۹۶](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّاسَ يُضْرَبُونَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اشْتَرَوْا الطَّعَامَ جِزَافًا، أَنْ يَبِيعُوهُ حَتَّى يُبْلِغَهُ إِلَى رَحْلِهِ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه دنبی ﷺ په زمانه کښې خلق اوليدل چه وهلي کيدل به دغلې دډيري داخستوپه وجه باندې کوم چه به دوی کورته دوړلونه مخکښې خرڅول.

[۳۴۹۹](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ خَالِدٍ الْوَهْبِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "ابْتَعْتُ زَيْتًا فِي السُّوقِ فَلَمَّا اسْتَوْجَبْتُهُ لِنَفْسِي، لَقِيَنِي رَجُلٌ فَأَعْطَانِي بِهِ رِبْحًا حَسَنًا، فَأَرَدْتُ أَنْ أَضْرِبَ عَلَى يَدِهِ، فَأَخَذَ رَجُلٌ مِنْ خَلْفِي بِذِرَاعِي فَالْتَفَتُّ، فَإِذَا زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ، فَقَالَ: لَا تَبِعْهُ حَيْثُ ابْتَعْتَهُ حَتَّى تَحُوزَهُ إِلَى رَحْلِكَ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ تُبَاعَ السِّلَعُ حَيْثُ تُبْتَاعُ حَتَّى يَحُوزَهَا التُّجَّارُ إِلَى رِحَالِهِمْ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه په بازارکښې مې تيل واخستل کله چه ما دا معامله مکمل کړه نويوکس راسره ملا وشواوما په دې کښې ډيره ګټه کړي وه نوما دا اراده وکړله چه دده سره معامله طې کړم يعنی په دغه خريدار تيل خرڅ کړم نو په دې وخت کښې يوکس در وستونه زما لاسونه ونيول ماچه ورته وکتل نوهغه زيد بن ثابت رضی الله عنه وو هغه راته ووئيل چه ترڅوچه داغله ددې ځائې نه خپل کورته وړې نه وي نودامه خرڅوه ځکه چه نبی ﷺ ددينه ممانعت فرمائيلی دی يعنی چرته چه کوم شي واخستل شي نو هلته ئې خرڅول نه دی پکارترڅوچه تاجردا مال خپل ځائې ته وړي نه وی.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُولُ فِي الْبَيْعِ لَا خِلَابَةَ

**کله چه د خرڅولو په وخت کښې څوک ووائی چه په دې کښې دوکه نشته نو ددې څه حکم دې؟**

خلابة بمعنی خديعه او دهوکه، يعنی يو سړې د يو څيز د بيع په وخت يا د شراء په وخت داسې اووائی چه ګوره د دهوکې او د نقصان خبره نه دی کيدل پکار، يعنی په قيمت کښې

(١): صحيح البخاري/ المحاربين ٢٩ (٦٨٥٢)، صحيح مسلم/ البيوع ٨ (١٥٢٧)، سنن النسائي/ البيوع ٥٥ (٤٦١٢)، (تحفة الأشراف: ٦٩٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧/٢، ١٥٠) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو دواد، (تحفة الأشراف: ٢٧٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩١/٥) (حسن)

زيات فرق نه دی کيدل پکار (ځکه چه زه د اخستلو او خرڅولو زياته تجربه نه لرم)

[۳۵۰۰] ([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَجُلًا ذَكَرَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ يُخْدَعُ فِي الْبَيْعِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ: لَا خِلَابَةَ، فَكَانَ الرَّجُلُ إِذَا بَايَعَ يَقُولُ لَا خِلَابَةَ".

دعبدالله بن عمرنه روايت دي فرمائی چه يو کس نبی عليه السلام ته ددې خبرې ذکر وکړو چه خلق ماته دخريد فروخت په وخت کښې دوکه راکوي نبی عليه السلام ورته او فرمائيل کله چه سودا کوې نو داسې به وائی لَاخِلَابَةَ يعنی دوکه به نه وي نوهغه چه به کله خريد وفروخت کولو نودا کلمات به ئې وئيل يعنی په دې بيع کښې به دوکه نه وي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَجُلاً ذَكَرَ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ يُخْدَعُ فِي الْبَيْعِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ لاَ خِلاَبَةَ ﴾

## شرح الحديث :

د دې رجل نه مراد هغه صحابی رضی الله عنه دې چه د هغه نوم حبان بن منقذ دې، هغوی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خپل حال عرض کړو چه زه په بيع کښې دهوکه خورم، په دې روايت کښې اختصار دې، په روستو روايت کښې کوم چه د انس رضی الله عنه نه مروی دې په هغې کښې داسې دی چه يو سړې کوم چه ضعيف العقل وو هغه به اخستل او خرڅول کول، يعنی د اخستلو او خرڅولو شوق ئې خو وو، دکانونو ته تلو سره به ئې هلته اخستل خرڅول کول خو په دې معامله کښې ناپوهه وو نو د هغوی د کور خلق د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او خپله پريشانی ئې ورته ښکاره کړه او دا عرض ئې اوکړو چه يا رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه باندې بنديز اولګوئ چه بيا د چا سره اخستل او خرڅول اونکړې شی رسول الله صلی الله علیه وسلم د کور والو په شکايت باندې هغه راطلب اوفرمائيلو، او هغه ئې د بيع او شراء نه منع کړو، هغوی اووې يا رسول الله صلی الله علیه وسلم مانه صبر نه کيږی بغير د بيع نه، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل ښه څه که ته بيع نه شې پريخودلې نو ﴿ فقل هاء وهاء ولا خلابة ﴾ نو بيا ته د بيع او شراء په وخت بائع يا مشتری ته ځيز د اخستلو په وخت يا ورکولو په وخت داسې وايه (چه واخله روره ثمن يا مبيع) او ګوره د دهوکې خبره نه دی کيدل پکار.

## الكلام على الحديث من حيث الفقه وبيان مذاهب الائمة فى خيار المغبون

د دې حديث نه امام احمد او بعض علماء کرامو رحمهم الله دا استنباط کړې دې چه که يو سړې د بيع او شراء په وخت دا لفظ اووائی يعنی ﴿ لا خلابة ﴾ نو د هغې فائده به دا وی چه که په دې بيع کښې غبن بيا موندلې شو نو خيار رد به حاصل وی، جمهور علماء کرام چه پکښې احناف او شوافع هم دی د مغبون دپاره د خيار غبن قائل نه دی، او د دې حديث جواب هغوی دا ورکړې دې ﴿ بانه واقعة حال لا عموم لها ﴾ قال ابن العربی انه کله مخصوص بصاحبه لا

[1] ): صحيح البخاري/البيوع ٤٨ (٢١١٧)، الاستقراض ١٩ (٢٤٠٧)، الخصومات ٣ (٢٤١٤)، الحيل ٧ (٦٩٦٤)، سنن النسائي/البيوع ١٠ (٤٤٨٩)، (تحفة الأشراف: ٧٢٢٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البيوع ١٢ (١٥٣٣)، موطا امام مالك/البيوع ٤٦ (٩٨)، مسند احمد (٢/٨٠، ١١٦، ١٢٩، ١٣٠) (صحيح)

يتعدى الى غيره، او د امام مالك رحمه الله قول اصح هم دا دې، او دويم قول د هغوی دا دې ﴿ له الخيار بشرط ان يبلغ الغبن ثلث القيمة ﴾ چه د مغبون دپاره به خيار غبن وی چه د هغې په وجه بانډې هغه دا بيع فسخ کولې شی په دې شرط چه د دې غبن مقدار ثلث قيمت ته رسيږی، که د دې نه کم وی نو نشته، کذا فی هامش الترمذی، او بذل کښې نقلا عن الخطابی، د امام مالک رحمه الله قول ثې دا ليکلې دې چه په کوم صورت کښې مشتری صاحب بصيرت نه وی او د هغه په بيع کښې غبن اوموندلې شی نو هغه ته به خيار حاصل وی او په بذل کښې د خطابی نه د امام احمد رحمه الله قول هغه نقل کړې دې کوم چه پورته مونږ ذکر کړو ﴿ ان الامام احمد قال اذا بايعه فقال لا خلابة فله الرد ﴾ پس د کلام حاصل دا راووتلو چه د اکثر علماء کرامو او داحنافو او شوافعو په نزد په دې حديث بانډې عمل نشته هغوی دا حديث د صاحب واقعه سره خاص منی، او امام احمد او امام مالک رحمه الله په احد القولين کښې په دې حديث بانډې عمل کوی، مونږ د خپلو بعضو استاذانو نه اوريدلې دی د دې حديث په توجيه کښې .چه په دې حديث کښې کوم ځائې تصريح ده د دې خبرې چه د ﴿ لا خلابة ﴾ وئيلو نه پس خيار غبن حاصليږی بلکه اصل خبره دا ده چه د رسول الله ﷺ زمانه د خير زمانه وه په خلقو کښې د يو بل دپاره همدردی وه په دې وجه رسول الله ﷺ هغه صحابی ته دا مشوره ورکړه چه که ته د بيع نه نه شی منع کيدې نو کم از کم د بيع په وخت صرف دومره وايه چه تاسره معامله کونکې ستا لحاظ اوساتی او بس او که هم دا اووئيلې شی چه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چه په داسې وئيلوسره به تاته خيار غبن حاصل شی نوبيا به هم هغه جواب وی کوم چه پورته د شارحينونه نقل کړې شوې دې چه داپه هغه صحابی پورې مخصوص دې. والله تعالی اعلم.

[۳۵۰۱](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَرُزِّيُّ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ أَبُو ثَوْرٍ الْكَلْبِيُّ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، قَالَ مُحَمَّدٌ عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَطَاءٍ، أَخْبَرَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ رَجُلًا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَبْتَاعُ وَفِي عُقْدَتِهِ ضَعْفٌ، فَأَتَى أَهْلُهُ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، احْجُرْ عَلَى فُلَانٍ فَإِنَّهُ يَبْتَاعُ وَفِي عُقْدَتِهِ ضَعْفٌ، فَدَعَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَهَاهُ عَنِ الْبَيْعِ، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، إِنِّي لَا أَصْبِرُ عَنِ الْبَيْعِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنْ كُنْتَ غَيْرَ تَارِكِ الْبَيْعِ، فَقُلْ: هَاءَ، وَهَاءَ، وَلَا خِلَابَةَ"، قَالَ أَبُو ثَوْرٍ: عَنْ سَعِيدٍ.

دنبی عليه السلام په زمانه کښې اخستل خرڅول کول دده په دماغو کښې فرق وو دده رشته داران دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شول او عرض ئې وکړو اې دالله رسوله په ده بانډې پابندي ولګوئ ددې دپاره چه دده کوم لين دين درست نه وي (يعنی خلقو ته خبر ورکړه چه دده سره لين دين نه کوي)، ځکه چه دې کاروبار کوي اودده په دماغو کښې فرق دې، ده عرض اوکړو اې دالله رسوله بغير د کاروبارنه زما ګذاره نه کيږي نوپه دې وخت کښې ورته نبی عليه السلام اوفرمائيل که چرې ته اخستل خرڅول نشي پريخودل نودبيع په وخت کښې داسې

(1): سنن الترمذي/البيوع ۲۸ (۱۲۵۰)، سنن النسائي/البيوع ۱۰ (۴۴۹۰)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۲۴ (۲۳۵۴)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۲۱۷) (صحيح)

وایه خبردار په دې کښې به دوکه نه وي.
د دې حديث په ضمن کښې یو مسئله بله هم اختلافی ده یعنی حجر علی الكبير السفيه... د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د اسباب حجر انحصار په درې څیزونو باندې دې، جنون، صبا او رق، فلا حجر عنده على الكبير السفيه، یعنی کوم سړې چه سره د عاقل بالغ کیدو په معاملاتو کښې ناپوهه وی او د ناپوهئ د وجې نه خپل مال ضائع کوی او خرابوی نو په هغه باندې بندیز لګول د ائمه ثلاث او صاحبینو په نزد جائز دی، او د امام صاحب په نزد جائز نه دی، فتوی د صاحبینو په قول باندې ده د دې حدیث نه د دواړو مسلکونو تائید کیږی ﴿ فنهاه عن البيع ﴾ سره د قائلینو تائید کیږی، او د ﴿ ان كنت غير تارک ﴾ سره د امام صاحب رحمه الله تائید کیږی، حدیث ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، وحدیث انس رضی الله عنه اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْعُرْبَانِ

### دبیع عربان بیان

عربان په ضمه د عین او سکون د راء سره او دې ته عربون هم وائی، د دې تفسیر خپله په کتاب کښې د امام مالک رحمه الله نه نقل دې په حدیث الباب کښې دی ﴿ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ بَيْعِ الْعُرْبَانِ. قَالَ مَالِكٌ وَذَلِكَ - فِيمَا نَرَى وَاللَّهُ أَعْلَمُ ﴾

[۳۵۰۲](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ أَنَّهُ بَلَغَهُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُ قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْعُرْبَانِ"، قَالَ مَالِكٌ: وَذَلِكَ فِيمَا نَرَى وَاللَّهُ أَعْلَمُ أَنْ يَشْتَرِيَ الرَّجُلُ الْعَبْدَ أَوْ يَتَكَارَى الدَّابَّةَ، ثُمَّ يَقُولُ: أُعْطِيكَ دِينَارًا عَلَى أَنِّي إِنْ تَرَكْتُ السِّلْعَةَ أَوِ الْكِرَاءَ فَمَا أَعْطَيْتُكَ لَكَ.

عمرو بن شعیب د خپل پلار نه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده دبیع عربان نه، مالك راوی وئیلی دی دعربان معنی داده چه انسان یوغلام بایوه وینځه واخلي یاخرڅونکې داسې اووائي زه به تاته په دې شرط باندې یودینار درکوم چه زه داغلام یاوینځه واخلم دغه دینار به ددې په قیمت کښې وي یاداچه زه به دې څاروي سورلي وکړم نودا دینار به په کرایه کښې حسابیږي که چرې زه داغلام با وینځه واپس کوم او یا په څاروي باندې سور نه شوم نودا دینار به تاته مفت شي اوزه ئې واپس نه اخلم.

### د بیع عربان تعریف او بیان د مذاهبو:

بیع عربان چه د هغې نه په حدیث کښې منع کړې شوې ده امام مالک رحمه الله د هغې تفسیر فرمائی چه عربان دا دې چه یو سړې د بل نه غلام واخلی یا د هغه نه څاروي په کرایه باندې واخلی او د دې بیع یا اجارې په وخت مشتری یا مستاجر ته داسې اووائی چه زه تاته دا دینار درکوم په داسې طریقه چه که ما دا څیز پریخودلو او په بیع مې وانخستلو یا مې په

(۱): سنن ابن ماجه/التجارات ۲۲ (۲۱۹۲)، (تحفة الأشراف: ۸۸۲۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ البيوع ۱ (۱)، مسند احمد (۱۸۳/۲) (ضعیف)

کرایه وانخستلو نو بیا چه ما څه تاته درکړي دی هغه ستا دپاره دی او که په بیع مې واخستلو یا په کرایه نو بیا به دا په دینار د ثمن او اجرت کښې شماریږی، بیع عربان د جمهور علماء او ائمة ثلاث په نزد ناجائز ده، په ائمة کښې امام احمد او په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې عمرو او ابن عمر رضي الله عنه نه د دې اباحت منقول دې، په بذل کښې د دې ټول هر څه لیکلو نه پس په آخر کښې دا دی ﴿قلت ویرد العربان اذا ترک العقد علی کل حال بالاتفاق﴾ یعنی هغه دینار کوم چه دې مشتری یا مستاجر مخکښې ورکړې وو هغه به بهر حال واپس کولې شی بالاتفاق، یعنی د هغوی په نزد هم کوم چه د بیع عربان د جواز قائل دی، والله تعالی اعلم. قال الخطابی وقد اختلف الناس فی جواز هذا البیع فابطله مالک والشافعی للخبر ولما فیه من الشرط الفاسد والغرر، ویدخل ذلک فی اکل المال بالباطل، وابطله اصحاب الرائی ایضا، وقد روی عن ابن عمر وعمر انه اجاز هذا البیع، وما احمد بن حنبل الی القول باجازته. الی آخر ما فی البذل. امام احمد رحمه الله د دې حدیث تضعیف کړې دې چه دا منقطع دې، خو علامه زرقانی دا تضعیف رد کړې دې.

دا باب په کتب سته کښې د ابوداؤد نه علاوه صرف په ابن ماجة کښې دې او هغوی هم دا د ابوداؤد والا حدیث په هغې کښې ذکر کړې دې ﴿یعنی عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده﴾ او امام ابن ماجة د عربان تفسیرهم ذکر کړې دې ﴿قال ابو عبدالله العربان ان یشتری الرجل دابة بمئة دینار فیعطیه دینارین عربونا فیقول ان لم اشتر الدابة فالدیناران لک ﻫ﴾ او امام مالک رحمه الله په موطاء کښې په کتاب البیوع کښې شروع هم ددې باب نه کړې ده ﴿باب ماجاء فی بیع العربان﴾ وفی الاوجز العربان بضم العین وسکون الراء ویقال عربون وعربون بالفتح والضم، وبالهمزة (یعنی اربون) بدل العین فی الثلاث والراء ساکن فی الکل – الی آخر ما ذکر من اختلاف اللغات وغیره.

والحدیث اخرجه ابن ماجة وهذا منقطع، واسنده ابن ماجة وفیه حبیب کاتب الامام مالك وعبدالله بن عامر الاسلمی ولایحتج بهما، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَبِيعُ مَا لَيْسَ عِنْدَهُ

### کوم شی چه ستا سره موجود نه وی د هغې خرڅول منع دی

[۳۵۰۳] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، يَأْتِينِي الرَّجُلُ فَيُرِيدُ مِنِّي الْبَيْعَ لَيْسَ عِنْدِي أَفَأَبْتَاعُهُ لَهُ مِنَ السُّوقِ. فَقَالَ: لَا تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ".

دحکیم بن حزام نه روایت دې فرمائی چه ما عرض وکړو اې د الله رسوله که چرې ماته یو کس راشي او هغه زمانه داسې شې اخلې کوم چه زما سره موجود نه وې نو که چرې هغه شی زه دده دپاره په بازار کښې واخلم او ورته ئې راوړم نو ددې څه حکم دې نبی ﷺ او فرمائیل تاسره چه کوم شې موجود نه وې هغه مه خرڅوه.

(۱): سنن الترمذي/البیوع ۱۹ (۱۲۳۲)، سنن النسائي/البیوع ۵۸ (٤٦١٥)، سنن ابن ماجه/التجارات ۲۰ (۲۱۸۷)، (تحفة الأشراف: ۳٤۳٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/٤۰۲، ٤۳٤) (صحیح)

﴿ عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ يَا رَسُولَ اللهِ يَأْتِينِي الرَّجُلُ فَيُرِيدُ مِنِّي الْبَيْعَ لَيْسَ عِنْدِي أَفَأَبْتَاعُهُ لَهُ مِنَ السُّوقِ فَقَالَ « لاَ تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ ﴾

د دې حديث په مفهوم کښې بيع العبد الآبق او بيع الشئ قبل القبض او بيع مال غير بغير اذنه ټول داخل دی خو په دې آخری صورت کښې يعنی بيع فضولی کښې د علماء کرامو اختلاف دې کوم چه مخکښې تير شوې دې، د حديث مفهوم دا دې چه حکيم بن حزام رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه بعض خلق ماته راځی او زما نه داسې څيز اخستل غواړی کوم چه ما سره نه وی نو آيا په دې صورت کښې زه د هغوی سره بيع کولې شم، يعنی ړومبی د هغه څيز بيع اوکړم او بيا ئې روستو د بازار نه واخلم او هغه ته ئې ورکړم، رسول الله ﷺ د دې نه منع اوفرمائيله.

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجة.

[۳۵۰۴](1) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ أَبِيهِ حَتَّى ذَكَرَ، عَبْدَ اللهِ بْنَ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحِلُّ سَلَفٌ وَبَيْعٌ، وَلَا شَرْطَانِ فِي بَيْعٍ، وَلَا رِبْحُ مَا لَمْ تَضْمَنْ، وَلَا بَيْعُ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ".

د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی قرض اوبيع جائز نه دي اونه په يوه نيع کښې دوه شرطونه لګول جائز دي اونه په هغه څيز کښې ګټه کول جائز دي دکوم چه ذمه واري اخستلې شوي نه وي اونه دهغه څيز خرڅول جائزدي کوم چه ستاسره موجود نه وي.

**قوله:** ﴿لاَ يَحِلُّ سَلَفٌ وَبَيْعٌ وَلاَ شَرْطَانِ فِي بَيْعٍ وَلاَ رِبْحُ مَا لَمْ تَضْمَنْ وَلاَ بَيْعُ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ ﴾

**شرح الحديث:**

په دې حديث کښې څلور اجزاء ذکر دی چه د هغې شرح دا ده ۱: حلال نه دې بيع او قرض، يعنې بيع په شرط د قرض جائز نه ده، يا مطلب دا چه بيع په لاس د مقروض جائز نه ده، ځکه چه کله د مقروض سره بيع کولې شی نو مشتری به د قرض په رعايت کښې د ثمن کمې نه کوی بلکه کيدې شی چه دا کار په ګران قيمت باندې واخلی، حال دا چه ضابطه دا ده ﴿ کل قرض جر نفعا فهو ربا ﴾ ﴿ ولا شرطان فی بيع ﴾ د دې مفهوم د جمهورو په نزد خو دا دې ﴿ لا بيعان فی بيع ﴾ لکه چه په حديث کښې دی ﴿ نهی عن بيعتين فی بيعة ﴾ او امام احمد رحمه الله دا حديث په خپل ظاهر باندې کيخودلې دې يعنی دا چه په يو بيع کښې دوه شرطونه لګول جائز نه دی، او که يو شرط وی نو هغه جائز دې، پس په ترمذی کښې دی ﴿ قال احمد : اذا قال ابيعک هذا الثوب وعلی خياطته وقصارته فهذا من نحو شرطين فی بيع، واذا قال ابيعکه وعلی خياطته فلا باس به، او قال ابيعکه وعلی قصارته فلا باس به انما هو شرط واحد، قال اسحاق کما قال ﴾ يعنی که يو سړې د چا په لاس باندې يو کپړه خرڅه کړی او بائع د خرڅولو په وخت په خپله ذمه دوه

(1): سنن الترمذي/البيوع ۱۹ (۱۲۳٤)، سنن النسائي/البيوع ٦۰ (٤٦۲٥)، سنن ابن ماجه/التجارات ۲۰ (۲۱۸۸)، (تحفة الأشراف: ۸٦٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۷٤/۲، ۱۷۸، ۲۰٥) (حسن صحيح)

شرطونه اولګوی چه زما په ذمه د دې ګنډل هم دی او وينځل هم نو دا صورت خو ناجائز دې او که د بيع ثوب په وخت صرف د خياطت يا صرف د قصارت شرط اولګوی نو په دې کښې هيڅ باک نشته دا شرط واحد دې او په حديث کښې ممانعت د شرطين دې، جمهور د دې په جواب کښې دا وائی چه هر هغه شرط کوم چه د مقتضاء د عقد خلاف وی د هغې لګول جائز نه دی، مفسد د بيع دې ځکه چه په بل حديث کښې نهى عن بيع وشرط ۳: او د دې حديث دريم جزء دا دې چه کوم څيز د انسان په ضمان کښې داخل نه وی په هغې سره ربح حاصلول جائز نه دی، لکه بيع قبل القبض ۴: څلورم جزء هم هغه دې کوم چه په ترجمة الباب کښې مذکور دې چه د هغې مثال تير شوې دې. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری

## بَاب فِي شَرْطٍ فِي بَيْعٍ

### په بيع کښې د شرط لګولو بيان

د مصنف رحمه الله غرض په بيع کښې د شرط واحد جواز لره بيانول دی لکه چه د امام احمد رحمه الله مذهب دې او مصنف رحمه الله هم حنبلی دې په دې باب کښې مصنف رحمه الله د جابر رضي الله عنه د شراء جمل والا روايت ذکر کړې دې چه په هغې کښې دی. ﴿واشترطت حملانه الى اهلى﴾.

[۳۵۰۵](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ، عَنْ زَكَرِيَّا، حَدَّثَنَا عَامِرٌ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: بِعْتُهُ يَعْنِي بَعِيرَهُ، مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاشْتَرَطْتُ حُمْلَانَهُ إِلَى أَهْلِي، قَالَ فِي آخِرِهِ: "تُرَانِي إِنَّمَا مَاكَسْتُكَ لِأَذْهَبَ بِجَمَلِكَ خُذْ جَمَلَكَ وَثَمَنَهُ فَهُمَا لَكَ".

دجابر بن عبد الله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه ما په نبی عليه السلام باندې خپل اوښ خرڅ کړو اودا شرط مې ورباندې ولګوو چه زه به ورباندې سوريږم اودخپل کوره پورې به په دې باندې خپل بار وړم اوبيا ئې واقعه بيان کړه، په اخرکښې ورته نبی عليه السلام اوفرمائيل ايا تاته معلومه ده چه زه تاداوس په اغستلو کښې په دې وجه، باندې تنمل کوم چه ستا اوښ بوځم، لاړ شه خپل اوښ بوځه اوددې قيمت هم واخله دا دواړه ستاشو.

### د جابر رضي الله عنه د شراء جمل والا حديث:

جابر رضي الله عنه فرمائی چه ما په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې اوښ خرڅ کړو او ما د هغوی سره په دې اوښ باندې کور ته د تلو پورې په هغې باندې د سوريدو شرط اولګولو، دا شرط لکه چه اوس پورته ذکر شو د امام احمد رحمه الله په نزد مطلقا جائز دی او د شوافعو او د احنافو په نزد مطلقا ناجائز دې او وعند مالک الفرق بين المکان القريب والبعيد، يعنی د مختصر شان سفر قيد خو لګول جائز دی د هغوی په نزد، د اوږد سفر شرط لګول ناجائز دی، د احنافو او شوافعو د طرف نه د دې حديث جواب دا دې چه د دې قصې د رواياتو الفاظ مختلف راغلی دی په يو روايت کښې دی ﴿افقرنی ظهره﴾ يعنی رسول الله صلى الله عليه وسلم دا اوښ د سوال په

(١): صحيح البخاري/البيوع ٣٤ (٢٠٩٧)، الاستقراض ١ (٢٣٨٥)، ١٨ (٢٤٠٦)، المظالم ٢٦ (٢٤٧٠)، الشروط ٤ (٢٧١٨)، الجهاد ٤٩ (٢٨٦١)، ١١٣ (٢٩٦٧)، صحيح مسلم/البيوع ٤٢ (٧١٥)، الرضاع ١٦ (٧١٥)، سنن الترمذي/البيوع ٣٠ (١٢٥٣)، سنن النسائي/البيوع ٧٥ (٤٦٤١)، سنن ابن ماجه/التجارات ٢٩ (٢٢٠٥)، (تحفة الأشراف: ٢٣٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٩/٣، ٣٩٢) (صحيح)

طريقه باندې ماته د مدينې منورې پورې د رسيدو دپاره راکړې وو. د دې نه معلوميږي چه دلته په صلب عقد کښې هيڅ شرط نشته بلکه د سره شرط او نه. رسول الله ﷺ اوښ په سوال باندې ورکړې وو، قال في آخره ﴿ ترانی انما ماکستک لاذهب بجملک خذ جملک ولمنه فهما لک ﴾ مصنف رحمه الله وائي چه د دې حديث په آخر کښې دا دی چه رسول الله ﷺ جابر رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه آيا ستا حال زما په باره کښې دا دې چه ما ستا نه د اوښ اخستلو په وخت په قيمت کښې کمې په دې وجه کړې وو چه په کم قيمت باندې ستا اوښ واخلم (نه داسې نه وه بلکه) زه خپل اوښ دې هم بوځه، او د هغې ثمن هم، دواړه مونږ تاته درکړې، مصنف رحمه الله د خپل عادت مطابق دا دلته مختصرا بيان کړو، په صحيح بخاری کښې دا حديث په ډير کرته راغلې دې چرته مختصر او چرته مطول، په کتاب الشروط کښې په دې حديث باندې هغوی ﴿ باب اذا اشترط البائع ظهر الدابة الى مکان مسمى جاز ﴾ ترجمه قائم کړې ده او هلته ئې چه کوم حديث ذکر کړې دې په هغې کښې داسې دی چه زه په غزوه تبوک کښې د رسول الله ﷺ سره په داسې اوښ باندې سور روان اوم چه ستړې شوې وو. رسول الله ﷺ چه کله زما خوا کښې تير شو نو هغوی دا اوښ يو ګزار اووهلو او دعا ئې هم اوفرمائيله چه په هغې سره هغه ډير تيز روان شو، هغوی فرمائی چه بيا رسول الله ﷺ ما سره د اخستلو خبره شروع کړه (تفريحا) او وې فرمائيل چه ماته دا په يو اوقيه باندې خرڅ کړه ما په نفی کښې جواب ورکړو. رسول الله ﷺ مکرر اوفرمائيل، بيا وراندې دا دی چه کله مونږ مدينې طيبې ته اورسيدو نو ما دا اوښ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې پيش کړو رسول الله ﷺ واخستلو او ثمن ئې هم ماته راکړو، بيا چه کله زه روان شوم نو يو سړې ئې راوليږلو او زه ئې راطلب کړم او وې فرمائيل زمونږ ستا اوښ اخستل مقصود نه وو او اونيسه خپل اوښ دې هم کوم هم ستا خپل مال دې. الحديث

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة، مختصرا وطويلا، قاله المنذری

## بَابٌ فِي عُهْدَةِ الرَّقِيقِ

### دغلام اودوينځې داخستلوبيان

[۳۵۰٦] (۱) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "عُهْدَةُ الرَّقِيقِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ".

دعقبة بن عامر نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی دغلام اودوينځې د خرڅونکي دپاره دعهد ميعاد درې ورځې دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « عُهْدَةُ الرَّقِيقِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ » ﴾

**د مسئله مترجم بها تشريح سره د بيان المذاهب او دليل:**

د غلام د واپس اخستلو ذمه داری تر درې ورځو پورې وی، که يو سړې د چا په لاس باندې

(۱): سنن ابن ماجه/التجارات ٤٤ (۲۲٤۵)، (تحفة الأشراف: ۹۹۱۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٤٣، ۱۵۰، ۱۵۲)، سنن الدارمي/البيوع ۱۸ (۲۵۹٤) (ضعيف)

خپل غلام خرڅ کړی او بیا د مشتری سره په هغه غلام کښې څه عیب ښکاره شي نو په درې ورځو کښې دننه د بائع دپاره واپس اخستل ضروری دی یعنی د واپس اخستلو د هغه ذمه داری ده یعنی بغیر د ګواهانو نه، او که د درې ورځو نه پس پکښې څه عیب ښکاره شو بیا بغیر د ګواهانو د قیام نه مشتری ته د واپس کولو هیڅ حق نشته.
د دې حدیث تعلق د خیار عیب سره دې، د جمهور علماء او ائمه ثلاث په نزد مشتری ته د عیب د وجې نه چه کوم خیار عیب حاصل وی د هغې عام قاعده او ضابطه دا ده چه که هغه عیب داسې دې چه په دې موده کښې دهغې مشتری سره پیدا کیدل ممکن نه دی نو بیا خو بغیر د بینه نه مشتری دا مبیع واپس کولې شی. او که عیب داسې دې چه په دې موده کښې مشتری سره پیدا کیدې شی یعنی او دا احتمال هم دې چه هغه د مخکښې نه وی، په دې صورت کښې به مشتری د ګواهانو په ذریعه ثابتوی چه دا عیب ماسره نه دې پیدا شوې بلکه د مخکښې نه دې، پس که مشتری دا ګواهان پیش کړل نو بیا خو به د هغه د مبیع واپس کولو حق وی ګینې نه به وی، د جمهورو په نزد دا قاعده کلیه ده هیڅ مسئله او جزئیه د هغوی په نزد د دې نه مستثنی نه ده. د امام مالک رحمه الله په نزد دې کښې یو استثناء ده کومه چه په حدیث الباب کښې ذکر شوې ده د کوم تعلق چه د غلام او وینځې د اخستلو سره دې یعنی که مبیع غلام یا وینځه وی او مشتری پکښې څه عیب بیا موندلو نو مشتری په درې ورځو کښې دا وینځه یا غلام په هر حال کښې بغیر د ګواهانو نه واپس کولې شی. اګر که دا عیب هر څنګه وی. خو دا د هغوی په نزد په هغه صورت کښې چه کله بائع د براءت من کل عیب شرط لګولې نه وی، او که لګولې ئې وی نو بیا د هغوی په نزد هم دا مسئله نه ده، بهر حال دا حدیث د امام مالک رحمه الله دلیل او د جمهورو خلاف دې د جمهورو د طرف نه د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه دا حدیث ثابت نه دې. په بذل کښې دی ﴿ وضعف احمد بن حنبل عهدة الثلاث، وقال لا يثبت فى العهدة حديث وقالوا لم يسمع الحسن من عقبة بن عامر شيئا ﴾ امام خطابی رحمه الله فرمائی ﴿ كما فى البذل وعهدته السنة من الجنون والجذام والبرص، ولا عهدة الا فى الرقيق خاصة وهذا قول اهل المدينة وابن المسيب والزهرى ﴾ یعنی لوئې لوئې بیمارئ لکه لیونتوب جذام او برګې په دې کښې د عهدة الرقیق موده زیاتیږی د درې ورځو په ځائې یو کال دې. هغوی فرمائی چه امام شافعی رحمه الله په دې کښې نه درې ورځو ته اعتبار ورکوی او نه یو کال ته الی اخر ما ذکر (بذل).زه وایم او په موطاء د امام محمد رحمه الله کښې دی: ﴿ لسنا نعرف عهدة الثلاث ولا عدة السنة الخ ﴾ چه مونږ ته معلومه نه ده چه عهدة الثلاث او عهدة السنة څه وی. مګر دا چه سرې د درې ورځو یا د یو کال شرط اولګوی نو بیا به هغه شرط معتبر وی یعنی عهدة الرقیق څه مستقل څیز نه دې د دې څه ثبوت نشته دې د حدیث مرفوع نه خو دلته خیار شرط معتبر او ثابت دې پس که مشتری د غلام یا وینځې.... د اخستلو په وخت شرط اولګوی په عیب سره د واپس کولو مطلقا که هغه درې ورځې وی او که یو کال وی نو په دې حیثیت سره به هغه معتبر وی ځکه چه خیار شرط

شرعا ثابت دي او متفق علیه دي.[1]

[۳۵۰۷](۲) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الصَّمَدِ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، زَادَ: إِنْ وَجَدَ دَاءً فِي الثَّلَاثِ لَيَالِي رُدَّ بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ، وَإِنْ وَجَدَ دَاءً بَعْدَ الثَّلَاثِ كُلِّفَ الْبَيِّنَةَ، أَنَّهُ اشْتَرَاهُ وَبِهِ هَذَا الدَّاءُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا التَّفْسِيرُ مِنْ كَلَامِ قَتَادَةَ.

د قتاده رحمه الله نه پخپل سند سره ددې روایت په شان روایت نقل شوې دې مګر ددې اضافي سره چه که چرې په غلام او وینځه کښې په درې ورځوي دننه عیب ظاهرشي نوخریدارئې بغیردشهادت نه واپس کولې شي اوکه چرې ددرې ورځونه پس عیب ظاهرشي نو دخریدارنه به دواه طلب کولې شي او درې ورځې به دهغه وخت نه حسابیږي په کوم وخت کښې چه سوداشوې وه، امام ابوداؤد فرمائی دا تشریح دقتاده کلام دې۔

## بَابٌ فِيمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا فَاسْتَعْمَلَهُ ثُمَّ وَجَدَ بِهِ عَيْبًا

### څوک چه غلام واخلی اود استعمال نه پس په کښې عیب ظاهرشي

### د مسئله مترجم بها تشریح:

زمونږ په دې نسخه کښې داسې دي ﴿ فاستعمله ﴾ او په نسخه د خطابی کښې د دې په ځائې ﴿ فاستغله ﴾ دې استغلال د غله نه اخستلې شوې دې غله په معنی د نفع او ګټه، لهذا د ترجمة الباب مطلب به دا وی چه کوم سړی غلام واخستلو او بیا ئې په هغه باندې ګټه اوکړه او بیا مشتری په دې غلام کښې څه عیب بیا موندلو د دې په باره کښې مصنف رحمه الله دا مسئله بیان فرمائی چه کله په دې غلام کښې څه عیب راوتلو نو اوس ظاهره خبره ده چه مشتری ته به خیار عیب حاصل وی چه د هغې د وجې نه هغه دا غلام واپس کولې شی خو هغه ګټه کومه چه مشتری د دې غلام نه په دې موده کښې حاصل کړې ده د هغې به څه کیږی هغه به هم د دې غلام سره واپس کوی یا که د هغې مستحق به خپله مشتری وی. په

[1] امام مالک رحمه الله په موطاء کښې ترجمه قائم کړې ده "العهدة في الرقيق" او بیا ئې د هغې لاندې هغه مرفوع حدیث نه دې ذکر کړې کوم چه دلته په ابوداؤد کښې دې بلکه د مدینې د بعض امیرانو ابان بن عثمان او هشام بن اسماعیل طرز عمل ئې بیان کړو ﴿ انهما كانا يذكران في خطبتهما عهدة الرقيق في الايام الثلاث من حين يشتري العبد او الوليدة، وعهدة السنة ﴾ یعنی دې د مدینې امیرانو به په خپلو خطبو کښې عهدة الرقیق او هم دغه شان عهدة الولیدة په درې ورځو او په کال کښې ذکر کولې، علامه باجی فرمائی چه د امام مالک رحمه الله مقصد دا دې چه دا عهدة الرقیق فی الایام الثلاثة او فی السنة په هغه امورو کښې دی کوم چه مشهور او معمول بها وو او د کومو چه به امیرانو اهتمام کولو تر دې چه په خطبو کښې به ئې هغه بیانولو. او امام محمد رحمه الله په موطاء کښې ترجمه قائم کړې ده" باب عهدة الثلاث والسنة " او بیا ئې هم هغه روایت ذکر کړو کوم چه په موطاء د مالک کښې دې په دې باندې امام محمد رحمه الله تعقب کولو سره اوفرمائیل ﴿ قال محمد لسنا نعرف عهدة الثلاث ولا عهدة السنة الا ان يشترط الرجل خيار ثلاثة ايام او خيار سنة فيكون ذلك على ما اشترط و اما في قول ابي حنيفة فلا يجوز الخيار الا ثلاثة ايام اهـ ﴾ امام محمد رحمه الله فرمائی چه د خیار شرط اعتبار شته عهدة الرقیق هیڅ څیز نه دې او دا هم فرمائی چه په خیار شرط کښې چه هر څومره ورځې اولګولې شی هغه صحیح دی زمونږ په نزد.خو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد په خیار عیب کښې د درې ورځو نه زیاتول نشته.

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۹۱۷) (ضعيف) وسنده إلى قتادة صحيح

دې باره کښې چه مصنف رحمه الله کوم حديث ذکر کړې دې هغه دا دې:

[۳۵۰۸] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ مَخْلَدِ بْنِ خُفَافٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْخَرَاجُ بِالضَّمَانِ".

دام المومنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى دخراج حقدار هغه څوک دې چاچه ضمانت کړې وي.

﴿عَنْ عَائِشَةَ – رضي الله عنها – قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « الْخَرَاجُ بِالضَّمَانِ »﴾

خراج په معنى د نفع او پيدوار، اى مستحق بسب الضمان.... يعنى سړې د ګټې او نفع مستحق کيږى د ضمان د وجې نه. پس چه کوم څيز د کوم سړى په ضمان کښې وى د هغې د ګټې او د نفع مستحق به هم هغه وى. لهذا د دې حديث نه د ترجمة الباب والا مسئلې حکم معلوم شو هغه دا چه دا ګټه به د مشترى دپاره وى، د غلام سره به نه واپس کيږى، ځکه چه که په دې دوران کښې هغه غلام د مشترى سره هلاک شى نو د دې ضامن به مشترى وى دا د الخراج بالضمان والا مسئله تقريبا اجماعى ده د دې وجې نه احنافو په مسئله د مصراة کښې هم دا مخکښې ساتلې ده خو جمهورو په دې مسئله کښې د دې حديث موافقت نه دې کړې.

والحديث اخرجه الترمذى والنسائى، قاله المنذرى

[۳۵۰۹] (۲) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مَخْلَدِ بْنِ خُفَافٍ الْغِفَارِيِّ، قَالَ: "كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ أُنَاسٍ شَرِكَةٌ فِي عَبْدٍ فَاقْتَوَيْتُهُ، وَبَعْضُنَا غَائِبٌ فَأَغَلَّ عَلَيَّ غَلَّةً فَخَاصَمَنِي فِي نَصِيبِهِ إِلَى بَعْضِ الْقُضَاةِ، فَأَمَرَنِي أَنْ أَرُدَّ الْغَلَّةَ، فَأَتَيْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ فَحَدَّثْتُهُ، فَأَتَاهُ عُرْوَةُ فَحَدَّثَهُ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْخَرَاجُ بِالضَّمَانِ".

دمخلد غفاري رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه زما اُوديوڅو کسانو په مينځ کښې شراکت وو په يرغلام کښې ماپه دې غلام باندې کار کول شروع کړل دې غلام څه آمدن حاصل کړو، کوم شريک چه غائب وو هغه دده په باره کښې زماسره جګړه کول شروع کړل او راته ئې اووئيل چه په دې کښې خو زما هم حصه ده او راته ئې راکړه اوقاضى په وړاندې ئې پرې دعوې وکړه قاضى دافيصله وکړه چه ده ته به حصه ورکوې، اوبيادديته پس دعروه بن زبيره په خدمت کښې حاضر شوم او واقعه ئې ورته بيان کړه عروه ورته هغه حديث بيان کړو کوم چه ئې دعائشې رضي الله عنها نه اوريدلې وو چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى دغلام ياوينځې منافع به دهغه چاوې څوک چه زمه وار وې

﴿ عَنْ مَخْلَدِ بْنِ خُفَافٍ الْغِفَارِيِّ قَالَ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ أُنَاسٍ شَرِكَةٌ فِي عَبْدٍ فَاقْتَوَيْتُهُ وَبَعْضُنَا غَائِبٌ فَأَغَلَّ عَلَيَّ غَلَّةً فَخَاصَمَنِي فِي نَصِيبِهِ إِلَى بَعْضِ الْقُضَاةِ الخ﴾

مخلد بن خفاف فرمائى چه زما او د بعض خلقو ترمينځه يو غلام مشترک وو نو داسې

---

[1]: سنن الترمذي/البيوع ۵۳ (۱۲۸۵)، سنن النسائي/ البيوع ۱۳ (۴۴۹۵)، سنن ابن ماجه/التجارات ۴۳ (۲۲۴۲، ۲۲۴۳)، (تحفة الأشراف: ۱۶۷۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۹/۶، ۲۰۸، ۲۳۷) (حسن)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۶۷۵۵) (حسن)

اوشوه چه زمونږ بعض شریکان موجود نه وو. ما دا غلام په ګټه باندې اولګولو او د هغه په ذریعه مې څه ګټه اوکړه. چه کله غائب شریک راغلو نو هغه د دې غلام والا ګټې نه د خپلې حصې مطالبه اوکړه او دا مسئله ئې د وخت قاضی ته یوړه. قاضی صاحب ماته دا حکم اوکړ چه زه په دې ګټه کښې د هغه حصه هم ورکړم زه د قاضی د دې فیصلې نه پس عروة بن الزبیر ته لاړم او هغوی ته مې دا ټوله قصه او د قاضی فیصله بیان کړه. عروه په دې اوریدو باندې قاضی ته لاړو او د قاضی ته ئې داحدیث مرفوع کوم چه د عائشې رضي الله عنها نه روایت کړې شوې دې (الخراج بالضمان) بیان کړو. یعنی ستاسو دا فیصله صحیح نه ده د حدیث خلاف ده

[۳۵۱۰]([1]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَرْوَانَ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ خَالِدٍ الزَّنْجِيُّ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، "أَنَّ رَجُلًا ابْتَاعَ غُلَامًا، فَأَقَامَ عِنْدَهُ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يُقِيمَ، ثُمَّ وَجَدَ بِهِ عَيْبًا فَخَاصَمَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَدَّهُ عَلَيْهِ، فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَدِ اسْتَغَلَّ غُلَامِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْخَرَاجُ بِالضَّمَانِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا إِسْنَادٌ لَيْسَ بِذَاكَ.

د ام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه یو کس یو غلام واخستو اودده سره ئې څه موده تیره کړه بیاددې نه پس په دې غلام کښې عیب ظاهرشو نوده نبی ﷺ ته خپله مقدمه پیش کړه نبی ﷺ دافیصله وکړله چه خرڅونکی ته دې واپس کړې شي خرڅونکي عرض وکړوچه اې الله رسوله ده زما په غلام باندې مزدوري کړې ده اوامدن ئې ورنه حاصل کړي دي، نبی ﷺ اوفرمائیل فوائد به دهغه چاره څوك چه ذمه وار وي. امام ابوداؤد فرمائی چه ددی حدیث سند لره اعتبارنشته.

**قوله:** (عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّ رَجُلاً ابْتَاعَ غُلَامًا الخ) د دې مضمون د پورته حدیث په شان دې.

**قوله:** قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا إِسْنَادٌ لَيْسَ بِذَاكَ.

## الخراج بالضمان والا حدیث د کومې درجې دې؟

سند که هر څنګه وی خو مسئله هم داسې ده، د دې سند د ضعف وجه کومه چه مصنف رحمه الله بیان فرمائی لکه چه امام منذری رحمه الله فرمائیلي دی چه په دې سند کښې مسلم بن خالی الزنجی دې چه ضعیف دې، منذری وائی خو امام ترمذی رحمه الله دا حدیث په خپل جامع کښې په دې سند سره روایت کړې دې (عمر بن علی المقدی عن هشام بن عروة عن ابیه عن عائشة ان النبی صلی الله علیه وسلم قضی ان الخراج بالضمان وقال هذا حدیث حسن صحیح من حدیث هشام بن عروة اهـ) په دې سند کښې مسلم بن خالد الزنجی نشته. او په ترمذی کښې دا هم دی (قال ابو عیسی استغرب محمد بن اسماعیل هذا الحدیث من حدیث عمر بن علی قلت تراه تدلیسا؟ قال : لا اهـ) په تهذیب السنن کښې امام منذری فرمائی : (وحکی البیهقی عن الترمذی انه ذکره لمحمد بن اسماعیل البخاری فکانه اعجبه) یعنی چه امام بخاری رحمه الله دا حدیث په دې سند باندې واوریدو نو خوښ ئې کړلو اهـ. د دې نه پس حافظ منذری د عمر بن علی په باره کښې لیکلي دی : (وقد اتفق البخاری ومسلم علی الاحتجاج بحدیثه ورواه عن عمر بن

---

[1]: سنن ابن ماجه/ التجارات ٤٣ (٢٢٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٧٢٤٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٨٠، ١١٦) (حسن)

علی ابوسلمة یحیی بن خلف الجویباری وهو ممن یروی عنه مسلم فی صحیحه، وهذا اسناد جید ولهذا صححه الترمذی، وهو غریب کما اشار الیه البخاری والترمذی والله تعالی اعلم ﴾ حافظ منذری د ترمذی د روایت والا د ټولو راویانو ثقاهت په دې خپل دې کلام کښې ذکر کړې دې او بیا په اخر کښې فرمائی چه دا سند جید دې هم په دې وجه امام ترمذیؒ د دې حدیث تصحیح کړې ده. او اګر چه غریب هم دې خو غرابت د صحت منافی نه دې لکه چه مشهوره اصولی مسئله ده او د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې دی ﴿ ذکر تخریج الحدیث الحافظ فی التلخیص والمسئلة اجماعیة لهذا الحدیث کما فی الاوجز ﴾ امام ابوداؤدؒ دا حدیث د عائشې رضی الله عنها په درې مختلف سندونو سره ذکر کړې دې. په دې دریو کښې ئې په یو باندې کلام کړې دې.

## بَابٌ إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيِّعَانِ وَالْمَبِيعُ قَائِمٌ

### کله چه په اخستونکی او خرڅونکی کښې اختلاف راشي او بیع موجود وی

[۳۵۱۱](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ أَبِي عُمَيْسٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ قَيْسِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْأَشْعَثِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: اشْتَرَى الْأَشْعَثُ رَقِيقًا مِنْ رَقِيقِ الْخُمُسِ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بِعِشْرِينَ أَلْفًا، فَأَرْسَلَ عَبْدُ اللَّهِ إِلَيْهِ فِي ثَمَنِهِمْ، فَقَالَ: إِنَّمَا أَخَذْتُهُمْ بِعَشَرَةِ آلَافٍ. فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ: فَاخْتَرْ رَجُلًا يَكُونُ بَيْنِي وَبَيْنَكَ، قَالَ الْأَشْعَثُ: أَنْتَ بَيْنِي وَبَيْنَ نَفْسِكَ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيِّعَانِ وَلَيْسَ بَيْنَهُمَا بَيِّنَةٌ، فَهُوَ مَا يَقُولُ رَبُّ السِّلْعَةِ أَوْ يَتَتَارَكَانِ".

عمرو بن شعیب دخپل پلار نه او هغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه زما پلار اشعث دعبدالله بن مسعود نه یو څو غلامان په شل زره واخستل کوم چه ابن مسعود ته په خمس کښې ورکړې شوې وو، ابن مسعود داشعث نه دغلامانو دقیمت مطالبه وکړله اشعث اووئیل مادا غلامان په لس زره اخستلې دي ابن مسعود ورته اووئیل یو کس خوښ کړه چه زما او ستا په مینځ کښې فیصله وکړي، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اووئیل ما د نبی علیه السلام نه آوریدلی دی چه فرمائیل ئې کله چه دخریدار او خرڅونکي په مینځ کښې جګړه پیښه شي او دواړو سره ګواه موجود نه وي نو په دې وخت کښې دمال والا خبرې له اعتبار دې او یا دې بیع فسخ کړې شي.

﴿ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ قَيْسِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْأَشْعَثِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ اشْتَرَى الْأَشْعَثُ رَقِيقًا مِنْ رَقِيقِ الْخُمُسِ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بِعِشْرِينَ أَلْفًا ﴾

عبدالرحمن بن قیس روایت کوی د خپل پلار قیس نه او قیس روایت کوی د عبدالرحمن د نیکه محمد بن الاشعث نه، محمد بن الاشعث د خپل پلار یعنی اشعث نه واقعه نقل کوی چه یو کرت اشعث د بیت المال د غلامانو نه څو غلامان د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه واخستل په شل زره درهمه باندې. عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د ثمن اخستلو دپاره اشعث ته سړې اولیږلو. اشعث اووې چه ما هغه غلامان په لس زره درهمه باندې اخستلې دی. (او

(1): سنن الترمذي/البیوع ۴۳ (۱۲۷۰)، سنن النسائی/البیوع ۸۰ (۴۶۵۲)، سنن ابن ماجه/التجارات ۱۹ (۲۱۸۶)، (تحفة الأشراف: ۹۵۴۶،۹۳۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۴۶۷۱) (صحیح)

عبد الله رضي الله عنه فرمائیل چه په شل زره ئې اخستلې دی، چه کله په دې دواړو کښې اختلاف شو نو عبد الله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائیل چه څوک زما او خپل مینځ کښې فیصله کونکې کړئ. اشعث اووې زما او ستاسو ترمینځه خپله تاسو فیصله کونکی یئ. په دې باندې عبد الله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه هغوی به فرمائیل

﴿ إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيِّعَانِ وَلَيْسَ بَيْنَهُمَا بَيِّنَةٌ فَهُوَ مَا يَقُولُ رَبُّ السِّلْعَةِ أَوْ يَتَتَارَكَانِ ﴾

**شرح الحدیث او بیان د مذاهب الائمة :**

یعنی چه کله د بائع او مشتری ترمینځه د ثمن په مقدار کښې یا مبیع کښې اختلاف وی او بینه چا سره هم نه وی نو بیا به د رب السلعة یعنی بائع قول معتبر وی (یعنی سره د قسم نه) او یا دې دواړه دا معامله پریږدی او یا دې فسخ کړی، یعنی یا خو دې مشتری د بائع قول سره د قسم نه اومنی او په هغې دې راضی شی، که داسې اوشی خو صحیح ده او که مشتری نه رضا کیږی نو بیا دې هغه هم په خپله خبره قسم اوخوری او بیا دې قاضی د دواړو ترمینځه معامله فسخ کړی یعنی د مشتری ثمن دې مشتری ته واپس کړې شی او مبیع دې د مشتری نه اخستلو سره بائع ته ورکړې شی.

ځان پوهه کول پکار دی چه دا مشهوره اختلافی مسئله ده د احنافو او شوافعو ترمینځه، او هغه اختلاف دا دې چه پورته په حدیث کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده هغه د امام احمد او شافعی رحمه الله ترمینځه مطلقا ده که سلعه یعنی مبیع موجود وی یا هلاکه شوې وی، او په دې دویم صورت کښې به د تراد مطلب دا وی چه مشتری دې د مبیع قیمت واپس کړی او امام محمد رحمه الله هم د هغوی سره دې او شیخین امام ابوحنیفه او امام ابویوسف او د امام مالک رحمه الله په نزد دا حکم مذکور فی الحدیث هغه صورت کښې دې چه کله مبیع قائم وی او که مبیع هلاکه شوه نو بیا د دې دواړو په نزد القول قول المشتری مع یمینه، د شخینو دلیل دا دې چه د دې حدیث بعض طرقو کښې تصریح ده ﴿ اذا اختلف البیعان والسلعة قائمة ﴾ چه د هغې طرف ته مصنف خپله هم اشاره کړې ده په ترجمة الباب کښې په دې وجه هغوی په ترجمة الباب کښې د ﴿ والمبیع قائم ﴾ قید اولګولو. لهذا په ترجمه الباب کښې د احناف تائید اوشو.

**تفصیل المسئلة :**

دا چه تر اوسه پورې ذکر کړې شوه چه د حدیث الباب په شرح کښې او د هغې نه پس د فقهاء اختلاف دا هر څه په هغه صورت کښې وو چه په بائع او مشتری کښې د چا سره بینه نه وی، او که د یو سره..... بینه وی په خپله دعوی باندې نو د صاحب بینه په حق کښې دې فیصله اوکړې شی...... او که هر یو بینه قائم کړه نو هغه وخت مسئله دا ده چه کوم بینة مثبة وی زیادت لره نو هغه به اولی وی، د دې حدیث د لاندې په موطاء د امام محمد رحمه الله کښې دی ﴿ قال محمد وبهذا ناخذ، اذا اختلفا فی الثمن تحالفا وترادا البیع وهو قول ابی حنیفة والعامة من فقهائنا اذا کان المبیع قائما بعینه، فان کان المشتری قد استهلکه فالقول ما قال المشتری فی الثمن فی قول ابی حنیفة (وابی یوسف) واما فی قولنا فیتحالفان ویتردان القیمة اهـ ﴾ په دې کښې امام محمد رحمه الله تصریح کړې ده چه د هغوی رائې په دې کښې د امام صاحب رحمه الله سره

نه ده بلکه په دې کښې هغوی د امام شافعی رحمه الله ملګرې دی لکه چه مونږ مخکښې په بيان المذاهب کښې ذکر کړل، والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري

[۳۵۱۲](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي لَيْلَى، أَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ بَاعَ مِنَ الْأَشْعَثِ بْنِ قَيْسٍ رَقِيقًا، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ وَالْكَلَامُ يَزِيدُ وَيَنْقُصُ.

عبد الرحمن دخپل پلار نه همدا واقعه نقل کړيده چه عبد الله بن مسعود نه به اشعث باندې يو غلام خرخ کړې وو او ددې روايت په الفاظو کښې څه قدرې کمې زياتې دې۔

# بَابٌ فِي الشُّفْعَةِ

## د شفعې د احکامو بيان

### د شفعې د لغوی او اصطلاحی معنی تحقيق او تنقيح:

د شفعه لغوی معنی ده ضم (۲)﴿ قال القسطلانی وهی فی اللغة الضم علی الاشهر من شفعت الشئ ضممته فهی ضم نصيب الی نصيب، وفی الشرع حق تملک قهری يثبت للشريک القديم علی الحادث فيما ملک بعوض ﴾ او په فتح الباری کښې دی ﴿ وفی الشرع انتقال حصة شريک الی شريک كانت انتقلت الی اجنبی بمثل العوض المسمی ولم يختلف العلماء بمشروعيتها الا ما نقل انتقال حصة شريک الی شريک كانت انتقلت الی اجنبی بمثل العوض المسمی ولم يختلف العلماء بمشروعيتها الا ما نقل عن ابی بکر الاصم من انکارها اه ﴾ په دې تعريفونو کښې د جمهورو د مسلک رعايت کړې شوې دې چه د هغوی په نزد د شفعې ثبوت صرف د شريک دپاره وی په خلاف د احناف چه د هغوی په نزد د شفعې انحصار په شريک کښې نه دې بلکه د هغوی په نزد شفعه د ګاونډ د وجې نه هم کيږی لکه چه وړاندې په تفصيل سره را روان دی حافظ چه کوم تعريف کړې دې د دې مطلب دا دې چه د احد الشريکين حصه چه د بيع د وجې نه غير معروف سړی ته منتقل شوې ده (يعنی مشتری) د هغې منتقل کيدل د هغه غير معروف سړی نه د شريک آخر طرف ته د عوض مسمی په بدله کښ، د دې نه مراد هغه ثمن دې کوم چه مشتری ادا کړې دې بائع ته، دا د احد الشريکين دحصې انتقال شريک آخر ته چه هغې ته شفعه وئيلې شی د هغې حصول چونکه د شريک آخر دپاره غير اختياری دې يعنی شرعی طور هغوی ته دا حق ملاويږی، دا بيله خبره ده چه هغه دا خپل حق اخلی يا نه اخلی هم په دې وجه قسطلانی چه د شفعې په تعريف کښې ﴿ حق تملک قهری ای غير اختياری ﴾ وئيلې دی د دې مثال داسې دې لکه وراثت چه يو وارث ته د بل وارث د مال استحقاق غير اختياری طور سره کيږی. هم دغه شان شفعه هم ده چه شريعت احد الشريکين او د ګاونډی دپاره د شريک آخر او د ګاونډی په حصه کښې حصه ورکړې ده که هغه شريک غواړی نو د شريک آخر هغه حصه کومه چه بل سړی يعنی مشتری ته تلې ده، د هغه نه اخستلې شی په

---

(۱): سنن ابن ماجه/التجارات ۱۹ (۲۱۸٦)، (تحفة الأشراف: ۹۳۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/٤٦٦) (صحيح)

(۲) د يو کور يا خانې د بيع په وخت د شرکت يا ګاونډ د وجې نه يو د دواړو شريکانو دپاره يا د ګاونډی دپاره د تمليک حق حاصليدل په ثمن د مشتری سره۔

څو کښې چه هغه څيز مشترى ته پريوتلې دې. په دې وجه زمونږ فقهاء د شفعې تريف داسې کړې دې ﴿تملك البقعة بما قام على المشترى بسبب الشراكة او الجوار﴾ په هره معنى اصطلاحى کښې د معنى لغوى لحاظ هم ساتلې شى. پس دلته هم په شفعه شرعى کښې د لغوى معنى يعنى ضم حصة الى حصة معنى موندلې شى يعنى يو شريک د بل شريک حصې لره د خپلې حصې سره يو ځائې کوى (وهذا غاية توضيح لهذا المقام)

### اسباب الشفعة عند الائمة :

د دې نه پس دا هم پيژندل پکار دى چه په اسباب الشفعه کښې د ائمه کرام اختلاف دې، زمونږ په نزد د شفعې اسباب دوه دى شراکت او جوار، او بيا د شرکت دوه قسمونه دى شرکت فى نفس المبيع، او شرکت فى طريق المبيع د طريق هيڅ تخصيص نشته، بلکه مقصود شرکت فى حق من حقوق المبيع دې کالطريق والشرب ونحوهما، او د جمهورو او ائمه ثلاثه په نزد سببيت منحصر دې په شرکت فى نفس المبيع کښې، لهذا اسباب شفعه زمونږ په نزد درې دى او د جمهورو په نزد صرف يو، يعنى شرکت فى نفس المبيع، د باقى دوو هغوى قائل نه دى.

[۳۵۱۳](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الشُّفْعَةُ فِي كُلِّ شِرْكٍ رَبْعَةٍ أَوْ حَائِطٍ لَا يَصْلُحُ أَنْ يَبِيعَ حَتَّى يُؤْذِنَ شَرِيكَهُ، فَإِنْ بَاعَ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ حَتَّى يُؤْذِنَهُ".

دجابر ﷺ نه روايت دې فرمائى چه نبى کريم له فرمائيلى دى شفعه په هريو مشترک څيزکښې وي، کور وي اوکه باغ وي ترڅوچه دشريك أجازت نه وي ددې خرڅول درست نسه دي اوکه چرې بغير داجازت نه خرڅ کړې شي نوددې دوصول کول زيات حقدار هم هغه شريك ئې ترڅوچه هغه منظورکړي نه وي.

﴿ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « الشُّفْعَةُ فِى كُلِّ شِرْكٍ رَبْعَةٍ أَوْ حَائِطٍ لاَ يَصْلُحُ أَنْ يَبِيعَ حَتَّى يُؤْذِنَ شَرِيكَهُ فَإِنْ بَاعَ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ حَتَّى يُؤْذِنَهُ ﴾

رسول الله ﷺ فرمائى چه هر هغه مشترک څيز يعنى کور يا باغ کښې شفعه ثابت ده، په شريکينو کښې د يو دپاره هم جائز نه دى چه هغه خپله حصه بل چا باندې خرڅه کړى تر دې چه خپل شريک خبر نه کړى پس که هغه خپله حصه قبل الايذان خرڅه کړه نو د هغه بل شريک به د هغه د حصې زيات حقدار وى په نسبت د مشترى.

په دې حديث کښې دوه مسئلې دى يو هم هغه پورته تيره شوې اختلافى مسئله چه حق شفعه صرف د شريک دپاره وى په مشترک څيز کښې يا د غير شريک يعنى ګاوندى دپاره هم وى، دويمه مسئله چه شفعه په کومو کومو څيزونو کښې وى، صرف په کور يا زمکه کښې او که د دې نه علاوه په نورو څيزونو کښې هم.

(١): صحيح مسلم/المساقاة ۲۸ (۱۶۰۸)، سنن النسائي/البيوع ۷۸ (٤٦٥٠)، (تحفة الأشراف: ۲۸۰٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۲/۲، ۳۱٦، ۳۵۷، ۳۹۷)، سنن الدارمي/البيوع ۸۳ (۲٦۷۰) (صحيح)

## شفعه په کومو کومو څیزونو کښې وی :

دا دویمه مسئله هم اختلافی ده، خطابی فرمائی چه حدیث ألباب دلیل دې په دې باندې چه شفعه صرف په کور او زمکه کښې واجب ده د دې نه علاوه په نورو څیزونو سامان او حیوان وغیره کښې نه وی. په ترمذی کښې د ابن عباس رضی الله عنهما یو حدیث مرفوع روایت کړې شوې دې : ﴿الشریک شفیع والشفعة فی کل شئ﴾ دا روایت په ترمذی کښې مرسلا او مسندا دواړو طریقو سره روایت دې، خو امام ترمذی روایت مرسله ته اصح وئیلې دې، او بیا د دې نه پس فرمائی: ﴿وقال أكثر أهل العلم إنما تكون الشفعة في الدور والأرضين ولم يروا الشفعة في كل شيء وقال بعض أهل العلم الشفعة في كل شيء والأول أصح﴾ په تحفة الاحوذی کښې ئې په ﴿الشفعة فی کل شئ﴾ باندې لیکلی دی ﴿وبه قال مالک فی روایة وهو قول عطاء﴾ او د امام احمد رحمه الله نه ئې نقل کړی دی چه د هغوی په نزد شفعه په منقولاتو کښې صرف په حیواناتو کښې ده، په باقی منقولاتو کښې نه، لکه چه په فتح الباری کښې دی (تحفه) والحدیث اخرجه مسلم والنسائي قاله المنذري.

[۳۵۱۴](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "إِنَّمَا جَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشُّفْعَةَ فِي كُلِّ مَا لَمْ يُقْسَمْ، فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ، وَصُرِّفَتِ الطُّرُقُ فَلَا شُفْعَةَ".

جابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یقینا نبی کریم ب شفعه په هرهغه څیز کښې مقرر کړې ده کوم چه تقسیم شوې نه وي کله چه حدود مقرر کړې شي اولارې جداکړې شي نودشفعې حق باقی پاتې نه شو ځکه چه شراکت ختم شو.

﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ إِنَّمَا جَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الشُّفْعَةَ فِي كُلِّ مَالٍ لَمْ يُقْسَمْ فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ وَصُرِفَتِ الطُّرُقُ فَلاَ شُفْعَةَ﴾

یعنی شفعه په هر هغه مال مشترک کښې ده کوم چه تر اوسه پورې تقسیم کړې شوې نه وی او بیا چه د هر شریک د حصې حدود متعین کړې شی یعنی د هغه شرکت لره ختمولو سره د هر شریک حصه ممیز او جدا کړې شی او لارې ئې هم جدا جدا کړې شی نو بیا شفعه نه پاتې کیږی.

## حدیث کوم چه د جمهورو دلیل دې د احنافو د طرف نه د هغې توجیه

جمهور علماء کرام او ائمه ثلاثه په خپل مسلک باندې د هم دې حدیث نه استدلال کړې دې، زمونږ علماء کرامو د دې جواب دا ورکړې دې چه د حق شفعه مختلف اسباب دی چه په هغې کښې یو شرکت دی. چه هر کله دا خبره ده نو بیا د دې حدیث مطلب به دا اخستلې شی چه د مکان مشترک یا ارض مشترک د تقسیم نه پس چه کوم حق شفعه د شرکت د وجې نه حاصل وو، د تقسیم نه پس اوس هغه پاتې نه شو. اوس که د یو حدیث نه د شرکت نه

(1): صحيح البخاري/البيوع ۹۶ (۲۲۱۳)، ۹۷ (۲۲۱٤)، الشفعة ۱ (۲۲۵۷)، الشركة ۸ (۲٤۹۵)، الحيل ١٤ (٦٩٧٦)، سنن الترمذي/الأحكام ۳۳ (۱۳۷۰)، سنن ابن ماجه/الشفعة ۳ (۲٤۹۷)، (تحفة الأشراف: ۳۱۵۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۷۲، ۳۹۹) (صحيح)

علاوه د یو بل څیز سبب شفعه کیدل ثابتیږی نو بیا دا حدیث د هغې منافی نه دې. او مونږ وایو د نورو احادیثو نه شرکت فی الطریق او دغه شان د جوار سبب شفعه کیدل ثابت دی لهذا د هغې په دې حدیث کښې نفی نشته. (بذل)

والحدیث اخرجه البخاری والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۵۱۵](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، أَوْ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَوْ عَنْهُمَا جَمِيعًا عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا قُسِمَتِ الْأَرْضُ وَحُدَّتْ فَلَا شُفْعَةَ فِيهَا".

دابوهریره ﷛ نه روایت دې فرماني چه ننبی ﷺ فرمائیلی دی کله چه زمکه تقسیم کړې شي اوحدونه مقرر کړې شي نوپه دې کښې دشفعې حق باقي پاتې نه شو.

[۳۵۱۶](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مَيْسَرَةَ، سَمِعَ عَمْرَو بْنَ الشَّرِيدِ، سَمِعَ أَبَا رَافِعٍ، سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ".

دابو رافع ﷛ نه روایت دې فرمائي چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې ګاونډي دخپل نزدې کور زیات حقدار دې.

وړاندې د هم دې مضمون حدیث د ابوهریره ﷛ نه هم راروان دې ﴿ إِذَا قُسِمَتِ الْأَرْضُ وَحُدَّتْ فَلاَ شُفْعَةَ فِيهَا ﴾ اخرجه النسائي، وابن ماجه مسندا ومرسلا، قاله المنذری

﴿ عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مَيْسَرَةَ سَمِعَ عَمْرَو بْنَ الشَّرِيدِ سَمِعَ أَبَا رَافِعٍ سَمِعَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « الْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ » ﴾

سقب په معنی د قرب، یعنی د انسان ګاونډی د خپل ګاونډ د وجې نه زیات مستحق دې، یعنی په نسبت د هغه لرې مشتری، چا چه یو کور اخستلې دې.

## دلیل الاحناف او په دې باندې اشکال او جواب:

دا حدیث په شفعه لاجل الجوار کښې د احنافو دلیل دې. خطابی په دې باندې څو تعقب کړې دی اول دا چه دا حدیث خو په خپل مضمون کښې مبهم دې، محتاج دې کشف او بیان ته په دې کښې د شفعې هیڅ ذکر نشته لهذا په دې کښې دواړه احتماله شته کیدې شي چه د دې نه مراد شفعه وی، او کیدې شي چه د دې نه مراد دا وی چه ﴿ انه احق بالبر والمعونة ﴾ یعنی د انسان ګاونډی د ګاونډ د وجې نه د دې مستحق دې چه د هغه سره نیکی او همدردی اوکړې شي. او یو نقد ئې دا کړې دې چه د لفظ جار اطلاق په شریک باندې هم کیږی لکه چه په زوجه باندې هم د جاره اطلاق کیږی. دریم نقد ئې دا کړې دې چه د دې حدیث په سند کښې اضطراب دې او هغه احادیث په کومو کښې چه دا دی چه شفعه صرف د شریک دپاره وی ﴿ اسانیدها خیار لیس فی شئ منها اضطراب ﴾

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٢١٣، ١٣٢٠١)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الأحكام ٣ (٢٤٩٧) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الشفعة ٢ (٢٢٥٨)، الحيل ١٤ (٦٩٧٧)، ١٥ (٦٩٧٨)، سنن النسائي/البيوع ١٠٧ (٤٧٠٦)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٨٧ (٢٤٩٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٨٩، ٣٩٠، ٦/١٠) (صحيح)

د خطابی د اول نقد جواب دا دې چه ﴿ الجار احق بسبقه ﴾ په دې حديث کښې وئيلې کيدې شی چه د شفعې ذکر نشته خو د دې نه روستو روايت کښې د شفعې تصريح ده. ﴿جار الدار احق بدار الجار ﴾ د دويم نقد جواب دا دې چه په بعضو رواياتو کښې تصريح ده د دې خبرې چه د جار نه مراد جار دې شريک نه دې لکه چه امام طحاوی په خپل سند سره بيان کړې دې ﴿ثم قد روی عن رسول الله صلى الله عليه وسلم من اسبابه الشفعة بالجوار، وتفسير ذلک الجوار ما قد حدثنا..... عن عمر بن الشريد عن ابيه قال قلت يا رسول الله ﷺ ارض ليس لاحد فيها قسم ولا شرک الا الجوار بيعت قال الجار احق بسقبه ﴾

امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه په دې حديث کښې تصريح ده د دې خبرې چه د کومې زمکې په باره کښې سائل د رسول الله ﷺ نه تپوس کړې وو په هغې کښې د چا هيڅ قسم شرکت فی المبيع يا شرکت فی الطريق هيڅ نه وو سوا د جوار نه او د هغې باوجود رسول الله ﷺ د شفعې حق ثابت اوفرمائيلو.

او د دريم نقد جواب دا دې چه اضطراب صرف د بعضو احاديثو په بعضو طرقو کښې دې، او بعض په دې کښې داسې هم دی کوم چه د هر قسم اضطراب او اختلاف نه محفوظ دی لکه چه حديث د حسن ﴿عن سمرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه و سلم جار الدار أحق بالدار قال وفي الباب عن الشريد و أبي رافع و أنس قال أبو عيسى حديث سمرة حديث حسن صحيح ﴾ او بيا بعض راويانوچه په دې کښې کوم اختلاف کړې دې هغې لره د بيان فرمائيلو نه پس امام ترمذی فرمائی ﴿ والصحيح عند أهل العلم حديث الحسن عن سمرة.... الى آخر ما ذکر الترمذی من اختلاف الروايات وترجيح بعضها على بعض وفی آخره سمعت محمدا يقول کلا الحديثني عندي صحيح اهـ ﴾ والحديث اخرجه البخاري والنسائي وابن ماجه، قاله المنذری.

[٣٥١٧](١) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "جَارُ الدَّارِ أَحَقُّ بِدَارِ الْجَارِ أَوِ الْأَرْضِ".

د سمره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی يو ګاونډي دبل ګاونډي دکور يا د زمکې داخستلو زيات حقدار دې.

[٣٥١٨](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْجَارُ أَحَقُّ بِشُفْعَةِ جَارِهِ يُنْتَظَرُ بِهَا، وَإِنْ كَانَ غَائِبًا إِذَا كَانَ طَرِيقُهُمَا وَاحِدًا".

د جابر بن عبد الله نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی دخپل ګاونډي دشفعې ګاونډي زيات حقدار دې اورکچرې دبيع په وخت کښې ګاونډي موجود نه وي نوپه شفعه کښې به ورته انتظارکولې شي کله چه ددوی دواړو دکورلاره يوه وي.

(١): سنن الترمذي/الأحكام ٣١ (١٣٦٨)، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢/٥، ١٣، ١٨) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الأحكام ٣٢ (١٣٦٩)، سنن ابن ماجه/الشفعة ٢ (٢٤٩٤)، (تحفة الأشراف: ٢٤٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٣/٣)، سنن الدارمي/البيوع ٨٣ (٢٦٦٩) (صحيح)

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُفْلِسُ فَيَجِدُ الرَّجُلُ مَتَاعَهُ بِعَيْنِهِ عِنْدَهُ

### څوک چه د چا نه څه شې واخلي او بیا مفلس شی او قرضداري خپل مال اووینی نو څه به کوی؟

دې ترجمة الباب او حدیث الباب باندې د پوهیدو نه مخکښې اصل مسئله او د علماء کرامو اختلاف واورئ...!

### د مسئله مترجم بها تشریح او په هغې کښې اختلاف علماء :

که یو سړې مدیون مفلس وی[1] د ډیرو قرضداري وی نو هغه سره چه کوم مال وی یا د چرته نه راشی نو هغه به ټول ارباب حقوق ته په اعتبار د سرونو ورکولې شی یو ته هم په بل باندې ترجیح نه شی ورکولې خو که د چا بعینه مال د دې مدیون سره وی نو په دې صورت کښې به ترجیح وی چه هغه مخصوص څیز به صرف د هغه څیز مالک ته ورکولې شی. اوس د دې نه پس ځان پوهه کرئ چه د دې مخصوص څیز نه څه مراد دې. مال ودیعت، او مال غصب او عاریه خو بالاتفاق دی. په دې مال مخصوص کښې مال مبیع هم داخل دې یا نه؟ ځکه چه د ملک په بدلون سره حکما بدلون د عین راځی شرعا لکه چه په حدیث د بریره ﷞ کښې دی ﴿ ولک صدقة ولنا هدية ﴾ نه ثابته ده، لهذا مبیع باندې ﴿ فوجد الرجل ماله بعينه ﴾ صادق نه راځی. هم په دې وجه احناف وائی چه په مسئله مذکوره کښې به بائع احق بالمبيع نه وی بلکه اسوة للغرماء به وی او د ائمه ثلاث په نزد د دې حدیث په مصداق کښې مبیع داخل ده هم په دې وجه باندې هغوی وائی چه بائع به احق بالمبیع وی، بیا په دې ائمه ؤکښې په خپل مینځ کښې بعض جزئیاتو کښې اختلاف دې مثلا داچه د شوافعو په نزد دلته بائع ته ترجیح په هر حال کښې وی که هغه مړ وی او که ژوندې وی، او د مالکیانو په نزد باندې به د بائع په ژوند باندې خو هغه ته ترجیح وی یعنی بائع به احق بالمبیع وی او پس د مرګ ته به نه وی، هم دغه شان که مشتری بائع ته څه ثمن ادا کړې وو نو د شوافعو په نزد په دې کښې هم عموم دې چه بائع ته به په دواړو صورتونو کښې ترجیح وی او د مالکیانو په نزد دا ده چه که بائع ته مشتری څه حصه هم د ثمن ادا کړی نه وی نو بیا خو به بائع ته ترجیح وی او که هغه د ثمن څه حصه ادا کړې وه نو بیا به ورته ترجیح نه وی.

دا دواړه اختلاف مسئلې د شوافعو او مالکیانو په باب کښې د راتلونکو احادیثو نه په فهم کښې راځی او د احنافو په نزد باندې به بائع ته په هیڅ حال کښې ترجیح نه وی.

د دې نه پس ځان پوهه کرئ چه د دې مسئلې په کومو روایاتو کښې چه د ﴿ فوجد الرجل ماله بعينه ﴾ سره د بیع ذکر نشته هلته خو به د احنافو په مسلک باندې هیڅ اشکال نه وی، هلته به احناف ښکاره دا وائی چه ﴿ ماله بعينه ﴾ صرف په ودائع او عواری وغیره باندې محمول دې مبیع په دې کښې داخل نه دې. خو که خپله په حدیث کښې د بیع تصریح وی لکه چه په بعض روایات الباب کښې دی نو بیا به د احنافو توجیه څنګه چلیږی؟ د دې جواب علامه

[1] مدیون مُفلس: یا مُفلَس: هغه سړې دې چه د هغه په ذمه د خلقو قرضونه وی خو د دیوالیه کیدو د وجې نه د قرض د بندولو (اداکولو) دپاره د هغه څه سره هیڅ نه وی، د دائنینو (قرض غوښتونکو) د مرافعه عند القاضی نه پس به قاضی پس د تحقیق نه د هغه د افلاس تصدیق اوکړی)

سندهی په حاشیه د نسائی دا ورکړې دې چه ﴿ انه محمول على الماخوذ على سوم الشراء او المبيع بشرط الخيار للبائع ﴾ يعنی د بيع نه مراد مساومت دې يعنی د اخستلو دپاره د بائع سره سودا کول، او چه کوم څيز د سودا په وخت مشتری واخلی سره خپل کور ته اوړی د خوښولو دپاره دا څيز مقبوض على سوم الشراء دې څه ته چه مبيع هم وئيلې شی مجازا.....
او هم دغه شان هغه مبيع چه په هغې کښې خيار شرط د بائع دپاره وی، د دې قسم مبيع هم زمونږ په نزد خالص د بائع حق وی، لکه چه تاسو په قدوری کښې لوستلې دی﴿وخيار البائع يمنع خروج المبيع عن ملكه بخلاف خيار المشتری﴾ د مسئلې د دې تفصيل د بيان نه ترجمة الباب او حديث الباب دواړه په فهم کښې راغلل، د دې نه معلومه شوه چه په حديث کښې څه مسئله ده او په دې کښې څه اختلاف دې،او دا هم چه که حديث د احنافو خلاف دې نو د هغې څۀ توجيه ده... فلله الحمد والمنة..

[۳۵۱۹]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ الْمَعْنَى، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَيُّمَا رَجُلٍ أَفْلَسَ فَأَدْرَكَ الرَّجُلُ مَتَاعَهُ بِعَيْنِهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ مِنْ غَيْرِهِ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چاچه ديو مفلس سره خپل مال دخپل جنس په صورت کښې بياموندو نودنورو قرضدارانو په نسبت دې دخپل مال داخستلو زيات حقداردې.

**قوله:**﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «أَيُّمَا رَجُلٍ أَفْلَسَ فَأَدْرَكَ الرَّجُلُ مَتَاعَهُ بِعَيْنِهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ مِنْ غَيْرِهِ﴾اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه قاله المنذری.

[۳۵۲۰]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَيُّمَا رَجُلٍ بَاعَ مَتَاعًا فَأَفْلَسَ الَّذِي ابْتَاعَهُ وَلَمْ يَقْبِضْ الَّذِي بَاعَهُ مِنْ ثَمَنِهِ شَيْئًا فَوَجَدَ مَتَاعَهُ بِعَيْنِهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ، وَإِنْ مَاتَ الْمُشْتَرِي فَصَاحِبُ الْمَتَاعِ أُسْوَةُ الْغُرَمَاءِ".

دحارث بن هشام نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چاچه خپل مال خرڅ کړو اوبياخريدار مفلس شو اوخرڅونکي ته دخپل مال دنيست نه څه شي نه وي ملاوشوي او ده خپل مال بجنسه دخريدار سره بياموندو نو ددې مال مالك ددې داخستلو زيات حقداردې اوکه چرې خريدار مړشوې وي نو دمال مالك دنورو قرضدارانوسره يو برابردې،

**قوله:**﴿ عَنْ عُمَرَ بْنِ خَلْدَةَ قَالَ أَتَيْنَا أَبَا هُرَيْرَةَ .....فَقَالَ لأَقْضِيَنَّ فِيكُمْ بِقَضَاءِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « مَنْ أَفْلَسَ أَوْ مَاتَ فَوَجَدَ رَجُلٌ مَتَاعَهُ بِعَيْنِهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ » ﴾

د بائع په احق بالمبيع کيدو کښې د شوافعو او مالکيانو ترمينځه دوه جزئی اختلافی مسئلې مونږ پورته بيان کړی دی په دې دواړو مسئلو کښې دا حديث د مالکيانو دليل دې

[1]): صحيح البخاري/الاستقراض ١٤ (٢٤٠٢)، صحيح مسلم/المساقاة ٥ (١٥٥٩)، سنن الترمذي/البيوع ٢٦ (١٢٦٢)، سنن النسائي/البيوع ٩٣ (٤٦٨٠)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٢٦ (٤٣٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٦١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/البيوع ٤٢ (٨٨)، مسند احمد (٢/٢٢٨، ٢٤٧، ٢٤٩، ٢٥٨، ٤١٠، ٤٦٨، ٤٧٤، ٥٠٨)، دي/البيوع ٥١ (٢٦٣٢) (صحيح)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٤٨٦١) (صحيح)

او د شوافعو خلاف دي، او بيا د دوه حديثو نه پس چه کوم دريم حديث راروان دي. ﴿ عَنْ عُمَرَ بْنِ خَلْدَةَ قَالَ أَتَيْنَا أَبَا هُرَيْرَةَ فِي صَاحِبٍ لَنَا أَفْلَسَ فَقَالَ لأَقْضِيَنَّ فِيكُمْ بِقَضَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم« مَنْ أَفْلَسَ أَوْ مَاتَ فَوَجَدَ رَجُلٌ مَتَاعَهُ بِعَيْنِهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ » ﴾ دا حديث د مالكيانو خلاف او د امام شافعي موافق دي. حديث عمربن خلدة اخرجه ابن ماجة، قاله المنذري.

[۳۵۲۱]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ مَالِكٍ، زَادَ وَإِنْ قَضَى مِنْ ثَمَنِهَا شَيْئًا فَهُوَ أُسْوَةُ الْغُرَمَاءِ فِيهَا.

دابوهريره رضي الله عنه نه دتير شوي روايت په شان روايت منقول دې مګرپه دې روايت کښې داسې دي که چرې اخستونکي خرڅونکي ته دقيمت څه حصه ورکړې وي نوبيا اخستونکی په مطالبه کولوکښې دنورو قرضدارانوپه شان دې اوڅوك چه مړ شوې وي اودهغه سره بعينه دکوم کس مال پيداشي برابره خبره ده چه خريدار اخستونکي ته دقيمت څه حصه ورکړې وي اوکه نه وي بهرحال دې به هم دنورو قرضدارانوپه شان وي.

[۳۵۲۲]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْجَبَّارِ يَعْنِي الْخَبَايِرِيَّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ عَيَّاشٍ، عَنِ الزُّبَيْدِيِّ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَهُوَ مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ أَبُو الْهُذَيْلِ الْحِمْصِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، قَالَ: فَإِنْ كَانَ قَضَاهُ مِنْ ثَمَنِهَا شَيْئًا فَمَا بَقِيَ فَهُوَ أُسْوَةُ الْغُرَمَاءِ، وَأَيُّمَا امْرِءٍ هَلَكَ وَعِنْدَهُ مَتَاعُ امْرِءٍ بِعَيْنِهِ اقْتَضَى مِنْهُ شَيْئًا، أَوْلَمْ يَقْتَضِ فَهُوَ أُسْوَةُ الْغُرَمَاءِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: حَدِيثُ مَالِكٍ، أَصَحُّ.

دابوبکر بن عبد الرحمن بن حارث بن هشام نه دمالك دحديث په شان روايت نقل شوې دې البته په دې روايت کښې صرف دا اضافه ده چه: که چرې خريدار ددې مال دقيمت نه يوڅه اداکړې وي نودمال مالك به دنورو قرضداروسره مساوي وي. امام ابوداؤد فرمائی دمالك حديث زيات درست دې.

[۳۵۲۳]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ وَهُوَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ أَبِي الْمُعْتَمِرِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ خَلْدَةَ، قَالَ: أَتَيْنَا أَبَا هُرَيْرَةَ، فِي صَاحِبٍ لَنَا أَفْلَسَ، فَقَالَ: "لأَقْضِيَنَّ فِيكُمْ بِقَضَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَفْلَسَ أَوْمَاتَ فَوَجَدَ رَجُلٌ مَتَاعَهُ بِعَيْنِهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ".

عمرو بن خلده نه روايت دې فرمائی چه مونږ ديو کس دمعاملې په سلسله کښې دابوهريره به په خدمت کښې حاضر شو څوك چه مفلس شوې وو، ابوهريره اووئيل زه به په تاسو کښې دنبي عليه السلام دفيصلې په شان فيصله کوم اوهغه داده څوك چه مفلس شي يامړ شي اوبيادمال مالك خپل خيز بعينه ورسره پيداکړي نودنورو قرضدارانوپه نسبت به د دخپل مال زيات حقدار وی.

---

[1]): انظر حديث رقم: (۳۵۱۹)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٦١) (صحيح)

[2]): انظر حديث رقم: (۳۵۱۹)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٦١) (صحيح)

[3]): سنن ابن ماجه/الأحكام ۲٦ (۲۳٦۰)، انظر حديث رقم: (۳۵۱۹)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٦٩) (ضعيف)

## باب فِيمَنْ أَحْيَا حَسِيرًا

### څوک چه ناکاره څاروې په خوراک یا علاج باندې تندرست کړي

**د مسئله مترجم بها تشریح او اختلاف الائمة :**

حسیر اخستلې شوې دې د حسور نه په معنی د مانده شدن (ستړې کیدل) هغه څاروې چه په سفر کښې په لاره باندې ستړې کیدو سره د تلو نه عاجز کیدو سره اودریږی. دا خبره زیات تر په اوښانو کښې موندلې شی چه بعض وخت هغه ستړې کیدو سره داسې کینی چه بیا د اودریدو نوم نه اخلی. او بیا د هغه مالک مجبورا هغه لره هم په دې حال کښې پریخودلو سره وړاندې روان شی. د مصنف رحمه الله غرض د دې قسم اوښ حکم بیانول دی. پس په حدیث الباب کښې دی ﴿ مَنْ وَجَدَ دَابَّةً قَدْ عَجَزَ عَنْهَا أَهْلُهَا أَنْ يَعْلِفُوهَا فَسَيَّبُوهَا فَأَخَذَهَا فَأَحْيَاهَا فَهِيَ لَهُ ﴾

[٣٥٢٤]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحِمْيَرِيِّ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، وَقَالَ: عَنْ أَبَانَ، أَنَّ عَامِرًا الشَّعْبِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ وَجَدَ دَابَّةً قَدْ عَجَزَ عَنْهَا أَهْلُهَا أَنْ يَعْلِفُوهَا، فَسَيَّبُوهَا، فَأَخَذَهَا، فَأَحْيَاهَا فَهِيَ لَهُ"، قَالَ: فِي حَدِيثِ أَبَانَ، قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ: فَقُلْتُ عَمَّنْ؟، قَالَ: عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا حَدِيثُ حَمَّادٍ، وَهُوَ أَبْيَنُ وَأَتَمُّ.

عامر شعبي نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوک چه یوداسې څاروې بیاموي کوم چه خلقو دکمزورتیاپه وجه پریخودلې وي یا ورته ګیانشي ورکولې اوڅوک ورته خوراک اوعلاج وکړي اودکار قابل شي نوداڅاروې هم دده دي، ابان ونیلی دی مادشعبي نه تپوس اوکړو چه دنبی علیه السلام داحدیث دي دچانه اوریدلئي دي. هغه اوئیل یونه دډیرونه مي اوریدلي دي. امام ابوداؤد فرمائی داد حماد روایت دي او دا روایت زیات واضح اوکامل دي.

په دې حدیث کښې دا دی چه کوم سړی دا قسم څناور کوم چه د هغه مالک په خپل څائې باندې پریخودلې وی اونیسی او بیا د هغه احیاء اوکړی لکه چه د ارض موات احیاء کیږی یعنی په هغه باندې خوراک څکاک اوکړی او خدمت ئې اوکړی چه په هغې سره هغه دوباره کار ته تکړه شی ﴿ فهی له ﴾ نو دا څاروې د هغه شو، دامام احمد، اسحق او ابن راهویه رحمهم الله په دې حدیث باندې عمل دې. او مصنف رحمه الله هم چونکه غالبا حنبلی دې هم په دې وجه هغوی دا باب قائمولو سره د حنابله مذهب ثابت کړې دې. او جمهور دا وائی چه دا څاروې ظاهر دا ده چه لقطه ده او د لقطې حکم په احادیثو د لقطې کښې د دې خلاف ذکر شوې دې، او هغه احادیث د دې حدیث په نسبت زیات صحیح او مشهور دی لهذا هم په هغې باندې به عمل کولې شي. ﴿ من ترک دابة بمهلک ﴾ مهلک موضع د هلاکت، یعنی داسې غیر آباد څائې چه هلته د ګیا او اوبو نه کیدو په وجه باندې د څاروی د هلاکت ویره وی.

**شرح السند :**

د باب د ړومبی حدیث په سند کښې داسې دی ﴿ وقال عن ابان ان عامر الشعبی ﴾ د قال ضمیر

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٠١، ١٨٨٦٣) (حسن)

د مصنف استاد موسی بن اسماعیل ته راجع دي او د موسی د دې حدیث په سند کښې دوه استاذان دی د حاء دتحویل نه مخکښې چه کوم سند دې په هغې کښې د هغوی [۳۵۲۳] استاد حماد دې او په روستو سند کښې استاد ابان دې، نو مصنف رحمه الله دا فرمائی چه موسی چه کله دا حدیث حماد ته بیان کړو نو هغه وخت کښې هغوی په سند کښې ﴿عن الشعبی﴾ اونیلو او د هغوی سند کوم چه د ابان نه دې په هغې کښې هغوی په ځائې د شعبی ﴿ان عامر الشعبی﴾ وئیلې دي ګویا دوه فرقونه شو یو د عَنْ او اَنَّ [۱]..... او دویم دا چه په رومبی روایت کښې د شعبی نوم ذکر نه دې، او په دویم کښې د شعبی نوم عامر ذکر دې.

[۳۵۲۵] ([۲]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ حَمَّادٍ يَعْنِي ابْنَ زَيْدٍ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، يَرْفَعُ الْحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ تَرَكَ دَابَّةً بِمَهْلَكٍ فَأَحْيَاهَا رَجُلٌ، فَهِيَ لِمَنْ أَحْيَاهَا".

عبيدالله دا روایت د عامر شعبي نه مرفوع نقل کړې دې چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوک چه یوڅاروې دتباهۍ په حال کښې پریږدی اوبل څوک ئې بوځي او دوباره ئې تندرست کړي نودا څاروې به دده وي چاچه دده خدمت کړې وي.

## بَابٌ فِي الرَّهْنِ
### د ګروی (ګانړه) بیان

[۳۵۲٦] ([۳]) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ زَكَرِيَّا، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَبَنُ الدَّرِّ يُحْلَبُ بِنَفَقَتِهِ إِذَا كَانَ مَرْهُونًا، وَالظَّهْرُ يُرْكَبُ بِنَفَقَتِهِ إِذَا كَانَ مَرْهُونًا، وَعَلَى الَّذِي يَرْكَبُ وَيَحْلِبُ النَّفَقَةُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ عِنْدَنَا صَحِيحٌ.

ابوهریره رضی الله عنه دنبی علیه السلام نه روایت کوی فرمائی چه دلنګ څاروي پئ به دمالك په خرچه باندې لوشلې شي کله چه څاروي رهن کړي شوي اوهمدارنګې په رهن کړي شوي څاروي باندې دسوریدو مسئله هم ده اوڅوك چه څاروي لوشي دده په ذمه باندې ددغه څاروي خوراك هم دي اوچه څوك ورباندې سورلي کوي دده په ذمه هم ددغه څاروي خوراك دي.
امام ابوداؤد فرمائی داحدیث اګرچه دقیاس خلاف دي لیکن دسندپه اعتبارسره زمونږپه نزد باندې زیات صحیح دي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « لَبَنُ الدَّرِّ يُحْلَبُ بِنَفَقَتِهِ إِذَا كَانَ مَرْهُونًا وَالظَّهْرُ يُرْكَبُ بِنَفَقَتِهِ إِذَا كَانَ مَرْهُونًا وَعَلَى الَّذِي يَرْكَبُ وَيَحْلِبُ النَّفَقَةُ » ﴾

### شرح الحديث من حيث الفقه وبيان المذاهب:

په حدیث الباب کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده یعنی انتفاع المرتهن بالمرهون اول په دې باندې ځان پوهه کړئ، هغه دا چه د امام احمد رحمه الله مسلک دا دې چه مرهون څیز که څه حیوان

---

[۱] ) والفرق بينهما ان الرواية بعن يكون من التلميذ عن استاذه بخلاف الرواية بان.
[۲] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٠١، ١٨٨٦٣) (حسن)
[۳] ): صحيح البخاري/الرهن ٤ (٢٥١١)، سنن الترمذي/البيوع ٣١ (١٢٥٤)، سنن ابن ماجه/الرهون ٢ (٢٤٤٠)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٢٨، ٤٧٢) (صحيح)

دې د سورلئ لائق یا د پیو قابل نو د مرتهن دپاره د هغې نه منتفع کیدل جائز دی. یعنی دهغې پئ دې هغه خپله اولشي او که دسورلئ څناوروی نو په هغې باندې دې سورېږي، او په دې صورت کښې به ګیا دانه او خرچه د مرتهن په ذمه وی. هم هغه به پرې خوراک کوی او هم هغه به ترې نه فائده اخلی ګینې مالک خو به ترې نه هسې هم د مالک کیدوپه حیثیت منتفع وی. او هم د هغه په ذمه به د دې نفقه وی. د ائمه ثلاثه په نزد د مرتهن د شئ مرهون نه منتفع کیدل جائز نه دی، د حنابله استدلال د حدیث الباب نه دې او مصنف چونکه حنبلی دې نو په ظاهر کښې د هغوی مقصد هم دا دې. حنابله په نفقته کښې باء ته سببیه وئیلې ده یعنی مرتهن د نفقې په سبب د هغې پئ لوشلې شی او په هغې باندې سوریدې شی،

**(د جمهورو د طرفه جوابونه)**

د جمهورو د طرف نه په دې حدیث کښې دوه جوابونه دی :

**(رومبی جواب):** یو دا چه دا حدیث منسوخ دې، دویم دا چه دا د هغه وخت خبره ده چه د ربا حرمت نازل شوې نه وو، بیا چه کله د ربا حرمت نازل شو نو دا حدیث هم منسوخ شو، د مرتهن د مرهون څیز نه فائده اخستل ګویا د خپل قرض نه فائده اخستل دی. ﴿ کل قرض جر نفعا فهو ربا ﴾ قاعده کلیه ده،

**(دویم جواب):** دویم جواب دا ورکړې شوې دې چه ﴿ بنفقته ﴾ کښې با سببیه نه ده بلکه باء دپاره د الصاق ده او د یحلب چونکه فاعل ذکر نه دې چه څوک دې په دې وجه د هغې فاعل به اصل مالک منلې شی. او باء به د الصاق دپاره وی او د الدر نه مراد چونکه په حدیث کښې ذات الدر دې نو د پوره حدیث مطلب به دا شی چه د ذات الدر پئ به لوشلې شی د هغه د خرچ سره، یعنی چه کله د ذات الدر مالک، د مالک کیدو په حیثیت سره د هغې پئ لوشی نو د هغې سره به د هغې نفقه هم دهغه په ذمه باندې وی په دې صورت کښې به دا حدیث د جمهورو خلاف نه وی.

**قوله:** ﴿ قال ابوداؤد : هو عندنا صحیح ﴾ مصنف رحمه الله په ظاهر کښې دا فرمائی چه د دې حدیث کومه معنی چه متبادر ده چه که مرتهن که د ذات الدر پئ لوشی نو د هغه نفقه هم د هغه په ذمه ده دا حکم زمونږ په نزد صحیح او ثابت دې. [1] یعنی اګر که د قیاس خلاف دې خو چونکه حدیث ثابت دې په دې وجه چه کوم حکم ددې نه مستفاد کیږی هغه هم صحیح او قابل عمل دې، منسوخ او فاسد نه دې.

والحدیث اخرجه البخاری، والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۵۲۷] ([2]) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ لَأُنَاسًا مَا هُمْ بِأَنْبِيَاءَ، وَلَا شُهَدَاءَ يَغْبِطُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ، وَالشُّهَدَاءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِمَكَانِهِمْ مِنَ اللَّهِ تَعَالَى، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، تُخْبِرُنَا

[1] د امام ترمذی رحمه الله په قول ﴿ هذا حدیث حسن صحیح ﴾ باندې چه کوم مشهور اشکال او جواب دې په هغې کښې حافظ ابن حجر رحمه الله دا فرمائی ﴿ صحیح اي من حیث الحکم وحسن من حیث السند ﴾

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰٦٦۱) (صحیح)

مَنْ هُمْ؟، قَالَ: هُمْ قَوْمٌ تَحَابُّوا بِرُوحِ اللَّهِ عَلَى غَيْرِ أَرْحَامٍ بَيْنَهُمْ، وَلَا أَمْوَالٍ يَتَعَاطَوْنَهَا، فَوَاللَّهِ إِنَّ وُجُوهَهُمْ لَنُورٌ، وَإِنَّهُمْ عَلَى نُورٍ، لَا يَخَافُونَ إِذَا خَافَ النَّاسُ وَلَا يَحْزَنُونَ إِذَا حَزِنَ النَّاسُ، وَقَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ: أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ سورة يونس آية ٦٢".

دعمربن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي: يقيناً دالله تعالى په بندګانو کښې داسې خلق شته کوم چه انبياء نه دی اونه شهداء دي ليکن انبياء اوشهداء به وربانديې غبطه کوي په وجه دمرتې ددوی دالله تعالى سره په ورځ د قيامت باندې، خلق وعرض وکړ واي دالله رسوله ايا مونږ به خبرنکړې چه دوی څوک دي؟نبي ﷺ اوفرمائيل په غير درشته دارئ نه دالله درضا دپاره په خپل مينځ کښې ديوبل سره محبت کوي او په غير ددينه چه خپل مالونه ئې يوبل ته ورکړي وي، په الله قسم ددوی مخونه به دنورنه وي اودوی به په نور باندې وي اودوی به ويرېږي نه کله چه خلق ويرېږي اونه به دوی غمژن کيږي کله چه خلق غمژن وي او بيا ئي دا ايت کريمه ولوستو: «ألا إن أولياء الله لا خوف عليهم ولا هم يحزنون».

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَأْكُلُ مِنْ مَالِ وَلَدِهِ

### د خپل اولاد د امدن د استعمالولو بيان

[٣٥٢٨](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَمَّتِهِ، أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، فِي حِجْرِي يَتِيمٌ أَفَآكُلُ مِنْ مَالِهِ؟، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ أَطْيَبِ مَا أَكَلَ الرَّجُلُ مِنْ كَسْبِهِ وَوَلَدُهُ مِنْ كَسْبِهِ".

عائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دی دانسان دپاره ډير پاك اوصاف خوراك هغه دې کوم چه ده پخپل محنت سره حاصل کړي وي اودبچي ګټه دپلار ګټه ده.

﴿ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ عَمَّتِهِ أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ رضي الله عنها فِي حِجْرِي يَتِيمٌ أَفَآكُلُ مِنْ مَالِهِ فَقَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ مِنْ أَطْيَبِ مَا أَكَلَ الرَّجُلُ مِنْ كَسْبِهِ وَوَلَدُهُ مِنْ كَسْبِهِ » ﴾

### شرح الحديث :

د عماره د ترور نه روايت دي هغه فرمائي چه ما د عائشې رضي الله عنها نه تپوس اوکړو چه زما په پالنه کښې يو يتيم ماشوم دې. ممکنه ده چه هغه يتيم د هغې خوئې وی يا ئې نمسې وی (بذل)نو آيا زه د هغې په مال کښې څه خوړلې شم؟ په دې باندې عائشې رضي الله عنها جواب ورکړو چه د رسول الله ﷺ ارشاد دی چه غوره روزی او خوراک د انسان هغه دې کوم چه خپله د هغه د ګټې نه وی او د سړی اولاد هم د هغه د ګټې نه دې لهذ د اولاد ګټه خپله د هغه ګټه شوه. د دې نه معلومه شوه چه د مور پلار دپاره د اولاد د ګټې نه اخستل حلال او جائز دی. يعنی اګر چه بغير د هغوی د اجازت نه وی، خو فقهاء کرامو دا د حاجت سره مقيد کړې دې يعنی د حاجت په وخت اخستلې شی. او که حاجت نه وی نو بيا بغير د اجازت نه اخستل جائز نه دی. (بذل)

---

١): سنن الترمذي/الأحكام ٢٢ (١٣٥٨)، سنن النسائي/البيوع ١ (٤٤٥٤)، سنن ابن ماجه/التجارات ١ (٢١٣٧)، ٦٤ (٢٢٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٦١، ١٧٩٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١/٦، ٤٢، ١٢٧، ١٦٢، ١٩٣، ٢٢٠)، سنن الدارمي/البيوع ٦(٢٥٧٩) (صحيح)

[۳۵۲۹] (¹) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "وَلَدُ الرَّجُلِ مِنْ كَسْبِهِ مِنْ أَطْيَبِ كَسْبِهِ فَكُلُوا مِنْ أَمْوَالِهِمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: حَمَّادُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ زَادَ فِيهِ إِذَا احْتَجْتُمْ، وَهُوَ مُنْكَرٌ.

عائشه رضي الله عنها نه روایت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائیلي دي دانسان دپاره دهغه اولاد هم دده امدن دي بلکه دا بهتر امدن دهٔ تاسو د خپل اولاد دمال نه خورئ. امام ابوداؤد فرمائي حماد بن انې سليمان په دې روايت کښې داذا احتجتم لفظ زياتي کړي دي ليکن دااضافه بده ګنړلې شوي ده.

﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ حَمَّادُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ زَادَ فِيهِ « إِذَا احْتَجْتُمْ ». وَهُوَ مُنْكَرٌ. ﴾ يعني د حماد بن ابي سليمان په روايت کښې په حديث مذکور کښې د عند الاحتياج د قيد اضافه ده، پورته مونږ ليکلي دی چه فقهاء کرام هم داسې فرمائي چه دا حکم عند الاحتياج دې، خو مصنف رحمه الله په حديث کښې د دې زيادت انکار کړې دې هغوی دا زيادت ثابت نه مني او منکر ورته وائي، د مصنف رحمه الله په دې رائې باندې حضرت په بذل کښې کلام فرمائيلې دې او دا چه دا منکر نه بلکه زيات د ثقه دي. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۵۳۰] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا حَبِيبٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لِي مَالًا وَوَلَدًا وَإِنَّ وَالِدِي يَحْتَاجُ مَالِي، قَالَ: أَنْتَ وَمَالُكَ لِوَالِدِكَ، إِنَّ أَوْلَادَكُمْ مِنْ أَطْيَبِ كَسْبِكُمْ، فَكُلُوا مِنْ كَسْبِ أَوْلَادِكُمْ".

عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه دده دنيکه نه روايت کوی فرمائي چه يو کس دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې وکړو أي دالله رسوله زماسره مال دي اوزما اولاد هم شته اوزماپلار زما مال ته محتاج دي نبي عليه السلام اوفرمائيل ستامال ستاد پلار دپاره دي څکه چه ستادپاره ستاولاد غوره امدن دي اوته دخپل اولاد دګټلي شوي مال نه خوره.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَجِدُ عَيْنَ مَالِهِ عِنْدَ رَجُلٍ

### که څوک خپل يوشي دبل چا سره اووينی نو هغه اخستلې شي

### د ترجمة الباب والا مسئلې تشريح:

د دې نه مخکښې نزدې چه کوم باب تير شو ﴿ باب فی الرجل يفلس فيجد الرجل متاعه بعينه ﴾ په هغه او دې باب کښې د فرق کتلو ضرورت دي کوم چه د دې باب په حديث کښې د غور کولو نه معلوم شوې دې هغه دا چه د باب اول تعلق د غاصب يا سارق سره نه دې او نه د مديون سره دي بلکه د مشتری من الغاصب او مشتری من السارق سره دې. يعني يو کس د بل کس مال غلا کړو او بيا هغه غل دا مال په چا باندې خرڅ کړو او بيا اصل مالک دا خپل څيز د دې مشتری سره اوليدو، هم په دې باندې قياس کولو سره غصب، چه يو کس د بل مال غصب کړو او بيا هغه غاصب دا مال د بل سړی په لاس باندې خرڅ کړو او بيا اصل

---

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۹۲) (حسن صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۶۷۰، ۸۶۷۵)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/التجارات ۶۴ (۲۲۹۲)، مسند احمد (۱۷۹/۲) (حسن صحيح)

مالک دا خپل څيز د مشتری من الغاصب سره اوليدو. نو د دې په باره کښې په حديث الباب کښې دا دی.

[۳۵۳۱](1) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مُوسَى بْنِ السَّائِبِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ عِنْدَ رَجُلٍ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ، وَيَتَّبِعُ الْبَيِّعُ مَنْ بَاعَهُ".

دسمره بن جندب نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی کوم يوګس چه بعينه خپل مال دچاسره بيامومي نودې ددې څيز زيات حقداردې اوچاچه دا اخستلی وي نوهغه دې دخرڅونکي نه مطالبه وکړي.

﴿ مَنْ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ عِنْدَ رَجُلٍ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ وَيَتَّبِعُ الْبَيِّعُ مَنْ بَاعَهُ ﴾

بيع په معنی د مشتری، يعنی دې سړی دا خپل مال چا سره اوليدو نو هغه مالک د دې زيات مستحق دې او مشتری له پکار دی چه هغه اولګی په خپل بائع پسې. يعنی په صورت مذکوره کښې دې هغه مالک خپل څيز د مشتری نه واخلی او بيا هغه مشتری له پکار دی چه د خپل ثمن مطالبه د بائع نه اوکړی. د بائع نه مراد غاصب او سارق دې چه کوم حکم په دې حديث کښې ذکر دې، فقهاء کرام هم د دې په باره کښې دغه شان فرمائی خو په داسې طريقه چه هغه مالک د مشتری مخکښې په بينه سره ثابت کړی چه دا څيز زما دې.

والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَأْخُذُ حَقَّهُ مِنْ تَحْتِ يَدِهِ

### که چرې څوک دامانت د مال نه د خپل حق په اندازه څه وصول کړی؟

[۳۵۳۲](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ هِنْدًا أُمَّ مُعَاوِيَةَ، جَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ، رَجُلٌ شَحِيحٌ، وَإِنَّهُ لَا يُعْطِينِي مَا يَكْفِينِي وَبَنِيَّ، فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ أَنْ آخُذَ مِنْ مَالِهِ شَيْئًا؟ قَالَ: خُذِي مَا يَكْفِيكِ وَبَنِيكِ بِالْمَعْرُوفِ".

عائشه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه دمعاويه مور، ،هنده،، دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او عرض ئې ورته اوکړو چه ابوسفيان يو کجوس سړې دې ماته دومره مال نه راکوي چه زما او زمادچودپاره کافي شي که چرې زه دده دمال نه دومره آخلم نوايا په ما باندې به څه ګناه وي؟ نبی ﷺ اوفرمائيل درواج مطابق دومره مال اختلې شي کوم چه ستا او ستادچودپاره پوره کيږي (يعنی ددينه زيات مه اخله).

﴿ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ هِنْدًا أُمَّ مُعَاوِيَةَ جَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَتْ إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيحٌ الخ ﴾

---

(1): سنن النسائي/البيوع ۹۴ (۴۶۸۵)، (تحفة الأشراف: ۴۵۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۱۳، ۱۸) (ضعيف)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۲۶۱، ۱۶۹۰۴)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ۹۵ (۲۲۱۱)، المظالم ۱۸ (۲۴۶۰)، النفقات ۵ (۵۳۵۹)، ۹ (۵۳۶۴)، ۱۴ (۵۳۷۰)، الأيمان ۳ (۶۶۴۱)، الأحكام ۱۴ (۷۱۶۱)، صحيح مسلم/الأقضية ۴ (۱۷۱۴)، سنن النسائي/آداب القضاة ۳۰ (۵۴۲۲)، سنن ابن ماجه/التجارات ۶۵ (۲۲۹۳)، مسند احمد (۶/۳۹، ۵۰، ۲۰۶)، سنن الدارمي/النكاح ۵۴ (۲۳۰۵) (صحيح)

عائشه رضي الله عنها فرمائی چه د معاویه مور هنده رضي الله عنها د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او د خپل خاوند ابوسفيان رضي الله عنه شکایت ئې اوکړو چه هغه شوم سړې دې او زما د خرچ دپاره دومره نه راکوی چه زما او زما د اولاد دپاره کافی شی نو آیا زه د هغه په مال کښې بغیر د اجازت نه څه اخستلې شم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل او... په قدر د حاجت اخستلې شې. یعنی په عرف او عادت کښې چه عام طور څومره کافی کیږی د هغې مطابق اخستلې شې.

## د مسئلة الظفر تشريح او مذاهب ائمه :

په دې حدیث کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده د هغې نوم دې مسئلة الظفر یعنی د یو سړی د بل سړی په ذمه څه حق دې کوم چه هغه نه ادا کوی نو آیا په دې صورت کښې هغه صاحب حق خپل حق د هغه سړی په مال کښې بغیر د اجازت نه په پټه اخستلې شی یا نه؟ د دې حدیث نه خو هم دا معلومیږی چه اخستلې شی، په فقهاء کرامو کښې د امام احمد رحمه الله مسلک د دې خلاف دې د هغوی په نزد مطلقًا نه شی اخستلې هغوی دې ته خیانت وائی او د هغوی استدلال د هغه حدیث نه دې کوم چه هم په دې باب کښې د دې نه پس راروان دې. د باقی ائمه ثلاث په نزد صاحب حق خپل حق اخستلې شی. خو په تفصیل کښې لږ اختلاف دې ﴿فعند الشافعي ياخذ من جنس حقه الا اذا تعذر الجنس فمطلقا﴾ یعنی د امام شافعی رحمه الله په نزد صاحب حق خپل حق اخستلې شی خو چه کوم څیز اخلی هغه من جنس حقه کیدل پکار دی، خلاف جنس اخستل جائز نه دی. مثلاً د کپړې په بدل کښې کپړه اخستلې شی دراهم او دنانیر وغیره نه شی اخستلې خو دا چه جنس حقه اخستل متعذر وی نو بیا د هغوی په نزد خلاف جنس هم اخستلې شی او د احنافو په نزد په دې کښې دوه روایتونه دی، په یو روایت کښې مطلقا نه شی اخستلې، یعنی یو روایت دا دې چه مطلقا جائز نه دې لکه چه د امام احمد رحمه الله مذهب دې او دویم روایت دا دې چه صرف من جنسه حق اخستلې شی (والنقدان ای الدرهم والدنانير من جنس واحد) او د امام مالک رحمه الله نه په دې کښې درې روایتونه دی د مذاهب ثلاثه مذکوره په شان. والحديث اخرجه البخاري ومسلم وابن ماجه، قاله المنذري.

[۳۵۳۳](¹) حَدَّثَنَا خُشَيْشُ بْنُ أَصْرَمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: جَاءَتْ هِنْدٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ، رَجُلٌ مُمْسِكٌ، فَهَلْ عَلَيَّ مِنْ حَرَجٍ أَنْ أُنْفِقَ عَلَى عِيَالِهِ مِنْ مَالِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ؟، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا حَرَجَ عَلَيْكِ أَنْ تُنْفِقِي بِالْمَعْرُوفِ".

عائشه رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه هنده.. د نبی علیه السلام په خدمت کښې حاضره شوه او عرض ئې ورته اوکړو چه ابوسفیان بخیل سړې دې ایا ما دپاره څه حرج شته چه زه دده د مال نه واخلم او هغه په ده اوده د اولاد په خوراک څښاک باندې خرچ کړم نبی علیه السلام اوفرمائیل که چرې ته د دستور مطابق دده په اولاد باندې خرچ اوکړې نو ستا دپاره څه ګناه نشته.

¹): صحيح مسلم/ الأقضية ٤ (١٧١٤)، سنن النسائي/ آداب القضاة ٣٠ (٥٤٢٢)، (تحفة الأشراف: ١٦٦٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٥/٦) (صحيح)

[۳۵۳٤]() حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، أَنَّ يَزِيدَ بْنَ زُرَيْعٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ يَعْنِي الطَّوِيلَ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ الْمَكِّيِّ، قَالَ: "كُنْتُ أَكْتُبُ لِفُلَانٍ نَفَقَةَ أَيْتَامٍ، كَانَ وَلِيَّهُمْ فَغَالَطُوهُ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ، فَأَدَّاهَا إِلَيْهِمْ فَأَدْرَكْتُ لَهُمْ مِنْ مَالِهِمْ مِثْلَيْهَا، قَالَ: قُلْتُ: أَقْبِضُ الْأَلْفَ الَّذِي ذَهَبُوا بِهِ مِنْكَ، قَالَ: لَا، حَدَّثَنِي أَبِي، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنِ ائْتَمَنَكَ، وَلَا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ".

دیوسف بن ماهك مکی نه روایت دې فرمائي چه مابه دیوکس حساب کتاب لیکلودهغه یتیمانانودمال دچاچه ده پرورش کولونوهغوی یوځل دده نه په دوکه کښې زر درهمه زیات یوړل نوپه یووخت کښې دده لاس ته دهغوی دمال نه ددې دوچند مال راغې ماورته ووئیل چه خپل زر درهمه ورنه واخله په کوموکښې چه ئې ته دوکه کړې وې هغه ووئیل هیڅ کله نه ماته زما پلارحدیث بیان کړې دې کوم چه هغه دنبی ﷺ نه اوریدلي ووچه فرمائیل في: چاچه درسره امانت ایخودلې وي هغه ته خپل امانت وسپاره او چاچه درسره خیانت کړې وی ته دهغه سره خیانت مه کوه.

﴿عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ الْمَكِّيِّ قَالَ كُنْتُ أَكْتُبُ لِفُلَانٍ نَفَقَةَ أَيْتَامٍ كَانَ وَلِيَّهُمْ فَغَالَطُوهُ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ فَأَدَّاهَا إِلَيْهِمْ فَأَدْرَكْتُ لَهُمْ مِنْ مَالِهِمْ مِثْلَيْهَا الخ﴾

یوسف بن ماهک وائی چه فلانې سړې کوم چه د بعض یتیم ماشومانو متولی وو د هغوی د خرچ حساب به ئې کولو یو کرت داسې اوشوه چه دې یتیمو ماشومانو (یعنی چه کله هغوی هوښیار شو) خپل متولی ته زر درهمو سره په مغالطه کښې واچولو، متولی د هغوی د خیرو اعتبار کولو سره زر دراهم ادا کړل نو هغه یوسف کوم چه د هغوی محاسب وو هغوی وائی چه څو ورځې پس په حساب کتاب کښې زه یو داسې ځائې ته اورسیدم چه په هغې کښې زما دپاره دا خبره ډیره آسانه وه چه هغه زر درهم د هغوی د هغه یتیمانو په مال کښې واخلم، پس ما د هغه په باره کښې د هغه سړي یعنی متولی نه معلومه کړه چه که ستاسو اجازت وی نو زه به ستاسو زر درهمه د حساب نه اوباسم نو هغوی زه منع کړم او د رسول اللهﷺ دا حدیث ئې راته واورلو کوم چه هغه ته د هغه د پلار په واسطه رارسیدلې وو. ﴿أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنِ ائْتَمَنَكَ وَلَا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ﴾ چه کوم سړی ته خپل امین جوړ کړې ئې د هغه امانت هغه ته پوره پوره حواله کړه. او کوم سړي چه تاسره خیانت کوی ته د هغه سره خیانت مه کوه په دې مسئلة الظفر کښې د امام احمدرحمه الله هم دا حدیث دلیل دې، خو جمهور دا وائی چه په دې حدیث کښې خو د خیانت نه منع کړې شوې ده او د چا نه خپل حق وصول کول چه هغه هر څنګه وی بغیر د چا د اجازت نه دې ولې نه وی دا خیانت چرته دې. یوسف بن ماهک کوم چه د حدیث راوی دې هغه چه د کوم صاحب کاتب وو یعنی متولی ایتام د هغه نوم خو دلته په روایت کښې ذکر نه دې، هغوی دا حدیث د خپل پلار په حوالې سره نقل کړې دې لهذا د هغوی پلار هم مجهول شو په دې وجه په دې پورته متن والا راوی کوم صحابی دې دا معلومه نه شوه. د دې نه پس مصنفرحمه الله هم دا متن په روایت د ابوهریرهرضي الله عنه مرفوعا ذکر کړې دې.

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٧٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٤/٣) (صحیح)

[۳۵۳۵](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَأَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَا: حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ، عَنْ شَرِيكٍ، قَالَ ابْنُ الْعَلَاءِ، وَقَيْسٌ، عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنِ ائْتَمَنَكَ، وَلَا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي: چاچه درسره امانت ايخودلي وي هغه ته خپل امانت وسپاره او چاچه درسره خيانت كړې وي ته دهغه سره خيانت مه كوه.

قال المنذري وحديث ابي هريرة اخرجه الترمذي وقال حسن غريب اهـ (عون المعبود)

## باب فِي قَبُولِ الْهَدَايَا

### د تحفو د قبلولو بيان

د دې نه مخكښې په كتاب الخراج كښې د هدايا العمال په عنوان سره باب تير شوې دې چه په هغې كښې مصنف د ابن اللتبيه حديث ذكر كړې دې، او دا باب چه كوم دې مطلق د هديه سره متعلق دې، د عمالو سره د دې تعلق نشته خو د هدايا العمال په عنوان سره يو مستقل باب په كتاب القضاء كښې هم راروان دې يعنى د كتاب القضاء په مناسبت سره، او د دې نه مخكښې چه كوم تير شوې دې هغه د كتاب الخراج په مناسبت سره وو او چونكه د مال مسئله ډيره زيات احتياط طلب ده په دې وجه د هغې د اهميت د وجې نه منصف رحمه الله دوه ځايه د دې باب قائم كړې دې.

[۳۵۳۶](²) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، وَعَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ مُطَرِّفٍ الرُّؤَاسِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عِيسَى وَهُوَ ابْنُ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ السَّبِيعِيُّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقْبَلُ الْهَدِيَّةَ وَيُثِيبُ عَلَيْهَا".

عائشه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ به تحفې قبلولي اودهغې بدلې به ئې هم وركولې.

**قوله:** ﴿عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَقْبَلُ الْهَدِيَّةَ وَيُثِيبُ عَلَيْهَا﴾

يعنى د رسول الله ﷺ عام عادت شريفه د هديه د قبلولو وو او دا هم چه رسول الله ﷺ به خپل مهدى ته هم هديه وركوله. امام خطابى رحمه الله فرمائي چه د رسول الله ﷺ هديه قبلول دا د محاسن اخلاق د باب نه ده چه د هغې په ذريعه به رسول الله ﷺ د خلقو تاليف قلوب فرمائيلو. او هديه قبلولو سره د هغې خوراك دا د هغوى خاص شان او علامت د كوم ذكر چه په تيرو آسماني كتابو كښې هم راغلې دې، يعنى دا چه هغوى به هديه قبلوى او صدقه به نه قبلوى، او د هديه د قبلولو نه پس د رسول الله ﷺ خپله هغه ته هديه وركول دا مصلحت ښكاره كوى چه رسول الله ﷺ د بل چا د احسان لاندې رانشي. (بذل) والحديث

¹): سنن الترمذي/البيوع ۳۸ (۱۲٦٤)، (تحفة الأشراف: ۱۲۸۳٦، ۱۸٦۲۳)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/البيوع ۵۷ (۲٦۳۹) (حسن صحيح)

²): صحيح البخاري/الهبة ۱۱ (۲۵۸۵)، سنن الترمذي/البر والصلة ۳٤ (۱۹۵۳)، (تحفة الأشراف: ۱۷۱۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۹۰) (صحيح)

اخرجه البخاري والترمذي، قاله المنذري

[۳۵۳۷](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَايْمُ اللَّهِ، لَا أَقْبَلُ بَعْدَ يَوْمِي هَذَا مِنْ أَحَدٍ هَدِيَّةً، إِلَّا أَنْ يَكُونَ مُهَاجِرًا قُرَشِيًّا، أَوْ أَنْصَارِيًّا، أَوْ دَوْسِيًّا، أَوْ ثَقَفِيًّا".

دابوهريره ﷺ نه روايت دي فرمائي چه نبی کريم ﷺ فرمائيلي دي: په الله قسم دنن نه پس به دهيچا تحفه نه قبلوم مګرهله چه دقريشي مهاجر ياد انصاری ياد دوسي يا د ثقفی کس هديه وي.

قوله: ﴿ وَايْمُ اللَّهِ لاَ أَقْبَلُ بَعْدَ يَوْمِي هَذَا مِنْ أَحَدٍ هَدِيَّةً إِلاَّ أَنْ يَكُونَ مُهَاجِرًا قُرَشِيًّا أَوْ أَنْصَارِيًّا أَوْ دَوْسِيًّا أَوْ ثَقَفِيًّا ﴾ دا حديث دلته مختصر دي کوم چه امام ترمذي رحمه الله د کتاب المناقب په آخر کښې مفصلا ذکر کړې دې هغه دا چه يو اعرابی د هغوی په خدمت کښې يو اوښه په طور د هديه پيش کړه کومه چه رسول الله ﷺ قبوله کړه او بيا ئې روستو هغه اعرابی ته د هغې اوښې په عوض کښې شپږ اوښې ورکړې خو هغه په دې باندې هم خوشحاله نه چه کله رسول الله ﷺ ته دا خبره اورسيده نو په دې باندې رسول الله ﷺ دا ارشاد اوفرمائيلو چه د هغې حاصل دا دې چه هر سړې او د هر خاندان فرد د دې لائق نه وی چه د هغه هديه دې قبول کړې شی. او بيا ئې د څو قبائلو نومونه اخستلو سره اوفرمائيل چه د دوی نه علاوه به زه بيا د چا هديه هم نه قبلوم. ﴿ ايم الله ﴾ د قسم د الفاظو نه دی ﴿ ففی المجمع وايم الله لفظ قسم ذولغات، وهمزتها وصل، وقد تقطع، تفتح وتکسر اهـ ﴾... والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري

## بَابُ الرُّجُوعِ فِي الْهِبَةِ

### هبه کړې شوې څيز واپس غوښتل

[۳۵۳۸](²) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، وَهَمَّامٌ، وَشُعْبَةُ، قَالُوا: حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْعَائِدُ فِي هِبَتِهِ كَالْعَائِدِ فِي قَيْئِهِ" قَالَ هَمَّامٌ: وَقَالَ قَتَادَةُ: وَلَا نَعْلَمُ الْقَيْءَ إِلَّا حَرَامًا.

دابن عباس ﷺ نه روايت دې فرمائي چه نبی کريم ﷺ فرمايلي دي: هبه کړي شوي څيز واپس غوښتل داسې دي لکه څوك چه خپلې قې (اولتوې) په خپله خوری. همام راوی وئيلی دی چه قتاده وئيلی دی مونږ به قې حرام ګڼړلو نو همدارنګې هبه کړي شوي څيز واپس غوښتل به هم حرام وي.

[۳۵۳۹](³) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ،

¹): سنن الترمذي/المناقب ٧٤ (٣٩٤٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٢٠) (صحيح)

²): صحيح البخاري/الهبة ١٤ (٢٥٨٨)، صحيح مسلم/الهبة ٢ (١٦٢٢)، سنن النسائي/الهبة ٢ (٣٦٧٢)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٥ (٢٣٨٥)، (تحفة الأشراف: ٥٦٦٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البيوع ٦٢ (١٢٩٩)، مسند احمد (١/٢٥٠، ٢٨٠، ٢٨٩، ٢٩١، ٣٣٩، ٣٤٢، ٣٤٥، ٣٤٩) (صحيح)

³): سنن الترمذي/البيوع ٦٢ (١٢٩٩)، الولاء والبراء ٧ (٢١٣٢)، سنن النسائي/الهبة ٢ (٣٧٢٠)، سنن ابن ماجه/الهبات ١ (٢٣٧٧)، (تحفة الأشراف: ٥٧٤٣، ٧٠٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٧، ٧٨) (صحيح)

عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يُعْطِيَ عَطِيَّةً أَوْ يَهَبَ هِبَةً فَيَرْجِعَ فِيهَا، إِلَّا الْوَالِدَ فِيمَا يُعْطِي وَلَدَهُ، وَمَثَلُ الَّذِي يُعْطِي الْعَطِيَّةَ، ثُمَّ يَرْجِعُ فِيهَا كَمَثَلِ الْكَلْبِ يَأْكُلُ فَإِذَا شَبِعَ قَاءَ ثُمَّ عَادَ فِي قَيْئِهِ".

دابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دي فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي: حلال نه دی دیو کس دپاره چه یوشي هبه کړي او بیا ئې واپس اخلي مګر پلار چه خپل بچي ته څه شي ورکړي او واپس ئې ورنه اخلي نوباك نشته، او مثال دهغه کس چه هدیه چاته ورکړي او بیا ئې واپس غواړي په شان دسپی دي چه خوراك وکړي اومورشي اوقې وکړي اوبیا بیرته خپل قې خوری.

## د مذاهب ائمه تحقیق مع الدلائل:

دا مسئله اختلافی ده، د امام مالک او د شافعی او احمد په نزد د واهب دپاره رجوع کول ناجائز ده مګر دا چه دا هبه د پلار د طرف نه د خوی دپاره وی نو د پلار دپاره رجوع فی الهبة جائز ده. د دې حضراتو استدلال د باب د حدیث ثانی نه دې چه په هغې کښې دی ﴿ الا الوالد فیما یعطی ولده ﴾ او د امام شافعی رحمه الله د پلار نه علاوه په نورو اصولو کښې دوه روایتونه دی، په اصح قول کښې د باقی اصولو هم هغه حکم دې کوم چه د والد دې. او د احنافو په نزد د دې برعکس دې د هغوی په نزد د واهب دپاره په هدیه اجانب کښې رجوع کول جائز دی په دې شرط چه د موهوب له د طرف نه هغه ته عوض نه وی ملاؤ شوې ګینې جائز نه دې، بله دا چه د احنافو په نزد زوجین په دې مسئله کښې د ذی رحم محرم په حکم کښې دی. د امام مالک رحمه الله د مسلک په باره کښې علامه عینی رحمه الله لیکلی دی: ﴿ ولیس لغیر الاب الرجوع عند مالک الا ان عنده ان الام لها الرجوع ایضا اذا کان ابوه حیاء وهذا هو الاشهر عند مالک وروی عنه المنع اهـ ﴾ (تراجم) او قاضی عیاض فرمائی: ﴿وجوز مالک الرجمع مطلقا الا فی هبة احد الزوجین من الاخر اهـ ﴾ د احنافو دلیل په دې مسئله کښې دا دې ﴿ اذا کانت الهبة لذی رحم محرم لم یرجع ﴾ رواه الحاکم من حدیث الحسن عن سمرة مرفوعاً. یو روایت د دې نه مخکښې تیر شوې دې ﴿ الواهب احق بهبته مالم یثب منها ﴾ اخرجه ابن ماجة والدارقطنی من حدیث ابی هریرة مرفوعاً (تحفة)

## د احنافو د طرف نه د حدیث الباب توجیه:

او احنافو د جمهورو د دلیل یعنی د باب د دویم حدیث ﴿ لا یحل لرجل ان یعطی عطیة او یهب هبة فیرجع فیها الا الوالد فیما یعطی ولده ﴾ د دې استثناء جواب دا دې چه دا استثناء منقطع ده، یعنی په دې سره مقصود رجوع فی الهبة لره بیانول نه دی بلکه نفس تصرف دې په مال د خوی کښې یعنی عند الحاجة کومه چه متفق علیه مسئله ده چه د پلار دپاره د خوی په مال کښې تصرف د حاجت په وخت مطلقا جائز دې. (کذا فی الکوکب ۲۷۹/۱) او دا چه په حدیث کښې دی ﴿ لا یحل لاحد ان یعطی عطیة الخ ﴾ د دې مطلب عدم جواز نه دې بلکه مقصد دا دې چه داسې کول مناسب نه دی لکه چه وئیلي شی ﴿ لا یحل للواجد رد السائل ﴾ او په دې معنی باندې د حدیث د محمول کولو حاجت ځکه دې چه د نورو احادیثو سره ئې تعارض

رانشي د کومو نه چه د رجوع فی الهبة جواز ثابتيږي، دغه شان د ﴿ العائد فی هبته کالعائد فی قیئه ﴾ نه هم په عدم جواز باندې استدلال صحیح نه دې ځکه چه په بل روایت کښې دی ﴿کالکلب یعود فی قیئه ﴾ ځکه چه د کلب فعل ته حرام نه شی وئیلې کیدې، بلکه په دې سره مقصود تشنیع او تقبیح ده.

والحدیث الاول عن ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه والحدیث الثانی اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۵۴۰]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، أَنَّ عَمْرَو بْنَ شُعَيْبٍ حَدَّثَهُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَثَلُ الَّذِي يَسْتَرِدُّ مَا وَهَبَ كَمَثَلِ الْكَلْبِ يَقِيءُ فَيَأْكُلُ قَيْئَهُ، فَإِذَا اسْتَرَدَّ الْوَاهِبُ فَلْيُوَقَّفْ، فَلْيُعَرَّفْ بِمَا اسْتَرَدَّ، ثُمَّ لِيُدْفَعْ إِلَيْهِ مَا وَهَبَ".

دابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی: مثال دهغه کس چه دیوشي دهبه کولو نه پس هغه شي واپس غواړي لکه دسپی دې چه قې وکړي او بیا ئې بیرته خوري نوڅوك چه هبه وکړي او بیا ئې واپس اخستل غواړي نولکه څنګه چه هغه څیز هبه کړي شوي دي دهغه دواپس کولو وجه دې معلومه کړې شي.

﴿مَثَلُ الَّذِي يَسْتَرِدُّ مَا وَهَبَ كَمَثَلِ الْكَلْبِ يَقِيءُ ﴾

یعنی د هغه سړی حال چه د هبه کولو نه پس خپل څیز لره واپس واخلی د سپی په شان دې چه قئ اوکړی او واپس ئې اوڅټی. په وراندې روایت کښې دی چه کله یو سړې خپله هدیه واپس اخستل غواړی نو دې موهب له لره پکار دی چه خپل واهب دې د ټولو خلقو مخکښې اودروی او کومه هدیه چه هغه واپس اوړی د خلقو مخکښې دې د هغې تشهیر اوکړی او د هغې نه پس دې بیا واپس کړی.

د دې حدیث نه هم دا معلومه شوه چه د واهب دپاره د رجوع حق ثابت دې د جواز په درجه کښې خودا ډیره د بې غیرتئ خبره ده. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه بنحوه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الْهَدِيَّةِ لِقَضَاءِ الْحَاجَةِ

### دچا د ضرورت پوره کولو نه پس دهغه د هدئې قبلولو بیان

[۳۵۴۱]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ أَبِي عِمْرَانَ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ شَفَعَ لِأَخِيهِ بِشَفَاعَةٍ فَأَهْدَى لَهُ هَدِيَّةً عَلَيْهَا فَقَبِلَهَا، فَقَدْ أَتَى بَابًا عَظِيمًا مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا".

دابو امامه رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی: څوك چه په څه معامله کښې دیومسلمان ورور سفارش وکړي اوبیا دهغه نه تحفه قبوله کړي نوده دسود په یوه لویه دروازه راتګ وکړو.

---

[1]: سنن ابن ماجه/الهبات ۲ (۲۳۷۸)، سنن النسائي/الهبة ۲ (۳۷۱۹)، (تحفة الأشراف: ۸۷۲۲، ۸۶۶۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۷۵/۲) (حسن صحیح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۴۹۰۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۶۱/۵) (حسن)

**قوله:** ﴿مَنْ شَفَعَ لأَخِيهِ بِشَفَاعَةٍ فَأَهْدَى لَهُ هَدِيَّةً عَلَيْهَا فَقَبِلَهَا فَقَدْ أَتَى بَابًا عَظِيمًا مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا﴾
په دې حديث کښې په شفاعت باندې په هديه قبلولو وعيد دې او دې ته رشوت وئيلې شوې دې ځکه چه شفاعت حسنه شرعا مندوب اليه دې او په بعض صورتونو کښې واجب کيږي هم نوبيا روستو په هغه باندې هديه اخستل د شفاعت اجر لره ضائع کول دی، لکه چه په بيع کښې په سود اخستلو سره اصل بيع چه کومه حلال وه ضائع او برباديږي.

# بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُفَضِّلُ بَعْضَ وَلَدِهِ فِي النُّحْلِ

## په ځامنو کښې يوکس ته زيات مال ورکول

## د ترجمة الباب والا مسئلې تفصيل او مذهب الائمة:

نحل په معنی د عطيه، د يو سړی خپل اولاد کښې بعضو لره په بعضو باندې ترجيح ورکول په عطيه کښې دا شرعا مذموم ده. په حديث کښې د دې مذمت راغلې دې. اوس دا چه صرف مذموم ده يا ناجائز او حرام؟ په دې کښې اختلاف دې، د جمهور علماء او ائمه ثلاثه په نزد دا خلاف اولی او مکروه دی، د بعض علماء کرامو په نزد لکه امام احمد او اسحاق بن راهويه د هغوی په نزد تسوية فی النحل واجب، او تفضيل حرام دې. اوس دا چه د تسوية نه مراد څه دې؟ د بعضو شوافعو او مالکيانو او د امام احمد او زمونږ د امام محمد رحمه الله په نزد د دې نه مراد د ميراث د قاعدې په شان ﴿للذکر مثل حظ الانثيين﴾ مراد دې. او د اکثرو علماء کرامو رائې دا ده چه په ژوند کښې چه څه ورکولې شی په هغې کښې د ذکر او انثی فرق معتبر نه دې. پس په يو روايت کښې دی ﴿اولادکم فی العطية فلو کنت مفضلا احد الفضلت النساء﴾ اخرجه سعيد بن منصور والبهقی اهـ (تحفة الاحوذی) امام ترمذی رحمه الله د حديث الباب د لاندې فرمائی

﴿والعمل على هذا عند بعض أهل العلم يستحبون التسوية بين الولد حتى قال بعضهم يسوي بين ولده حتى في القبلة وقال بعضهم يسوي بين ولده في النحل والعطية (يعني الذكر والأنثى سواء) وهو قول سفيان الثوري وقال بعضهم التسوية بين الولد أن يعطي للذكر مثل حظ الأنثيين مثل قسمة الميراث وهو قول أحمد و إسحق﴾

[۳۵۴۲] ([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا سَيَّارٌ، وَأَخْبَرَنَا مُغِيرَةُ، وَأَخْبَرَنَا دَاوُدُ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، وَأَخْبَرَنَا مُجَالِدٌ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ سَالِمٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: "أَنْحَلَنِي أَبِي نُحْلًا، قَالَ إِسْمَاعِيلُ بْنُ سَالِمٍ، مِنْ بَيْنِ الْقَوْمِ نِحْلَةً غُلَامًا لَهُ، قَالَ: فَقَالَتْ لَهُ أُمِّي عَمْرَةُ بِنْتُ رَوَاحَةَ: إِيتِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَشْهِدْهُ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَشْهَدَهُ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: إِنِّي نَحَلْتُ ابْنِي النُّعْمَانَ نُحْلًا، وَإِنَّ عَمْرَةَ، سَأَلَتْنِي أَنْ أُشْهِدَكَ عَلَى ذَلِكَ، قَالَ: فَقَالَ: أَلَكَ وَلَدٌ سِوَاهُ؟ قَالَ: قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: فَكُلَّهُمْ أَعْطَيْتَ مِثْلَ مَا أَعْطَيْتَ النُّعْمَانَ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: فَقَالَ بَعْضُ هَؤُلَاءِ الْمُحَدِّثِينَ: هَذَا جَوْرٌ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: هَذَا تَلْجِئَةٌ، فَأَشْهِدْ عَلَى هَذَا غَيْرِي"، قَالَ مُغِيرَةُ فِي حَدِيثِهِ: أَلَيْسَ يَسُرُّكَ أَنْ يَكُونُوا لَكَ فِي الْبِرِّ وَاللُّطْفِ سَوَاءً؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَأَشْهِدْ

[1]): صحيح البخاري/الهبة ۱۲ (۲۵۸۷)، الشهادات ۹ (۲۶۵۰)، صحيح مسلم/الهبات ۳ (۱۶۲۳)، سنن النسائي/النحل ۱ (۳۷۰۹)، سنن ابن ماجه/الهبات ۱ (۲۳۷۵)، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۶۸/۴، ۲۶۹، ۲۷۰، ۲۷۳، ۲۷۶) (صحيح)

عَلَى هَذَا غَيْرِي". وَذَكَرَ مُجَالِدٌ فِي حَدِيثِهِ: "إِنَّ لَهُمْ عَلَيْكَ مِنَ الْحَقِّ أَنْ تَعْدِلَ بَيْنَهُمْ، كَمَا أَنَّ لَكَ عَلَيْهِمْ مِنَ الْحَقِّ أَنْ يَبَرُّوكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: فِي حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ بَعْضُهُمْ: "أَكُلَّ بَنِيكَ"، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: "وَلَدِكَ"، وَقَالَ ابْنُ أَبِي خَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ فِيهِ: "أَلَكَ بَنُونَ سِوَاهُ"، وَقَالَ أَبُو الضُّحَى، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ: "أَلَكَ وَلَدٌ غَيْرُهُ".

دنعمان بن بشير ﷺ نه روایت دې فرمائی چه زماپلار ماته څه راکړل ددې حدیث په راویانوکښې یوراوی اسماعیل بن سالم وئیلی دی چه نعمان ته ئې یوغلام ورکړې وو زمامور عمره بنت رواحه زما پلارته اووئیل چه نبی ﷺ ته حاضرشه او په دې باندې ئې ګواه کړه، هغه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې وکړو ما خپل نعمان خوي ته یوشې هبه کړې دې ماته عمرې اووئیل چه زه تاپه دې باندې ګواه کړم، نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ایا دنعمان نه علاوه نور ځامن دې شته؟ ده اووئیل ولې نه، نبی ﷺ اوفرمائی ټولو ځامنوته دې دده په شان ورکړې دي؟ هغه ووئیل نه، په بعضې روایاتوکښې راغلې دي چه نبی ﷺ اوفرمائیل دا ظلم دې اومحدثین وائی چه نبی ﷺ اوفرمائیل داد مجبورئ اوداحتیاط په وجه باندې ده (یعنی دا کار ته پخپله خوښه نه کوې) ته زمانه علاوه بل څوک په دې باندې ئې ګواه کړه مغیره پخپل روایت کښې وئیلی دی چه نبی ﷺ اوفرمائیل ایا خوښه دې نه ده چه ستاټول ځامن په فرمان بردارئ کښې یوشان وي؟ ده اووئیل ولې نه، نبی ﷺ اوفرمائیل چرته بل څوک په دې باندې ګواه کړه، اومجالد په روایت کښې دی چه نبی ﷺ اوفرمائیل په تاباندې ددوی ټولوحق دې چه ته ددوی په مینځ کښې دانصاف اودمساوات معامله وکړې لکه څنګه چه ستا په دوی ټولوباندې فرمانبرداي کول حق دي، ابن ابی مجالد په واسطه دشعبي دا الفاظ نقل کړي دير الك بنون سواه،، یعنی دده نه دې علاوه نورځامن شته؟ او ابو الضحي په واسطه دنعمان بن بشیردا الفاظ نقل کړي دي :،آلكَ ولدٌ غيرُهُ،.

﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا سَيَّارٌ وَأَخْبَرَنَا مُغِيرَةُ وَأَخْبَرَنَا دَاوُدُ عَنِ الشَّعْبِيِّ وَأَنْبَأَنَا مُجَالِدٌ وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ سَالِمٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ ﷺ ﴾

## شرح السند :

په دې حدیث کښې د مصنف استاذ امام احمد بن حنبل رحمه الله او د هغوی استاد هشیم دې. بیا هشیم دا روایت د خپلو پنځو استاذانو نه روایت کوی سیار، مغیره، داؤد، مجالد، اسماعیل او دا پنځه واړه د شعبی نه روایت کوی، پس په کتاب الاطراف کښې د ابوداؤد دا سند داسې نقل کړې شوې دې ﴿ عن ابن حنبل عن هشيم عن سيار ومغيره وداؤد بن ابی هند، ومجالد، واسماعيل بن سالم، خمستهم عن الشعبی اهـ ﴾ (بذل)خو د دې سند تعبير ګران دې د غور کولو نه پس هم په فهم کښې نه راځی.

## مضمون حدیث :

**قوله:**﴿ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ أَنْحَلَنِي أَبِي نُحْلاً قَالَ إِسْمَاعِيلُ بْنُ سَالِمٍ مِنْ بَيْنِ الْقَوْمِ انِحْلَةً غُلَامًا لَهُ ﴾ نعمان بن بشیر ﷺ فرمائی چه ماته زما پلار یو څیز هدیه کړو. د هشیم په استاذانو کښې څلورو خو داسې اوئیل او پنځم استاد یعنی اسماعیل د دې ورکړې تعین په غلام سره اوکړو چه ماته زما پلار یو غلام هبه کړو. د دې نه پس هغوی وائی چه زما مور عمره

زما پلار یعنی بشیر ته اووې چه رسول اللهﷺ ته لاړ شئ او په دې خپله هبه باندې رسول اللهﷺ گواه کړئ، هغه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شو او رسول اللهﷺ ته ئې صورت حال بیان کړو. رسول اللهﷺ ترې نه تپوس اوکړو چه آیا ستا نور ځامن شته د نعمان نه علاوه؟ هغوی عرض اوکړو جی شته نور هم.... رسول اللهﷺ ترې نه تپوس اوکړو چه تا هغه نورو ته هم غلامان ورکړی دی ځنګه چه دې نعمان ته ورکړې دې؟ هغوی عرض اوکړو چه هغوی ته خو مې نه دی ورکړی..... په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل په دې کښې د هشیم دا پنځه استاذان مختلف دی. د بعضو په روایت کښې دی چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ هذا جور ﴾ او بعض اوفرمائیل ﴿ هذا تلجئة ﴾ یعنی رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه دا بعضو ته ورکول او بعضو ته نه ورکول دا ظلم دې. او د بعض په روایت کښې چه کوم دویم لفظ دې. ﴿ وهذا تلجئة ﴾ د دې په ظاهر کښې مطلب دا دې چه دا کار په تاباندې زبردستی کړې شوې دې. یعنی ستا ښځې په تا باندې زور اچولو سره داسې کړې دی کوم چه تا خپله هم نه غوښتلو.... ﴿ فاشهد علی هذا غیری ﴾ رسول اللهﷺ اوفرمائیل زه خو گواه نه جوړیږم، په دې باندې بل څوک گواه کړه.

دې سره د جمهورو د مسلک تائید کیږی د ترجمة الباب والا مسئله کښې چه داسې کول حرام نه دی صرف مکروه دی ځکه چه که حرام وې نو رسول اللهﷺ به بل چا لره د گواه جوړولو اجازت نه ورکولې. او د دې نه مخکښې چه کوم لفظ راغلې وو..... ﴿ هذا جور ﴾ په دې سره د امام احمد بن حنبلؒ د مذهب تائید کیږی او د دې نه روستو روایت کښې دی ﴿ قال لا قال فاردده ﴾ یعنی رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه خپله هبه ترې نه واپس واخله. د دې نه د رجوع فی الهبة جواز معلومیږی چه اختلافی مسئله ده او اوس نزدې تیره شوه..........
هغه دا چه د جمهورو په نزد د پلار دپاره د ځوی په حق کښې رجوع فی الهبة جائز ده او د احنافو په نزد ناجائز ده، د دې جواب د احنافو د طرف نه دا کیدې شی چه سیدنا بشیرؓ رسول اللهﷺ ته د اشتشهاد فی الهبة دپاره راغلې وو یا د هبه کولو په باره کښې مشورې له راغلې وو چه آیا هغه هبه اوکړی یا نه؟ د دې په باره کښې شارحینو دواړه احتمالات لیکلی دی او علامه عینی د بعض روایاتو د الفاظ نه د دې د استشاره کیدو ته ترجیح ورکړې ده، لهذا ثابته شوه چه لا تر اوسه پورې د هبه تحقق نه وو شوې. په دې صورت کښې به د فاردده مطلب دا وی چه ته د خپلې هبه کولو دا اراده ترک کړه.

### په حدیث الباب کښې اختلاف روایات:

دا حدیث مشهور دې، په ټولو صحاح سته کښې ذکر کړې شوې دې. په دې ټولو روایاتو کښې د هبه تعین د غلام سره راغلې دې او په صحیح ابن حبان او طبرانی کښې د غلام په ځائې حدیقة ذکر شوې ده.....یعنی د نعمانؓ د خپل خاوند نه نعمانؓ ته د یو باغ هبه کولو ترغیب ورکړو، ابن حبان دا په تعدد د واقعې باندې محمول کړې دې هغه دا چه د نعمان د ولادت په موقع باندې د هغوی مور د اعطاء حدیقه فرمائش اوکړو. او بیا چه کله نعمان لوئې شو هغه وخت کښې ئې ترې نه دوباره دعطیه اصرار اوکړو، او دا دویمه عطیه

غلام وو، حافظ رحمه الله يو بله توجيه اختيار کړې ده هغه دا چه په شروع کښې بشير نعمان ته حديقه هبه کړې وه خو روستو ئې د هغې نه رجوع اوکړه، په دې باندې عمره دوباره اصرار شروع کړو د څه ځيز په ورکولو باندې نو هغوى په دويم کرت باندې هغه ته غلام هبه کړو خو چونکه د دې نه مخکښې ئې هبه کولو سره رجوع کړې وه په دې وجه د هغوى کور والا د غلام په هبه کولو باندې د اشهاد مطالبه اوکړه (هذا کله مأخوذ من الاوجزه/۳۲۹)

د دې واقعې په باره کښې د احقر په ذهن کښې د هميشه نه دا خبره ده چه داسې معلوميږي چه نعمان بن بشير رضي الله عنه به د عمره بنت رواحه سکه ځوئې وى او چه کوم نور اولاد ئې وو چه د هغوى د موجود کيدو تصريح په دې روايت کښې ذکر شوې ده هغه په ظاهر کښې د بشير رضي الله عنه د نورو بيبيانو نه به وى، هم په دې وجه عمره رضي الله عنها صرف د خپل ځوى په باره کښې د خپل خاوند نه د دې هبه په اصرار سره مطالبه اوکړه. والله تعالى اعلم د کتب الرجال نه د دې تحقيق ته حاجت دې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجه بنحوه، واخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه من حديث حميد بن عبد الرحمن بن عوف ومحمد بن نعمان بن بشير عن النعمان بن بشير رضي الله عنه، قاله المنذري.

[۳۵۴۳](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، حَدَّثَنِي النُّعْمَانُ بْنُ بَشِيرٍ، قَالَ: "أَعْطَاهُ أَبُوهُ غُلَامًا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا هَذَا الْغُلَامُ؟، قَالَ: غُلَامِي، أَعْطَانِيهِ أَبِي، قَالَ: فَكُلَّ إِخْوَتِكَ أَعْطَى كَمَا أَعْطَاكَ؟، قَالَ: لَا، قَالَ: فَارْدُدْهُ".

د نعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زما پلار ماته يو غلام راکړو اونبى عليه السلام ورنه تپوس اوکړو دا غلام څنګه د هغه عرض وکړو دا زما غلام دې کوم چه ماته زما پلار راکړې دې نبى عليه السلام اوفرمائيل ايا ستانورو رونړوته ئې هم داسې غلامان ورکړي دي لکه څنګه چه ئې تاته درکړې دې؟ هغه اووئيل نه نبى عليه السلام اوفرمائيل بياته دا غلام واپس کړه.

[۳۵۴۴](2) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حَاجِبِ بْنِ الْمُفَضَّلِ بْنِ الْمُهَلَّبِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اعْدِلُوا بَيْنَ أَوْلَادِكُمْ، اعْدِلُوا بَيْنَ أَبْنَائِكُمْ".

حاجب بن مفضل دخپل پلارنه روايت کوى فرمائي چه دنعمان بن بشيرنه مې اوريدلى دى هغه وئيل چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى انصاف کوئ پخپل اولاد کښې او انصاف کوئ پخپلو خامنو کښې.

[۳۵۴۵](3) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَتِ امْرَأَةُ بَشِيرٍ: انْحَلِ ابْنِي غُلَامَكَ، وَأَشْهِدْ لِي رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ:

---

(1): صحيح مسلم/الهبات ۳ (۱۶۲۳)، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۳۵)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الهبة ۱۲ (۵۲۸۶)، سنن الترمذي/الأحكام ۳۰ (۱۳۶۷)، سنن ابن ماجه/الهبات ۱ (۲۳۷۵)، موطا امام مالك/الأقضية ۳۳ (۳۹)، مسند احمد (۲۶۸/۴) (صحيح)

(2): سنن النسائي/النحل (۳۷۱۷)، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۴۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۷۵/۴، ۲۷۸) (صحيح)

(3): صحيح مسلم/الهبات ۳ (۱۶۲۴)، (تحفة الأشراف: ۲۷۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۲۶/۳) (صحيح)

إِنَّ ابْنَةَ فُلَانٍ، سَأَلَتْنِي أَنْ أُنْحِلَ ابْنَهَا غُلَامًا؟، وَقَالَتْ لِي: أَشْهِدْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: لَهُ إِخْوَةٌ؟، فَقَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَكُلَّهُمْ أَعْطَيْتَ مِثْلَ مَا أَعْطَيْتَهُ؟، قَالَ: لَا، قَالَ: فَلَيْسَ يَصْلُحُ هَذَا، وَإِنِّي لَا أَشْهَدُ إِلَّا عَلَى حَقٍّ ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه بشیرته خپلې ښځې اووئیل دا خپل غلام دې زما خوي ته هبه کړه (کوم چه دهغې په ګیره وو) اوپه دې خبره به نبی ﷺ ګواه کړې نوبشیردنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او غرض ئې وکړو چه دفلانې لور ماته وئیلی دی چه زه دهغې خوي ته غلام هبه کړم اودائې هم وئیلی دی چه په دې خبره باندې تا ګواه کړم، په دې وخت کښې نبی ﷺ اوفرمائیل ایا تادده ټولو رونړو ته داسې ورکړې دي کوم چه تاده ته ورکړې دې ؟ هغه اووئیل نه نبی ﷺ اوفرمائیل داخونامناسب خبره ده اوزه دربښتونې خبرې نه علاوه په بله خبره باندې نه ګواه کیږم.

## بَابٌ فِي عَطِيَّةِ الْمَرْأَةِ بِغَيْرِ إِذْنِ زَوْجِهَا

### د ښځې دپاره د خپل خاوند د مال نه دهغه د اجازت نه بغیر چاته ورکول

په کتاب الزکوة کښې ﴿ باب المراة تصدق من بيت زوجها ﴾ تیر شوې دې. د دې باب په احادیثو باندې کلام هلته تیر شوې دې،

امام بخاری رحمة الله علیه باب تړلې دې ﴿ هبة المراة بغير زوجها ﴾

[٣٥٤٦] (1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، وَحَبِيبٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَجُوزُ لِامْرَأَةٍ أَمْرٌ فِي مَالِهَا إِذَا مَلَكَ زَوْجُهَا عِصْمَتَهَا".

عمرو بن شعیب د خپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی ښځې لره دخاوند دمال نه ورکول جائز نه دي کوم چه دده سره دې خکه چه خاوند دده دعزت مالك دې.

### په مسئلة الباب کښې اختلاف د علماء کرامو :

د زنانه د هبه کولو دوه صورتونه دی یو د خاوند د کور نه یعنی کوم څیز چه خاوند هغې ته کور د خرچ دپاره ورکړې دې، د زنانه د هغې نه صدقه کول دویم دا چه زنانه د خپل مال نه صدقه کوی. په دویم صورت کښې د جمهورو په نزد د زنانه دپاره صدقه وغیره کول چه هغه څنګه غواړی جائز ده د جمهور علماء کرامو هم دا مسلک دې. په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دې هلته په کتاب الزکوة کښې تیر شوې دی د هغوی په نزد زنانه د خپل مال په زیات نه زیات صرف ثلث کښې تصرف کولې شی یعنی بغیر د اذن د زوج نه د دې نه په زیاتی کښې نه شی کولې.

قال الحافظ وخالف طاؤس فمنع مطلقا، وعن الليث لا يجوز مطلقا الا فى الشئ التافه وادلة الجمهور من الكتاب والسنة كثيرة اهـ (من التراجم ٣/٣٥)

(1): سنن النسائي/الزكاة ٥٨ (٢٥٤١)، العمري (٣٧٨٧)، سنن ابن ماجه/الهبات ٧ (٢٣٨٨)، (تحفة الأشراف: ٨٧٧٩، ٨٦٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٢١) (حسن صحيح)

[۳۵۴۷] (۱)حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، أَنَّ أَبَاهُ أَخْبَرَهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَجُوزُ لِامْرَأَةٍ عَطِيَّةٌ إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي ديوي ښځي دپاره داجائز نه دي چه دخپل خاوند دمال نه چاته ورکړي مګر په اجازت دهغه سره.

## بَابٌ فِي الْعُمْرَى

### دټول عمر دپاره چاته يو څيز ورکول جائزدي

او د دي نه روستو بل باب راروان دي ﴿ باب في الرقبى ﴾

[۳۵۴۸] (۲) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْعُمْرَى جَائِزَةٌ".

د ابوهريره بدنه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيي دي. چه چاته يوشي دټول عمر دپاره ورکول جائزدي.

[۳۵۴۹] (۳) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.

حسن دسمرة رضي الله عنه اوهغه دنبي ﷺ نه ددي روايت په شان روايت بيان کړي دي.

### د عمرى تعريف او د هغې حکم شرعي :

عمرى او رقبى د هبه دوه خاص صورتونه دي کوم چه د جاهليت د زماني نه راروان وو، د دي دواړو په باره کښې روايات منعا او جوازا مختلف راغلي دي، لکه چه د دواړو بابونو د روايتونو کتلو نه معلوميږي، لهذا د دي دواړو په باره کښې د فقهاء کرامو رائې معلوميدل پکار دي. او د هر يو طريقه او تعريف هم، د عمرى صورت دا وي چه يو سړې بل ته وائي ﴿ داري لک عمرى ﴾ يا داسې اووائي ﴿ اعمرتک داري ﴾ چه د هغې مطلب دا وي چه زه دا کور تا ته هبه کوم ستا د ټول عمر دپاره د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه په نزد که يو سړې داسې اوائي نو جائز ده خو هغه کور به صرف د ټول عمر دپاره نه وي بلکه د معمر له د ژونده پورې وي د هغه دپاره او د هغه د وفات نه پس به د هغه د وارثانو دپاره وي. ګويا د ټول عمر قيد لګولو لره به اعتبار نه وي. په دي کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دي هغوى فرمائي چه د عمرى دوه صورتونه دي که معمر صرف هغه الفاظ اووې کوم چه پورته تير شوې دي يعنى ﴿ داري لک عمرى ﴾ نو په دې صورت کښې خو به کور د معمر له دپاره صرف

(۱): سنن الترمذي/ الديات ۳ (۱۳۹۰)، سنن النسائي/ الزكاة ۵۸ (۲۵٤۱)، العمري ۱ (۳۷۸۷، ۳۷۸۸)، (تحفة الأشراف: ۸۶۸۰، ۸۶۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۷۹/۲، ۱۸۰، ۲۰۷، ۲۱۲)، دي/ الديات ۱۶ (۲٤۱۷)، ويأتي هذا الحديث برقم(۲۵۶۶) (حسن صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الهبة ۳۲ (۲۶۲۶)، صحيح مسلم/الهبات ٤ (۱۶۲۶)، سنن النسائي/العمري ٤ (۳۷۸۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۱۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳٤۷/۲، ٤۲۹، ٤۶۸، ٤۸۹، ۳۱۹/۳) (صحيح)

(۳): سنن الترمذي/الأحكام ۱۵ (۱۳٤۹)، (تحفة الأشراف: ٤۵۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸/۵، ۱۳، ۲۲) (صحيح)

د هغه د ژونده پورې وی او د هغه د مرګ نه پس به معمر ته واپس کولې شی، او که هبه کونکی د ﴿ داری لک ﴾ سره ﴿ ولعقبک بعدک ﴾ هم وئیلې وو نو بیا به دا هبه د همیشه دپاره نافذ شی او د معمر له د مرګ نه پس به د هغه د وارثانو دپاره وی. او که د هبه په وخت ئې دا زیادت نه وو وئیلې نو بیا به د معمر له د مرګ نه پس هغه کور د واهب طرف ته واپس شی.

اصل کښې دا اختلاف د عمری په حقیقت باندې متفرع دې د جمهورو په نزد د عمری حقیقت تملیک الرقبة دې یعنی د عین دار مالک جوړول. او د امام مالک رحمه الله په نزد د دې حقیقت تملیک المنفعة دې هم په دې وجه د هغوی په نزد معمرله د اصل مکان مالک نه وی. اونه دهغوی په نزد په دې کښې میراث جاری کیږی یعنی من حیث الملک، او که د هبه په وخت هغه ﴿ لک ولعقبک بعدک ﴾ اوئیلو نو په دې صورت کښې د هغوی په نزد میراث جاری کیږی یعنی هم د هم هغه منفعت په لحاظ سره، لا من حیث الملک.

حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، وحدیث جابر من طریق ابیسلمة اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، ومن طریق عروة عنه اخرجه النسائی، قاله المنذری، والحدیث الرابع من حدیث جابر بلفظ ﴿ ایما رجل اعمر عمری له ولعقبه ﴾ الحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه بنحوه، قاله المنذری.

[۳۵۵۰](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ يَقُولُ: "الْعُمْرَى لِمَنْ وُهِبَتْ لَهُ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به فرمائیل: عمري دهغه چادپاره ده چاته چه بخښلي شوي وي.

[۳۵۵۱](2) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، أَخْبَرَنِي الْأَوْزَاعِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أُعْمِرَ عُمْرَى فَهِيَ لَهُ، وَلِعَقِبِهِ يَرِثُهَا مَنْ يَرِثُهُ مِنْ عَقِبِهِ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلي دي: چاچه چاته دټول عمر دپاره یوشي (دهي په طور) ورکړونو هغه دهغه چاشو چاته چه ورکړي شوي دي ترڅوچه ژوندي وي دي به ددې مالك وي اوده دمرګ نه پس به دده وارثانوته ورکولې شي.

[۳۵۵۲](3) عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، وَعُرْوَةَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَكَذَا رَوَاهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرٍ.

جابر رضی الله عنه دنبی علیه السلام نه دتیرشوي روایت په شان روایت بیان کړي دي. امام ابوداؤد فرمائی چه همدارنګې دا روایت لیث بن سعد د زهري نه اوهغه د ابوسلمه اوهغه دجابر رضی الله عنه نقل کړي دي.

---

(1): صحيح البخاري/الهبة ٣٢ (٢٦٢٥)، صحيح مسلم/الهبات ٤ (١٦٢٥)، سنن الترمذي/الأحكام ١٥ (١٣٥٠)، سنن النسائي/العمرى ٢ (٣٧٧٢)، سنن ابن ماجه/الهبات ٣ (٢٣٨٠)، (تحفة الأشراف: ٣١٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٢/٣، ٣٠٤، ٣٦٠، ٣٩٣، ٣٩٩) (صحيح)

(2): سنن النسائي/العمري (٣٧٧١)، (تحفة الأشراف: ٢٣٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٢/٣، ٣٠٤، ٣٦٠، ٣٩٣، ٣٩٩) (صحيح)

(3): انظر حديث رقم: (٣٥٥٠)، (تحفة الأشراف: ٣١٤٨) (صحيح)

## بَابُ مَنْ قَالَ فِيهِ وَلِعَقِبِهِ
## څوک چه چاته د ټول عمر دپاره يوشي ورکړی اود ورکولو په وخت کښې د وارثانو ذکر هم وکړي

[٣٥٥٣] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ يَعْنِي ابْنَ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَيُّمَا رَجُلٍ أُعْمِرَ عُمْرَى لَهُ وَلِعَقِبِهِ، فَإِنَّهَا لِلَّذِي يُعْطَاهَا لَا تَرْجِعُ إِلَى الَّذِي أَعْطَاهَا، لِأَنَّهُ أَعْطَى عَطَاءً وَقَعَتْ فِيهِ الْمَوَارِيثُ".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی علیه السلام فرمائيلي دي: چاته چه دټول عمردپاره يوشي (دهبې په طور) ورکړې شواود ورکولو په وخت دا اووائي چه ماداشي فلانی ته اودده وارثانوته دټول عمر دپاره ورکړونودغه شي دده اودده اولاد ملکيت دي او دا داسې ملکيت دي کوم چه هبه کونکي ته نشي ملاويدي ځکه چه ده يوه داسې عطيه کړې ده په کومه کښې چه وارث لره دخل دي۔

[٣٥٥٤] (²) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ عُقَيْلٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، وَيَزِيدُ بْنُ أَبِي حَبِيبٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، وَاخْتُلِفَ عَلَى الْأَوْزَاعِيِّ فِي لَفْظِهِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، وَرَوَاهُ فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ مِثْلَ حَدِيثِ، مَالِكٍ.

صالح په خپل سندسره دابن شهاب نه دتيرشوي روايت په شان روايت بيان کړي . امام ابوداؤد فرمائی چه همدارنګې رانقل کړي دي عقيل دابن شهاب نه اويزيد بن ابی حبيب هم د ابن شهاب نه نقل کړي دي اوداوضاعي په الفاظو کښې اختلاف دي او همدا رنګې ددوينه علاود فليح بن سليمان هم په دې طريقه بندي د روايت بيان کړي دي۔

[٣٥٥٥] (³) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "إِنَّمَا الْعُمْرَى الَّتِي أَجَازَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقُولَ: هِيَ لَكَ وَلِعَقِبِكَ، فَأَمَّا إِذَا قَالَ: هِيَ لَكَ مَا عِشْتَ فَإِنَّهَا تَرْجِعُ إِلَى صَاحِبِهَا".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي دکومې عمره چه اجازت ورکړې شوې دې هغه داده چه هبه کونکې چه چاته څه ورکوي هغه ته داسې اووائي چه داشې ستا اوستاد ولاد دپاره دې اوکه چرې د اسې ئې اونه وئيل بلکه داسې يئې اووئيل چه داځيز ستاد پاره دی ترڅوچه ته ژوندي يې نودغه څيز دده دوفات نه پس ورکونکي ته به واپس کولې شي.

[٣٥٥٦] (⁴) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُرْقِبُوا، وَلَا تُعْمِرُوا، فَمَنْ أُرْقِبَ شَيْئًا، أَوْ أُعْمِرَهُ فَهُوَ لِوَرَثَتِهِ".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی علیه السلام فرمائيلي دي: تاسو عمرې او عقبې مه کوئ

[1]: انظر حديث رقم: (٣٥٥٠)، (تحفة الأشراف: ٣١٤٨) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم: (٣٥٥٠)، (تحفة الأشراف: ٣١٤٨) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣١٦٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الهبات ٤ (١٦٢٦)، مسند احمد (٢٩٦/٣) (صحيح)

[4]: سنن النسائي/العمري (٣٧٦٢)، (تحفة الأشراف: ٢٤٥٨) (صحيح)

که چرې څوك عمرې اوعقبې اوکړي نو کوم څيز چه ئې چاته ورکړې دې هغه به دهغه اودهغه د وارثانو شي.

[٣٥٥٧] (١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَبِيبٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ حُمَيْدٍ الْأَعْرَجِ، عَنْ طَارِقٍ الْمَكِّيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي امْرَأَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، أَعْطَاهَا ابْنُهَا حَدِيقَةً مِنْ نَخْلٍ، فَمَاتَتْ، فَقَالَ ابْنُهَا: إِنَّمَا أَعْطَيْتُهَا حَيَاتَهَا، وَلَهُ إِخْوَةٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هِيَ لَهَا حَيَاتَهَا وَمَوْتَهَا، قَالَ: كُنْتُ تَصَدَّقْتُ بِهَا عَلَيْهَا، قَالَ: ذَلِكَ أَبْعَدُ لَكَ".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام ديوې انصاري زنانه په باره کښې فيصله وکړه چه خپل ځوي ورته دکجورو يوباغ ورکړې وو، کله چه هغه وفات شوه نوځوي ئې اووئيل ماخو ورله داباغ دهغې دژونده پورې ورکړې وو، اوددغه کس نور رونړه هم وو، نبي عليه السلام اوفرمائيل دا باغ دهغې دې په ژوند کښې هم او په مرګ کښې هم ځوي ئې اووئيل داماهغې ته په صدقه کښې ورکړې وو نبي عليه السلام اوفرمائيل تاته ددې واپس کيدل دحيرانتيا خبره ده.

## بَابٌ فِي الرُّقْبَى
### درقبې بيان

**د رقبى تعريف:**
رقبى دا هم د هبه يو طريقه ده د عمرى په شان، چه د هغې صورت دا وى چه يو سړې بل ته اوائي. ﴿ دارى لک رقبى ﴾ يا ﴿ ارقبتک دارى ﴾ چه د هغې مطلب دا وى چه يو سړې بل ته اوائي چه زه دا خپل کور تا ته په دې طريقه درکوم چه که رومبې زما مرګ واقع شو نو بيا به دا کور ستا وى او که ستا مرګ مخکښې شو نو بيا به دا کور ماته واپس کيږى. دا لفظ د مراقبه نه اخستلې شوې دې چه د هغې معنى ده انتظار ځکه چه د هبه په دې نوع کښې واهب او موهوب له هر يو د بل د مرګ منتظر وى په دې وجه د دې دا نوم کيخودلې شو.

[٣٥٥٨] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا دَاوُدُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْعُمْرَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا، وَالرُّقْبَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: عمرې د خپل خاوند دپاره ده اورقبې دخپل خاوند دپاره ده (دحديث مطلب دادې چه په دواړه ذکر شوو صورتونو کښې دغه څيز ورکونکي ته واپس نشي ملاويدې).

د رقبى په حکم کښې اختلاف دې د امام شافعي او احمد په نزد جائز ده په شان د عمرى. او د امام ابوحنيفه او مالک په نزد ناجائز ده. په صاحبين کښې امام ابويوسف رحمه الله د امام شافعي سره دې. او امام محمد رحمه الله د امام صاحب رحمه الله سره او مقصد د اختلاف دا دې چه د دې ائمه اربعه په حقيقت د رقبى کښې اختلاف دې چه هغه څه څيز دې؟ د جواز د قائلينو په نزد تمليک بشرط فاسد دې، شرط فاسد د هغه دا وينا چه که ته مخکښې مړ شوې نو

---

١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٢٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٩/٣) (ضعيف)

٢): سنن الترمذي/الأحكام ١٦ (١٣٥١)، سنن النسائي/العمري (٣٧٦٩)، سنن ابن ماجه/الهبات ٤ (٢٣٨٣)، (تحفة الأشراف: ٢٧٠٥)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الهبات ٤ (١٦٢٦)، مسند احمد (٣٠٢/٣، ٣٠٣، ٣١٢) (صحيح)

زما او که زه مړ شوم نو ستا، د دې حضراتو په نزد تمليک پاتې کيږي او دا شرط فاسد کالعدم دې، لهذا دا تمليک صحيح شواو په هر صورت کښې به مکان د هغه دپاره وی، او کوم فقهاء چه د جواز قائل نه دی د هغوی په نزد د دې حقيقت تمليک نه دې بلکه تعليق التمليک علی خطر دې. چه په هغې کښې د قمار معنی موندلې شی کوم چه ناجائز دې. حديث جابر رضی الله عنه اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، وحديث زيد بن ثابت اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۵۵۶]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى مَعْقِلٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ حُجْرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَعْمَرَ شَيْئًا فَهُوَ لِمُعْمَرِهِ مَحْيَاهُ، وَمَمَاتَهُ وَلَا تُرْقِبُوا، فَمَنْ أَرْقَبَ شَيْئًا فَهُوَ سَبِيلُهُ".

د زيد بن ثابت رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلي دي: چاچه چاته دتول عمردپاره يوشي (دهبې په طور) ورکړو نودادده دپاره دې په ژوند کښې هم او په مرګ کښې هم اوتاسو رقبي مه کوئ ځکه چاته چه په رقبي کسي څه شي ورکړې شو هغه دهغه شو.

[۳۵۶۰]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مُوسَى، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: "الْعُمْرَى أَنْ يَقُولَ الرَّجُلُ لِلرَّجُلِ: هُوَ لَكَ مَا عِشْتَ، فَإِذَا قَالَ ذَلِكَ: فَهُوَ لَهُ وَلِوَرَثَتِهِ، وَالرُّقْبَى هُوَ أَنْ يَقُولَ: الْإِنْسَانُ هُوَ لِلْآخِرِ مِنِّي وَمِنْكَ".

د مجاهدنه روايت دې فرمائی عمري ديته وائی چه يوکس بل ته اووائي چه داستاشو ترڅوچه ته ژوندې بې نوکله چه دا او روائي نودغه څيزدده شو اودده دوار ثانوشو او رقبي دې ته وائی چه بوکس بل ته ووائی داشت به په مااوتادوارو کي دهغه چاوي څوک چه ورسته مړشي.

## بَابٌ فِي تَضْمِينِ الْعَارِيَةِ

### څوک چه د چا نه يوشې وغواړي اوبيا ضائع شي

**مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:**

د عارية نه اخستلې شوې دې يعنی مستعار څيز. يعنی که يو سړې خپل څيز چا ته عارية ورکړی او بيا څيز د مستعير سره بغير د هغه د تعدی نه هلاک يا ضائع شی نو په دې صورت کښې په مستعير باندې د هغې ضمان واجب دې يا نه؟ مسئله اختلافی ده، امام شافعي او امام احمد د ضمان قائل دی. او د احنافو په نزد ضمان نشته. د امام مالک رحمه الله په نزد تفصيل دې، (ما ظهر هلاکه لا ضمان فيه وما خفی هلاکه فهو مضمون) يعنی که مستعار داسې څيز وی چه د هغې هلاکيدل ښکاره وی يعنی قياسی وی لکه حيوان نو په هغې کښې ضمان نشته. او د کوم څيز هلاکيدل چه مخفی يا پټ وی لکه کپړه نو په دې کښې به ضمان واجب وی. (بذل عن الخطابی)

[1]: سنن النسائي/الرقبي ۱ (۳۷۴۶)، سنن ابن ماجه/الهبات ۳ (۲۳۸۱)، (تحفة الأشراف: ۳۷۰۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۵۰/۱) (حسن صحيح الإسناد)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۲۷۱) (صحيح الإسناد)

[۳۵۶۱](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "عَلَى الْيَدِ مَا أَخَذَتْ حَتَّى تُؤَدِّيَ، ثُمَّ إِنَّ الْحَسَنَ نَسِيَ، فَقَالَ هُوَ: أَمِينُكَ لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ".

سمره رضی الله عنه دنبی علیه السلام نه روایت کوی چه فرمائیل ئې دلاس په ذمه باندې دهغه څیز واپس کول دي کوم چه ده اخستلې زي ترڅوچه دغه څیز اداکړې ددینه پس د حسن نه هیر شوې دي هغه وئیلی دی تاسو چه کوم شي دجانه وغواړئ نوهغه ستا امانتداردې اوپه دې کس باندې ضمانت نشته.

## شرح الحديث :

**قوله:** ﴿عَنْ قَتَادَةَ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ : عَلَى الْيَدِ مَا أَخَذَتْ حَتَّى تُؤَدِّيَ ﴾ د يد نه مراد صاحب يد ، يعنی کوم سړې چه د چا څيز واخلی په سوال باندې نو هغه د هغه په ذمه دې تر څو چه هغه ادا نه کړي.

د ادا تعلق د عين ما وجب سره وی او د قضاء او ضمان تعلق د مثل ما وجب سره نو په دې حديث کښې د ادا ذکر دې نه د ضمان او قضاء چه د هغې تقاضا دا ده چه په عارية کښې ضمان نه وی شئ مستعار که موجود او محفوظ دې نو د هغې واپس کول واجب دی او که ضائع شی..... نو بيا د هغې مثل يعنی ضمان واجب نه دې.

پس د دې روايت حاصل دا شوچه ﴿العارية مؤداة ﴾......... او که عارية کښې ضمان وې نو د دې دپاره به داسې وې. ﴿العارية مضمونة ﴾ حال دا چه د باب په آخری حديث کښې تصريح ده چه عارية مضمونه نه ده بلکه مؤداة دې. بيا وړاندې روايت کښې دی ﴿ ثم ان الحسن نسی فقال هو امينک لا ضمان عليه ﴾ دا د قتاده رحمه الله کلام دې چه زمونږ استاد حسن به دا وئيل چه مستعير امين وی په هغه باندې ضمان واجب نه وی، قتاده دا بيان فرمائی چه کيدې شی زمونږ استاد خپل بيان کړې شوې حديث هير کړو يعنی ﴿ على اليد ما اخذت الخ ﴾ دا د قتاده خپل ګمان دې چه صحيح نه دې، هغوی دا ګڼړلې ده چه حسن چه کوم مرفوع حديث نقل کړې دې هغه مقتضی دې ضمان د عارية ته، حال دا چه داسې نه ده، د احاديثو د الفاظو خپله تقاضه هم دا ده چه ضمان نه دی کيدل پکار. (بذل الايضاح) والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[۳۵۶۲](٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، وَسَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنْ أُمَيَّةَ بْنِ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "اسْتَعَارَ مِنْهُ أَدْرَاعًا يَوْمَ حُنَيْنٍ، فَقَالَ: أَغَصْبٌ يَا مُحَمَّدُ، فَقَالَ: لَا، بَلْ عَارِيَةٌ مَضْمُونَةٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهَذِهِ رِوَايَةُ يَزِيدَ، بِبَغْدَادَ، وَفِي رِوَايَتِهِ بِوَاسِطٍ تَغَيَّرَ عَلَى غَيْرِ هَذَا.

---

(١): سنن الترمذي/البيوع ٣٩ (١٢٦٦)، سنن ابن ماجه/الصدقات ٥ (٢٤٠٠)، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣،١٢/٥)، سنن الدارمي/البيوع ٥٦ (٢٦٣٨) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٩٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠١/٣، ٤٦٥/٦) (صحيح)

صفوان بن اميه دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه نبی ﷺ زمادپلارنه دغزوه حنين په ورځ زغري عاريتا اوغوښتلي هغه ورته اووئيل اې محمد په زور ئې اخلې نبی ﷺ اوفرمائيل نه، بلك عاريتانې غواړم او درته به ئې واپس کوم. امام ابوداؤد فرمائی دا روايت دهغه وخت دې کله چه يزيد په بغداد کښې وو اوکوم روايت چه به ده په واسط کښې بيانولو ددې دواړو په مينځ کښې تبديلي ده.

**قوله:** ﴿ عَنْ أُمَيَّةَ بْنِ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- اسْتَعَارَ مِنْهُ أَدْرُعًا يَوْمَ حُنَيْنٍ فَقَالَ أَغَصْبٌ يَا مُحَمَّدُ فَقَالَ « لاَ بَلْ عَارِيَةٌ مَضْمُونَةٌ » ﴾

## شرح الحديث :

اميه بن صفوان د خپل پلار صفوان بن اميه رضی الله عنه نه نقل کوی د غزوه حنين په موقع باندې رسول الله ﷺ د صفوان نه څو زغرې عارية واخستلې، نو د ورکړې په وخت ترې نه صفوان تپوس اوکړو يا محمد (ﷺ) تاسو دا زغرې د قبضې په طور اوړئ يا عارية؟ (دغه وخته پورې صفوان اسلام نه وو قبول کړې) رسول الله ﷺ اوفرمائيل د غصب په طور نه بلکه عارية، او عارية هم داسې چه ضمان به پکښې وی.

## توجيه الحديث على مسلک الحنفية :

د دې حديث نه د قائلين ضمان تائيد کيږی. خو دا حديث د باب په آخر کښې هم راروان دې په هغې کښې داسې دی :

﴿ قَالَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعَارِيَةٌ مَضْمُونَةٌ أَوْ عَارِيَةٌ مُؤَدَّاةٌ قَالَ « بَلْ مُؤَدَّاةٌ » ﴾

لهذا په داسې صورت کښې په ضمان باندې استدلال صحيح نه دې. او حضرت په بذل کښې د ﴿ بل عارية مضمونة ﴾ جواب دا ورکړې دې چه د رسول الله ﷺ دا اشاره قاعده کليه او په طور د بيان حکم شرعی نه ده بلکه چونکه صفوان دغه وخته پورې اسلام نه وو قبول کړې او هلته مسلمانانو ته د وسلې حاجت وو په دې وجه ئې خاص د دې موقعې په باره کښې رسول الله ﷺ دا فرمائيلې وو چه نه بلکه عارية به ضمان والا وی چه صفوان ئې په عارية ورکولو باندې مطمئن شی او د مسلمانانو وقتی ضرورت پوره شی او دا د دې خبرې دليل نه دې چه د ټولو عواری حکم دا دې. اه چه د هغې قرينه دا ده چه په وړاندې روايت کښې دا راروان دی چه رسول الله ﷺ چه کومې زغرې د صفوان نه عارية اخستلې وې نو چه کله د هغې د واپس کولو وخت راغلو نو په هغې کښې څو زغرې په تعداد کښې کمې وې په دې باندې رسول الله ﷺ صفوان ته اوفرمائيل چه ستاسو څو زغرې ورکې شوې ﴿ فهل نعزم لک؟ قال لا يا رسول الله ﴾ يعنی رسول الله ﷺ اوفرمائيل آيا مونږ د هغې ضمان درکړو؟ هغه عرض اوکړو نه يا رسول الله ﷺ. ځکه چه زما په زړه کښې نن هغه خبره ده کومه چه هغه وخت نه وه. والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری

[۳۵۶۳] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنْ أُنَاسٍ مِنْ آلِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَفْوَانَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَا صَفْوَانُ، هَلْ عِنْدَكَ مِنْ سِلَاحٍ؟ قَالَ: عَارِيَةً، أَمْ غَصْبًا؟ قَالَ: لَا بَلْ عَارِيَةً، فَأَعَارَهُ مَا بَيْنَ الثَّلَاثِينَ إِلَى الْأَرْبَعِينَ دِرْعًا، وَغَزَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا، فَلَمَّا هُزِمَ الْمُشْرِكُونَ جُمِعَتْ دُرُوعُ صَفْوَانَ، فَفَقَدَ مِنْهَا أَدْرَاعًا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَفْوَانَ: إِنَّا قَدْ فَقَدْنَا مِنْ أَدْرَاعِكَ أَدْرَاعًا، فَهَلْ نَغْرَمُ لَكَ؟ قَالَ: لَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، لِأَنَّ فِي قَلْبِي الْيَوْمَ مَا لَمْ يَكُنْ يَوْمَئِذٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَانَ أَعَارَهُ قَبْلَ أَنْ يُسْلِمَ، ثُمَّ أَسْلَمَ.

عبدالعزیز دال صفوان نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی اې صفوان ایا څه اسلحه درسره شته؟ هغه عرض اوکړو په جبر ئې غواړئ اوکه عاریتا نبی ﷺ اوفرمائیل زبردستي اوجبر نشته بلکه عاریتا ئې غواړو نو هغه ورته دیرش یا څلویښت زغري ورکړي نبی ﷺ په غزوه حنین کښې جنګ اوکړو کله چه کفارونه شکست ورکړې شو نودصفوان زغري راجمع کړې شوي په دې کښې یوڅو زغري ورې شوي وي نبی ﷺ اوفرمائیل اې صفوان زمونږ نه ستایوڅو زغري ورې شوې دي که چرې ستاخوښه وي مونږ به درته دهغې تاوان درکړو؟ صفوان اووئیل هیڅ کله نه اې دالله رسوله نن زما په زړه کښې هغه خبره ده کومه چه په کښې مخکښې نه وه (یعنی مخکښې مشرك وم اوس مې اسلام قبول کړې دې.

[۳۵۶۴] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ رُفَيْعٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ نَاسٍ مِنْ آلِ صَفْوَانَ، قَالَ: اسْتَعَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

عطاء دصفوان په کورنۍ کښې دیوڅو کسانونه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ یوڅوزغري عاریتا غوښتلي وي اوباقي روایت دتیر شوي روایت په شان دې.

[۳۵۶۵] (۳) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ الْحَوْطِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ شُرَحْبِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا أُمَامَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ أَعْطَى كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ، فَلَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ، وَلَا تُنْفِقُ الْمَرْأَةُ شَيْئًا مِنْ بَيْتِهَا إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا، فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَلَا الطَّعَامَ، قَالَ: ذَاكَ أَفْضَلُ أَمْوَالِنَا، ثُمَّ قَالَ: الْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ، وَالْمِنْحَةُ مَرْدُودَةٌ، وَالدَّيْنُ مَقْضِيٌّ، وَالزَّعِيمُ غَارِمٌ".

د ابوامامه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې الله تعالی هرحقدار ته خپل حق ورکړې دې اوس دوارث دپاره وصیت کول جائزنه دي اویوه ښځه به دخپل کور نه څه شې نه خرچ کوي مګرپه اجازت دخاوند ، عرض اوکړې شواې دالله رسوله ایا ډوډۍ به هم نه ورکوي بغیراجازته؟ نبی ﷺ اوفرمائیل داخو په ټولو مالونوکښې غوره مال دې اوبیا ئې اوفرمائیل امانتي غوښتلې څیز واپس کول پکاردي اودپیودپاره چه لنګ څاروې غوښتلي شوې وي هغه هم واپس کول پکاردي اودقرض ادا کول ضروری دی اودچا ذمه واري قبلونك ضامن دې یعنی څوك چه دکوم شي ذمه واري واخلي دهغې اداکول لازمي دي.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٩٤٥) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم: (٣٥٦٢)، (تحفة الأشراف: ٤٩٤٥)(صحيح)
[3]: سنن الترمذي/الزكاة ٣٤ (١٢٦٥)، الوصايا ٥ (٢١٢٠)، سنن ابن ماجه/الوصايا ٦ (٢٧١٣)، (تحفة الأشراف: ٤٨٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٧/٥) (صحيح)

قوله: ﴿ الْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ وَالْمِنْحَةُ مَرْدُودَةٌ وَالدَّيْنُ مَقْضِيٌّ وَالزَّعِيمُ غَارِمٌ ﴾

یعنی د عاریة څیز لره د هغې مالک ته رسول ضروری دی دغه شان د منیحه مالک ته واپس کول ضروری دی، د منیحه ذکر ډیر کرته راغلې دې یعنی د پیو والا څاروې، یا میوه داره اونه چه کومه د څو ورځو دپاره چاته د انتفاع دپاره ورکړې شی. او د دین ادا کول واجب دی او کفیل ضامن وی ، زعامه په معنی د کفالت، او غارم ماخوذ دې د غرم نه چه د هغې معنی ده د شئ لازم ادا کول.

والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجه مختصرا، قاله المنذري

[۳۵٦٦](1) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُسْتَمِرِّ الْعُصْفُرِيُّ، حَدَّثَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَتَتْكَ رُسُلِي فَأَعْطِهِمْ ثَلَاثِينَ دِرْعًا وَثَلَاثِينَ بَعِيرًا"، قَالَ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَعَارِيَةٌ مَضْمُونَةٌ، أَوْ عَارِيَةٌ مُؤَدَّاةٌ؟، قَالَ: بَلْ مُؤَدَّاةٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَبَّانُ خَالُ هِلَالٍ الرَّأْيِ.

صفوان بن یعلی دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ راته فرمائیلی دی کله چه درته زما استاذې درشي نودیرش زغري ورکړه اودیرش اوښان هم ورکړه صفوان وائی ماووئیل اې دالله رسوله دعاریت په طورئې درکړم دکومې چه ضمان لازمی وي اوکه دهغه عاریت په طورئې درکړم کوم چه مالك ته واپس کيږي نبی ﷺ اوفرمائيل دهغه عاريت په طورئې راکړه کوم چه مالك ته واپس کولې شي.

قوله: ﴿ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى عَنْ أَبِيهِ ﴾

په دې روایت کښې داسې دی چه د هغې نه معلومیږی چه صاحب قصه او په عاریة باندې ورکولو والا یعلی وو. حال دا چه په تیر روایت کښې دی چه هغه صفوان بن یعلی وو. ولم يتعرض له في شئ من الشروح التي بايدينا فليفتش..... والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري

## بَاب فِيمَنْ أَفْسَدَ شَيْئًا يَغْرَمُ مِثْلَهُ

**باب: کوم سړې چه د چا څیز خراب یا ضائع کړی نودهغه شې په شان څیز د ورکولو ذمه وارد دې**

**د وجوب ضمان قاعده:**

په دې ترجمة الباب سره د مصنف غرض ضمان المتلفات لره بیانول دی. او ضابطه د هغې دا ده چه د څیزونو دوه قسمونه دی ذوات الامثال او ذوات القیم، د قسم اول په ضمان کښې مثل واجب دې یعنی مثل حسی، او په قسم ثانی کښې مثل معنوی واجب وی یعنی قیمت، مکیلات او موزونات دا ټول ذوات الامثال دی، او حیوانات په ذوات القیم کښې دی.

[۳٥٦٧](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "كَانَ عِنْدَ بَعْضِ نِسَائِهِ، فَأَرْسَلَتْ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ مَعَ خَادِمِهَا بِقَصْعَةٍ

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٨٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٢/٤) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/المظالم ٣٤ (٢٤٨١)، والنكاح ١٠٧ (٥٢٢٥)، سنن الترمذي/الأحكام ٢٣ (١٣٥٩)، سنن النسائي/عشرة النساء ٤ (٣٤٠٧)، سنن ابن ماجه/الأحكام ١٤ (٢٣٣٤)، (تحفة الأشراف: ٦٣٣، ٨٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٥/٣، ٢٦٣)، سنن الدارمي/البيوع ٥٨ (٢٦٤٠) (صحيح)

فِيهَا طَعَامٌ، قَالَ: فَضَرَبَتْ بِيَدِهَا، فَكَسَرَتِ الْقَصْعَةَ، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: فَأَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكِسْرَتَيْنِ فَضَمَّ إِحْدَاهُمَا إِلَى الْأُخْرَى فَجَعَلَ يَجْمَعُ فِيهَا الطَّعَامَ وَيَقُولُ: غَارَتْ أُمُّكُمْ"، زَادَ ابْنُ الْمُثَنَّى، كُلُوا فَأَكَلُوا حَتَّى جَاءَتْ قَصْعَتُهَا الَّتِي فِي بَيْتِهَا، ثُمَّ رَجَعْنَا إِلَى لَفْظِ حَدِيثِ مُسَدَّدٍ، قَالَ: كُلُوا، وَحَبَسَ الرَّسُولَ وَالْقَصْعَةَ حَتَّى فَرَغُوا، فَدَفَعَ الْقَصْعَةَ الصَّحِيحَةَ إِلَى الرَّسُولِ، وَحَبَسَ الْمَكْسُورَةَ فِي بَيْتِهِ.

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام دخپلوب بيانونه ديوي تني په كور كښې وونويوي ام المومنين ورته دخپل خادم په لاس باندې يوه كاسه وليږله چه دخوراك څه شي پكښې ووراوی وائی چه هغې ام المومنين دچاپه كوركښې چه نبي عليه السلام تشريف فرماوو كاسه په لاس باندې ووهله اوماته شوه ، دابن المثنى په روايت كښې دی چه دكاسې دواړه ټكړې (ډكرې) نبي عليه السلام راواخستلې او يوځائې ئې كړې اوشروع شوچه طعام ئې پكښې راټولولو اوفرمائيل ئې چه ستاسو مور غيرت كړې دي ابن المثنى دا اضافه كړې ده چه نبي عليه السلام اوفرمائيل خورئ نوهغوی وخوړل تردې چه هغې دخپل كور كاسه راوړله باقي الفاظ دمسدد دروايت دي چه نبي عليه السلام اوفرمائيل خورئ ، كاسه اوخادم ئې ايسار كړوتردې چه دوی دخوراك نه فارغ شول بيا ئې خادم ته بله روغه كاسه وركړه اوماته شوې ئې په خپل كوركښې ايساره كړه.

## د رسول الله ﷺ د كمال حسن معاشرت حكايت :

قوله: ﴿ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ عِنْدَ بَعْضِ نِسَائِهِ فَأَرْسَلَتْ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ الخ ﴾

د بعض نساء نه مراد عائشه رضي الله عنها ده، يعنى يو كرت رسول الله ﷺ د عائشې رضي الله عنها په نمبر كښې د هغې سره وو نو د رسول الله ﷺ په بيبيانو كښې يو زوجه محترمه (قيل هی صفيه او حفصة او ام سلمة، ويحتمل تعدد الواقعة) د خپل خادم سره يو پليټ راوليږلو چه په هغې كښې خوراك وو. چه كله خادم د هغه خوراك سره دننه داخل شو نو عائشې رضي الله عنها په هغې باندې خپل لاس اوهلو چه په هغې سره هغه پليټ غورځيدو سره مات شواو دوه ټكړې شو. رسول الله ﷺ هغه دواړه ټكړې اوچتې كړې او خپل مينځ كښې يو ځائې كولو سره ئې هغه غورځيدلې خوراك په هغې كښې جمع كول شروع كړل او بغير د څه ناراضګئ د اظهار او غصې نه ئې دعائشې رضي الله عنها دطرف نه په طور د معذرت داسې اوفرمائيل ﴿ غارت امكم ﴾ چه ستاسو مور ته د بل دكور نه په خوراك راتلو باندې غيرت راغلو (او د بنو خپل مينځ كښې غيرت او تنافس معروف دې كوم چه يو فطری څيز دې چه په هغې كښې انسان مجبور كيږی. رسول الله ﷺ هم د عائشې رضي الله عنها دا فعل په غيرت ضرائر باندې محمول كولو سره هيڅ او نه فرمائيل او ډير د حكمت عملئ نه ئې كار واخستلو (اصل كښې د سړی د جوش او غصې په وخت هغه ته نصيحت مفيد نه وی په دې وجه رسول الله ﷺ هيڅ نصيحت او تنبيه اونكړه، روستو چه د هغې غصه او بهراس اوتلو نو هغې خپله معافى اوغوښتله بلكه د كفارې صورت لټول ئې شورع كړل په دې حديث كښې ډير لوئې سبق دې د حسن معاشرت او مكارم اخلاق او د زنانو د جذباتو د رعايت، سره د هغوی د فهمائش او خبرداری كولو

نه، صلی الله علیه وسلم اللهم وفقنا لمکارم الاخلاق التی بعث لاتمامها نبینا ﷺ) پس د هغې اثر فورا دا اوشو چه عائشه رضي الله عنها شرمنده شوه او وې وئیل ﴿ یا رسول الله ﷺ ما کفارة ما صنعت؟ ﴾ یعنی څه چه ما اوکړل د هغې د کفارې به څه صورت وی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ اناء مثل اناء وطعام مثل طعام ﴾ پس عائشې رضي الله عنها د دننه یو بل پلیټ په بدل کښې راوړلو، پس د دې مات شوی پلیټ په بدله کښې هغه صحیح پلیټ د هغه قاصد په لاس چا چه خوراک راوړلې وو اولیږلې شو. وړاندې په بل روایت کښې دا هم دی: عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما د صفیې رضي الله عنها په شان خوراک جوړونکې زنانه نه ده لیدلې. هغوی فرمائی چه کله هغې خوراک تیار کړو او رسول الله ﷺ ته ئې راولیږلو ﴿ فاخذنی افکل ﴾ نو ماله سخته غصه راغله.

مونږ د ترجمة الباب په تشریح کښې وئیلې وو چه د مصنف رحمه الله غرض دې باب سره ضمان المتلفات لره بیانول دی خو قصعه او طعام په ذوات الامثال کښې نه دی. لهذا په دې کښې ضمان بالمثل نه دې بلکه بالقیمة دې. خو چونکه دا حقیقة ضمان نه وو ځکه چه دواړه پلیټونه د رسول الله ﷺ ملک وو، د کورونو اکثر سامان د خاوند ملکیت وی، بلکه مقصود په دې سره د صفیې رضي الله عنها خیال ساتل وو پس په دې کښې هیڅ اشکال نشته.

حدیث انس رضي الله عنه اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجه، وحدیث عائشه رضي الله عنها اخرجه النسائی، قاله المنذری

[۳۵۶۸](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي فُلَيْتٌ الْعَامِرِيُّ، عَنْ جَسْرَةَ بِنْتِ دَجَاجَةَ، قَالَتْ: قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: "مَا رَأَيْتُ صَانِعًا طَعَامًا مِثْلَ صَفِيَّةَ صَنَعَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا، فَبَعَثَتْ بِهِ فَأَخَذَنِي أَفْكَلٌ فَكَسَرْتُ الْإِنَاءَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا كَفَّارَةُ مَا صَنَعْتُ؟، قَالَ: إِنَاءٌ مِثْلُ إِنَاءٍ، وَطَعَامٌ مِثْلُ طَعَامٍ".

دجسرة بنت دجاجة رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه ام المومنین عائشة رضي الله عنها اوفرمائیل داسې خوراک تیارونکې مې چرته نده لیدلې څنګه چه به ام المومنین صفیة رضي الله عنها تیارلو، هغې دنبی علیه السلام دپاره خوراک تیار کړې وو اوهغې ورته راولیږلو اوماته غصه راغله اودغصې نه مې لوښې مات کړو نبی علیه السلام ته مې عرض وکړوزما ددې عمل دپاره کفاره څه شې دې؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل دلوښې په عوض کښې ددې لوښې په شان لوښې اودخوراک په بدل کښې ددې خوراک په شان بل خوراک.

## بَابُ الْمَوَاشِي تُفْسِدُ زَرْعَ قَوْمٍ

### کله چه دچا څاروی دچا فصل خراب کړی

[۳۵۶۹](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ حَرَامِ بْنِ مُحَيِّصَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ نَاقَةً لِلْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ دَخَلَتْ حَائِطَ رَجُلٍ، فَأَفْسَدَتْهُ عَلَيْهِمْ، "فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَهْلِ الْأَمْوَالِ حِفْظَهَا بِالنَّهَارِ، وَعَلَى أَهْلِ الْمَوَاشِي حِفْظَهَا بِاللَّيْلِ".

---

١): سنن النسائي /عشرة النساء ٤ (٣٤٠٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٨/٦، ٢٧٧) (ضعيف)

٢): سنن ابن ماجه /الأحكام ١٣ (٢٣٣٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٣، ٢٣٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٦/٥)، موطا امام مالك /الأقضية ٢٨(٣٧) (صحيح)

حرام بن محيصه دخپل پلار نه روايت کوی فرمائی چه دبراء بن عازب رضي الله عنه اوښ ديو کس باغ ته داخل شوي وو اوفصل ئې خراب کړي وو، نوددې متعلق نبی عليه السلام فيصله اوکړله چه دڅاروو دورځې دوخت دنقصان ذمه وار دفصل مالك دې او دشپې په وخت کښې دنقصان ذمه وارد ارورمالك دې.

**قوله:** ﴿ أَنَّ نَاقَةً لِلْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ دَخَلَتْ حَائِطَ رَجُلٍ فَأَفْسَدَتْهُ عَلَيْهِمْ فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَلَى أَهْلِ الأَمْوَالِ حِفْظَهَا بِالنَّهَارِ وَعَلَى أَهْلِ الْمَوَاشِي حِفْظَهَا بِاللَّيْلِ ﴾

د براء بن عازب رضي الله عنه اوښه د يو کس باغ ته لاړه او هغه ئې خراب کړو. نو په دې موقع باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم فيصله اوفرمائيله چه د باغ او پټو والا په ذمه دی د خپلو باغونو او پټو حفاظت کول د ورځې، او د څاروو والا په حق کښې ئې دا فيصله اوکړه چه د هغوی په ذمه ده چه د خپلو څاروو حفاظت اوکړی د شپې په وخت يعنی څاروی خو دې د شپې تړلې اوساتلې شی چه د چا باغ او پټې خراب نه کړی، او د ورځې د پټی والو ذمه داری ده چه هغوی د خپل پټی حفاظت پخپله اوکړی.

## مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه :

د دې حديث نه معلوميږی چه که د شپې د چا څاروو د يو بل سړی پټې خراب کړی نو په هغه باندې به د دې ضمان واجب وی، که نقصان د شپې شوې وی نو بيا په اهل مواشی باندې هيڅ ضمان نشته، د جمهورو مذهب هم دا دې، د احنافو په نزد د شپې او د ورځې په دې کښې هيڅ فرق نشته ﴿ لحديث العجماء جرحها جبار ﴾ دا حديث د حديث الباب نه زيات صحيح دې او متفق عليه يعنی د صحيحينو روايت دې او حديث الباب د سنن روايت دې خو يو شرط د ضمان بل دې او هغه متفق عليه دې او هغه دا دې چه د دې څاروو سره سائق (څرونکې) نه وی. که سائق (څرونکې) وو نو په دې صورت کښې به ضمان وی څکه چه په دې صورت کښې به هغه فعل دابه (افساد وغيره) د سائق طرف ته منسوب کيږی. او په کوم صورت کښې چه د څاروو سره سائق (څرونکې) نه وی هغه وخت به د فعل دابه نسبت دابه طرف ته کيږی، او په حديث کښې فعل دابه ته جبار او عفو کړې شوې ده. لهذا د ضمان او عدم ضمان دپاره خو دا قيد بالاتفاق معتبر دې خو دا د ورځې او د شپې والا خبره مختلف فيه ده. والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری

[۳۵۷۰](1) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ حَرَامِ بْنِ مُحَيِّصَةَ الأَنْصَارِيِّ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: كَانَتْ لَهُ نَاقَةٌ ضَارِيَةٌ فَدَخَلَتْ حَائِطًا، فَأَفْسَدَتْ فِيهِ فَكُلِّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا، فَقَضَى أَنَّ حِفْظَ الْحَوَائِطِ بِالنَّهَارِ عَلَى أَهْلِهَا وَأَنَّ حِفْظَ الْمَاشِيَةِ بِاللَّيْلِ عَلَى أَهْلِهَا وَأَنَّ عَلَى أَهْلِ الْمَاشِيَةِ مَا أَصَابَتْ مَاشِيَتُهُمْ بِاللَّيْلِ.

حرام بن محيصه انصاری دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت کوی فرمائی چه دبراء بن عازب رضي الله عنه دضاريه په نوم باندې يواوښ وو او ديو کس باغ ته داخل شوي وو اوفصل ئې خراب کړي وو، نوددې متعلق دنبی عليه السلام سره خبرې وکړي شوي،نبی عليه السلام فيصله اوکړله چه دفصل

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷۵۳) (صحيح)

حفاظت دورځې په وخت کښې دخپل مالك په ذمه دي او د شارووحفاظت دشپې په وخت کښې دخپل مالك په ذمه دي.

﴿عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَتْ لَهُ نَاقَةٌ ضَارِيَةٌ﴾ ناقه ضاريه هغه اوښه چه د پرانستلې کیدوپه وجه باندې دخلقو په پټو کښې د څریدو عادت وی، براء بن عازب رضي الله عنه خپله دا واقعه په خپله بیان کړه چه د هغوی یو اوښه داسې وه او بیا رسول الله ﷺ داسې فیصله فرمائیلې وه.
والحدیث اخرجه النسائي، قاله المنذري

﴿ اخر کتاب البيوع ﴾

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب الأقضية

## د قضاوتونو (فیصلوکولو) بیان

او په بعض نسخو کښې دی ﴿ كتاب الاقضية ﴾ امام ترمذی رحمه الله د کتاب البیوع نه پس کتاب الاحکام عنوان قائم کړې دې او مصنف د کتاب القضاء، د دواړو حاصل یو دې. صرف د تعبیر فرق دې ځکه چه د احکام نه مراد په ترمذی کښې احکام قاضی دی، لهذا د دواړو حاصل یو شو. په کتاب البیوع او قضاء کښې مناسبت ښکاره دې هغه دا چه بیوع او معاملاتو کښې ډیر کرته اختلافات ښکاره کیږی چه د هغې د فیصلې دپاره د قاضی طرف ته رجوع کولې شي. د کتاب الاحکام عنوان په صحیح بخاری کښې هم دې کوم چه هغوی د تقریبا د کتاب په آخیر کښې د کتاب الفتن نه پس ذکر کړې دې.

## بَابٌ فِي طَلَبِ الْقَضَاءِ

### د قضاء د منصب د مطالبې کولو بیان

[۳۵۷۱](1) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ وَلِيَ الْقَضَاءَ فَقَدْ ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ".

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: څوك چه قاضی مقرر کړې شونوګویاکښې داسې ده لکه چه بغیر چاړې ذبحه کړې شوې وی.

### شرح الحديث :

قوله: ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَنْ وَلِيَ الْقَضَاءَ فَقَدْ ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ » ﴾ په الکوکب الدری کښې د ﴿ فقد ذبح بغير سكين ﴾ معنی دا لیکلې شوې ده چه هغه د همیشه دپاره په مصیبتونو کښې اخته شو. بغیر سکین سره دې طرف ته اشاره ده. ځکه چه کومه ذبح په سکین سره کیږی هغه د لږ ساعت مصیبت او تکلیف وی، او کله چه بغیر د سکین نه کیږی نو په هغې کښې مشقت ډیر اوږد وی. بیا د دې اوږد مشقت نه پس

(1): سنن الترمذي/الأحكام ۲ (۱۳۲۵)، (تحفة الأشراف: ۱۳۰۰۲)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الأحكام ۱ (۲۳۰۸)، مسند احمد (۲/۳٦۵) (صحيح)

دوه صورتونه دی یا خو به د خپلې دینداریٔ او انصاف د وجې نه د لوئې ثواب مستحق وی یا به په فیصلو کښې ظلم کولو سره د دنیا سره سره آخرت هم ختم کړی. آه او امام خطابی رحمه الله د بغیر سکین یو معنی دا هم کړې ده چه دا ئې په دې وجه اوفرمائیل چه معلومه شی چه د رسول الله ﷺ په کلام کښې د ذبح او هلاکت نه حسی نه دې مراد بلکه هلاکت معنوی یعنی دینی نقصان مراد دې، او علامه سندهی په فتح الودود حاشیه د ابوداؤد کښې لیکلی دی چه دا جمله صورةً خبریه ده خو معنی ئې د انشاء ده، یعنی کوم سړې چه قاضی کړې شی هغه لره پکار دی چه هغه خپل دننه خواهشات نفسانیه ذبح کړی او خپل نفس دې د خپو لاندې کړی هله به هغه په صحیح معنو کښې خپل فرائض منصبی سر ته اورسولې شی. او یا دا د عهده قضاء مذمت دې چه په دې کښې رغبت نه دی کول پکار ځکه چه په دې کښې لویه خطره هلاکت دې. والحدیث اخرجه الترمذی قاله المنذری

[۳۵۷۲](۱) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ مُحَمَّدٍ الْأَخْنَسِيِّ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، وَالْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ جُعِلَ قَاضِيًا بَيْنَ النَّاسِ، فَقَدْ ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ".

ترجمه: دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی څوک چه قاضی مقرر کړې شو دپاره دفیصلو کولو په مینځ دخلقوکښې نویقینا دې بغیر چاړې نه ذبحه کړې شو.

## بَابٌ فِي الْقَاضِي يُخْطِئُ

### که چرې قاضی په فیصله کولوکښې خطاء شی

[۳۵۷۳](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَسَّانَ السَّمْتِيُّ، حَدَّثَنَا خَلَفُ بْنُ خَلِيفَةَ، عَنْ أَبِي هَاشِمٍ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ: وَاحِدٌ فِي الْجَنَّةِ، وَاثْنَانِ فِي النَّارِ، فَأَمَّا الَّذِي فِي الْجَنَّةِ فَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَقَضَى بِهِ، وَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَجَارَ فِي الْحُكْمِ فَهُوَ فِي النَّارِ، وَرَجُلٌ قَضَى لِلنَّاسِ عَلَى جَهْلٍ فَهُوَ فِي النَّارِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا أَصَحُّ شَيْءٍ فِيهِ، يَعْنِي حَدِيثَ ابْنِ بُرَيْدَةَ الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ.

ابوبریدة دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه نبی علی الصلاة والسلام فرمائیلي دي: درې کسان داسې دي چه یوبه ددوی نه په جنت کښې وي اودوه به په اورکښې وي نوپه جنت کښې به هغه کس وی چاچه حق پیژندلي وي او په هغې باندې ئې فیصله کړې وی، بل هغه کس دې چاچه حق پیژندلي وي او په خپله فیصله کښې ئې دظلم نه کار اخستلې وي نوداقسم قاضی به په اورکښې وي، او بل هغه کس دي څوک چه دجهالت په بنیاد دخلقوفیصلې کوي نوداسې قاضی به هم په اورکښې وي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « الْقُضَاةُ ثَلاَثَةٌ وَاحِدٌ فِى الْجَنَّةِ وَاثْنَانِ فِى النَّارِ الخ ﴾

(۱): سنن ابن ماجه/الأحكام ۱ (۲۳۰۸)، (تحفة الأشراف: ۱۲۹۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۶۵) (صحيح)

(۲): سنن ابن ماجه/الأحكام ۳ (۲۳۱۵)، (تحفة الأشراف: ۲۰۰۹)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأحكام ۱ (۱۳۲۲) (صحيح)

د دې حديث حواله په كتاب الخراج باب فى العرافة كښې تيره شوې ده.
يعنى د قاضى درې قسمونه دى چه په هغوى كښې به يو قسم خو جنت ته ځى او دوه به جهنم ته ځى يو هغه قاضى دې كوم چه حق پيژندلو سره د هغې مطابق فيصله اوكړى، او دويم قسم هغه دې چه چا د حق د پيژندگلو نه باوجود د هغې خلاف فيصله اوكړه، او دريم قسم هغه دې چه د سره ئې حق او نه پيژندلو، دا دواړه قسمونه جهنميان دى.

والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجه، قاله المنذري

[۳۵۷٤] (۱) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنِي يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي قَيْسٍ مَوْلَى عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ، فَاجْتَهَدَ فَأَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ فَأَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ"، فَحَدَّثْتُ بِهِ أَبَا بَكْرِ بْنَ حَزْمٍ، فَقَالَ: هَكَذَا حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

د عمروبن العاص رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: كله چه بوحاكم دغور اوفكركولونه پس دخلقود معاملاتو فيصله وكړله اوفصيله ئې صحيح وه نودداسې حاكم دپاره دوچند اجردې اوچاچه دغور اوفكرنه پس فيصله وكړله ليكن دخطاكيدو په وجه حق ته ونه رسيد ونودده دپاره يو اجردې.

﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ فَأَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ الخ ﴾

يعنى كله چه يو حاكم فيصله اوكړى په خپل اجتهاد سره (يعنى فروغ محتمله غير منصوصه كښې) او د هغه اجتهاد صحيح وو يعنى د اصل حكم شرعى موافق وو نو د هغه دپاره دوه اجرونه دى يو اجر د اجتهاد او بل اجر الاصابة. او كه حاكم د اجتهاد نه پس فيصله اوكړه چه په هغې كښې ترې نه خطاء واقع شوه او اصل حكم شرعى ته او نه رسيدله نو بيا هم د هغه دپاره اجر دې خو يو يعنى د اجتهاد اجر ځكه چه د قاضى او مفتى اجتهاد د هغه عبادت دې. او كومه خطا چه د هغه نه اوشوه هغه معاف كولې شى.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه مطولا ومختصرا، قاله المنذري

[۳۵۷٥] (۲) حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ نَجْدَةَ، عَنْ جَدِّهِ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَهُوَ أَبُو كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ طَلَبَ قَضَاءَ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى يَنَالَهُ، ثُمَّ غَلَبَ عَدْلُهُ جَوْرَهُ فَلَهُ الْجَنَّةُ، وَمَنْ غَلَبَ جَوْرُهُ عَدْلَهُ فَلَهُ النَّارُ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى ځوك چه دمسلمانانو قاضى جوړيدل غواړي تردې چه ده ته دقضا منصب حواله كړي شي اوبيادده په ظلم باندې دد. انصاف غالب شي نودداسې قاضى دپاره جنت دې، اودكوم قاضى په انصاف باندې چه ظلم غالب شي نودده دپاره به دجهنم اور وي.

---

۱): صحيح البخاري/الاعتصام ۲۱ (۷۳۵۲)، صحيح مسلم/الأقضية ٦ (۱۷۱٦)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۳ (۲۳۱٤)، (تحفة الأشراف: ۱٥٤۳۷، ۱۰۷٤۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹۸/٤، ۲۰٤) (صحيح)

۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٤۸٤٥) (ضعيف)

## شرح الحديث :

قوله: ﴿مَنْ طَلَبَ قَضَاءَ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى يَنَالَهُ ثُمَّ غَلَبَ عَدْلُهُ جَوْرَهُ فَلَهُ الْجَنَّةُ وَمَنْ غَلَبَ جَوْرُهُ عَدْلَهُ فَلَهُ النَّارُ ﴾ په بذل کښې د دې حديث په شرح کښې ليکلې دی چه اگر چه د عهده قضاء طلب مکروه او مذموم دې خو يو سړی دا مذموم عهده حاصله هم کړه او بيا د هغه عدل او انصاف د هغه په ظلم او زياتی باندې غالب وو نو د هغه دپاره جنت دې او هغه کامياب دې او د چا ظلم چه د هغه په انصاف باندې غالب وو نو دهغه دپاره اور دې. اهـ ﴿ثم غلب عليه جوره﴾ په ظاهر کښې ئې دا مطلب دې چه د دې قاضی صفت عدل په صفت جور باندې غالب پاتې شو يعنی په هره فيصله کښې د هغه عدل په ناانصافئ باندې غالب پاتې او دا مطلب ئې نه دې چه د کوم قاضی زياتې فيصلې په عدل او انصاف باندې مبنی وی او بعض په غير انصاف باندې نو د هغه دپاره د جنت زيرې دې. والله تعالیٰ اعلم

[۳۵۷۶](¹) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي يَحْيَى الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ إِلَى قَوْلِهِ الْفَاسِقُونَ سورة المائدة آية ۴۴-۴۷ هَؤُلَاءِ الْآيَاتِ الثَّلَاثِ نَزَلَتْ فِي الْيَهُودِ خَاصَّةً فِي قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيرِ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه لاندې ذکرشوې درې اياتونه : «ومن لم يحكم بما أنزل الله فأولئك هم الكافرون» ديهوديانو په باره کښې نازل شوې دې او خصوصا دبنی قريظة اوبنی النضير په باره کښې.

## بَابٌ فِي طَلَبِ الْقَضَاءِ وَالتَّسَرُّعِ إِلَيْهِ

### په فيصله کولو کښې د جلتئ کولو او د قضاء دمنصب دخواهش کولو بيان

[۳۵۷۷](²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَا: أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ رَجَاءٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ بِشْرٍ الْأَنْصَارِيِّ الْأَزْرَقِ، قَالَ: "دَخَلَ رَجُلَانِ مِنْ أَبْوَابِ كِنْدَةَ، وَأَبُو مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيُّ جَالِسٌ فِي حَلْقَةٍ، فَقَالَا: أَلَا رَجُلٌ يُنَفِّذُ بَيْنَنَا؟ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْحَلْقَةِ: أَنَا، فَأَخَذَ أَبُو مَسْعُودٍ كَفًّا مِنْ حَصًى فَرَمَاهُ بِهِ، وَقَالَ: مَهْ إِنَّهُ كَانَ يُكْرَهُ التَّسَرُّعُ إِلَى الْحُكْمِ".

دعبدالرحمن بن بشر انصاری نه روايت دې فرمائی چه دکنده قبيلې دوه کسانو مسجد ته خپله مقدمه په داسې وخت کښې راوړله کله چه ابومسعود انصاری نه په مسجد کښې په حلقه کښې ناست وو دوی دواړو اووئيل ايا داسې څوک شته چه زمونږ فيصله وکړي نودحلقې والانه يوکس ورته اووئيل زه به ستاسو فيصله وکړم، ابن مسعود قه يوموټې کانړې راواخستل او دې بې ورباندې اوويشتلو او وئې وئيل لږ صبرخو وکړه، ابن مسعود نه به په فيصله کولو کښې جلتې کول بدګڼرل ،ځکه چه په جلتئ کولوسره دغلطی امکان زيات وی.

¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۵۸۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۳۸، ۲۷۱) (حسن، صحيح الإسناد)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۹۹۷) (ضعيف الإسناد)

[۳۵۷۸](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ بِلَالٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ طَلَبَ الْقَضَاءَ وَاسْتَعَانَ عَلَيْهِ وُكِلَ إِلَيْهِ، وَمَنْ لَمْ يَطْلُبْهُ وَلَمْ يَسْتَعِنْ عَلَيْهِ أَنْزَلَ اللَّهُ مَلَكًا يُسَدِّدُهُ"، وَقَالَ وَكِيعٌ: عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ بِلَالِ بْنِ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ أَبُو عَوَانَةَ: عَنْ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ بِلَالِ بْنِ مِرْدَاسٍ الْفَزَارِيِّ، عَنْ خَيْثَمَةَ الْبَصْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ.

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دنبی عليه السلام نه مې اوريدلی دی چه فرمائيل ئې ځوک چه دقضامنصب طلب کړې اوددې منصب دحاصلولو دپاره دخلقو نه امداد غواړې نودابه ده ته حواله کړې شي په داسې حال کښې چه دالله تعالی امداد به ورسره نه وي او ځوک چه ددې منصب دحاصلولو مطالبه نه کوي اونه دخلقونه سفارشونه غواړي نوالله تعالی به يوه فرشته نازله کړي ځوک چه به رده معاملات درست کوی.

[۳۵۷۹](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنِي أَبُو بُرْدَةَ، قَالَ: قَالَ أَبُو مُوسَى، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَنْ نَسْتَعْمِلَ أَوْ لَا نَسْتَعْمِلُ عَلَى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ".

دابوموسی رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام فرمايلي دې مونږ به خپل کار (قضاء) کښې هغه ځوک نه مقرروو ځوک چه ددې غوښتنه کوی.

﴿ قَالَ أَبُو مُوسَى قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « لَنْ نَسْتَعْمِلَ - عَلَى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ » ﴾
دا حديث دلته مختصر دې د کتاب الحدود په شروع کښې مفصلا راروان دې. او د دې نه مخکښې هم د دې ذکر په کتاب الطهارة کښې په ﴿ باب کيف يستاک ﴾ کښې راغلې دې. او د نسائی شريف په شروع کښې په ابواب الوضوء کښې روايت مفصله ذکر شوې دې.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی بطوله، اخرجه ابوداؤد فی کتاب الحدود بطوله، قاله المنذری

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الرِّشْوَةِ
### د رشوت د ممانعت بيان

[۳۵۸۰](۳) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّاشِيَ وَالْمُرْتَشِيَ".

دعبدالله بن عمرونه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام په رشوت اخستونکي او رشوت ورکونکي باندې لعنت فرمائيلې دې.

[1]: سنن الترمذي/الأحكام ۱ (۱۳۲۳)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۱ (۲۳۰۹)، (تحفة الأشراف: ۲۵۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۸/۳، ۲۲۰) (ضعيف)

[2]: صحيح البخاري/ الإجارة ۱ (۲۲۶۱)، المرتدين ۲ (۶۹۲۳)، صحيح مسلم/ الإمارة ۳ (۱۷۳۳)، سنن النسائي/ الطهارة ٤ (٤)، (تحفة الأشراف: ۹۰۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤۰۹/٤)، وأعاده المؤلف في الحدود (٤۳٥٤) (صحيح)

[3]: سنن الترمذي/الأحكام ۹ (۱۳۳۷)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۲ (۲۳۱۳)، (تحفة الأشراف: ۸۹٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱٦٤/۲، ۱۹۰، ۱۹٤، ۲۱۲) (صحيح)

**قوله:** ﴿ لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الرَّاشِيَ وَالْمُرْتَشِيَ ﴾

راشی رشوت ورکونکې. او مرتشی رشوت اخستونکې. ﴿ والرشوة مثلثة الراء ما يعطى لا بطال حق او يعطى لا حقاق باطل ﴾ د رشوت ذکر او دا تعريف په کتاب الخراج ﴿ باب فی کراهية الافتراض فی اخر الزمان ﴾ کښې تير شوې دې،

والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری

# باب فِي هَدَايَا الْعُمَّالِ

## قاضيانو ته د تحفو ملاويدو احکام

اوس څو بابونه مخکښې يو باب تير شو﴿ باب فی قبول الهدايا ﴾ په هغه باب کښې د موجوده ترجمة الباب حواله او د دې نه مخکښې په کتاب الخراج کښې د ﴿ هدايا العمال ﴾ يو باب تير شوې دې د ټولو حواله په تير باب کښې راغلې ده.

[۳۵۸۱] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، حَدَّثَنِي قَيْسٌ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَدِيُّ بْنُ عُمَيْرَةَ الْكِنْدِيُّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، مَنْ عُمِّلَ مِنْكُمْ لَنَا عَلَى عَمَلٍ فَكَتَمَنَا مِنْهُ مِخْيَطًا فَمَا فَوْقَهُ فَهُوَ غُلٌّ يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، أَسْوَدُ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، اقْبَلْ عَنِّي عَمَلَكَ، قَالَ: وَمَا ذَاكَ؟، قَالَ: سَمِعْتُكَ تَقُولُ: كَذَا وَكَذَا، قَالَ: وَأَنَا أَقُولُ ذَلِكَ مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ عَلَى عَمَلٍ فَلْيَأْتِ بِقَلِيلِهِ وَكَثِيرِهِ، فَمَا أُوتِيَ مِنْهُ أَخَذَهُ وَمَا نُهِيَ عَنْهُ انْتَهَى".

دعدي بن عميرة الكندي نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ اوفرمائيل اې خلقو زمونږ دطرفه چه په تاسوکښې څوک عامل (قاضی ياحاکم) مقرر شي او هغه ديوې ستنې په برابر يوڅيز پټ کړي نودې په خيانت کرنکوکښې داخل شو اودغه حاکم به دقيامت په ورځ ددغه شي سره پيش کيږي په دې وخت کښې دانصارونه يوتور رنګ والا سړې پاڅيدو راوی وائی لکه چه زه ئې اوس هم وينم او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله ته زمانه دخپل کار زمه واري واپس واخله نبی ﷺ اوفرمائيل ته څه وائې؟ هغه اووئيل ستانه مې دا داخبرې واوريدې چه تاوئيل نبی ﷺ اوفرمائيل دا خبره خو زه اوس هم کوم چه په مونږ کښې يوکس دڅه کاردپاره وليږلې شي برابره خبره ده چه کار کم وي اوکه زيات وي ده ته چه څه ملاو شي هغه دې راوړي اوده ته چه دده دکار معاوضه ملاو شي هغه دې وصول کړي او دکوم څيزنه چه دې منع کولې شي هغه دې پريږدی.

**قوله:**(حدثنى عَدِيُّ بْنُ عُمَيْرَةَ الْكِنْدِيُّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « يَا أَيُّهَا النَّاسُ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ لَنَا عَلَى عَمَلٍ الخ ﴾

### مضمون حديث:

رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو اې خلقو! په تاسو کښې چه کوم سړې زمونږ په يو عمل باندې عامل جوړ کړې شی او بيا هغه زمونږ نه د يوې ستنې يا د هغې نه لوئې څيز پټ کړی (بغير د اجازت نه)، ﴿ مِخيَط ﴾ په کسرې د ميم سره يعنی ستن نو د هغې پټول به غلول وی او

(١): صحيح مسلم/الإمارة ٧ (١٨٣٣)، (تحفة الأشراف: ٩٨٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٢/٤) (صحيح)

د غلول حکم دا دې ﴿ ومن يغلل يات بما غل يوم القيامة ﴾ يعنى غلول کړې څيز به هغه د قيامت په ورځ ځان سره راوړي. راوی وائی چه د رسول الله ﷺ په دې ارشاد باندې يو انصاری صحابی چه تور رنګ ئې وو پاسيدو (او دا واقعه زما په ذهن کښې داسې مستحضره ده) ګويا زه ورته اوس ګورم، هغه عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! واخلئ دا خپل عمل (رسول الله ﷺ به هغه لره د يو ځائې عامل جوړ کړې وو نو په دې ارشاد اوريدو سره هغه داسې اووې) رسول الله ﷺ ترې نه تپوس اوکړو څه خبره ده؟ نو هغه اووې چه ما ستاسو نه اوس يو مضمون واوريدو، رسول الله ﷺ اوفرمائيل او دا خبره خو زه اوس هم کوم او رسول الله ﷺ هغه خبره دوباره اوفرمائيله. بيا وړاندې په روايت کښې څه داسې ذکر نشته چه هغوی خپل عمل ته لاړل که نه.

## د قاضی يا عامل دپاره قبول هديه کله جائز ده؟

مصنف رحمه الله په دې حديث باندې د ﴿ هدايا العمال ﴾ ترجمه قائم کړې ده دې خبرې طرف ته اشاره کولو دپاره چه عامل که د يو سړی هديه قبوله کړی نو هغه هم د غلول په حکم کښې ده. لهذا يا خو هغوی لره هديه قبلول پکارنه دی او که مصلحة ئې واخلی نو په مال صدقه کښې ئې ايخودل پکار دی. د دې نه مخکښې د دې سلسلې حديث د ابن اللتيبه په خپل محل کښې تير شوې دې. ﴿ هلا جلس فی بيت ابيه او امه الحديث ﴾ په دې باندې شارحينو ليکلې دی چه کومه هديه قاضی يا عامل ته د يو داسې سړی نه ملاؤ شی چه هغه ته ئې صرف د قضاء د عهدې د وجې نه ورکړی ممانعت د داسې هديه د قبلولو دې ځکه چه په دې کښې د نيت فاسده قوی احتمال دې چه هغه عامل به د زکوة د وصول کولو په وخت د مزکی رعايت کوی او هم دغه شان به قاضی او که دې عامل يا قاضی ته هديه ورکونکې د خپل قديم ذاتی تعلق په بناء باندې هديه ورکوی چه په هغې کښې د فساد نيت وغيره احتمال نه وی نو بيا په دې صورت کښې قبلول جائز دی.

## بَابُ كَيْفَ الْقَضَاءُ

### د فيصلې کولو طريقه

[۲۵۸۲] (¹) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ حَنَشٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ قَاضِيًا، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، تُرْسِلُنِي وَأَنَا حَدِيثُ السِّنِّ، وَلَا عِلْمَ لِي بِالْقَضَاءِ، فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ سَيَهْدِي قَلْبَكَ، وَيُثَبِّتُ لِسَانَكَ، فَإِذَا جَلَسَ بَيْنَ يَدَيْكَ الْخَصْمَانِ فَلَا تَقْضِيَنَّ حَتَّى تَسْمَعَ مِنَ الْآخَرِ كَمَا سَمِعْتَ مِنَ الْأَوَّلِ فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يَتَبَيَّنَ لَكَ الْقَضَاءُ"، قَالَ: فَمَا زِلْتُ قَاضِيًا أَوْ مَا شَكَكْتُ فِي قَضَاءٍ بَعْدُ.

دعلی کرم الله وجهه نه روايت دې فرمائی چه زه نبی عليه السلام يمن ته د قاضی توب دپاره وليږلم ما ورته عرض اوکړو اې دالله رسوله ته خو ما ليږې او زما عمر کم ده او په قضاباندې نه پوهيږم نبی عليه السلام اوفرمائيل الله تعالی به دقضا طريقه ستاپه زړه کښې واچوی او ستا ژبه به

(¹): سنن الترمذي/الأحكام ٥ (١٣٣١)، مسند احمد (١١١/١) وعبدالله بن أحمد في زوائدي الأحد (١٤٩/١)، سنن ابن ماجه/الأحكام ١ (٢٣١٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٠٨١، ١٠١١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٣/١) والحاكم (١٣٥/٣) بسند آلرية انقطاع (حسن)

مضبوطه کړي کله چه تاته دوه اختلاف کونکي مخامخ شي نوترهغې پورې فيصله مه کوه ترڅوچه دي دبل نه هم اوريدلي نه وي لکه څنګه چه تا داولني نه آوريدلی دی ځکه چه دا ډيره نزدې ده چه ته حقه فيصله وکړې علی ته وائی ددينه پس چه ما څومره قضاګاني کړې دي په يوه کښې مې هم شک نه دې کړې.

**قوله:**﴿ عَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ بَعَثَنِي رَسُولُ اللهِ –صلى الله عليه وسلم– إِلَى الْيَمَنِ قَاضِيًا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ تُرْسِلُنِي وَأَنَا حَدِيثُ السِّنِّ وَلاَ عِلْمَ لِي بِالْقَضَاءِ ﴾

سيدنا علی ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ زه يمن ته د قاضی په طور اوليږلم، هغوی فرمائی ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! تاسو ما داسې کار له ليږئ حال دا چه زما عمر کم دې او ماته د قضاء علم هم نشته. شارحينو ليکلې دی چه د دې نه د مطلق علم نفی نه ده مراد بلکه په دې سره د عادت او تجربې نفی مراد ده. رسول الله ﷺ هغوی ته د دعا په طور اوفرمائيل چه الله پاک به ستا د زړه صحيح فيصلې کولو ته رهنمائی فرمائی. او ستا ژبه به په حق باندې کلکه کړی يعنی د هغې په ذريعه به صحيح فيصله کوئ. بيا ئې هغوی ته د فيصلې په باره کښې د يوې قاعدې کليې طرف ته رهنمائی اوفرمائيله هغه دا چه کله په مجلس کښې تاسره خصمين يعنی مدعی او مدعی عليه حاضر شی نو د يو سړی بيان اوريدو سره هرګز فيصله مه کوه تر څو چه دې د هغه د خصم خبره نه وی اوريدلې. څنګه چه دې په تفصيل سره خبره واوريده نو ﴿ فانه احرى ان يتبين لک القضاء ﴾ په دې صورت کښې يعنی د فريقينو د خبرې اوريدو نه پس به د صحيح فيصلې ښکاره کيدل په تا باندې ډير نزدې وی، سيدنا علی ﷺ فرمائی چه (د رسول الله ﷺ د دې دعا په برکت باندې او د رسول الله ﷺ د دې بيان کړې قاعدې کليې په وجه باندې) ما ته په خپله يو فيصله کښې هم شک او تردد نه دې پيدا شوې.

**د قضاء علی الغائب په جواز کښې اختلاف:**

**قوله:**﴿ حتى تسمع من الاخر ﴾ باندې شارحينو ليکلې دی چه دا دليل دې د دې خبرې چه د حاکم دپاره د دويم فريق د خبرې اوريدلو نه مخکښې فيصله کول جائز نه دی نو د خصم غائب کيدو په صورت کښې په عدم جواز کښې په طريق اولی نه دی. امام خطابی رحمه الله فرمائی ﴿ وممن ذهب إلى ذلک شريح وعمر بن عبد العزيز وهو قول ابی حنيفة وابن ابي ليلى. وقال مالك والشافعي يجوز القضاء على الغائب إذا تبين للحاكم أن فراره واستخفاءه إنما هو فرار من الحق ومعاندة للخصم ﴾

يعنی د ابوعبيد په نزد قضاء علی الغائب په هغه صورت کښې جائز ده چه حاکم ته د دې خبرې يقين وی چه د بل فريق عدالت ته نه حاضريدل او پټيدل هغه د حق د ادا کولو دپاره او د خپل مقابل د دشمنۍ د وجې نه دی. د سيدنا علی ﷺ فيصلې ډير مشهورې دی په قضاء او احکامو کښې د هغوی مهارت ضرب المثل دې تاسو به د نحو په څه کتاب کښې لوستلې وی ﴿ قضية ولا ابا حسن لها ﴾ او حديث هم مشهور دې کوم چه په ډيرو خطبو کښې لوستلې شی. ﴿ واقضاهم علی ﴾ داسې قسم روايات په مناقبو کښې کتلې کيدې شی.

والحديث اخرجه الترمذی مختصرا (وقال حديث حسن، قاله المنذری.

# بَابٌ فِي قَضَاءِ الْقَاضِي إِذَا أَخْطَأَ

## که چرې قاضی په قضاوت کښې خطاء شي

[۳۵۸۳](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ وَإِنَّكُمْ تَخْتَصِمُونَ إِلَيَّ، وَلَعَلَّ بَعْضَكُمْ أَنْ يَكُونَ أَلْحَنَ بِحُجَّتِهِ مِنْ بَعْضٍ فَأَقْضِيَ لَهُ عَلَى نَحْوِ مَا أَسْمَعُ مِنْهُ، فَمَنْ قَضَيْتُ لَهُ مِنْ حَقِّ أَخِيهِ بِشَيْءٍ فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا، فَإِنَّمَا أَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِنَ النَّارِ".

دام سلمه ﷺ نه روایت دي فرمائي چه نبی ﷺ فرمائیلی دی یقینا زه یو انسان یم اوتاسو ماته خپلې مقدي راوړی کیدی شي چه په تاسو کښې یوه ډله دپستي اوخوږي ژبي والاوي اودبلې ډلې نه ئې ژبه تیزه وي او زه دهغوی په حق کښې فیصله وکړم، ماچه دچادپاره دهغه دورور دحق نه فیصله وکړه یادده دورور دمال دده په حق کښې نوده لره پکاردي چه دغه څيز واخلي څکه چه زه ده ته داور یوه ټکړه ورکوم.

﴿ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ وَإِنَّكُمْ تَخْتَصِمُونَ إِلَيَّ وَلَعَلَّ بَعْضَكُمْ أَنْ يَكُونَ أَلْحَنَ بِحُجَّتِهِ مِنْ بَعْضٍ فَأَقْضِيَ لَهُ عَلَى نَحْوِ ..الخ ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی بیشکه زه هم انسان یم او تاسو په خپلو مخاصماتو او منازعاتو کښې د فیصلې کولودپاره ماته راځئ (دې باره کښې زما نه یوه خبره په غور سره واورئ) هغه دا چه کیدې شي چه په تاسو کښې ډیر فصیح او قادر الکلام وی خپلې خبرې او دلیل لره ښه بیانولې شي د بل په مقابله کښې، نو په داسې صورت کښې امکان دې د داسې خبرې چه زه د الحن او افصح د تقریر مطابق د هغه په حق کښې فیصله اوکړم (او بالفرض وی هغه فیصله خلاف واقع د فریق آخر د خبرې په ښه طریقې سره د نه پوهه کولو د وجې نه) نو په داسې صورت کښې واورئ چه زه د کوم سړی په حق کښې فیصله اوکړم نو هغه له به یقینا جائز نه وی بلکه هغه دې داسې اوګڼری چه ما د هغه دپاره د اور فیصله کړې ده.

### د قضاء القاضی نفاذ صرف په ظاهر باندې وی یا ظاهر او باطن دواړو باندې؟

په دې حدیث کښې یو مشهوره اختلافی مسئله ذکر شوې ده هغه دا چه د قضاء قاضی نفاذ ظاهرا او باطنا هر دواړو لحاظو سره وی یا که صرف ظاهرا وی د دنیوی احکامو په اعتبار سره. په دې مسئله کښې د احنافو رائې دا ده چه قضاء قاضی نفاذ ظاهرا او باطنا دواړو طریقو سره وی. او د جمهورو په نزد د دې نفاذ صرف ظاهرا وی یعنی د دنیاوی احکامو په اعتبارسره. باطنا وعندالله نه... یعنی دقاضی دهرې فیصلې دپاره دا ضروری نه ده چه هغه دې داسې وی، بلکه په هغې کښې د غلطئ د امکان د کیدو د وجې نه د خلاف حق کیدو

(1): صحیح البخاري/المظالم ١٦ (٢٤٥٨)، الشهادات ٢٧ (٢٦٨٠)، الحیل ١٠ (٦٩٦٧)، الأحکام ٢٠ (٧١٦٩)، ٢٩ (٧١٨١)، ٣١ (٧١٨٥)، صحیح مسلم/الأقضیة ٣ (١٧١٣)، سنن الترمذي/الأحکام ١١ (١٣٣٩)، سنن النسائي/ القضاة ١٢(٥٤٠٣)، سنن ابن ماجه/الأحکام ٥ (٢٣١٧)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٦١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الأقضیة ١ (١)، مسند احمد (٣٢٠،٣٠٧/٦) (صحیح)

احتمال هم دې. د دې اختلاف د پيژندګلو نه پس اوس تاسو په دې باندې ښان پوهه کړئ چه دا حديث په ظاهر کښې د احنافو د مسلک خلاف دې ځکه چه رسول اللهﷺ فرمائی چه زما په فيصله کولو سره به هغه څيز د هغه سړی دپاره عندالله حلال نه وی، د دې جواب دا دې چه د احنافو مسلک چه کوم پورته ذکر دې د هغې تعلق د عقود او فسوخ سره دې که د هغه عقد تعلق د طلاق او نکاح سره وی يا د اموالو سره، املاک مرسله کښې زمونږ دا مسلک نه دې، د عقود فسوخ مثال لکه يو سړی په بل باندې دعوی اوکړی چه دې سړی زما په لاس باندې د فلانی څيز بيع کړې ده او هغه دويم سړې د بيع منکر دې. مدعی دوه دروغژن ګواهان په خپله دعوی باندې قائم کړل حاکم د مدعی په حق کښې فيصله اوکړه نو په دې صورت کښې به د قاضی د قضا د وجې نه اګر چه بيع د مخکښې نه منعقد نه وه اوس يعنی د فيصلې نه پس به منعقد شی، او د مشتری په ذمه به د ثمن ادا کول او بيا په هغه څيز کښې تصرف کول جائز وی، هم دغه شان که يو سړی په زنانه باندې د نکاح دعوی اوکړه چه ما تا سره نکاح کړې وه. زنانه انکار کولو خو سړی د قاضی په مجلس کښې دوه دروغژن ګواهان پيش کړل چه د هغې په وجه باندې قاضی د سړی په حق کښې فيصله اوکړه يعنی د ثبوت نکاح نو په دې مثال کښې سره د دې چه مخکښې نکاح نه ده شوې د قاضی د فيصلې د وجې نه به شرعا او د الله پاک په نزد نکاح منعقد شی چه کله د احنافو د مسلک تحقيق اوشو نو اوس ښان پوهه کړئ چه دا حديث زمونږ خلاف نه دې، مونږ دا وايو چه دا حديث د عقود او فسوخ متعلق نه دې بلکه مونږ د دې تعلق د املاک مرسله سره منو يعنی چرته چه دعوی او خصمين کښې اختلاف په نفس ملک کښې وی مثلا يو سړې وائی چه د فلانی سړی سره چه کومه زمکه ده هغه د هغه ملک نه دې بلکه زما ده د هغه په هغې باندې غاصبانه قبضه ده، د دې مسئلې تعلق د عقد بيع وشراء سره نه دې نو په دې مسئله باندې مدعی دروغژن ګواهان پيش کړل او قاضی د هغه په حق کښې فيصله اوکړه يا په واقع کښې هغه زمکه د مدعی وه، خو هغه سره د بينه نه کيدو د وجې نه قاضی د مدعی عليه په يمين باندې د هغه په حق کښې فيصله اوکړه. په دې مثال کښې د قاضی فيصلې سره به هغه څيز د مقضی له دپاره جائز او حلال وی، او د قاضی دا فيصله به صرف ظاهرا نافذ کيږی باطنا نه. د احنافو دليل دا دې چه د قاضی او د حاکم ولايت عامه [1] حاصليدو د وجې نه د خلقو ترمينځه د عقد و فسخ حق شرعا حاصل دې لهذا چه کله هغه د دوه سړو ترمينځه د اصول او قواعدو مطابق د عقد يا فسخ فيصله اوکړی نو د هغه دا فيصله به شرعا معتبر او نافذ وی خو قاضی ته د دې خبرې حق نه دې حاصل، چه په يو څيز کښې غير د مالک دپاره [يعنی دمالک نه علاوه بل چا دپاره] ملکيت په خپله فيصله باندې ثابت کړی پس د حديث الباب تعلق هم د دويم صورت سره دې، او د احنافو په تائيد کښې هغه واقعه هم پيش کولې شی کومه چه امام محمدؒ په خپل تصنيف کتاب الاصل کښې

---

[1] ) ولا يخالفنا هذا الحديث فان الحديث يقتضي من قضيت له من حق اخيه شيئا وفي العقود والفسوخ لايقضي القاضي بحق اخيه شيئا بل يحكم بالعقد او الفسخ الذي هو حق الحاكم الي آخر ما في البذل)

ذکر کړې ده کومه چه د علامه انور شاه کشمیری په العرف الشذی کښې هم ذکر شوې ده هغه دا چه يو سړی علی ﷺ ته تلو سره د يوې زنانه سره د نکاح دعوی اوکړه او بيا ئې په هغې باندې دوه دروغژن ګواهان هم پيش کړل چه په هغې باندې هغوی د نکاح فيصله اوکړله. په دې باندې هغه زنانه پاسيده او هغې اووې چه دا سړې دروغژن دې او اې امير المومنين چه هر کله دا خبره ده نو بيا زما ده سره نکاح اوکړئ چه دواړه ګناهګار نه شو، په دې باندې علی ﷺ اوفرمائيل ﴿ شاهداک زوجاک ﴾ يعنی اوس په دې مجلس کښې د دوه ګواهانو ګواهئ باندې ما د نکاح فيصله کړې ده هم په دې سره د عقد نکاح تحقق اوشو. د دې نه پس په عرف الشذی کښې دادی چه ﴿ ذكره محمد في الأصل، ولا يذكرون سند هذه الواقعة ولم أجد السند وظني أنها لا تكون بلا أصل، ومر الحافظ على هذا الأثر ولم يرده زيادة الرد ولم يقبله أيضاً، فدل على أنه ليس بلا أصل ﴾ يعنی حافظ ابن حجر ﷺ دا واقعه نقل کړې ده او رد کړې ئې نه ده اګر چه قبول کړې ئې هم نه ده، پس داسې معلوميږی چه دا واقعه بې اصل نه ده. (العرف الشذی)(عرف الشذی ص ۴۰۶)والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۵۸٤](١) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَافِعٍ مَوْلَى أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَانِ يَخْتَصِمَانِ فِي مَوَارِيثَ لَهُمَا لَمْ تَكُنْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ إِلَّا دَعْوَاهُمَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَذَكَرَ مِثْلَهُ، فَبَكَى الرَّجُلَانِ، وَقَالَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا: حَقِّي لَكَ، فَقَالَ لَهُمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا إِذْ فَعَلْتُمَا مَا فَعَلْتُمَا، فَاقْتَسِمَا وَتَوَخَّيَا الْحَقَّ، ثُمَّ اسْتَهِمَا، ثُمَّ تَحَالَّا.

دام سلمه ﷺ نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ ته يوځل دوه جګړه کونکي راغلل چه دميراث په باره کښې يې جګړه وه او د دوی سره ګواهان نه وو مګرصرف دعوي ددوی نبی ﷺ اوفرمائيل باقی روايت دتير شوي روايت په شان دې، مګر په دې کښې دا اضافه ده چه هغه دوه کسانو وژړل او په دوی کښې هريوکس اووئيل چه ماخپل حق تاته درکړو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل کله چه تاسو داسې خبره کوئ نو پخپل مينځ کښې مال تقسيم کړئ اودحق تلاش وکړئ اوعمل پرې وکړئ او په قرعه اندازی سره خپل حصې وصول کړی او پخپل مينځ کښې يوبل ته معافی وکړئ.

**قوله:**﴿عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- رَجُلاَنِ يَخْتَصِمَانِ فِي مَوَارِيثَ لَهُمَا لَمْ تَكُنْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ إِلاَّ دَعْوَاهُمَا فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَذَكَرَ مِثْلَهُ ﴾

دا حديث هم هغه دې کوم چه پورته ذکر شو خو رومبې حديث مختصر وو او په دې کښې زيادت دې چه دوه سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د ميراث په مسئله کښې جهګړه کولو سره راغلل، او بينه د چا سره هم نه وه په دې باندې رسول الله ﷺ هغه حديث ارشاد اوفرمائيلو کوم چه مخکښې تير شو. د دې نه پس دلته روايت کښې دی چه د رسول الله ﷺ وعيد اوريدو سره دواړه سړی په ژړا شو او هر يو په هغوی کښې خپل حق بل ته ورکولو،

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨١٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٢٠) (صحيح)

په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل ﴿ أَمَّا إِذْ فَعَلْتُمَا مَا فَعَلْتُمَا فَاقْتَسِمَا وَتَوَخَّيَا الْحَقَّ. ثُمَّ اسْتَهِمَا ثُمَّ تَحَالَّا ﴾ دا پورته تير شو چه د دې دواړو اختلاف د ميراث يا ترکه په باره کښې وو، په ترکه کښې متفرق څيزونه وی په دې وجه رسول اللهﷺ هغوی ته اوفرمائيل چه هغه دواړه څيزونه برابر برابر دوه ځايه کړئ. او هر يو دې په دې تقسيم سره د خپل حق د اخستلو اراده اوکړی، يعنی د دې نه د زياتی دې نه کوی. بيا چه کله هغه ټول مال دوه ځايه کيخودلې شی نو قرعه اندازی کوئ د تعين حصه په باره کښ، بيا چه د چا په نوم باندې کومه حصه راوځی هغه دې واخلی او د هغې باوجود دې هم خپل مينځ کښې يو بل ته خپل حق معاف کړی، يعنی احتياطا.

[۳۵۸۵] (۱) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا أُسَامَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَافِعٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أُمَّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: يَخْتَصِمَانِ فِي مَوَارِيثَ وَأَشْيَاءَ قَدْ دَرَسَتْ، فَقَالَ: إِنِّي إِنَّمَا أَقْضِي بَيْنَكُمْ بِرَأْيِي فِيمَا لَمْ يُنْزَلْ عَلَيَّ فِيهِ.

د ام سلمه رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی دا روايت هم د مخکنې روايت په شان دې مګر په دې کښې دا اضافه ده راوی وائی ددوه کسانو دميراث په مسئله کښې جګړه وه اوديوځو زړو څيزونو په باره کښې ئې جګړه وه نبی ﷺ اوفرمائيل د کوموڅيزونو په باره کښې چه په ما وحې نه نازليږي نوزه به ستاسوفيصله دخپلې راې مطابق کوم.

**قوله:** ﴿ يَخْتَصِمَانِ فِي مَوَارِيثَ وَأَشْيَاءَ قَدْ دَرَسَتْ ﴾ يعنی اختلافه د ميراث په مال او داسې څيزونو کښې وو چه زاړهٔ شوې وو ﴿ فقال إِنِّي إِنَّمَا أَقْضِي بَيْنَكُمْ بِرَأْيِي فِيمَا لَمْ يُنْزَلْ عَلَيَّ فِيهِ ﴾ يعنی رسول اللهﷺ دا هم اوفرمائيل چه د کومې مسئلې په باره کښې په ما باندې وحی نه نازليږی په هغې کښې خپله رائې او اجتهاد سره فيصله کوم.

## د رسول اللهﷺ دپاره اجتهاد جائز دې:

دا حديث صريح دليل دی په دې خبره باندې چه د رسول اللهﷺ دپاره په احکاماتو کښې اجتهاد جائز وو، مسئله اختلافی ده د جمهورو رائې هم دا ده يعنی د جواز، په دې مسئله کښې څلور اقوال دی کوم چه په ابواب الوضوء کښې ﴿ لولا ان اشق علی امتی لامرتهم بالسواک ﴾ د حديث د لاندې تير شوې دی.

[۳۵۸۶] (۲) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّ الرَّأْيَ إِنَّمَا كَانَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُصِيبًا لِأَنَّ اللَّهَ كَانَ يُرِيهِ وَإِنَّمَا هُوَ مِنَّا الظَّنُّ وَالتَّكَلُّفُ".

دابن شهاب نه روايت دې فرمائی چه عمرفاروق نه په ممبرباندې اوفرمائيل اې خلقو دنبی ﷺ راې درست وو ځکه چه الله تعالی ورته سمه لاربنودلې وه، اوزمارائ يو ګمان اومحنت دې.

(۱): تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله (تحفة الأشراف: ۱۸۱۷٤) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹٤۰٦) (ضعيف)

قوله:﴿ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ - رضى الله عنه - قَالَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ الرَّأْىَ إِنَّمَا كَانَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- مُصِيبًا لأَنَّ اللَّهَ كَانَ يُرِيهِ وَإِنَّمَا هُوَ مِنَّا الظَّنُّ وَالتَّكَلُّفُ ﴾

يعني يو کرت عمر رضی الله عنه په خپله خطبه کښې په منبر باندې دا خبره اوفرمائيله چه اې خلقو! بيشکه اصل رائې چه صحيح او حق وی هغه خو د رسول الله ﷺ وه ځکه چه الله تعالی به هغوی په حق خبره باندې پوهه کول او زمونږ رائې خو بس د يو ګمان او تکلف درجه لری.

دا روايت مرسل دې يعنی منقطع، ځکه چه د ابن شهاب سماع د عمر رضی الله عنه نه ثابت نه دے اوګورئ! عمر رضی الله عنه د خپلې رائې په باره کښې څه فرمائی او هغې ته څومره کم حيثيت ورکوی حالانکه خپله رسول الله ﷺ د هغوی په باره کښې د اصابة رائې او د حق وينا شهادت ورکړې دې ﴿ ففی الترمذی عن ابن عمر رضی الله عنهما ان رسول الله ﷺ قال ان الله جعل الحق علی لسان عمر وقلبه ﴾

[۳۵۸۷]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، أَخْبَرَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو عُثْمَانَ الشَّامِيُّ "وَلَا إِخَالُنِي رَأَيْتُ شَامِيًّا أَفْضَلَ مِنْهُ" يَعْنِي حَرِيزَ بْنَ عُثْمَانَ.

معاذ بن معاذ فرمائی چه ماته ابوعثمان شاي اووئيل چه زماپه راي دشام څوک اوسيدونکي دحريز بن عثمان نه افضل نه دي.

قوله:﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ ﴾ دا په اکثر نسخو کښې نشته کما فی تعليق الشيخ محمد عوامه او د دې د دلته کيدو وجه هم په فهم کښې نه راځی. (کما فی المنهل)

## بَابُ كَيْفَ يَجْلِسُ الْخَصْمَانِ بَيْنَ يَدَيِ الْقَاضِي

### د قاضی په وړاندې به دوه جګړه کونکی څنګه کينی

[۳۵۸۸]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا مُصْعَبُ بْنُ ثَابِتٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، قَالَ: "قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ الْخَصْمَيْنِ يَقْعُدَانِ بَيْنَ يَدَيِ الْحَكَمِ".

دعبدالله بن الزبيرنه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام حکم کړې دې چه مدعی او مدعی عليه دې قاضی ته مخامخ کينی.

قوله:﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ قَضَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّ الْخَصْمَيْنِ يَقْعُدَانِ بَيْنَ يَدَيِ الْحَاكِمِ ﴾

يعنی رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه قاضی له پکار دی چه په خصمينو کښې د يو سره هم امتيازی برتاؤ اونکړی بلکه دواړه دې خپلې مخې ته کينوی.

په بذل کښې يو اشکال ليکلې دې چه په دې حديث کښې کيفيت د جلوس مذکور نه دې لهذا په ترجمة الباب کښې لفظ "کيف" ليکل نه وو پکار، خو د دې جواب دا کيدې شی چه په خصمين کښې د هر يو د حاکم مخې ته کيناستل هم دا کيفيت د جلوس دې.

[1]: تفرد به أبو داود (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۵۲۸۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۴) (ضعيف الإسناد)

## بَابُ الْقَاضِي يَقْضِي وَهُوَ غَضْبَانُ
### قاضيان دې د غصې په وخت کښې فيصلې نه کوي

[۳۵۸۹] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى ابْنِهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَقْضِي الْحَكَمُ بَيْنَ اثْنَيْنِ، وَهُوَ غَضْبَانُ".

عبدالرحمن بن ابی بکره دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه ماخپل ځوي ته وليکل چه نبی ﷺ فرمائيلی دی فيصله کونکي دي ددوه کسانو په مينځ کښې په داسې حال کښې فيصله نه کوی چه دې غصه وی

**قوله:** (لَا يَقْضِي الْحَكَمُ بَيْنَ اثْنَيْنِ وَهُوَ غَضْبَانُ) يعنی که قاضی صاحب د مخکښې نه په څه خبره باندې غصه وی نو په دغه وخت کښې ورله د دعوی سماعت او د هغې فيصله نه دی کول پکار، کيدې شی په دې حالت کښې هغه په معامله باندې کما حقه پوهه نه شی، هم دغه شان په بدل کښې ليکلې دی چه جوع او عطش (لوږه او تنده) وغيره احوالو کښې هم فيصله نه دی کول پکار.

والحديث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجة، قاله المنذری.

## بَابُ الْحُكْمِ بَيْنَ أَهْلِ الذِّمَّةِ
### قاضی به د کافرانو په مينځ کښې فيصله څنګه کوی؟

[۳۵۹۰] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "فَإِنْ جَاءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ سورة المائدة آية ۴۲"، فَنُسِخَتْ، قَالَ: فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ سورة المائدة آية ۴۸".

دعبدالله بن عباس نه روايت دې فرمائی چه مخکښې حکم داوو: «فإن جاءوك فاحكم بينهم أو أعرض عنهم» بيادا حکم په لاندينې ايت سره منسوخ شو: «فاحكم بينهم بما أنزل الله».

**په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:**

يعنی مسلمان قاضی لره په دارالاسلام کښې د ذميانو فيصله کول پکار دی يا نه؟ د امام مالک رحمه الله رائې په دې کښې د تخير ده، او د احنافو په نزد د مرافعه په صورت کښې د فيصلې حکم دې هم داسې نه دې. د امام شافعی رحمه الله په دې کښې دوه قوله دی يو هم دا يعنی وجوب عند المرافعه، دويم دا چه مطلقا واجب دې.

[1]: صحيح البخاري/الأحكام ۱۳ (۷۱۵۸)، صحيح مسلم/الأقضية ۷ (۱۷۱۷)، سنن الترمذي/الأحكام ۷ (۱۳۳٤)، سنن النسائي/آداب القضاة ۱۷ (۵٤۰۸)، ۳۱ (۵٤۲۳)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٤ (۲۳۱٦)، (تحفة الأشراف: ۱۱٦۷٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۳٦، ۳۷، ۳۸، ٤٦، ۵۲) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦۲٦۳) (حسن الإسناد)

[۳۵۹۱](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ الْحُصَيْنِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فَإِنْ جَاءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ سورة المائدة آية ۴۲، وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ سورة المائدة آية ۴۲، قَالَ: كَانَ بَنُو النَّضِيرِ إِذَا قَتَلُوا مِنْ بَنِي قُرَيْظَةَ أَدَّوْا نِصْفَ الدِّيَةِ، وَإِذَا قَتَلَ بَنُو قُرَيْظَةَ مِنْ بَنِي النَّضِيرِ أَدَّوْا إِلَيْهِمُ الدِّيَةَ كَامِلَةً، فَسَوَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمْ".

دعبدالله بن عباس نه روایت دي فرمائي کله چه. دا ایت نازل شو : «فإن جاءوك فاحكم بينهم أو أعرض عنهم» الايه، مخکښې دا معمول وو چه کله به قبيله بنو نضير دقبيلې بنی قریظه کوم کس لره مړ کړو نو نیم دیت به ئې ورته اداکولو او چه کله به بنوقریظه دبنو نضیرنه څوك مړ کړو نو پوره دیت به ئې اداکولو ددې ایت په نازلیدوسره نبی ﷺ په دیت کښې مساوات قائم کړو.

**قوله:** ﴿ قَالَ كَانَ بَنُو النَّضِيرِ إِذَا قَتَلُوا مِنْ بَنِي قُرَيْظَةَ أَدَّوْا نِصْفَ الدِّيَةِ الخ ﴾

دا روايت تفصيلاً په کتاب الحدود کښې راغلې دې، بنو نضير او بنو قريظه د يهودو دوه مشهورې قبيلې دی چه په مدينه طيبه کښې آبادې وې چه په هغې کښې بنو قريظه کمې درجې والا گنړلې کيدل او بنو نضير د اوچتې درجې والا. په دې وجه به په هغوی کښې دا بې انصافي موندلې شوه چه که د بنو نضير يو سړی به څوک قرظی سړې قتل کړو نو د هغه به ئې نيم ديت ادا کولو، او که بنو قريظه به په بنو نضير کښې څوک قتل کړل نو هغوی به کامل ديت ورکولو، دا راوی وائی چه رسول الله ﷺ د هغوی نه دې تفريق ختمولو سره د دواړو ترمينځه د مساوات فيصله اوکړه.

د هغه آيت کريمه مطابق کوم چه په روايت کښې ذکر شوې دې. ﴿ وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ﴾ (بذل)

والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

## بَابُ اجْتِهَادِ الرَّأْيِ فِي الْقَضَاءِ

### په فيصله کولو کښې خپلې رای لره دخل ورکول

[۳۵۹۲](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي عَوْنٍ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ عَمْرٍو أَخِي الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنْ أُنَاسٍ مِنْ أَهْلِ حِمْصَ، مِنْ أَصْحَابِ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمَّا أَرَادَ أَنْ يَبْعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ، قَالَ: "كَيْفَ تَقْضِي إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ؟"، قَالَ: أَقْضِي بِكِتَابِ اللهِ، قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي كِتَابِ اللهِ؟، قَالَ: فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَا فِي كِتَابِ اللهِ؟، قَالَ: أَجْتَهِدُ رَأْيِي وَلَا آلُو، فَضَرَبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدْرَهُ، وَقَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي وَفَّقَ رَسُولَ رَسُولِ اللهِ لِمَا يُرْضِي رَسُولَ اللهِ".

---

(۱): سنن النسائي/القسامة ۵ (۴۷۳۷)، (تحفة الأشراف: ۶۰۷۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۳/۱) (حسن)

(۲): سنن الترمذي/الأحكام ۳ (۱۳۲۷)، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳۰/۵، ۲۳۶، ۲۴۲)، سنن الدارمي/المقدمة ۲۰ (۱۷۰) (ضعيف)

حارث بن عمرو دمعاذ بن جبل رضی الله عنه په ملګرو کښې دیو کس نه روایت کوی فرمائی چه کله نبی ﷺ یمن ته دمعاذ رضی الله عنه دلیږلو اراده وکړه نومعاذ رضی الله عنه ته ئې اوفرمائیل کله چه تاته یوه معامله راشي نوفیصله به څنګه کوي؟ معاذ اووئیل دالله دکتاب مطابق فیصله به کرم: نبی ﷺ ارفرمائیل که چرې دالله په کتاب کښې ئې بیانه موې معاده عرض اوکړو دنبی ئې دسنت مطابق فیصله به کوم بیانبی ﷺ اوفرمائیل که چرې درسول په سنت کښې دغه خبره بیانه موې معاذ عرض اوکړو بیابه زه پخپله پوهه او عور اوفکرکولوسره مسئله معلوموم اودمعاملې په فیصله کولوکښې به څه قسم کوتاهی نه کوم، راوی وائی چه نبی ﷺ دمعاذنه په سینه ګذار وکړو او وئې فرمائیل ټول تعریفونه الله تعالی لره دي چاچه دهغه درسول قاصد لره ددې خبرې توفیق ورکړو په کومې چه دالله رسول خوشحاله شو.

**قوله:** ﴿ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لَمَّا أَرَادَ أَنْ يَبْعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ قَالَ « كَيْفَ تَقْضِى إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ ». قَالَ أَقْضِى بِكِتَابِ اللَّهِ. قَالَ « فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِى كِتَابِ اللَّهِ ». قَالَ فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم-. .....الخ﴾

د دې حدیث مضمون خو ظاهر دې چه رسول الله ﷺ د معاذ رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه یمن ته تلو سره به ته څنګه فیصله کوې؟ نو هغوی جواب ورکړو چه د کتاب الله مطابق، او که په هغې کښې ملاؤ نه شو نو د سنت رسول ﷺ مطابق، رسول الله ﷺ ترې نه تپوس اوکړو چه که په دواړو کښې ئې بیا نه مومې نو بیا به څنګه فیصله به کوې؟ نو هغوی جواب ورکړو چه زه به په خپله رائې باندې اجتهاد کوم ﴿ ولا الو ﴾ او په دې اجتهاد کولو کښې به هیڅ کوتاهی او کمې نه کوم. یعنی د وس مناسب به د صحیح فیصلې کوشش کوم. رسول الله ﷺ د هغوی جواب اوریدو سره د هغوی په سینه مبارکه باندې لاس کیخودلو او وې فرمائیل: ټول تعریفونه د هغه الله دپاره دی چا چه د خپل رسول ﷺ قاصد ته توفیق ورکړو د هغه خیز کوم چه رسول الله ﷺ خوښوی.

امام خطابی رحمه الله فرمائی ﴿ اجتهد رائی ﴾ نه خپله ذاتی رائې مراد نه ده چه کومه د هغوی په ذهن کښې راشي بغیر د استناد نه کتاب او سنت ته. بلکه د رائې نه مراد په طریقه د قیاس ده چه د هغې ماخذ کتاب او سنت وی، او بیا د هغې نه پس فرمائی: ﴿وفی هذا اثبات القیاس وایجاب الحکم اھ﴾ پس ټول فقهاء کرام قاطبة د دې حدیث نه په حجیت قیاس باندې استدلال کوی.

## د حدیث الباب په سند باندې کلام او د محدثینو د طرف نه د هغې جواب

د دې نه پس بیا خان پوهه کول پکار دی چه دا حدیث سندا ضعیف دې په دې کښې یو راوی دې حارث بن عمرو چه مجهول دې بالاتفاق بله دا چه هغه روایت کوی دې لره د اصحاب معاذ من اهل حمص نه چه هغه هم مجهول دې. امام ترمذی رحمه الله هم د دې حدیث په سند باندې کلام کړې دې او د دې حدیث د تخریج نه پس فرمائی ﴿ لا نعرفه الا من هذا الوجه ولیس اسناده عندی بمتصل ﴾ او جوزقانی دا روایت په موضوعات کښې شمار کړې دې

علامه سيوطي رحمه الله په مرقاة الصعود کښې د دې ټولو د نقل کولو نه پس فرمائي ﴿ قلت لكن الحديث له شواهد موقوفة عن عمر بن الخطاب وابن مسعود وزيد بن ثابت وابن عباس رضي الله عنهم، وقد اخرجها البيهقي في سننه عقبه تخريجه لهذا الحديث تقوية له اهـ﴾ (بذل) حافظ ابن القيم رحمه الله په خپل مشهورتصنيف اعلام الموقعين عن رب العالمين کښې دا حديث د قياس په حجيت کښې پيش کړې دې او په دې سند کښې چه کومې کمزورۍ دی چه د هغې پورته بيان اوشو د هغې د طرف نه ئې جواب کړې دې، او دا چه دا حديث د شهرت حد ته رسيدلې دې او د اصحاب معاذ رضي الله عنهم شهرت په علم او دين او فضل او صدق کښې دومره دې کوم چه په چا باندې پټ نه دې. او دا هم فرمائي چه شعبه کوم چه په دې حديث کښې حامل لواء دې د هغوی شان دا دې چه بعض ائمه حديث د هغوی په باره کښې فرمائي ﴿ اذا رائيت شعبة في اسناد حديث فاشدد يديک به ﴾ چه کله ته د يو حديث په سند کښې شعبه راوی وينې چه هغه پکښې موجود دې نو بيا هغه حديث په مضبوطيا سره اونيسه او خطيب بغدادی د دې حديث يو بل سند بيان کړې دې چه د هغې سند متصل او رجال معروف بالثقاهة دی، د دې ټولو خبرو نه علاوه لويه خبره دا ده چه اهل علم دا حديث نقل کوی او په حجيت قياس باندې د دې نه استدلال کوی ﴿فوقفنا بذلک على صحته عندهم ﴾ يعنې د څه نه چه معلومیږی چه دا حديث د هغوی په نزد صحيح او ثابت دې او بيا هغوی د دې نه پس ډير داسې احاديث د مثال په طور ذکر کړی دی کوم چه د سند په لحاظ سره قوی نه دی، خو د علماء کرامو د نقل دپاسه نقل کول د هغې د صحت دپاره کافی او مستغنی عن طلب الاسناد شو (ملخصا من العون). والحديث اخرجه الترمذی، قاله المنذری

**تنبيه** : حافظ ابن القيم رحمه الله په تهذيب السنن کښې فرمائي چه امام ابن ماجه هم د دې حديث تخريج په يو بله طريقه باندې کړې دې

﴿عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ، قَالَ : لَمَّا بَعَثَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ , قَالَ : لاَ تَقْضِيَنَّ وَلاَ تَفْصِلَنَّ إِلاَّ بِمَا تَعْلَمُ، وَإِنْ أَشْكَلَ عَلَيْكَ أَمْرٌ، فَقِفْ حَتَّى تَبَيَّنَهُ , أَوْ تَكْتُبَ إِلَيَّ فِيهِ ﴾ حافظ ابن القيم رحمه الله فرمائي : ﴿ وهذا اجود اسنادا من الاول ولا ذكر فيه للرائي ﴾ اهـ

[۳۵۹۳] [1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي أَبُو عَوْنٍ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ نَاسٍ، مِنْ أَصْحَابِ مُعَاذٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمَّا بَعَثَهُ إِلَى الْيَمَنِ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

معاذ بن جبل د نبی علیه السلام نه دتير شوي روايت په شان روايت بيان کړې دې.

## بَابٌ فِي الصُّلْحِ

### د صلح بيان

دا کتاب القضاء شروع دې په دې باب سره مصنف رحمه الله دا فرمائيل غواړی چه څنګه د قاضی دا فرض منصبی دې چه هغه د خصمين ترمينځه د اصولو مطابق شرعی فيصله اوکړی هم

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۷۳) (ضعيف)

دغه شان قاضی ته د دې هم حق حاصل دې چه د خصمین ترمینځه رفعا للنزاع صلح اوکړی لکه چه د کعب بن مالک او ابن ابی حدود ترمینځه رسول اللهﷺ صلح کړې وه.

[۳۵۹۴](1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، أَوْ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ شَكَّ الشَّيْخُ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ"، زَادَ أَحْمَدُ إِلَّا صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا، أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا وَزَادَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْمُسْلِمُونَ عَلَى شُرُوطِهِمْ.

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله اوفرمائیل دمسلمانانو په مینځ کښې صلح کول مناسب عمل دې دامام احمد په روایت کښې دومره اضافه ده چه هغه صلح درسته نه ده کوم چه حرام حلالوي اوحلال حراموي اود سلیمان بن داود په روایت کښې دا اضافه ده چه نبی علیه السلام اوفرمائیل مسلمانان دي پخپلو شرطونو عمل وکړي.

**قوله:** ﴿ الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلاَّ صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ حَلاَلاً الخ ﴾

## د امام ترمذی رحمه الله د حدیث الباب په باره کښې تصحیح او په هغې باندې د محدثینو اعتراض

د حدیث مضمون خو ښکاره دې، د دې حدیث په باره کښې امام ترمذی رحمه الله اوفرمائیل ﴿هذا حدیث حسن صحیح﴾ د امام ترمذی رحمه الله په دې رائې باندې علماء کرامو اشکال کړې دې چه د دې حدیث په سند کښې چه کوم ترمذی دې هغه کثیر بن عبدالله بن عمرو بن عوف المزنی دې چه د هغه په باره کښې داسې ده چه ﴿ هو ضعیف جدا وقال النسائي لیس بثقة وقال ابن معین لیس بشئ ﴾ حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی چه امام ترمذی رحمه الله د کثیر بن عبدالله په روایت سره دا حدیث الصلح جائز بین المسلمین روایت کولو نه پس د هغې تصحیح کړې ده ﴿ فلهذا لا یعتمد العلماء علی تصحیحه ﴾ خو حافظ ابن حجر رحمه الله د امام ترمذی رحمه الله دطرف نه اعتذارا دا فرمائیلی دی ﴿ وکانه اعتبر بکثرة طرقه ﴾ یعنی امام ترمذی رحمه الله په دې حدیث باندې د صحت حکم صرف د خپل بیان کړې شوی سند په اعتبار سره نه دې لګولې بلکه د هغوی په نظر کښې د دې نور طرق هم دی د چا نه چه دا حدیث روایت کړې شوې دې. (بذل) پس د ابوداوٗد په دې سند کښې دا راوی نشته لکه چه ته وینې، په دې حدیث باندې من حیث الفقه نور هم کلام کړې شوې دې، د صلح مختلفو انواعو ته کتلو سره چه د هغې دپاره تفصیل پکار دې نورو شروحو ته رجوع اوکړه.

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۴۸۰۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۶۷۲) (حسن صحیح)

[۳۵۹۵] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ أَخْبَرَهُ، "أَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ أَبِي حَدْرَدٍ دَيْنًا كَانَ لَهُ عَلَيْهِ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ، فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا، حَتَّى سَمِعَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي بَيْتِهِ، فَخَرَجَ إِلَيْهِمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى كَشَفَ سِجْفَ حُجْرَتِهِ، وَنَادَى كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ، فَقَالَ: يَا كَعْبُ، فَقَالَ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَأَشَارَ لَهُ بِيَدِهِ أَنْ ضَعِ الشَّطْرَ مِنْ دَيْنِكَ، قَالَ كَعْبٌ: قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قُمْ فَاقْضِهِ".

دکعب بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دابن ابی حدرد په ذمه باندې زما قرض وو دکوم چه په دوري نبوي کښې په جومات کښې دننه مطالبه شوې وه، په دې دوران کښې ددوی اوازونه اوچت شول تردې چه نبی علیه السلام واوریدل په دې وخت کښې نبی علیه السلام پخپل کور کښې موجود وو ددې شور په اوریدوسره بهر راووتو اودخپلې کمرې پرده ئې پورته کړه اوکعب بن مالکه ته ئې اواز اوکړو، کعب بن مالک عرض اوکړو حاضریم اې دالله رسوله نبی علیه السلام ورته په لاس اشاره وکړه چه نیم قرض معاف کړه کعب عرض اوکړو اې دالله رسوله نیم قرض مې ورته معاف کړو بیانبی علیه السلام ابن ابی حدرد ته اوفرمائیل پاځه اوده قرضه ادا کړه.

**قوله:** ﴿ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ أَبِي حَدْرَدٍ دَيْنًا كَانَ لَهُ عَلَيْهِ الخ ﴾ مضمون د حدیث دا دې چه د کعب بن مالک خوی عبدالله د خپل پلار مالک رضی الله عنه نه نقل کوی چه هغوی ماته خپله هغه واقعه بیان کړه چه زما ابن ابی حدرد باندې قرض وو د کوم چه ما د هغه نه غوښتنه اوکړه په مسجد کښې، چه په هغې سره د دواړو آوازونه اوچت شو تردې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم چه په خپله حجره شریفه کښې وو د هغوی په آواز اوریدو سره دروازې ته تشریف راوړو او په هغې باندې چه کومه پرده پرته وه هغه ئې لرې کړه او د کعب بن مالک نوم اخستلو سره ئې هغوی ته آواز اوکړو هغوی عرض اوکړو ﴿ لبیک یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ﴾ رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی د ګوتې په اشارې سره پوهه کړل چه خپل نیم قرض معاف کړه. هغوی عرض اوکړو جی ما داسې اوکړل. په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم عبدالله بن ابی حدرد ته اوفرمائیل چه پاسه او نیم ورته ادا کړه، چه په هغې باندې صلح اوشوه. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الشَّهَادَاتِ

### دشهادتونو بیان

[۳۵۹۶] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، وَأَحْمَدُ بْنُ السَّرْحِ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، أَنَّ أَبَاهُ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ

---

(۱): صحیح البخاري/الصلاة ۷۱ (۴۵۷)، ۸۳ (۴۷۱)، والخصومات ۴ (۲۴۱۸)، ۹ (۲۴۲۴)، والصلح ۱۰ (۲۷۰۶)، ۱۴ (۲۷۱۰)، صحیح مسلم/المساقاة ۴ (۱۵۵۸)، سنن النسائي/القضاة ۲۱ (۵۴۱۰)، سنن ابن ماجه/الصدقات ۱۸ (۲۴۲۹)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۳۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/ ۴۵۴، ۴۶۰، ۳۸۶۶، ۳۹۰)، سنن الدارمي/البیوع ۴۹ (۲۶۲۹) (صحیح)

(۲): صحیح مسلم/الأقضیة ۹ (۱۷۱۹)، سنن الترمذي/الشهادات ۱ (۲۲۹۶)، سنن ابن ماجه/الأحکام ۲۸ (۲۳۶۴)، (تحفة الأشراف: ۳۷۵۴)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الأقضیة ۲ (۳) (صحیح)

أَبِي عَمْرَةَ الْأَنْصَارِيِّ أَخْبَرَهُ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ الْجُهَنِيَّ أَخْبَرَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ الشُّهَدَاءِ الَّذِي يَأْتِي بِشَهَادَتِهِ أَوْ يُخْبِرُ بِشَهَادَتِهِ قَبْلَ أَنْ يُسْأَلَهَا" شَكَّ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ أَيَّتُهُمَا، قَالَ: قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مَالِكٌ: الَّذِي يُخْبِرُ بِشَهَادَتِهِ وَلَا يَعْلَمُ بِهَا الَّذِي هِيَ لَهُ، قَالَ الْهَمْدَانِيُّ: وَيَرْفَعُهَا إِلَى السُّلْطَانِ، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ: أَوْ يَأْتِي بِهَا الْإِمَامَ وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِ الْهَمْدَانِيِّ، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ: ابْنُ أَبِي عَمْرَةَ، لَمْ يَقُلْ عَبْدَ الرَّحْمَنِ.

د زید بن خالد جهنی نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ اوفرمائیل ایاتاسوته دهرچانه بهترګواه ونه ښایم؟ کله چه څوك ګواهی ورکوي او بیان کوي چه زه ددې معاملې ګواه یم مخکښې ددینه چه ده ته اووئیلې شي، دعبدالله بن ابی بکرشك دې چه په دې دواړوکښې کوم یوشهادت مراد دې هغه وائی امام ابوداؤد فرمائیلی دی دامام مالك بیان دې چه ددینه هغه ګواه مراد دې څوك چه دخپل شهادت اظهار وکړي اوده ته ددې خبرې علم نه وي چه دده داشهادت دچاد پاره فایدمنددې، همداني وئیلی دی چه دې دې بادشاه ته بوتلې شي دابن سرح قول دې چه ګواه دي امام ته بوتلې شي، دهمداني په روایت کښې لفظ داخبار مذکوردې اوابن سرح پخپل روایت کښې عبدالرحمن نه دې ذکرکړې بلکه ابن عمرو ئې ذکرکړې دې۔

**قوله:** ﴿ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « أَلاَ أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ الشُّهَدَاءِ الَّذِى يَأْتِى بِشَهَادَتِهِ أَوْ يُخْبِرُ بِشَهَادَتِهِ قَبْلَ أَنْ يُسْأَلَهَا » ﴾ یعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په ګواهانو کښې بهترین ګواه هغه دې چه شهادت ورکړی مخکښې د دې نه چه د هغه نه د شهادت درخواست اوکړې شی دا خو ښکاره ده چه د شهادت نه صحیح شهادت مراد دې، او چونکه د ګواهانو ګواهی د مدعی په واجب حق کښې د ثبوت ذریعه ده په دې وجه رسول الله ﷺ د هغه مدح او ترغیب فرمائی.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ مَالِكٌ الَّذِى يُخْبِرُ بِشَهَادَتِهِ وَلاَ يَعْلَمُ بِهَا الَّذِى هِىَ لَهُ ﴾

## دفع التعارض بين الحديثين :

امام مالك رحمه الله د چا قول چه مصنف رحمه الله نقل کوی د هغوی غرض په دې کلام سره دفع التعارض بین الحدیثین دې څکه چه په یو بل حدیث کښې په مقام د مذمت کښې فرمائیلې شوې دی ﴿ الذين يشهدون ولا يستشهدون ﴾ چه هغوی داسې دی چه بغیر د طلب نه شهادت ورکوی، امام مالك رحمه الله د دې توجیه دا فرمائی چه د شهادت قبل الاستشهاد مدح په هغه مقام باندې ده چرته چه مدعی ته دا معلومه نه وی چه زما څوک شاهد شته یا نه، لهذا په داسې موقع باندې چه کوم سړی ته د مدعی د صدق دعوی علم وی هغه له پکار دی چه هغه په اودریدو سره ګواهی ورکړی د هغه حق لره د ضائع کولو نه د بچ کولو دپاره. او په کوم حدیث کښې چه د شهادت قبل الاستشهاد مذمت راغلې دې د هغې نه مراد هم هغه صورت دې چرته چه مدعی ته د خپل شهود علم وی لهذا هلته څه ضرورت دی بغیر د استشهاد نه شهادت ورکولو ته، دا توجیه خو د امام مالك رحمه الله نه منقول ده. او د دې تعارض نور توجیهات هم کړې شوې دی مثلاً دا چه چرته مذمت راغلې دې د هغې نه مراد شهادة الزور دې او چرته چه مدح راغلې ده د هغې نه مراد رشتیا شهادت دې، امام

ترمذي رحمه الله په جامع ترمذی کښې هم په دې تعارض باندې کلام کړې دې او خپله هغوی د دې توجيه دا بيان کړې ده چه په مقام د مدح کښې ﴿ الذی یاتی بشهادته قبل ان یسالها ﴾ د دې نه مراد شهادت قبل الطلب نه دې بلکه د دې نه مراد استعجال فی اداء الشهادة دې يعنی هغه ګواه ډير ښه ګواه دې چه کله د هغه نه شهادت طلب کړې شی نو فورا بغير د تاخير نه د دې کار دپاره اودريږی. دې استعجال او عدم تاخير لره مبالغة په قبل الطلب سره تعبير کړې شوې دې. والحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

## بَابٌ فِيمَنْ يُعِينُ عَلَى خُصُومَةٍ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَعْلَمَ أَمْرَهَا

**څوك چه په فريقينو كښې دچا سره تعاون وكړى او دا معلومه نه وى چه كوم فريق په حقه دې؟**

[۳۵۹۷]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ غَزِيَّةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ رَاشِدٍ، قَالَ: جَلَسْنَا لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، فَخَرَجَ إِلَيْنَا فَجَلَسَ، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ حَالَتْ شَفَاعَتُهُ دُونَ حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ فَقَدْ ضَادَّ اللَّهَ، وَمَنْ خَاصَمَ فِي بَاطِلٍ وَهُوَ يَعْلَمُهُ لَمْ يَزَلْ فِي سَخَطِ اللَّهِ حَتَّى يَنْزِعَ عَنْهُ، وَمَنْ قَالَ فِي مُؤْمِنٍ مَا لَيْسَ فِيهِ أَسْكَنَهُ اللَّهُ رَدْغَةَ الْخَبَالِ، حَتَّى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ".

ديحي بن راشد نه روايت دې فرمائی چه مونږدعبد الله بن عمر رضی الله عنهما په انتظار کښې ناست وو هغه راغې او د کيناستو نه پس ئې ووئيل: مادنبی ﷺ نه آوريدلی دی چه فرمائيل ئې چاچه دالله تعالى په په حدودوکښې ديوحد د بندولو دپاره سفارش وکړونودغه کس دالله تعالى سره ضد وکړو، اوچاچه په ناحقه بصدا جګړه وکړله نوالله تعالى به ددغه کس نه دهميشه دپاره خفه وي ترڅوچه ده دا جګړه پريښودلي نه وي اوڅوك چه ديو ايمان دار متعلق داسې خبره وكړي كومه چه په هغه كښې نه وي نودې به په خيرو اوختو اوچتروكښې وي ترڅوچه ده توبه نه وي کړي.

**قوله:** ﴿ مَنْ حَالَتْ شَفَاعَتُهُ دُونَ حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ فَقَدْ ضَادَّ اللَّهَ ﴾

يعنی کوم سړې چه په بل سړی باندې د ثبوت حد نه پس د تنفيذ حد نه مخکښې د هغه د سفارش دپاره اودريږی اود عدم تنفيذ حدکوشش اوکړی نوهغه سړی د الله تعالى د حکم سخت مخالفت اوکړو، قاضی صاحب ته د مسئلې او د معاملې د رسيدو نه مخکښې په دې خبره کښې کوشش پکار دې چه په څه طريقه باندې حد ثابت نه شی هغه بل امر دې. په حديث کښې په دې باندې وعيد نشته بلکه دا خو محمود او غوره دې خو قاضی ته د رسيدو نه پس بيا سفارش کول لکه چه مونږ پورته ليکلي دی دا ناجائز او مذموم دې، د حدود شرعيه نفاذ ډير اهم او موجب د خير او برکت دې.... كما ورد في الكتاب والسنة.

**قوله:** ﴿ وَمَنْ خَاصَمَ فِي بَاطِلٍ وَهُوَ يَعْلَمُهُ لَمْ يَزَلْ فِي سَخَطِ اللَّهِ حَتَّى يَنْزِعَ ﴾ د حديث دا دويم جزء د ترجمة الباب سره متعلق دې، د دوه کسانو په څه معامله کښې اختلاف دې چه په هغې کښې يو په باطل باندې دې او دويم په حق باندې نو په داسې صورت کښې دې يو هم د هغه

---

[1] : تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٥٦٢)، وقد أخرجه: سلسلة الاحاديث الصحيحه، للالباني (٤٣٧)، مسند احمد (٧٠/٢، ٨٢، ٧٠/٢) (صحيح)

خصم تائید او امداد نه کوی چه په هغې سره د هغه په باطل باندې کیدل معلوم دی د دې په باره کښې دا وعید دې چه داسې سړې به همیشه د الله پاک په غصه او ناراضګئ کښې اخته وی تر څو چه د دې نه توبه او رجوع اونکړی.

﴿ وَمَنْ قَالَ فِي مُؤْمِنٍ مَا لَيْسَ فِيهِ أَسْكَنَهُ اللَّهُ رَدْغَةَ الْخَبَالِ حَتَّى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ ﴾ دا د حدیث دریم جزء دې چه کوم سړې په یو مومن کښې داسې صفت بیان کړی یعنی د یو داسې عیب په هغه باندې الزام اولګوی کوم چه په هغه کښې نه دې، او هغه د هغې صفت نه بری دې نو د داسې سړی په باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی به هغه په آخرت کښې د جهنم په هغه طبقه کښې ساتی چرته چه به د جهنمیانو د زخمونو پیپ وی، ﴿ رَدْغَةَ الْخَبَالِ ای التراب المخلوط بعصارة اهل النار ﴾ د جهنمیانو د وینې د پیپ ګند..... رسول الله ﷺ فرمائی د هغه استوګنه به په هغې کښې تر هغې پورې وی تر څو چه هغه د خپل قول نه بهر رانشی. خو ظاهره خبره ده چه کوم سړی خبره اوکړه هغه به د هغې نه څنګه واپس شی په دنیا کښې خو رجوع کولې شی د توبې او کفارې په ذریعه، ډیر سخت وعید دې الله پاک دې ترې زمونږ حفاظت اوفرمائی.

[۳۵۹۸] (¹) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ الْعُمَرِيُّ، حَدَّثَنِي الْمُثَنَّى بْنُ يَزِيدَ، عَنْ مَطَرٍ الْوَرَّاقِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: وَمَنْ أَعَانَ عَلَى خُصُومَةٍ بِظُلْمٍ، فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ.

نافع دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه او هغه دنبی ﷺ نه دتیرشوي روایت په شان روایت بیان کړې دې مګرددې اضافې سره چه نبی ﷺ اوفرمائیل: څوك چه په یوه معامله کښې دظالم امداد وکړې نودې دالله تعالی په غضب باندې اخته شو.

## بَابٌ فِي شَهَادَةِ الزُّورِ

### په دروغه دشهادت کولو بیان

[۳۵۹۹] (²) حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنِي سُفْيَانُ يَعْنِي الْعُصْفُرِيَّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ النُّعْمَانِ الْأَسَدِيِّ، عَنْ خُرَيْمِ بْنِ فَاتِكٍ، قَالَ: "صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الصُّبْحِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَامَ قَائِمًا، فَقَالَ: عُدِلَتْ شَهَادَةُ الزُّورِ بِالْإِشْرَاكِ بِاللَّهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ، ثُمَّ قَرَأَ: فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ ۳۰ حُنَفَاءَ لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ سورة الحج آية ۲۹-۳۰".

د خریم بن فاتك رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ دسحر مونځ وکړو اودمونځ د فارغیدو نه پس اودرید و اودرې پیرې ئې اوفرمائیل په دروغه ګواهی (شهادت کول) دالله تعالی سره دشرك کولو برابردې درې پیرې ئې اوفرمائیل اوبیائې دا ایت مبارك تلاوت کړو: «فاجتنبوا الرجس من الأوثان واجتنبوا قول الزور ° حنفاء لله غير مشركين به».

---

¹): سنن ابن ماجه/الأحكام ٦ (٢٣٢٠)، (تحفة الأشراف: ٨٤٤٥) (حسن)

²): سنن ابن ماجه/الأحكام ٣٢ (٢٣٧٢)، (تحفة الأشراف: ٣٥٢٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الشهادات ٣ (٢٢٩٩)، مسند احمد (٤/٢٣١) (ضعيف)

**قوله:** ﴿ فَقَالَ « عُدِلَتْ شَهَادَةُ الزُّورِ بِالإِشْرَاكِ بِاللَّهِ ». ثَلاَثَ مِرَارٍ ثُمَّ قَرَأَ ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ حُنَفَاءَ لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ ﴾

**شرح الحدیث:**

رسول اللهﷺ فرمائی چه دروغژنه گواهی د شرک برابر ده، دا خبره رسول اللهﷺ درې کرته اوفرمائیله او د دې په تائید کښې رسول اللهﷺ دا آیت کریمه تلاوت اوفرمائیلو، تائید یا خو په دې طریقه چه په دې آیت کریمه کښې ﴿ اجتناب من الزور ﴾ او ﴿ اجتناب من عبادة الاوثان﴾ دواړه یو ځائې ذکر شوې دی اگر چه اقتران فی الذکر اقتران فی الحکم لره مستلزم نه دې خو کم از کم مناسبت او قربت لره خو مستلزم دې، او یا بیا استدلال د آیت نه د روستو حصې نه دې ﴿ حنفاء لله غیر مشرکین به ﴾ د حضرت گنگوهی‌ﷺ په تقریر کښې دی چه د قول زور ډیر مراتب دی او په دې کښې څه شک دې چه اشراک بالله هم د دې یو قسم دې ځکه چه په دې کښې قول زور کیدل صادق راځی چه د هغې تائید په﴿ حنفاء لله

والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

## باب مَنْ تُرَدُّ شَهَادَتُهُ

### بابه مردود الشهادت څوک دي؟

[۳۶۰۰][1] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَدَّ شَهَادَةَ الْخَائِنِ، وَالْخَائِنَةِ، وَذِي الْغِمْرِ عَلَى أَخِيهِ، وَرَدَّ شَهَادَةَ الْقَانِعِ لِأَهْلِ الْبَيْتِ، وَأَجَازَهَا لِغَيْرِهِمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْغِمْرُ الْحِنَةُ، وَالشَّحْنَاءُ، وَالْقَانِعُ الْأَجِيرُ التَّابِعُ مِثْلُ الْأَجِيرِ الْخَاصِّ.

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ دخیانت کونکي سړې او د خیانت کونکي ښځې اودمسلمان سره دکینه کونکي شهادت رد کړې دې اوهمدارنگې په کوروالابانديې ئې دهغه د نوکر گواهی رد کړې ده البته دنورو خلقو په حق کښې ددغه نوکر گواهی قبوله ده. امام ابوداؤد فرمائی د حقد اوشحناء مفهوم یودې، اوقانع دېخوانی نوکر په معنی راځی ددې حکم هم دخاص مزدور په شان دې.

﴿ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- رَدَّ شَهَادَةَ الْخَائِنِ وَالْخَائِنَةِ وَذِى الْغِمْرِ عَلَى أَخِيهِ ﴾

**شرح الحدیث من حیث الفقه:**

د خیانت نه مراد عام دې که هغه خیانت فی اموال الناس وی یا فی احکام الله وفرائضه، په دواړو صورتونو کښې سړې فاسق وی، او د غمر معنی ده حقد او دشمنی، یعنی د دشمن او کینه گر شهادت د خپل رور خلاف، ﴿ یعنی شهادة العدو علی العدو ﴾ رسول اللهﷺ دا دواړه ﴿ شهادة الخائن و شهادة الخائنة ﴾ رد اوفرمائیل. د جمهور مسلک دا دې ﴿ لا تجوز شهادة العدو علی العدو ﴾ د احنافو مذهب هم دا دې خو بعضو شارحینو دا لیکلې دی چه دا

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۸۷۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۱/۲، ۲۰۳، ۲۰۴، ۲۲۵) (حسن)

حديث د احنافو خلاف دې ځکه چه هغوی شهادة العدو على العدو نه جايز وائی، خو دا نقل صحيح نه دې، زمونږ په نزد شهادة العدو على العدو په هغه صورت کښې معتبر دې چه کله هغه [۳۵۹۹] عداوت، عداوت دينيه وی او که عداوت دنيويه دې نو بيا زمونږ په نزد هم ناجائز دې. ﴿ثم اختلفو (ای الحنفية فقيل مطلقا وقيل بل اذا كانت موجبة للفسق﴾.........

﴿وَرَدَّ شَهَادَةَ الْقَانِعِ لأَهْلِ الْبَيْتِ وَأَجَازَهَا لِغَيْرِهِمْ﴾ د قانع اهل البيت نه مراد خادم دې کوم چه د چا په کور باندې صرف په ډوډئ باندې صبر کړې وی. ښکاره خبره ده چه د داسې سړی شهادت د هغه کور د خلقو په حق کښې شکی دې ﴿واجازها لغيرهم﴾ يعنی د دې قانع شهادت رسول الله ﷺ مطلقا رد نه دې فرمائيلې بلکه خاص د هغه کور والا د خلقو دپاره د هغوی نه علاوه ئې د نورو په حق کښې معتبر منلې دې. ځکه چه هغه د تهمت مقام نه دې.

والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

دا حديث د عائشې رضی الله عنها نه په ترمذی شريف کښې هم منقول دې. او امام ترمذی رحمه الله په دې باندې من حيث الفقه هم کلام فرمائيلې دې لهذا هغه دې هم اوکتلې شی بلکه دا چه په دې مقام کښې دې الکوکب الدری هم اوکتلې شی، مفيد به ثابت شی.

[۳۶۰۱](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَلَفِ بْنِ طَارِقٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ عُبَيْدٍ الْخُزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ خَائِنٍ، وَلَا خَائِنَةٍ، وَلَا زَانٍ، وَلَا زَانِيَةٍ، وَلَا ذِي غِمْرٍ عَلَى أَخِيهِ".

سليمان بن موسى پخپل سند سره دنبی علیه السلام نه روايت کړې دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی دخيانت کونکي سړي او ښځې شهادت قبول نه دې اوځوک چه دخپل مسلمان ورور سره بغض ساتي دهغه شهادت هم قبول نه دې (چه ددنياوی عرض دپاره ورسره دشمنی کوی)

## بَاب شَهَادَةِ الْبَدَوِيِّ عَلَى أَهْلِ الْأَمْصَارِ

### په ښاروالا باندې دبانډچی د ګواهئ کولو بيان

[۳۶۰۲](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، وَنَافِعُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ بَدَوِيٍّ عَلَى صَاحِبِ قَرْيَةٍ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوريدلی دی چه فرمائيل ئې دښار په اوسيدونکو باندې د باندې (کلی) د اوسيدونکی ګواهی جائز نه ده ځکه چه اکثر باندچيان کم عقل وی).

﴿لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ بَدَوِيٍّ عَلَى صَاحِبِ قَرْيَةٍ﴾ يعنی د ځنګلی او د کلی وال شهادت د ښهر د اوسيدونکی په خلاف کښې جائز او معتبر نه دې.

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۸۷۱۱) (حسن)

(٢): سنن ابن ماجه/الأحكام ۳۰ (۲۳٦۷)، (تحفة الأشراف: ۱٤۲۳۱) (صحيح)

شارحینو لیکلي دي چه د امام مالک رحمه الله په دې حدیث باندې عمل دې، او جمهور وائي چه دا حدیث د قاعده کلیه په طور نه دې بلکه داسې په دې وجه فرمائیلې شوې دی چه عموما د باندو خلق جاهل او بې علم وی د شهادت صلاحیت او اهلیت په هغوی کښې نه وی، خو که په چا کښې د دې اهلیت وی نو بیا به د هغه شهادت هم معتبر وی.

والحدیث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذري

## بَابُ الشَّهَادَةِ فِي الرَّضَاعِ

### په رضاعت (تی ورکولو) باندې د شهادت کولو بیان

**مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه :**

دا مسئله مختلف فیه ده، د امام احمد رحمه الله په نزد د ثبوت رضاعت دپاره د یوې زنانه شهادت کافي دې، او د مالک په نزد د دوه زنانو شهادت، او د احنافو په نزد د عام قاعدې مطابق شهادة د عدلین او عدل او عدلتین یعنی دوه عادل سړی یا یو عادل سړې او دوه عادلې زنانه، او د امام شافعي رحمه الله په نزد هم دغه شان دې څنګه چه د احنافو په نزد دې، خو هغوی فرمائي چه صرف زنانه وی نو که هغه څلور وی نو د هغوی شهادت به معتبر وی، د احنافو په نزد داسې نه ده.

[۳۶۰۳] (۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، حَدَّثَنِي عُقْبَةُ بْنُ الْحَارِثِ، وَحَدَّثَنِيهِ صَاحِبٌ لِي عَنْهُ، وَأَنَا لِحَدِيثِ صَاحِبِي أَحْفَظُ، قَالَ: "تَزَوَّجْتُ أُمَّ يَحْيَى بِنْتَ أَبِي إِهَابٍ، فَدَخَلَتْ عَلَيْنَا امْرَأَةٌ سَوْدَاءُ، فَزَعَمَتْ أَنَّهَا أَرْضَعَتْنَا جَمِيعًا، فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ فَأَعْرَضَ عَنِّي، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهَا لَكَاذِبَةٌ، قَالَ: وَمَا يُدْرِيكَ؟ وَقَدْ قَالَتْ: مَا قَالَتْ دَعْهَا عَنْكَ".

د ابو ملیکه نه روایت دې فرمائي چه ماته عقبه بن حارث حدیث بیان کړې دې او دهغه نه زما یو دوست هم دا اوریدلې دې او ماته دخپل دوست روایت ډیر ښه یاد دې: عقبه وئیلی دی ما دام یحیی بنت اهاب سره نکاح وکړه او مونږ ته دتور رنګ والایوه ښځه راغله هغې اووئیل ما تاسو دواړو ته تې درکړې دې ماچه دا واوریدل نو دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې وکړو خو نبي ﷺ راته توجه ونکړله ماعرض اوکړو اې د الله رسوله هغه ښځه دروغژنه ده نبي ﷺ اوفرمائیل تاته څنګه معلومه شوه هغه خو همداسې وائي څه چه یې وئیلي دي، اوته خپله ښځه پریږده.

﴿ حَدَّثَنِي عُقْبَةُ بْنُ الْحَارِثِ وَحَدَّثَنِيهِ صَاحِبٌ لِي عَنْهُ - وَأَنَا لِحَدِيثِ صَاحِبِي أَحْفَظُ قَالَ تَزَوَّجْتُ أُمَّ يَحْيَى بِنْتَ أَبِي إِهَابٍ فَدَخَلَتْ عَلَيْنَا امْرَأَةٌ سَوْدَاءُ فَزَعَمَتْ أَنَّهَا أَرْضَعَتْنَا جَمِيعًا ﴾

عقبه بن الحارث فرمائي چه ما د یوې زنانه ام یحیی بنت ابی اهاب سره وادهٔ اوکړو. د وادهٔ نه یو څو ورځې پس یو توره زنانه مونږ کره راغله او وې وئیل چه ما تاسو ته په ماشومتوب کښې پئ درکړې دی یعنی بیا تاسو وادهٔ څنګه اوکړو؟ عقبه فرمائي چه زه

(۱): خ العلم ۲۶ (۸۸)، البیوع ۳ (۲۰۵۲)، الشهادات ٤ (۲٦٤۰)، ۱۳ (۲٦٥۹)، ۱٤ (۲٦٦۰)، النکاح ۲۳ (٥۱۰٤)، سنن الترمذي/الرضاع ٤ (۱۱٥۱)، سنن النسائي/النکاح ٥۷ (۳۳۳۲)، (تحفة الأشراف: ۹۹۰٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۷، ۸ ۳۸٤)، سنن الدارمي/النکاح ٥۱ (۲۳۰۱) (صحیح)

په دي خبره اوريدو باندې د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شوم او هغوی ته مې مسئله بيان کړه (هغوی مسئله په دې انداز کښې بيان کړې وه چه ګويا دا زنانه دروغژنه ده) ـــــ رسول الله ﷺ زما په خبره اوريدو باندې اعراض اوفرمائيلو، هغوی فرمائی چه ما رسول الله ﷺ ته صفا عرض اوکړو چه هغه دروغژنه ده، رسول الله ﷺ اوفرمائيل تا ته څه خبر دې چه هغه دروغژنه ده ﴿ دعها عنک ﴾ پريږده دغه زنانه.

امام احمد بن حنبل رحمه الله د دې حديث په ظاهر باندې عمل کولو سره د مرضعه واحده شهادت کافی ګڼړلې دې. جمهور وائی چه دا حديث په ورع او تقوی باندې محمول دې. وفی الرد المختار: الرضاع حجته حجة المال وهی شهادة عدلين او عدل وعدلتين، ولا تقع الفرقة الا بتفريق القاضی، الی آخر ما فی حاشية الکوکب صفحه ۳۴۲... يعنی د احنافو په نزد د رضاعت په مسئله کښې هم هغه دليل معتبر دې کوم چه په عام حقوق ماليه کښې معتبر وی.......... او په حقوق ماليه کښې هم د داسې (شهادة عدلين او عدل او عدلتين) په خلاف د حدود چه هلته د څلورو کسانو ګواهی پکار ده، او په خلاف د خالص امور دينيه چه هلته د عدل واحد شهادت هم معتبر دې لکه په روية هلال د رمضان کښې، لکن اذا کان بالسمآء علة. والحديث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[۳۶۰۴] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ عُمَيْرٍ الْبَصْرِيُّ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ كِلَاهُمَا، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ، وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنْ عُقْبَةَ، وَلَكِنِّي لِحَدِيثِ عُبَيْدٍ أَحْفَظُ فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: نَظَرَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ إِلَى الْحَارِثِ بْنِ عُمَيْرٍ، فَقَالَ: هَذَا مِنْ ثِقَاتِ أَصْحَابِ أَيُّوبَ.

ابن ابی مليکه دعقبه بن حارث نه دتيرشوي روايت په شان روايت بيان کړې دې او وئيلي يې دي چه دا روايت ما دعقبه نه اوريدلې دې ليکن دعبيد روايت راته ښه ياد دې او باقی روايت دې دتيرشوي روايت په شان ذکرکړو. امام ابوداؤد فرمائی چه حماد بن زيد حارث عميرته وکتل او وئې وئيل چه دې دايوب په ثقه شاګردانو کښې دې.

## بَابُ شَهَادَةِ أَهْلِ الذِّمَّةِ وَفِي الْوَصِيَّةِ فِي السَّفَرِ

### د سفر په دوران کښې د وصيت متعلق د کافر، ذمی ګواهی ګڼل

د اهل ذمه شهادت په مسلم باندې د احمد رحمه الله په نزد په دې خالص صورت کښې کوم چه په ترجمة الباب کښې ذکرشوې دې يعنی په وصيت فی السفر کښې معتبر دې، د ابراهيم النخعی او اوزاعی رائې هم دا ده، مصنف رحمه الله حنبلی دې لکه مخکښې ډير کرته تير شو هم په دې وجه ئې د حنابله د مسلک مطابق ترجمه قائم کړې ده.

[۳۶۰۵] (۲) حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا زَكَرِيَّا، عَنِ الشَّعْبِيِّ، "أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ حَضَرَتْهُ الْوَفَاةُ بِدَقُوقَاءَ هَذِهِ، وَلَمْ يَجِدْ أَحَدًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ يُشْهِدُهُ عَلَى وَصِيَّتِهِ، فَأَشْهَدَ رَجُلَيْنِ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ، فَقَدِمَا الْكُوفَةَ فَأَتَيَا أَبَا مُوسَى الْأَشْعَرِيَّ، فَأَخْبَرَاهُ، وَقَدِمَا بِتَرِكَتِهِ، وَوَصِيَّتِهِ، فَقَالَ الْأَشْعَرِيُّ: هَذَا أَمْرٌ لَمْ يَكُنْ بَعْدَ الَّذِي

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۹۰۵) (صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۰۱۳) (صحيح الإسناد)

كَانَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَحْلَفَهُمَا بَعْدَ الْعَصْرِ بِاللهِ مَا خَانَا وَلَا كَذَبَا وَلَا بَدَّلَا وَلَا كَتَمَا وَلَا غَيَّرَا، وَإِنَّهَا لَوَصِيَّةُ الرَّجُلِ وَتَرِكَتُهُ فَأَمْضَى شَهَادَتَهُمَا".

دشعبي نه روايت دې فرمائي چه په مسلمانانو کښې ديو کس دوفات وخت راغې اوهيڅ يو مسلمان ورته ملاونه شو چه پخپل وصيت ئې ګواه کړي نوداهل کتابونه ئې دوه کسان ګواهان کړل بيا هغوی دواړه کوفې ته راغلل اوهغوی ابوموسی اشعري نه ته بيان وکړو او دده ترکه ئې هم راوړې وه او وصيت ئې هم بيان کړو، ابوموسی اشعري اوفرمائيل دا خو يوه داسې خبره ده کومه چه يوځل دنبي ﷺ په دور کښې هم يوځل پيښه شوې وه اوبيا ددينه پس نه ده پيښه شوې ددينه پس ابوموسی اشعريه دغه دوه کسانو ته دمازيګرنه پس قسم ورکړو داسې چه په الله قسم مونږ خيانت نه دې کړې اونه مو دروغ اووئيل اونه موخبره بدل کړې ده اونه موکومه خبره پټه ساتلې ده اويقينا داددغه سړې وصيت وو اوداهغه ترکه ده بيا ابوموسی اشعريه ددغه کسانو په شهادت باندې حکم ورکړو.

**قوله:** ﴿ فَقَالَ الْأَشْعَرِيُّ هَذَا أَمْرٌ لَمْ يَكُنْ بَعْدَ الَّذِي كَانَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ –صلى الله عليه وسلم الخ﴾ په دې حديث کښې چه کومه واقعه ذکر شوې ده هغه خو دا ده کومه چه د ابو موسی اشعري رضي الله عنه په زمانه کښې پيښه شوې وه او د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د راپيښيدونکي کومې واقعې چه هغوی حواله ورکړې ده هغه د باب په دويم حديث کښې ذکر کړې شوې

[۳۶۰۶]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي الْقَاسِمِ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "خَرَجَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَهْمٍ مَعَ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ، وَعَدِيِّ بْنِ بَدَّاءٍ، فَمَاتَ السَّهْمِيُّ بِأَرْضٍ لَيْسَ بِهَا مُسْلِمٌ، فَلَمَّا قَدِمَا بِتَرِكَتِهِ فَقَدُوا جَامَ فِضَّةٍ مُخَوَّصًا بِالذَّهَبِ، فَأَحْلَفَهُمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ وُجِدَ الْجَامُ بِمَكَّةَ، فَقَالُوا: اشْتَرَيْنَاهُ مِنْ تَمِيمٍ وَعَدِيٍّ، فَقَامَ رَجُلَانِ مِنْ أَوْلِيَاءِ السَّهْمِيِّ فَحَلَفَا لَشَهَادَتُنَا أَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا، وَإِنَّ الْجَامَ لِصَاحِبِهِمْ قَالَ: فَنَزَلَتْ فِيهِمْ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ سورة المائدة آية ۱۰۶".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه يو مسلمان کس دقبيله بني سهم والا دتميم داري اوعدي بن بداء سره اورتو اوبياددغه کس په داسې ملك کښې انتقال وشو چه هلته هيڅ يو مسلمان موجود نه وو کله چه دغه دوه کسانو دده ترکه راوړله نوپه دې کښې دسپينوزرو يوګلاس ورك ووپه کوم باندې چه دسرو زرو کارشوې وو، نبي ﷺ دوی دواړوته قسم ورکړو اوبياهغه ګلاس په مکه کښې پيداشو دچاسره چه پيداشوهغوی اووئيل چه دامونږ دتميم اوعدي نه اخستلې دې ددينه پس ددغه کس دوارثانونه دوه کسان پاځيدل اوقسم ئې وکړو چه زمونږ ګواهي ددوی دګواهي نه رېښتونې ده اوګلاس زمونږ د ملګري دې نوپه دې وخت کښې د ايست کريمه : «يا أيها الذين آمنوا شهادة بينكم إذا حضر أحدكم الموت» نازل شو.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَهْمٍ مَعَ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ وَعَدِيِّ بْنِ بَدَّاءٍ فَمَاتَ السَّهْمِيُّ بِأَرْضٍ لَيْسَ فِيهَا مُسْلِمٌ فَلَمَّا قَدِمَا بِتَرِكَتِهِ فَقَدُوا جَامَ فِضَّةٍ مُخَوَّصًا الخ ﴾

[1]: صحيح البخاري/الوصايا ۳۵ (۲۷۸۰)، سنن الترمذي/التفسير ۲۰ (۳۰۶۰)، (تحفة الأشراف: ۵۵۰۱) (صحيح)

**د عدی بن بداء او تمیم داری قصه :**

په دې حدیث کښې چه کومه واقعه ذکر کړې شوې ده هغه د ترجمة الباب موافق ده او دا هم هغه واقعه ده د کومې حواله چه په پورته روایت کښې تیره شوې ده، او هم دا واقعه د سورة [۳۶۰۶] سبب دې. واقعه دا ده چه د قبیله بنو سهم یو مسلمان سړی چه د هغه نوم بدیل وو د تجارت دپاره د خپل کور نه روان شو په دې سفر کښې د هغه دوه ملګری وو د اهل کتابو نه یعنی نصرانی تمیم داری او عدی بن بداء، نو په لاره کښې دا قصه پیښه شوه چه هغه رجل سهمی مرګ ته نزدې شو نو هغه دواړو لره خپل وصی جوړ کړو او بیا ئې خپل ټول سامان او مال تجارت هغه دواړو ته حواله کړو خپل کور ته د رسولو دپاره، دې خلقو مکه مکرمه ته رسیدو سره د هغه سهمی هغه سامان د هغه د کور خلقو ته اورسولو، په دې سامان کښې د چاندئ یو پیاله وه چه په هغې کښې د سرو زرو کانړی لګیدلي وو او دا د هغه د سامان قیمتی جزء وو د هغه هغوی خیانت اوکړو او سامان سره ئې ورنکړو. چه کله د سهمی اولیاء دا پیاله د یو دکاندار سره اولیده. دکاندار ورته د تپوس کولو نه پس اوئیل چه ما خو دا پیاله د تمیم داری او عدی بن بداء نه اخستلې ده، دوباره دا مقدمه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې پیش شوه نو هغوی دواړو دا چال اوچلولو چه دا خو مونږ د دې مړ کیدونکی رجم سهمی نه په بیع اخستلې وو، اولیاء سهمی د دې نه انکار اوکړو، دې کرت معامله برعکس شوه، په شروع کښې د سهمی ورثه مدعی وو او دا دواړه نصرانی مدعیا علیه شو، په دې وجه دې وخت کښې د دواړو نه قسم واخستلې شو اوس د دې نه د دوباره په قضیه کښې دا دواړه نصرانی مدعی شو. یعنی مدعی شراء او اولیاء سهمی د هغې منکر، د مدعین سره هیڅوک ګواه وو نه لهذا اولیاء سهمی کوم چه منکر وو د هغوی په قسم باندې د هغې موافق فیصله اوکړې شوه، د دې واقعه دا پوره مضمون په حدیث الباب کښې نه دې ذکر شوې. د مختلفو روایتونو د جمع کولو نه حاصلیږی. والله تعالی اعلم بالصواب. فهذا شرح هذا الباب وحدیثه، والحدیث اخرجه الترمذی، واخرجه البخاری تعلیقاً، قاله المنذری

## بَابٌ إِذَا عَلِمَ الْحَاكِمُ صِدْقَ الشَّاهِدِ الْوَاحِدِ يَجُوزُ لَهُ أَنْ يَحْكُمَ بِهِ

**کله چه قاضی ته د یو ګواه صداقت معلوم شی نو فیصله پرې کولې شی**

**قضاء القاضی بعلمه کښې مذاهب ائمه :**

په دې ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده هغه ده د قضاء القاضی بعلمه مسئله. د ترجمة الباب مضمون دا دې چه که په یوه فیصله کښې مدعی صرف یو ګواه پیش کړی شوا و دویم ګواه د هغه سره نه وو خو حاکم او قاضی ته ذاتی طور د دې شاهد د شهادت صدق معلوم وی، خو د شهادت نصاب پوره نه وی نو په داسې صورت کښې قاضی د مدعی په حق کښې فیصله کولې شی یا نه، یعنی علم د قاضی قائم مقام د یو ګواه کیدې شی یا نه؟ نو د دې په باره کښې دا ده چه په حدودو کښې خو قضاء القاضی بعلمه بالاجماع جائز نه ده، او په غیر حدود کښې د امام شافعی او صاحبینو په نزد مطلقا ناجائز

ده. او د امام احمد او مالک په نزد مطلقا جائز ده، او د امام مالک رحمه الله په نزد تفصيل دې هغه دا چه د قاضی علم که د قاضی د جوړيدو نه پس قاضی ته حاصل شوې دې نو د دې علم اعتبار خو به وی او په هغې سره به فيصله کول جائز وی او که هغه علم د قاضی قبل القضاء دې يعنی د قاضی جوړيدو نه مخکښې نو هغه معتبر نه دې.

[۳۶۰۷] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، أَنَّ الْحَكَمَ بْنَ نَافِعٍ حَدَّثَهُمْ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ، أَنَّ عَمَّهُ حَدَّثَهُ، وَهُوَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "ابْتَاعَ فَرَسًا مِنْ أَعْرَابِيٍّ، فَاسْتَتْبَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَقْضِيَهُ ثَمَنَ فَرَسِهِ، فَأَسْرَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَشْيَ وَأَبْطَأَ الْأَعْرَابِيُّ، فَطَفِقَ رِجَالٌ يَعْتَرِضُونَ الْأَعْرَابِيَّ فَيُسَاوِمُونَهُ بِالْفَرَسِ، وَلَا يَشْعُرُونَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْتَاعَهُ، فَنَادَى الْأَعْرَابِيُّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنْ كُنْتَ مُبْتَاعًا هَذَا الْفَرَسَ وَإِلَّا بِعْتُهُ، فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ سَمِعَ نِدَاءَ الْأَعْرَابِيِّ، فَقَالَ: أَوَلَيْسَ قَدِ ابْتَعْتُهُ مِنْكَ، فَقَالَ الْأَعْرَابِيُّ: لَا وَاللَّهِ مَا بِعْتُكَهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَلَى، قَدِ ابْتَعْتُهُ مِنْكَ، فَطَفِقَ الْأَعْرَابِيُّ يَقُولُ: هَلُمَّ شَهِيدًا، فَقَالَ خُزَيْمَةُ بْنُ ثَابِتٍ: أَنَا أَشْهَدُ أَنَّكَ قَدْ بَايَعْتَهُ، فَأَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى خُزَيْمَةَ، فَقَالَ: بِمَ تَشْهَدُ؟، فَقَالَ: بِتَصْدِيقِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهَادَةَ خُزَيْمَةَ بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ".

ابن خزيمه دخپل تره نه څوك چه دنبی ﷺ په صحابه كرامو كښې دي روايت كوی فرمائی چه نبی ﷺ ديو اعرابي نه يو اس واخستو ورته ئې اوفرمائيل چه په ما پسې رازه ددې د پاره چه داس قيمت درته دركړم نونبی ﷺ تيز تللو او اعرابي سست روان وونويو څو كسان دي اعرابي ته را روان شو او دده داس دقيمت خبرې ئې كولې اوهغوی ته داپته نه وه چه دده اس نبی ﷺ اخستلې دې نو په دې وخت كښې ديهاتي نبی ﷺ ته اواز وكړو او اوئې وئيل: كه چرې دا اس ته اخلې خوخه ده ورنه زه ئې خرڅوم، نبی ﷺ چه دا واوريدل نو اودريدو او اوئې فرمائيل: ايا ماستانه دا اس نه دی اخستل؟ ديهاتي ووئيل هيڅكله نه په الله قسم ما پتا اس نه دی خرڅ كړې، نبی ﷺ اوفرمائيل چه تاخو په ما باندې اس خرڅ كړې دې ديهاتي ووئيل چه گواه پيش كړه په دې وخت كښې خزيمه بن ثابت ووئيل چه زه گواهي وركوم، په دې وخت كښې نبی ﷺ خزيمه ته متوجه شو او ورته ئې اوفرمائيل: ته په څه بنياد شهادت وركوې؟ هغه ووئيل په دې وجه چه زه تا رښتونې گڼړم نو په دې خبره نبی ﷺ دخزيمه شهادت ددوه شهادتونو قائم مقام مقرر كړو.

**قوله:** ( عَنْ عُمَارَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ أَنَّ عَمَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- ابْتَاعَ فَرَسًا مِنْ أَعْرَابِيٍّ فَاسْتَتْبَعَهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- لِيَقْضِيَهُ ثَمَنَ فَرَسِهِ )

## د رسول الله ﷺ داس اخستلو يوه عبرتناكه واقعه :

د عماره تره چه د هغه نوم عماره بن ثابت دې د هغوی نه روايت دې چه يو كرت رسول الله ﷺ (چرته په لاره كښې) د يو اعرابی نه د هغه اس واخستلو، چه كله رسول الله ﷺ اعرابی ته پخپله ملگرتيا كښې د تلو اووې چه كور ته رسيدو سره هغه ته د اس ثمن ادا كړي، پس رسول الله ﷺ په تيزئ سره روان شو، اعرابی په مزه مزه روان وو، په لاره كښې چه كوم خلق

¹: سنن النسائي/البيوع ٧٩ (٤٦٥١)، (تحفة الأشراف: ١٥٦٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢١٥) (صحيح)

هغه سره ملاؤ شو هغوی هغه سره د هغه د اس په باره کښې د اخستلو خبرې کولې، هغوی ته دا معلومه نه وه چه رسول اللهﷺ دا اس اخستلې دې (اوس اوګورئ د اعرابی په نیت کښې فساد راغلو) او هغه رسول اللهﷺ ته آواز اوکړو چه که تاسو دا اس اخلئ نو واخلئ ګینې زه دا خرخوم. رسول اللهﷺ د اعرابی په دې خبره اوریدو باندې اودریدو او د هغه طرف ته کتلو سره ئې اوفرمائیل ﴿ اولیس قد ابتعته منک ﴾ آیا ما دا اس ستا نه اخستلې نه دې؟ اعرابی انکار اوکړو او په دې باندې ئې قسم هم اوخوړلو. رسول اللهﷺ اوفرمائیل داسې نه ده بلکه دا ما ستا نه اخستلې دې، اعرابی اووې چه ګواه راولئ (په دې موقع باندې اتفاقا خزیمه بن ثابت راورسیدو) هغوی اوفرمائیل زه ګواهی ورکوم چه تا د دې اس د رسول اللهﷺ سره بیع کړې ده، د هغوی په شهادت باندې رسول اللهﷺ هغوی ته متوجه شو او وې فرمائیل ﴿ بم تشهد ﴾ چه ته څنګه شهادت ورکوئ ته خو د بیع وخت کښې موجود نه وې. ﴿ فقال بتصدیقک یا رسول الله ﴾ نو هغوی جواب کښې عرض اوکړو چه صرف ستاسو د قول د تصدیق دپاره، [1] یعنی چونکه تاسو د بیع خبره کوئ هم دا زما د شهادت مبنی ده څکه چه ستاسو خبره د حق نه سوا هیڅ نه ده او کیدې هم نه شی، لهذا ستاسو د تصدیق په طور زه ګواهی ورکوم، رسول اللهﷺ د هغوی انتهائی وزنی او قیمتی خبره اوریدلو سره هغوی ته هغه تمغه ورکړه چه د همیشه دپاره ئې د هغوی شهادت خانله د دوه شهادتونو برابر اوګرځولو، د دې اعرابی نوم په بعض روایتونو کښې سواء بن الحارث راغلې دې او په بعضو کښې سواء بن قیس، خو دې ته حافظ وهم وئیلې دې، د دې قصې تکمله دا ده چه بیا کله ټولو خلقو ته د رسول اللهﷺ د شراء قصه معلومه شوه نو بیا چا هم د دې نه پس هغه اس د دې اعرابی نه وانخستلو، حال دا چه د هغه مقصد هغې لره خرخول وو خو چه کله چاهغه وانخستلو نوبیا مجبورا هغه ماښام کور ته بوتلو او کور کښې ئې اوتړلو، سحرچه کله هغه پاسیدو نو هغه د خپل اس عجیبه حال اولیدو چه هغه مړ شوې وو او یوه خپه دهغه پورته اوچته شوې وه ﴿فاصبحت رافعة رجلها ﴾ کذافی الشفاء للقاضی عیاض

په دې حدیث کښې وئیلې کیدې شی چه قضاء القاضی بلعمه موندلې شوې ده یعنی بما علمه بعد القضاء هم هغه صورت کوم چه د امام صاحبؒ په نزد معتبر دې څکه چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ قد ابتعته ﴾ خو دا بیله خبره ده چه رسول اللهﷺ په خپل حق کښې د فیصلې فرمائیلو نه پس هغه اختیار نه کړه بلکه اس ئې واپس کړو. خو که څان سره ئې ساتل غوښتل نو رسول اللهﷺ ته حق حاصل وو. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

---

[1] بتصدیقک.... دویم مطلب ئې دا هم کیدې شی چه ستاسو د تصدیق د وجې نه، یعنی چونکه اول د ایمان راوړلو په وخت ما ستاسو تصدیق کړې دې چه تاسو څه هم راوړې دی او چه څه هم فرمایئ ټول رشتیا دی په دې وجه دا هم رشتیا دی)

## بَابُ الْقَضَاءِ بِالْيَمِينِ وَالشَّاهِدِ

### په یو قسم او د یو ګواه په ګواهئ باندې د فیصلې کولو بیان

[۳۶۰۸] () حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ الْحُبَابِ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا سَيْفٌ الْمَكِّيُّ، قَالَ عُثْمَانُ، سَيْفُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَضَى بِيَمِينٍ وَشَاهِدٍ".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام په یو ګواه او یو قسم باندې فیصله کړې ده.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَضَى بِيَمِينٍ وَشَاهِدٍ ﴾

او د دې نه روستو طریق کښې دا زیادت دې ﴿ قال عمرو : فی الحقوق ﴾

### د مسئلة الباب وضاحت او مذاهب ائمه :

که په یو قضیه کښې مدعی سره صرف یو ګواه وی نو په داسې صورت کښې یمین مدعی د شاهد اخر قائم مقام کیدې شی یا نه؟ او بیا د مدعی په حق کښې فیصله کول جائز دی یا نه؟ د ائمه ثلاث په نزد جائز دې خو صرف په هغه دعاوی کښې چه د هغې تعلق د حقوق او مال سره وی نه د حدود سره او د احنافو په نزد جائز نه دې، په حدیث الباب کښې د جمهور مذهب ثابتیږی، د احنافو دلیل هغه مشهور حدیث دې کوم چه حد د تواتر ته نزدې دې، ﴿ البينة على المدعى واليمين على من انكر ﴾ او په حدیث الباب کښې په دې مسئله کښې احتمال دې ځکه چه د دې په معنی کښې دویم احتمال هم دې هغه دا چه رسول الله ﷺ د یو ګواه په موجودګئ کښې په یمین د مدعی علیه باندې فیصله اوکړه، یعنی څنګه چه د مطلقا شاهد نه کیدو په صورت کښې په یمین د مدعی علیه باندې فیصله کیږی دغه شان د یو ګواه د موجود کیدو په صورت کښې هم رسول الله ﷺ داسې اوکړل، په دې مسئله کښې امام بخاری رحمه الله هم د احنافو سره دې، پس هغوی ترجمه قائم کړې ده ﴿ باب اليمين على المدعى عليه ﴾ حضرت شیخ په تراجم د بخاری کښې مسئله د قضاء بیمین کښې د امامانو د اختلاف د لیکلو نه پس لیکلې دی : ﴿ قلت وميل البخارى الى مسلک الحنفية واستدل عليه بالحصر فی قوله ﷺ شاهداک او يمينه، وبقصته ابن شبرمة، وبحديث ابن عباس اهـ ﴾ زه وایم چه په حدیث الباب یعنی ﴿ قضى بيمين وشاهد ﴾ کوم چه د جمهورو مستدل دې، په دې مسئله کښې دا روایت د افراد مسلم نه دې او د احنافو دلیل متفق علیه دې لکه چه اوس په تراجم کښې تیر شو د رسول الله ﷺ ارشاد ﴿ شاهداک او يمينه ﴾ هم دغه شان امام بخاری په کتاب الرهن کښې باب قائم کړې دې ﴿ اذا اختلف الراهن والمرتهن ونحوه بالبينة المدعى واليمين المدعى عليه ﴾ او بیا ئې د هغې د لاندې دا حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما ذکر کړو ﴿ ان النبى ﷺ قضى ان اليمين المدعى عليه ﴾ دا حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما لره امام بخاری رحمه الله په کتاب

---

[1]: صحيح مسلم/الأقضية ۲ (۱۷۱۲)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۳۱ (۲۳۷۰)، (تحفة الأشراف: ۶۲۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۴۸، ۳۱۵، ۳۲۳) (صحيح)

الشهادات کښې ﴿باب اليمين على المدعى عليه فى الاموال والحدود﴾ د لاندې ذکر کړې دې.
والحديث اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[۳۶۰۹](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، وَسَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ سَلَمَةُ فِي حَدِيثِهِ، قَالَ عَمْرٌو: فِي الْحُقُوقِ.

عمروبن دينارهم ددې روايت په شان روايت بيان کړې دې اوسلمه په خپل روايت کښې دا اضافه کړه ده چه دا فيصله دحقوقو په سلسله کښې شوې وه.

[۳۶۱۰](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ أَبُو مُصْعَبٍ الزُّهْرِيُّ، حَدَّثَنَا الدَّرَاوَرْدِيُّ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَضَى بِالْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَزَادَنِي الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ، الْمُؤَذِّنُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي الشَّافِعِيُّ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ، قَالَ: فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِسُهَيْلٍ، فَقَالَ: أَخْبَرَنِي رَبِيعَةُ، وَهُوَ عِنْدِي ثِقَةٌ أَنِّي حَدَّثْتُهُ إِيَّاهُ وَلَا أَحْفَظُهُ، قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ: وَقَدْ كَانَ أَصَابَتْ سُهَيْلًا عِلَّةٌ أَذْهَبَتْ بَعْضَ عَقْلِهِ وَنَسِيَ بَعْضَ حَدِيثِهِ فَكَانَ سُهَيْلٌ بَعْدُ يُحَدِّثُهُ، عَنْ رَبِيعَةَ عَنْهُ، عَنْ أَبِيهِ.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام په يو ګواه او په يو قسم باندې فيصله وکړه امام ابوداؤد فرمائي ربيع بن سليمان موذن ماته په دې حديث کښې دا اضافه بيان کړې ده او وئيلي ئې دي چه ماته شافعي دعبدالعزيز نه خبر راکړې دې مادې ذکر سهيل ته وکړو هغه اووئيل خبر راکړې دې ماته ربيعه اوهغه زما په نزد باندې ثقه دې چه ماده ته حديث بيان کړې دې خو ماته ياد نه دې عبدالعزيز وئيلي دی سهيل په داسې مرض أخته شوې وو په کوم باندې چه دده عقل خراب شوې وو او څه حديثونه ورنه هير شوې وو سهيل به دربيعه نه دهغه دپلار په واسطه روايتونه بيانول.

﴿حَدَّثَنَا الدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ﴾ او د دې نه پس راځي. ﴿أَخْبَرَنَا الشَّافِعِيُّ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ قَالَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِسُهَيْلٍ فَقَالَ أَخْبَرَنِي رَبِيعَةُ - وَهُوَ عِنْدِي ثِقَةٌ - أَنِّي حَدَّثْتُهُ إِيَّاهُ وَلاَ أَحْفَظُهُ﴾

## شرح السند :

د رومبي سند نه معلوميږي چه دا حديث عبدالعزيز ته (د دراوردی نوم عبدالعزيز دې) د سهيل نه په واسطه د ربيعه را رسيدلې وو، په دې بل سند کښې عبدالعزيز دا وائي چه زه روستو براه راست د سهيل سره ملاؤ شوم او هغوی ته مې دا روايت ذکر کړو او دا چه ستاسو دا حديث ماته په واسطه د ربيعه را رسيدلې دې (په ظاهر کښې خو مطلب دا دې چه اوس زه دا براه راست ستاسو نه اوريدل غواړم چه علو سند حاصل شی) نو هغوی په دې باندې دا اووې چه ماته ربيعه دا خبره بيان کړه چه ربيعه زما په نزد ثقه دی لهذا کيدې شی چه دا حديث ما هغوی ته بيان کړې وی اګر چه ماته ياد نه دې، دا امر اخر دې.

﴿فَكَانَ سُهَيْلٌ بَعْدُ يُحَدِّثُهُ عَنْ رَبِيعَةَ عَنْهُ عَنْ أَبِيهِ﴾ يعنی د عبدالعزيز د دې خبرې نه پس د سهيل بن ابی صالح دا معمول جوړ شوې وو چه هغوی دا حديث داسې بيان کړې وې چه

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٢٩٩) (صحيح)
²): سنن الترمذي/الأحكام ١٣ (١٣٤٣)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٣١ (٢٣٦٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٤٠) (صحيح)

ما دا حدیث اوریدلې دې د ربیعه نه او ربیعه خپله زما نه. او بیا چه وړاندې کوم سند دې هغه بیانوی، یعنی سهیل کوم چه في الواقع استاد دې د ربیعه. او ربیعه د هغوی شاګرد دې خو چونکه سهیل دا حدیث هیر کړې وو. په دې وجه هغوی د دې حدیث د روایت کولو دا صورت اختیار کړو کوم چه پورته ذکر شوې دې. ﴿سهیل بن ابی صالح عن ربیعه عن سهیل﴾ لهذا اوس دا حدیث د اهل اصول په نزد د ﴿من حدث ونسی﴾ د قبیل نه شو، د دې سند مثال په ترمذی شریف باب المندیل بعد الوضوء کښې تیرشوې دې. ﴿حدثنا جریر قال حدثنیه علی بن مجاهد، عنی وهو عندی ثقة﴾ جریر هم دا حدیث د علی بن مجاهد نه بیان کولو سره هیر کړې وو. دلته په کتاب کښې دا هم دی، عبدالعزیز وائی چه په اصل کښې سهیل باندې څه بیماری لګیدلې وه داسې چه په هغې سره د هغوی ذهن او حافظه کمزورې شوې وه.

والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۶۱۱](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ الْإِسْكَنْدَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا زِيَادٌ يَعْنِي ابْنَ يُونُسَ، حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ رَبِيعَةَ، بِإِسْنَادِ أَبِي مُصْعَبٍ وَمَعْنَاهُ، قَالَ سُلَيْمَانُ: فَلَقِيتُ سُهَيْلًا فَسَأَلْتُهُ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: مَا أَعْرِفُهُ، فَقُلْتُ لَهُ: إِنَّ رَبِيعَةَ أَخْبَرَنِي بِهِ عَنْكَ، قَالَ: فَإِنْ كَانَ رَبِيعَةُ أَخْبَرَكَ عَنِّي فَحَدِّثْ بِهِ، عَنْ رَبِيعَةَ عَنِّي.

سلیمان وئیلی دی کله چه مادسهیل سره ملاقات وکړو نوددې حدیث متعلق مې ورنه تپوس اوکړو هغه شروع شو چه وئیل ئې ماته ددې علم نشته ماورته اووئیل ربیعه ماته ستا په ذریعه باندې داحدیث بیان کړې دې هغه اووئیل که چرې داسې وي نوبیاته دا حدید دربیعه اوزما په ذریعه بیانوه.

[۳۶۱۲](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، حَدَّثَنَا عَمَّارُ بْنُ شُعَيْثِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْبِ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ جَدِّي الزُّبَيْبَ، يَقُولُ: "بَعَثَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَيْشًا إِلَى بَنِي الْعَنْبَرِ، فَأَخَذُوهُمْ بِرُكْبَةَ مِنْ نَاحِيَةِ الطَّائِفِ فَاسْتَاقُوهُمْ، إِلَى نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَكِبْتُ فَسَبَقْتُهُمْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، أَتَانَا جُنْدُكَ فَأَخَذُونَا، وَقَدْ كُنَّا أَسْلَمْنَا وَخَضْرَمْنَا آذَانَ النَّعَمِ، فَلَمَّا قَدِمَ بَلْعَنْبَرِ، قَالَ لِي نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ لَكُمْ بَيِّنَةٌ عَلَى أَنَّكُمْ أَسْلَمْتُمْ قَبْلَ أَنْ تُؤْخَذُوا فِي هَذِهِ الْأَيَّامِ؟ قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: مَنْ بَيِّنَتُكَ؟، قُلْتُ: سَمُرَةُ رَجُلٌ مِنْ بَنِي الْعَنْبَرِ، وَرَجُلٌ آخَرُ سَمَّاهُ لَهُ، فَشَهِدَ الرَّجُلُ، وَأَبَى سَمُرَةُ أَنْ يَشْهَدَ، فَقَالَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَدْ أَبَى أَنْ يَشْهَدَ لَكَ فَتَحْلِفُ مَعَ شَاهِدِكَ الْآخَرِ، قُلْتُ: نَعَمْ، فَاسْتَحْلَفَنِي، فَحَلَفْتُ بِاللَّهِ، لَقَدْ أَسْلَمْنَا يَوْمَ كَذَا وَكَذَا، وَخَضْرَمْنَا آذَانَ النَّعَمِ، فَقَالَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اذْهَبُوا، فَقَاسِمُوهُمْ أَنْصَافَ الْأَمْوَالِ، وَلَا تَمَسُّوا ذَرَارِيَّهُمْ، لَوْلَا أَنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ ضَلَالَةَ الْعَمَلِ مَا رَزَيْنَاكُمْ عِقَالًا، قَالَ الزُّبَيْبُ: فَدَعَتْنِي أُمِّي، فَقَالَتْ: هَذَا الرَّجُلُ أَخَذَ زِرْبِيَّتِي، فَانْصَرَفْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ لِي: احْبِسْهُ، فَأَخَذْتُ بِتَلْبِيبِهِ، وَقُمْتُ مَعَهُ مَكَانَنَا، ثُمَّ نَظَرَ إِلَيْنَا نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمَيْنِ، فَقَالَ: مَا تُرِيدُ بِأَسِيرِكَ؟، فَأَرْسَلْتُهُ مِنْ يَدِي، فَقَامَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لِلرَّجُلِ: رُدَّ عَلَى هَذَا زِرْبِيَّةَ أُمِّهِ الَّتِي أَخَذْتَ مِنْهَا، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، إِنَّهَا خَرَجَتْ مِنْ يَدِي، قَالَ: فَاخْتَلَعَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيْفَ الرَّجُلِ فَأَعْطَانِيهِ، وَقَالَ لِلرَّجُلِ: اذْهَبْ فَزِدْهُ آصُعًا مِنْ طَعَامٍ، قَالَ: فَزَادَنِي آصُعًا مِنْ شَعِيرٍ".

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۶۴۰) (صحیح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۶۱۹) (ضعیف)

د زبیب عنبری رضی الله عنه نه روایت دې وئیل ئې چه نبی ﷺ دقبیله بنی العنبر په طرف باندې یولښکر ولیږلو لښکریانو ده لره په رکبه مقام (طائف ته نزدې یو کلې دې) کښې ګرفتار کړو اودې بې دګرفتاری په حال کښې دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو زه مخکښې راغلم اونبی ﷺ ته مې سلام وکړو ماداسې اووئیل السلام علیکم یانبی الله ورحمة الله وبرکاته ستالښکر مونږ ته راغلی وو او مونږه ئې ونیولو اوحال دادې چه مونږه اسلام قبول کړې وو او مونږه دڅاروو غوږونه پرې کړي وو کله چه دبني العنبرقبیلې خلق راغلل نوماته نبی ﷺ اوفرمائیل ایستاسو سره ګواه موجود دې چه تاسو دګرفتارکیدونه مخکښې اسلام قبول کړې وو ماووئیل ولې نه نبی ﷺ اوفرمائیل څوك دې؟ ماعرض اوکړو سمره څوك چه دبني العنبر قبیلې یوکس وو اویوبل کس دچانوم چه زبیب اخستلې وو بیادغه کس شهادت پیش کړو اوسمره دشهادت نه انکار وکړو په دې وخت کښې نبی ﷺ اوفرمائیل چه سمره خودګواهئ ورکولونه انکار وکړو نوایا اوس ستاسو دخپل ګواه سره قسم کولې شئ هغوی عرض اوکړو هو، بیانبی ﷺ ماته په الله قسم راکړو ماپه الله قسم وکړو اوومې وئیل چه یقینامونږه په فلانئ فلانئ ورځ باندې اسلام قبول کړې وو او مونږه دخپلو څارور غوږونه څیرلي وو، نبی ﷺ لښکریانوته اووئیل تاسولاړ شئ اوددوئ نیم مال تقسیم کړئ اوددوئ داولاد سره کار مه لرئ، که چرې الله تعالی ته دمجاهدینو دکوشش ضایع کیدل بدنه ښکاره کیدې نومونږ به ستاسودمال نه یوه رسئ هم نه وه اخستني زهیب اووئیل زما مور زه راوغوښتلم او راته ئې اووئیل دې کس زمانه غلا کړې ده زه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې وکړو نبی ﷺ اوفرمائیل دې ونیسئ مادده په مرئ کښې څادر واچوو اوزه په خپل ځائې ددې کس سره پاڅیدم نبی ﷺ چه مونږ دواړه ولاړ ولیدو وبې فرمائیل ته دخپل قیدي سره څه کول غواړې؟ ماده لره پریخودو بیانبی ﷺ اودریدو اودغه کس ته ئې اوفرمائیل ته ددغه کس دمور توشدان ورکړه کوم چه تااخستلې دې هغه عرض اوکړو اې دالله رسوله هغه زمانه ضایع شوې دې بیانبی ﷺ ددغه کس توره ماته راکړه اوده ته ئې اووئیل ته لاړ شه او یوڅوصاعه غلې دانې ورته اضافي ورکړه زهیب وائی چه ماته ئې یوڅوصاعه وربشې راکړې.

﴿حَدَّثَنِي أَبِي قَالَ سَمِعْتُ جَدِّيَ الزُّبَيْبَ يَقُولُ بَعَثَ نَبِيُّ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– جَيْشًا إِلَى بَنِي الْعَنْبَرِ فَأَخَذُوهُمْ بِرُكْبَةَ مِنْ نَاحِيَةِ الطَّائِفِ الخ﴾

## یو اوږد حدیث او د هغې شرح :

عمار بن شعیث وائی چه ماته زما پلار شعیث بیان اوکړو چه ما د خپل پلار زبیب عنبری نه واوریدل هغوی وئیل چه رسول الله ﷺ یو لښکر د جهاد او قتال دپاره قبیله بنو العنبر طرف ته اولیږلو (کوم چه خپله د حدیث د راوی یعنی د زبیب قبیله وه) دې لښکر بنو العنبر قید کړل د مقام رکبه په هغه حصه کښې کومه چه د طائف طرف ته ده، او د دې ټولو د قید کولو نه پس ئې د رسول الله ﷺ په طرف باندې مدینې طیبې طرف ته روان کړل. زبیب عنبری وائی : ﴿ فرکبت فسبقهم الی النبی ﷺ ﴾ یعنی زه د دې لښکر نه بچ شوم او سوریدو

سره د هغه ټولو خلقو نه مخکښې د رسول الله ﷺ خدمت ته حاضر شوم، او هغوی ته مې سلام عرض کړو ﴿ السلام علیک یا نبی الله ورحمة الله وبرکاته ﴾ او ما هغوی ته عرض اوکړو چه ستاسو رالیږلې لښکر مونږ ته راورسیدو هغوی مونږ ټول اونیولو یعنی زمونږ ټوله قبیله، حال دا چه مونږ اسلام قبول کړې وو او د علامت په طور مو د خپلو څارو نه لږ لږ غوږونه پرې کړې وو، یعنی د اسلام قبلولو په وخت (یعنی دې قبیلې اګر چه اسلام قبول کړې وو خو نه هغوی مدینې ته هجرت اوکړو او نه هغوی د خپل اسلام رسول الله ﷺ ته خبر ورکړو) رسول الله ﷺ د زبیب عنبری په دې خبره اوریدو سره خاموش شو بیا چه لږ ساعت پس دا قبیله کومه چه د مسلمانانو په لاس کښې قید وه مدینې طیبې ته د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه نو اوس رسول الله ﷺ زما نه تپوس اوکړو چه تاسو سره په دې باندې ګواه شته چه تاسو اسلام قبول کړې وو د قید کیدو نه مخکښې په دې ورځو کښې؟ زبیب وائی ما عرض اوکړو او جی ګواهان شته. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چرته دی؟ ما عرض اوکړو یو خو سمره نومی سړې دې هم د دې قبیلې او د یو سړې نوم ئې واخستلو کوم چه د راوی نه هیر شوې دې، پس دا دواړه ګواهان راطلب کړې شو، په دې دوو کښې سمره خو د شهادت ورکولو نه انکار اوکړو خو دویم کس ګواهی ورکړه، رسول الله ﷺ زبیب ته اوفرمائیل چه اوګوره سمره خو د شهادت نه انکار اوکړو صرف یو کس ګواهی ورکړه، نو آیا ته د یو شاهد سره خپله قسم خوړلې شې؟ زبیب عرض اوکړو چه خوړلې شم، پس ما قسم اوخوړلو داسې ﴿ لقد اسلمنا بالله یوم کذا وکذا وخضرمنا اذان النعم ﴾ چه کله د دې یو سړې ګواهی او د دې یو سړې قسم بیا موندلې شو نو اوس رسول الله ﷺ دا فیصله اوفرمائیله چه صحابه کرامو ته ئې اوفرمائیل: لاړ شئ چه کوم مال د غنیمت په طور تاسو سره د بنو العنبر موجود دې هغه نیم نیم تقسیم کړئ، یعنی نیم بنو العنبر ته ورکړئ او نیم تاسو خپله واخلئ، او دا ئې هم اوفرمائیل چه دې ماشومانو او زنانو ته لاس مه اوړئ........ ﴿ لَوْلاَ أَنَّ اللّٰهَ لاَ یُحِبُّ ضَلاَلَةَ الْعَمَلِ مَا رَزَيْنَاكُمْ عِقَالاً ﴾ چه که دا خبره نه وې چه الله پاک د چا عمل لره ضائع کول نه خوښوی نو مونږ به ستاسو په مال کښې یو رسئ هم نه کموله. یعنی د نیم په ځائې به مو ټول مال تاسو ته واپس درکړې وې.

د عمل نه مراد عمل د صحابه کرامو ﷺ یعنی جهاد مراد دې، مطلب دا دې چه چونکه شرعا مال غنیمت د مجاهدینو حق دې نو که اوس زه ټول د دوی نه واخلم او تاسو ته ئې واپس کړم نو دا مناسب نه ده، نو په دې صورت کښې خو به ګویا د دوی عمل جهاد ضائع وی. او الله پاک د چا د عمل ضائع کیدل نه خوښوی په دې وجه زه ټول تاسو ته نه واپس کوم (ګینې زړه مې هم دا غواړی چه په څه طریقه ټول تاسو ته واپس شی)

د مصنف رحمه الله غرض د دې واقعې د دې حصې نه حاصلیږی ګینې ورپسې خو مصنف رحمه الله د دې قصې باقی حصه هم ذکر کړې ده کومه چه به مونږ روستو بیانوو.

مصنف رحمه الله ګویا دا فرمائیل غواړی چه په دې واقعه کښې قضاء بیمین وشاهد

موندلې شوې ده [1] خو احناف خو د دې قائل نه دی، زمونږ د طرف نه به د دې جواب دا وی چه قضاء بیمین وشاهد خو به هغه وخت وې چه کله پوره مال واپس کړې شوې وې، لهذا دا استدلال څنګه دې؟ بلکه مونږ دا وایو چه دا چه کومه فیصله شوې ده دا په طور د اصلاح ذات البین شوې ده، والله اعلم.

باقي حصه دا ده ﴿ قَالَ الزُّبَيْبُ فَدَعَتْنِي أُمِّي فَقَالَتْ هَذَا الرَّجُلُ أَخَذَ زِرْبِيَّتِي الخ ﴾

زبیب وائی چه د رسول اللهﷺ د دې فیصلې نه پس زما مور زه راطلب کړم او یو لښکری طرف ته ئې اشاره کولو سره اووې چه ده زما څادر اخستلې دې، زه د رسول اللهﷺ خدمت ته لاړم او هغوی ته مې د دې خبرې خبر ورکړو هغوی اوفرمائیل چه د کوم سړی سره هغه څادر دې هغه اودروه، ما د هغه ګریوان اونیولو او هغه مې اودرولو، رسول اللهﷺ زما طرف ته اوکتل دواړو لره داسې په یو ځائې لیدولو باندې هغوی د لرې نه ما ته اوفرمائیل چه ته د خپل قیدی سره څه کول غواړې ما په دې اورېدو باندې فورا هغه پرېخودلو بیا رسول اللهﷺ هغه سړی (یعنی لښکری) ته اووې چه د دهٔ د مور څادر دهٔ ته ورکړه هغه عرض اوکړو یا رسول اللهﷺ هغه څادر خو زما د لاس نه اوتلو، چه کله هغه داسې اووې نو رسول اللهﷺ داسې اوکړل چه دهغه سړی په لاس کښې چه کومه توره وه هغه ئې د هغه د لاس نه واخستله او ما ته ئې راکړه (مور ته د رسولو دپاره د څادر په بدل کښې) او هغوی دې لښکری ته اوفرمائیل چه هغه لره یعنی زبیب ته نور هم څو صاعه اوسکو ورکړه پس هغه هم داسې اوکړل.

## بَابُ الرَّجُلَيْنِ يَدَّعِيَانِ شَيْئًا وَلَيْسَتْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ

### کله چه دوه کسان د یو شی دعوی لری او ګواه ورسره نه وی؟

یعنی دوه سړی د یو څیز په باره کښې دعوی کوی هر یو وائی چه دا زما دې، په داسې صورت کښې چه د یو سره هم بینه نشته، په دې ترجمه کښې یو قیدبل هم ملحوظ دې چه مذکور نه دې هغه دا چه هغه څیز په دې دواړو کښې د چا په قبضه کښې هم نه وی بلکه د یو دریم کس په قبضه کښې وی، یا که وی نو د دواړو په لاس کښې وی، د دې صورت حکم د فقهاء کرامو په نزد دا دې. احناف او شوافع وائی چه برابر دې هغه څیز دواړو ته ورکړې شی، د دې تنصیف دې اوکړې شی او امام احمدﷺ په دې صورت کښې د قرعه قائل دې، چه په قرعه کښې د کوم سړی نوم راوخیژی نو د هغه نه دې قسم اخستلو سره هغه ټول څیز هغه سړی ته ورکړې شی، او د امام مالکﷺ مذهب دا دې چه ﴿ هذ الشئ للاعدل من الرجلين ﴾ یعنی په دواړو سړو کښې چه کوم سړې زیات عادل وی هغه ته دې ورکړې شی. (هكذا المذهب في حاشية الشيخ)

[1] من حيث ان زبيب العنبري كان مدعيا وشهد له شاهد واحد وانكر الاخر عن الشهادة فاخذ النبي ﷺ الحلف عن المدعي بدل شهادة شاهد اخر وقضي له)

[۳۶۱۳](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ الضَّرِيرُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، "أَنَّ رَجُلَيْنِ ادَّعَيَا بَعِيرًا أَوْ دَابَّةً إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَتْ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةٌ، فَجَعَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا".

دابوموسی اشعری ﷺ نه روایت دي فرمائی چه دوه کسانو په یو اوښ یا بل څاروي باندې دعوه کړې وو اوفیصله ئې نبی ﷺ ته راوړه او پدې کښې دیوکس هم ګواه موجود نه وو نونبی ﷺ داسې فیصله وکړله چه دغه څیزئې ددواړوپه مینځ کښې مشترک وګرځولو.

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ أَنَّ رَجُلَيْنِ ادَّعَيَا بَعِيرًا أَوْ دَابَّةً﴾

یعنی د یو څاروی په باره کښې دوه سړو د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضریدو سره دعوی اوکړه هر یو وئیل چه دا زما دې او ګواه د یو سره هم نه وو نو رسول اللهﷺ د دواړو ترمینځه مشترک کړو، د حدیث نه د احنافو او شوافعو تائید کیږی کوم چه په صورت مذکوره کښې دتنصیف قائل دی. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[۳۶۱۴](²) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ سَعِيدٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ.

سلیمان دسعید نه په خپل سند سره ددې روایت، هم معنی روایت بیان کړې دې.

[۳۶۱۵](³) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ بِمَعْنَى إِسْنَادِهِ، أَنَّ رَجُلَيْنِ ادَّعَيَا بَعِيرًا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَعَثَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا شَاهِدَيْنِ، فَقَسَمَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ.

دقتاده ﷺ نه په دې سند سره روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ په زمانه کښې دوه کسانوپه یو اوښ باندې دعوې اوکړه اوهریوکس دخپلې دعوې د مضبوطولودپاره دوه دوه ګواهان په دربار نبوت کښې پیش کړل نبی ﷺ دغه اوښ په دغه دوه کسانوباندې نیم په نیمه تقسیم کړو.

[۳۶۱۶](⁴) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ خِلَاسٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا فِي مَتَاعٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةٌ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اسْتَهِمَا عَلَى الْيَمِينِ مَا كَانَ أَحَبَّا ذَلِكَ أَوْ كَرِهَا".

د ابوهریره ﷺ نه روایت دې فرمائی چه دوه کسانو نبی ﷺ ته د یو شي په باره کې جګړه راوړله او په دوی دواړوکښې دیوسره هم ګواه موجود نه وو نبی ﷺ ددوی دواړو په مینځ کښې په قرعه اندازی کولوحکم وکړو برابره خبره ده چه داقسم خوراك دوی خوښوي اوکه بد ئې ګڼړي.

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا فِي مَتَاعٍ « اسْتَهِمَا عَلَى الْيَمِينِ مَا كَانَ أَحَبَّا ذَلِكَ أَوْ كَرِهَا ﴾

[¹]: سنن النسائي/آداب القضاة ٣٤ (٥٤٢٦)، سنن ابن ماجه/الأحكام ١١ (٢٣٣٠)، (تحفة الأشراف والإرواء: ٢٦٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٢/٤) (ضعيف)

[²]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٠٨٨) (ضعيف)

[³]: انظر حديث رقم: ٣٦١٣، (تحفة الأشراف: ٩٠٨٨) (ضعيف)

[⁴]: سنن ابن ماجه/الأحكام ١١ (٢٣٢٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٨٩/٢، ٥٢٤) (صحيح)

دا حديث مسئله مترجم بها کښې د امام احمد رحمه الله د مذهب دليل دې چه وائي چه په دې صورت کښې دې استهمام يعنې قرعه اندازي اوکړې شي او په قرعه اندازئ کښې چه د چا نوم راوخيژي د هغه نه دې قسم اخستلو سره د هغه په حق کښې فيصله اوکړې شي.

والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري

[۳۶۱۷] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَسَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ أَحْمَدُ، قَالَ: حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا كَرِهَ الِاثْنَانِ الْيَمِينَ أَوِ اسْتَحَبَّاهَا فَلْيَسْتَهِمَا عَلَيْهَا"، قَالَ سَلَمَةُ: قَالَ: أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، وَقَالَ: إِذَا أُكْرِهَ الِاثْنَانِ عَلَى الْيَمِينِ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي کله چه دوه کسان قسم کول بد وګڼړي بائې بد اوکړې نوپه دې باندې قرع اندازې کوئ، سلمه وائي په دې حديث باندې معمر مونږ ته خبر راکړې دې اودر. «إذا كَرِهَ الاثنان اليمين» په ځائې باندې .. «إذا أكره الاثنان على اليمين»، وئيلي دي.

[۳۶۱۸] (۲) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، بِإِسْنَادِ ابْنِ مِنْهَالٍ مِثْلَهُ، قَالَ: فِي دَابَّةٍ وَلَيْسَ لَهُمَا بَيِّنَةٌ، فَأَمَرَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَسْتَهِمَا عَلَى الْيَمِينِ.

د سعيد بن ابی عروبه نه هم په دې سند سره روايت دې چه دوه کسانو ديوخاروي په معامله کښې جګړه وکړه او په دوی دواړوکښې ديوسره هم ګواه موجود نه وو نونبي عليه السلام ددوی دقسم کولو په باره کښې دقرع اندازي کولوحکم وکړو.

## بَابُ الْيَمِينِ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ

### که چرې د مدعي سره ګواه نه وي نو مدعا عليه به قسم کوي

[۳۶۱۹] (۳) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، قَالَ: كَتَبَ إِلَيَّ ابْنُ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَضَى بِالْيَمِينِ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ".

د ابن ابي مليکه نه روايت دې فرمنائي چه ماته عبدالله بن عباس رضي الله عنهما اوليکل چه نبي عليه السلام مدعا عليه (په چاباندې چه دعوي شوي وي) تا دقسم کولو حکم فرمائيلي دې.

دا مسئله اجماعي ده د ائمه ثلاث په نزد مطلقا ده او د امام مالک رحمه الله په نزد مقيد ده په يو قيد باندې هغه دا چه که د مدعي او مدعی عليه ترمينځه خپل مينځ کښې اتفاق وی نو بيا داسې ده او که په هغوی دواړو کښې څۀ قسم جوړ يا مناسبت نه وی مثلا يو سړې ډير پرهيزګار وی او دويم سړې ډير عياش وی چه د هغوی خپل مينځ کښې د لين دين هيڅ تعلق نه وی داسې سړې که عدالت ته لاړ شی او دعوی اوکړی نو د هغه دعوې ته به غوږ نه

[1]: صحيح البخاري/الشهادات ٢٤ (٢٦٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٧/٢)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري (٦٠٠١) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم: (٣٦١٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٦٢) (صحيح) بما قبله

[3]: صحيح البخاري/الرهن ٦ (٢٥١٤)، الشهادات ٢٠ (٢٦٦٨)، تفسير آل عمران ٣ (٤٥٥٢)، صحيح مسلم/الأقضية ١ (١٧١١)، سنن الترمذي/الأحكام ١٢ (١٣٤٢)، سنن النسائي/آداب القضاة ٣٥ (٥٤٢٧)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٧ (٢٣٢١)، (تحفة الأشراف: ٥٧٥٢، ٥٧٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٢/١، ٣٥١، ٣٥٦، ٣٦٣) (صحيح)

شي کيخودلې او د هغه په دعوی باندې به د مدعی عليه نه قسم نه شي اخستلې، دا قيد هغوی په دې وجه باندې لګولې دې چه لوفر قسم خلق علماء او فضلاء بغير د څه وجې نه پريشان نه کړی خو د دې قيد هيڅ اصل په کتاب او سنت کښې نشته. (کذا في المذل وکذا في حاشية السنن عن الطيبي)

## بَاب كَيْفَ الْيَمِينُ
### د قسمورکولو طريقه

[۳۶۲۰](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ يَعْنِي لِرَجُلٍ حَلَّفَهُ: "احْلِفْ بِاللَّهِ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ، مَا لَهُ عِنْدَكَ شَيْءٌ"، يَعْنِي لِلْمُدَّعِي، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو يَحْيَى اسْمُهُ زِيَادٌ كُوفِيٌّ ثِقَةٌ.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام يوکس ته اووئيل چه قسم ئې ورته ورکولو، په هغه الله باندې قسم وکړه چه دهغه نه علاوه بل معبود نشته دې چه ستاپه ذمه باندې د دعوي کونکي يعنی دمدعی څه شي نشته.

﴿ أَنَّ رسول الله صلى الله عليه وسلم- قَالَ - يَعْنِى لِرَجُلٍ حَلَّفَهُ - « احْلِفْ بِاللَّهِ الَّذِى لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ مَا لَهُ عِنْدَكَ شَىْءٌ ». يَعْنِى لِلْمُدَّعِى ﴾

يعنی رسول الله ﷺ هغه سړی ته اوفرمائيل د چا نه چه رسول الله ﷺ قسم اخستلو يعنی مدعی عليه چه په دې الفاظو سره قسم اوخوری کوم چه په حديث کښې مذکور دی.

په ظاهر کښې د مصنف رحمه الله غرض په دې ترجمې سره دا دې چه که قاضی په الفاظو د قسم کښې د تغليظ ضرورت اوګنړی نو په کوم قسم الفاظو سره چه هغه غواړی قسم اخستلې شی. والحديث اخرجه النسائي قاله المنذري.

## بَاب إِذَا كَانَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ ذِمِّيًّا أَيَحْلِفُ
### که چرې مدعی عليه ذمی وی نوآيا قسم به ورته ورکولې شی؟

[۳۶۲۱](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنِ الْأَشْعَثِ، قَالَ: "كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ مِنَ الْيَهُودِ أَرْضٌ، فَجَحَدَنِي، فَقَدَّمْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَكَ بَيِّنَةٌ، قُلْتُ: لَا، قَالَ لِلْيَهُودِيِّ: احْلِفْ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِذًا يَحْلِفَ وَيَذْهَبَ بِمَالِي، فَأَنْزَلَ اللَّهُ: إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا سورة آل عمران آية ۷۷، إِلَى آخِرِ الْآيَةِ".

د اشعث نه روايت دې فرمائی چه زما اوديويهودي په مينځ کښې څه زمکه شريکه وه يهودي زما دحصي نه انکار وکړو ما نبی عليه السلام ته بوتلو نبی عليه السلام ماته اوفرمائيل اياستاسره ګواه موجود دې ماعرض اوکړو نه نبی عليه السلام يهودي ته اوفرمائيل ته به قسم کوي ماعرض

---

۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٤٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد ٢٨٨/١) (ضعيف الإسناد)

۲): صحيح البخاري/ المساقاة ٤ (٢٣٥٦)، الرهن ٦ (٢٥١٥، ٢٥١٦)، الشهادات ١٩ (٢٦٦٦، ٢٦٦٧)، التفسير ٣ (٤٥٤٩)، الأيمان ١١ (٦٦٥٩، ٦٦٦٠)، الأحكام ٣٠ (٧١٨٣، ٧١٨٤)، صحيح مسلم/ الإيمان ٦١ (١٣٨)، سنن الترمذي/ البيوع ٤٢ (١٢٩)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٧ (٢٣٢٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٨، ٩٢٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١١/٥) (صحيح)

اوکړو اې د الله رسوله که چرې دې قسم وکړي نو زما مال خوبه واخلي نوپه دې وخت کښې الله تعالی دا ایت کریمه : «إن الذين يشترون بعهد الله وأيمانهم» نازل کړو.

یعنی مدعی علیه که ذمي وي نو آیا د هغه نه به قسم اخستلې شي. جواب دا دې چه اخستلې به شي ترې نه، لکه چه په حدیث الباب کښې دي دا حدیث په کتاب الایمان والنذور کښې تیر شوي دې.

## بَابُ الرَّجُلِ يَحْلِفُ عَلَى عِلْمِهِ فِيمَا غَابَ عَنْهُ

**چاته د واقعې د علم په بنا باندې قسم ورکول کله چه دغه واقعه دده په موجود گۍ کښې نه وي شوې**

[۳۶۲۲]([1]) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنِي كُرْدُوسٌ، عَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ قَيْسٍ، "أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِنْدَةَ، وَرَجُلًا مِنْ حَضْرَمَوْتَ، اخْتَصَمَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَرْضٍ مِنَ الْيَمَنِ، فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أَرْضِي اغْتَصَبَنِيهَا أَبُو هَذَا، وَهِيَ فِي يَدِهِ قَالَ: هَلْ لَكَ بَيِّنَةٌ؟، قَالَ: لَا، وَلَكِنْ أُحَلِّفُهُ وَاللَّهِ مَا يَعْلَمُ أَنَّهَا أَرْضِي اغْتَصَبَنِيهَا أَبُوهُ فَتَهَيَّأَ الْكِنْدِيُّ يَعْنِي لِلْيَمِينِ وَسَاقَ الْحَدِيثَ".

داشعث بن قیس نه روایت دې فرمائي چه د کنده قبیلې یو سړې اود حضر موت دقبیلې یو سړې. نبی ﷺ ته دیمن دزمکې په باره کښې جګړه راوړله حضرمي اووئیل اې د الله رسوله ده زما زمکه قبضه کړیده او په زوره ئې اخستلې ده نبی ﷺ دغه کس ته اوفرمائیل ایا ستاسره ګواه موجود دې؟ عرض ئې وکړو نا نو بیا ئې اوفرمائیل زه به دې کندي ته په دې خبره قسم ورکوم چه ده ته دا خبره نه ده معلومه چه دا زما زمکه ده او دده پلار په زبردستی سره په دې باندې قبضه کړې وه نوکندي په قسم کولو باندې راضي شو اوبیا ئې مذکوره بالا حدیث بیان کړو.

### د ترجمة الباب تشریح :

یعنی د کومې معاملې تعلق چه براه راست د خپل ځان سره وي هلته د مدعی علیه نه قسم د هغه په علم باندې اخستل پکار دي یعنی په نفس الامر باندې ترې نه قسم وانخستلې شي، د احتیاط تقاضا هم دا ده لکه چه په حدیث الباب کښې دي، دا حدیث هم په کتاب الایمان والنذور کښې تیر شوي دې، په دې حدیث کښې دا دي چه مدعی اووې چه مدعی علیه سره چه کومه زمکه ده هغه زما ده، د مدعی علیه پلار زما نه غصب کړې وه، اوګورئ دلته د غصب تعلق چونکه براه راست د مدعی علیه سره نه وو بلکه د هغه د پلار سره وو په دې وجه دلته قسم په علم باندې واخستلې شو. پس مدعی علیه قسم کښې اووې چه والله زما په علم کښې نشته دا خبره چه زما پلار د مدعی دا زمکه غصب کړې وه.

[۳۶۲۳]([2]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ مِنْ حَضْرَمَوْتَ، وَرَجُلٌ مِنْ كِنْدَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ هَذَا غَلَبَنِي عَلَى أَرْضٍ كَانَتْ لِأَبِي، فَقَالَ الْكِنْدِيُّ: هِيَ أَرْضِي فِي يَدِي أَزْرَعُهَا لَيْسَ لَهُ فِيهَا حَقٌّ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْحَضْرَمِيِّ: أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: فَلَكَ يَمِينُهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُ فَاجِرٌ

[1]: انظر حديث رقم: (۳۲۴۴)، (تحفة الأشراف: ۱۵۹) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم: (۳۲۴۵)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۶۸) (صحيح)

لَيْسَ يُبَالِي مَا حَلَفَ لَيْسَ يَتَوَرَّعُ مِنْ شَيْءٍ، فَقَالَ: لَيْسَ لَكَ مِنْهُ إِلَّا ذٰلِكَ".

علقمه بن وائل بن حجر الحضرمي دخپل پلارنه روايت كوى فرمائى چه دحضرموت قبيلي يوسړي اردكننده قبيلې يوسړې نبى عليه السلام ته راغلل حضري اووئيل اې دالله رسوله ده زما دپلار زمكه غصب كړې ده كندي عرض اوكړو چه دازمازمكه ده زه په دې كښې فصل كرم دده په دې زمكه كښې هيڅ حق نشته نبى ﷺ حضري ته اوفرمائيل اياستاسره ګواه موجود دې ده عرض اوكړونه، نبى ﷺ اوفرمائيل بيابه ستاپه ورandي دې قسم كوي حضري عرض اوكړواي دالله رسوله داخويوفاسق سړې دې دده په قسم كولو هيڅ پرواه نشته هرقسمة قسم كولې شي اومتقي نه دې نبى ﷺ ده ته اوفرمائيل چه د قسم نه علاوه ستاسو دپاره بله هيڅ چاره نشته.

## بَابُ كَيْفَ يَحْلِفُ الذِّمِّيُّ

### كافر ذمى ته به په كومه طريقه باندې قسم وركولې شي؟

[٣٦٢٤] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، حَدَّثَنَا رَجُلٌ مِنْ مُزَيْنَةَ وَنَحْنُ عِنْدَ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي لِلْيَهُودِ: "أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ الَّذِي أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلَى مُوسَى، مَا تَجِدُونَ فِي التَّوْرَاةِ عَلَى مَنْ زَنَى وَسَاقَ الْحَدِيثَ فِي قِصَّةِ الرَّجْمِ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ يهوديانوته اوفرمائيل تاسوته په هغه ذات قسم دركوم چاچه تورات نازل كړې دې په موسى عليه السلام باندې چه په تورات كښې دهغه چا دپاره څه حكم دې څوك چه زنا وكړي (داقسم وركول په هغه وخت كښې شوي ووكله چه يهوديانودزناكار دسنګسار كولونه انكاركړي وو اوداحديث تر آخره پورې په قصه درجم كښې بيان شوي دې.

[٣٦٢٥] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى أَبُو الْأَصْبَغِ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، بِهَذَا الْحَدِيثِ وَبِإِسْنَادِهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ مُزَيْنَةَ مِمَّنْ كَانَ يَتَّبِعُ الْعِلْمَ وَيَعِيهِ، يُحَدِّثُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ وَسَاقَ الْحَدِيثَ بِمَعْنَاهُ.

اسحاق هم دزهري نه په خپل سند سره دا روايت نقل كړي دي وائى چه حديث بيان كړې دې ماته يومزني چه دسعيد بن المسيب نه ئې روايت بيانونواود حديث متن ئې دتير شوي روايت په شان بيان كړو.

[٣٦٢٦] (٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ يَعْنِي لِابْنِ صُورِيَا: "أُذَكِّرُكُمْ بِاللَّهِ الَّذِي نَجَّاكُمْ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ، وَأَقْطَعَكُمُ الْبَحْرَ، وَظَلَّلَ عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ، وَأَنْزَلَ عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَى، وَأَنْزَلَ عَلَيْكُمُ التَّوْرَاةَ عَلَى مُوسَى أَتَجِدُونَ فِي كِتَابِكُمُ الرَّجْمَ؟" قَالَ: ذَكَّرْتَنِي بِعَظِيمٍ وَلَا يَسَعُنِي أَنْ أَكْذِبَكَ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

---

[1]): تفرد به أبو داود، وانظر حديث رقم (٤٨٨)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٩٢) (ضعيف)

[2]): تفرد به أبو داود، وانظر حديث رقم (٤٨٨)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٩٢) (ضعيف)

[3]): تفر به أبو داود (صحيح)

د عکرمه نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ ديهوديانو يوعالم) ابن صوريانه ووئيل زه تاسوته هغه الله رايادوم چاچه تاسوته دفرعون نه نجات درکړواوستاسو دپاره ئې په سمندرکښې لاره جوړه کړه او په تاسو باندې ئې دوريزې سورې وکړو او بيا ئې من اوسلوي نازل کړل، او بيا ئې په موسى ﷺ تورات نازل کړو اياتاسوپه تورات کښې د رجم حکم نه دى ليدلې؟ ابن صوريا په جواب کښې ووئيل ډير لوى ذات دې ياد کړو اوس زما دپاره ددروغوونيلوهيڅ ګنجائش پاتې نشواوحديث ئې تر اخره پورې بيان کړو.

د ترجمة الباب او حديث نه معلوميږى چه د ذمى نه چه يهودى وو د هغه د عقيدې مطابق قسم واخستلې شو ﴿ بالله انزل التوراة على موسى ﴾ دا حديث په کتاب الحدود کښې په خپل مقام باندې راروان دې.

## باب الرَّجُلِ يَحْلِفُ عَلَى حَقِّهِ

### په خپل حق باندې د قسم کولو بيان

[٣٦٢٧]([1])حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، وَمُوسَى بْنُ مَرْوَانَ الرَّقِّيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ سَيْفٍ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ حَدَّثَهُمْ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "قَضَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ، فَقَالَ الْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ لَمَّا أَدْبَرَ: حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللَّهَ يَلُومُ عَلَى الْعَجْزِ، وَلَكِنْ عَلَيْكَ بِالْكَيْسِ، فَإِذَا غَلَبَكَ أَمْرٌ، فَقُلْ: حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ".

د عوف بن مالك ﷺ نه روايت دې فرمائي چه يوځل نبي ﷺ ددوه کسانوفيصله وکړله، چاچه مقدمه بيلې وو هغه دفيصلې اوريدونه پس چه کله روانيد و نو اونې ووئيل زما دپاره الله تعالى کافي دې، اونبي ﷺ ورته اوفرمائيل يقينا الله تعالى انسان په خپل [٣٦٢٤] په څه وجه باندې کومه مقدمه وبيلى نو ښکارده چه داسې اووايى: الله تعالى زما دپاره کافي دې اوهغه بهترين کارسازدې.

### شرح الحديث :

**قوله:** ﴿ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَضَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ. فَقَالَ الْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ لَمَّا أَدْبَرَ حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ الخ﴾ يعنى رسول الله ﷺ د دوه سړو ترمينځه په يو قضيه کښې يو فيصله اوفرمائيله د کوم سړى خلاف چه هغه فيصله وه چه کله هغه روان شو نو وې وئيل ﴿ حسبى الله ونعم الوكيل﴾ چه ښه ده زمونږ مالک هم الله دې په ظاهر کښې د هغه مطلب دا وو چه دا فيصله صحيح نه ده شوې حق فى الواقع زما وو نو په دې باندې رسول الله ﷺ هغه سړى ته خبردارې ورکړو او وې فرمائيل اې روره! الله پاک عاجز او بې وسه کيدل نه خوښوى، سړى له ښکار دى چه د خپلې پوهې نه کار واخلى او د حصول مقصد دپاره کوشش اوکړى خپه په خپه دې نه کينى، خو چه ټول تدبيرونه اختيار کړى او يو شکل ئې په فهم کښې رانشى نو بيا دې دا دعا اووائى ﴿ حسبى الله ونعم الوكيل ﴾

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠٩١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥/٦) (ضعيف)

په دې ترجمة الباب سره د مصنف رحمه الله څه غرض دې تر یوې مودې پورې پکښې بنده غور کولو، یو غرض مې دا په فهم کښې راغلو چه که مدعی بینه پیش نه کړې شی نو قاضی له پکار دی چه بغیر د تاخیر نه د مدعی علیه نه قسم اخستلو سره د هغه په حق کښې فیصله اوکړی اګر چه په بعض قرائنو او آثارو سره صدق د مدعی ښکاره کیږی. خو د هغې پروانه دی کول پکار، د دې حدیث په مضمون کښې غور کولو نه هم دا په فهم کښې راځی. والله تعالی اعلم، والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْحَبْسِ فِي الدَّيْنِ وَغَيْرِهِ

### د قرض په معامله کښې د مقروض د ترلو بیان

یعنی مدیون که د دین په ادا کولو کښې تاخیر اوکړی سره د مالدارئ او قدرت علی قضاء الدین نه نو د هغه تال متول باندې هغه قید کولې شی، حدیث الباب په دې کښې ښکاره دی.

[٣٦٢٨](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ وَبْرِ بْنِ أَبِي دُلَيْلَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيُّ الْوَاجِدِ يُحِلُّ عِرْضَهُ وَعُقُوبَتَهُ"، قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: يُحِلُّ عِرْضَهُ: يُغَلَّظُ لَهُ، وَعُقُوبَتَهُ: يُحْبَسُ لَهُ.

عمرو بن شرید د خپل پلار نه روایت کوی نبی ﷺ فرمائیلی دی د مالداره سړي قرض نه اداکول دده د عزت خرابول ثابتوي او دده د پاره سزا ثابتوي،

[٣٦٢٩](2) حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ أَسَدٍ، حَدَّثَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ، أَخْبَرَنَا هِرْمَاسُ بْنُ حَبِيبٍ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِغَرِيمٍ لِي، فَقَالَ لِي: الْزَمْهُ، ثُمَّ قَالَ لِي: يَا أَخَا بَنِي تَمِيمٍ، مَا تُرِيدُ أَنْ تَفْعَلَ بِأَسِيرِكَ؟".

ابن مبارک وئیلی دی د عزت خرابیدو نه مراد داد چه ده ته به سختې خبرې وشي او د سزا نه مراد قید کیدل دی.

[٣٦٣٠](3) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "حَبَسَ رَجُلًا فِي تُهْمَةٍ".

هرماس بن حبیب چه د ځنګل اوسیدونکی دې د خپل پلار نه او هغه دده د نیکه نه روایت کوی فرمائی چه د نبی ﷺ په خدمت کښې مې خپل یو قرضداري حاضرشو نبی ﷺ اوفرمائیل دده سره یوځائې ګرځه اوبیا ئې اوفرمائیل اې د بني تمیم وروره ته د خپل قیدي سره څه کول غوارې؟.

**قوله:** ﴿ عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- حَبَسَ رَجُلاً فِي تُهْمَةٍ ﴾

---

(1): سنن النسائي/البيوع ٩٨ (٤٦٩٣)، سنن ابن ماجه/الصدقات ١٨ (٢٤٢٧)، (تحفة الأشراف: ٤٨٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٢/٤، ٣٨٨، ٣٨٩) (حسن)

(2): سنن ابن ماجه/الصدقات ١٨ (٢٤٢٨)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٤٤) (ضعيف)

(3): سنن الترمذي/الديات ٢١ (١٤١٧)، سنن النسائي/قطع السارق ٢ (٤٨٩٠)، (تحفة الأشراف: ١١٣٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٥، ٤، ٤٤٧/٤) (حسن)

## شرح الحديث :

يعنى رسول اللهﷺ يو سړي صرف د شبه په وجه باندې او د هغه د تهمتى كيدو په وجه باندې، هغه قيد كړو خو ورخې، د دې حديث نه ثابتيږي چه د قاضى دپاره شخص متهم لره قيد كول د تحقيق حال او تفتيش دپاره جائز دى، د دې حبس نوم حبس استظهار دې نه حبس عقوبت، مثلا په يو محله كښې غلا اوشوه په هغه محله كښې بعض خلق داسې دى چه د هغوى په باره كښې د غلا شک او شبهه د هغوى د ظاهرى حال پيش نظر ده نو دلته كه قاضى مناسب گڼړى او ضرورت گڼړى چه د اصل غل تحقيق او تفتيش اوشى دې خو كسانو لره نظر بند كړى نو په دې كښې هيڅ باک نشته بلكه عين مصلحت دې.

[۳۶۳۱] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ، وَمُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَ ابْنُ قُدَامَةَ، حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ ابْنُ قُدَامَةَ: إِنَّ أَخَاهُ أَوْ عَمَّهُ، وَقَالَ مُؤَمَّلٌ: إِنَّهُ قَامَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَخْطُبُ، فَقَالَ: جِيرَانِي بِمَا أُخِذُوا، فَأَعْرَضَ عَنْهُ مَرَّتَيْنِ، ثُمَّ ذَكَرَ شَيْئًا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَلُّوا لَهُ عَنْ جِيرَانِهِ"، لَمْ يَذْكُرْ مُؤَمَّلٌ وَهُوَ يَخْطُبُ.

بهز بن حكيم دپلار نه اوهغه دده دنيكه نه روايت كوى چه نبى عليه السلام يو سړي دتهمت په وجه قيد كړې وو بهز بن حكيم دپلار نه اوهغه دده دنيكه نه روايت كوى چه ابن قدامه په خپل روايت كښې دورور ياتره ذكر كړې دې او مؤمل پخپل روايت كښې وئيلى دى چه هغه نبى عليه السلام ته راغې او ودريدو اونبى عليه السلام په دې وخت كښې خطبه وركوله هغه اووئيل زماگاونډيانو زما حق وهلى دې نبى عليه السلام دده نه دوه پيرې مخ واړولو اوبيا ئې دڅه شي ذكر وكړو نبى عليه السلام اوفرمائيل دا كس دخپلو گاونډيانونه خلاص كړئ په دې روايت كښې مؤمل ..وهو يخطب، لفظ نه دې بيان كړې.

**قوله:** ﴿ عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ - إِنَّهُ قَامَ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ يَخْطُبُ فَقَالَ جِيرَانِى بِمَا أَخَذُوا. فَأَعْرَضَ عَنْهُ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ ذَكَرَ شَيْئًا فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « خَلُّوا لَهُ عَنْ جِيرَانِهِ » ﴾

## شرح الحديث :

د بهز د نيكه نوم معاويه بن حيده ﷺ دې هغه روايت كوى چه كله رسول اللهﷺ خطبه وركوله نو ما د هغوى خوا كښې اودريدو سره عرض اوكړو چه زما گاونډيان ولې نيولې شوې دى؟ رسول اللهﷺ دې طرف ته التفات او نه فرمائيلو دوه كرته دې ته ضرورت راغلو، راوى وائى چه بيا معاويه نور هم څه عرض اوكړو لږ ساعت پس رسول اللهﷺ اوفرمائيل د دې سړى گاونډيان دې پريخودلې شى.

ظاهره دا ده چه د معاويه گاونډيان به د څه واقعې په پيښيدلو سره د څه شک او شبهه په بناء باندې قيد كړې شوې وو، كوم چه قيد كړې شو هغوى د معاويه گاونډيان وو، هغوى رسول اللهﷺ ته د هغوى د طرف نه صفائى پيش كړه په دې باندې رسول اللهﷺ هغوى پريخودل.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٨٩) (حسن الإسناد)

دا چه د حدیث مونږ کومه شرح کړې ده په دې صورت کښې به ﴿ بم اخذوا ﴾ فعل مجهول وی او که دا د معروف صیغه اولوستلې شی ﴿ بم اخذوا ﴾ نو په دې صورت کښې د دې دا مطلب کیدې شی ﴿ خل جیرانی بما اخذوا ای علی ان اودی عنهم ما اخذوا ﴾ زما ګاونډیان پریږدئ په داسې طریقه چه زه به د هغوی اخستلې شوې قرض د هغوی د طرف نه ادا کړم، یعنی دا خلق د قرض د نه ادا کولو د وجې نه قید وو دې صحابی د هغوی د طرف نه د اداء قرض کفالت قبول کړو نو هغوی پریخودلې شو.

# بَابٌ فِي الْوَكَالَةِ

## دوکالت بیان

**(دکتاب القضاء سره مناسبت)**:

د کتاب القضاء بیان شروع دې او د قضا دپاره وکیلان هم وی.

[٣٦٣٢] (1) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَمِّي، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي نُعَيْمٍ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ سَمِعَهُ يُحَدِّثُ، قَالَ: "أَرَدْتُ الْخُرُوجَ إِلَى خَيْبَرَ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، وَقُلْتُ لَهُ: إِنِّي أَرَدْتُ الْخُرُوجَ إِلَى خَيْبَرَ، فَقَالَ: إِذَا أَتَيْتَ وَكِيلِي فَخُذْ مِنْهُ خَمْسَةَ عَشَرَ وَسْقًا، فَإِنِ ابْتَغَى مِنْكَ آيَةً فَضَعْ يَدَكَ عَلَى تَرْقُوَتِهِ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ماخیبرته د تلو اراده وکړه اودنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم اودسلام کولونه پس مې عرض وکړو چه زماخیبرته دتلو اراده ده نبی علیه السلام راته اوفرمائیل کله چه زمادوکیل سره ملاو شې نو پنځلس وسقه کجورې ورنه واخله که چرې هغه ستانه دنخې طلب وکړي نوته خپل لاس دهغه په مرۍ باندې کیږده (دادهغه علامه وه).

### مضمون حدیث:

جابر رضي الله عنه فرمائی چه یو کرت زما اراده خیبر ته د تلو اوشوه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او هغوی ته مې سلام عرض کړو او د خپل سفر اراده مې ورته ښکاره کړه نو په دې باندې رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل چه ته کله خیبر ته زمونږ فلانی وکیل ته لاړ شې نو د هغه نه پنځلس وسقه کهجورې یا غله زماپه نوم واخله. که هغه په دې باندې څه دلیل یا علامت طلب کړی نو د هغه په ترقوه (سُرتُرمُو) باندې خپل لاس کیږده. یعنی د حلق نه په لاندې حصه باندې، رسول الله ﷺ به غالبا خپل وکیل ته فرمائیلې وو چه که تانه څوک زما په نوم باندې څوک څه غواړی نو که هغه ستا په دلیل طلب کولو باندې هغه ځائې کښې لاس کیږدی نو پوهه شه چه هغه زما د طرف نه دې.

(1) تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣١٣١) (ضعیف)

## بَابٌ فِي الْقَضَاءِ

### د قضا د احکامو بیان

[۳٦٣٣] (۱) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الْمُثَنَّى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ كَعْبٍ الْعَدَوِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا تَدَارَأْتُمْ فِي طَرِيقٍ فَاجْعَلُوهُ سَبْعَةَ أَذْرُعٍ".

د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبي علیه السلام فرمایلي دي کله چه تاسو د لاري په باره کښې په جګړه کښې مبتلا شی نو لار به داوه لاسونو په اندازه پريږدئ.

### شرح الحديث:

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِذَا تَدَارَأْتُمْ فِي طَرِيقٍ فَاجْعَلُوهُ سَبْعَةَ أَذْرُعٍ »﴾ د دې حديث مطلب دا دي چه که يو زمکه په ميراث کښې د څو ورڼرو ترمينځه يا د څو کسانو ترمينځه مشترکه وی او اوس هغوی د هغې د ابادولو اراده اوکړی چه په هغې کښې ئې دواړو طرفونو ته د کور جوړولو خيال دي نو اوس چه په مينځ کښې کومه لاره پريخودلې شی د کورونو په مينځ کښې د تلو راتلو هغه څومره کيدل پکار دی پس که هغوی ټول په يو خاص مقدار باندې متفق شی نو ښه ده او که اختلاف ئې راشی نو بيا په دې صورت کښې هغه څه کول پکار دی کوم چه په حديث الباب کښې دی يعنی د اووۀ ذرع په قدر پلنه ګلئ دې پريخودلې شی.

والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳٦٣٤] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَابْنُ أَبِي خَلَفٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا اسْتَأْذَنَ أَحَدَكُمْ أَخَاهُ أَنْ يَغْرِزَ خَشَبَةً فِي جِدَارِهِ فَلَا يَمْنَعْهُ، فَنَكَّسُوا، فَقَالَ: مَا لِي أَرَاكُمْ قَدْ أَعْرَضْتُمْ؟ لَأُلْقِيَنَّهَا بَيْنَ أَكْتَافِكُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا حَدِيثُ ابْنِ أَبِي خَلَفٍ وَهُوَ أَتَمُّ.

دابوهريره رضی الله عنه نه چه نبي علیه السلام فرمائيلی دی کله چه يوکس په تاسو کښې دخپل مسلمان ورور نه دهغه په ديوال دلرګي ايخودلو اجازت وغواړي نوانکاردي ورته روايت دي فرمائی نه کوي، خلقو چه داخبره واوريده نوسرونه ئې ښکته کړل، بياابوهريره رضی الله عنه اوفرمائيل څه وجه ده چه تاسودا حديث په پوره توجه سره نه اورئ داحديث به زه ستاسو داوږوپه مينځ کښې اچوم يعنی بار بار به ئې درته اوروم.

**قوله:** ﴿إِذَا اسْتَأْذَنَ أَحَدَكُمْ أَخَاهُ أَنْ يَغْرِزَ خَشَبَةً فِي جِدَارِهِ فَلاَ يَمْنَعْهُ﴾

### شرح الحديث:

يعنی که په تاسو کښې يو سړې د خپل رور نه د دې خبرې اجازت اوغواړی چه هغه د هغه په ديوال کښې يو لرګې ښخ کړی مثلا د هغه په ديوال باندې د خپل چهت تير کيږدی يا يو

---

(۱): سنن الترمذي/الأحكام ۲۰ (۱۳۵٦)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۱٦ (۲۳۳۸)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۲۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المظالم ۲۹ (۲٤۷۳)، صحيح مسلم/المساقاة ۳۱ (۱٦۱۳)، مسند احمد (۲/٤٦٦، ٤۷٤) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/المظالم ۲۰ (۲٤٦۳)، صحيح مسلم/المساقاة ۲۹ (۱٦۰۹)، سنن الترمذي/الأحكام ۱۸ (۱۳۵۳)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۱۵ (۲۳۳۵)، (تحفة الأشراف: ۱۳۹۵٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الأقضية ۲٦ (۳۲)، مسند احمد (۲/۲٤۰، ۲۷٤، ۳۹٦، ٤٦۳) (صحيح)

ګاونډی د بل ګاونډي په دیوال کښې میخ ټک وهی نو هغه له پکار دی چه انکار دې نه کوی. د امام احمد رحمه الله په نزد دا نهی د تحریم دپاره ده او د جمهورو په نزد د تنزیه دپاره، د هغوی په نزد دا حدیث په حسن معاشرت باندې محمول دې، وړاندې په روایت کښې دی
﴿فَنَكَسُوا فَقَالَ مَا لِي أَرَاكُمْ﴾ راوی وائی چه کله ابوهریره رضی الله عنه دا حدیث د خلقو مخکښې بیانولو نو هغوی لړ شان سر ښکته کړو په ځائې د دې چه سر اوچتولو سره ئې د حدیث سماع په ښه طریقه کولې، ابوهریره رضی الله عنه هغوی اوږتل او خفه کیدو سره ئې اوفرمائیل: څه خبره ده د دې حدیث په اوریدو باندې اعراض ولې کوئ تاسو که هر څه کوئ زه به دا حدیث ستاسو وړاندې بیانوم، او یا دا مطلب دې چه دا میخ به زه ستاسو په سینو کښې ټک وهم او هغه کړئ به ستاسو په اوږو باندې ضرور ږدم.
دا د ابوهریره رضی الله عنه د طرف نه حاضرینو ته په مضمون حدیث باندې عمل کولو دپاره په سختئ سره تاکید او تنبیه ده.

[٣٦٣٥] (١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ لُؤْلُؤَةَ، عَنْ أَبِي صِرْمَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: غَيْرُ قُتَيْبَةَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، عَنْ أَبِي صِرْمَةَ صَاحِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ ضَارَّ أَضَرَّ اللَّهُ بِهِ، وَمَنْ شَاقَّ شَاقَّ اللَّهُ عَلَيْهِ".

امام ابو صرمه فرمائی چه امام ابوداؤد وئیلی دی دقتیبه نه علاوه نورو راویانو ددې روایت په سند کښې دلفظ صاحب النبی ذکر کړې دې چه دهغه نه روایت دې چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوك چه چاته تکلیف یانقصان ورسوي نوالله تعالی به هغه ته نقصان اوتکلیف ورسوي اوڅوك چه دچاسره عداوت او دشمنی کوي نوالله تعالی به دده سره عداوت اودشمنی وکړي.
﴿مَنْ ضَارَّ أَضَرَّ اللَّهُ بِهِ وَمَنْ شَاقَّ شَاقَّ اللَّهُ عَلَيْهِ﴾ کوم سړې چه نورو ته ضرر ورکوی نو الله پاک هغه ته ضرر رسوی او کوم سړې چه نور په مشقت کښې اچوی الله پاک په هغه باندې مشقت اچوی.

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري.

د دې حدیث د باب سره څه مناسبت دې، په ظاهر کښې خو دا دې چه قاضیانو ته د قسم قسم خلقو مقدمات او فیصلې راځی نو په هغوی کښې بعض ظالمان او بعض مظلوم وی نو کیدې شی چه مصنف رحمه الله دې طرف ته اشاره کوی چه په داسې موقعه کښې پکار دی چه د موقع او محل مناسب د وعد او وعید احادیث خصمینو ته واوروی. کیدې شی چه په هغوی کښې کوم یو په باطل باندې وی د هغه په حق کښې دا وعیدموثر شی او په خپله د خپل ناحق خصومت نه منع شی لکه چه په احادیثو کښې د دې مثالونه ملاویږی، (والله تعالی اعلم)

(١): سنن الترمذي/البر والصلة ٢٧ (١٩٤٠)، سنن ابن ماجه/الأحكام ١٧ (٢٣٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٥٣/٣) (حسن)

[۳۶۳۶](۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا وَاصِلٌ مَوْلَى أَبِي عُيَيْنَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا جَعْفَرٍ مُحَمَّدَ بْنَ عَلِيٍّ يُحَدِّثُ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ "أَنَّهُ كَانَتْ لَهُ عَضُدٌ مِنْ نَخْلٍ فِي حَائِطِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: وَمَعَ الرَّجُلِ أَهْلُهُ، قَالَ: فَكَانَ سَمُرَةُ يَدْخُلُ إِلَى نَخْلِهِ فَيَتَأَذَّى بِهِ وَيَشُقُّ عَلَيْهِ، فَطَلَبَ إِلَيْهِ أَنْ يَبِيعَهُ، فَأَبَى، فَطَلَبَ إِلَيْهِ أَنْ يُنَاقِلَهُ، فَأَبَى، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ، فَطَلَبَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَبِيعَهُ، فَأَبَى، فَطَلَبَ إِلَيْهِ أَنْ يُنَاقِلَهُ، فَأَبَى، قَالَ: فَهَبْهُ لَهُ وَلَكَ كَذَا وَكَذَا أَمْرًا رَغَّبَهُ فِيهِ، فَأَبَى، فَقَالَ: أَنْتَ مُضَارٌّ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْأَنْصَارِيِّ: اذْهَبْ فَاقْلَعْ نَخْلَهُ".

د سمره بن جندب رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دیوانصاري په باغ کښې دکجورو یوځوونې وې اودده سره دده ښځه اودده بچی هم وو، نوسمره چه به کله خپلو ونوله تلو نوانصاري ته به تکلیف وو اودده په راتلوسره به هغه ته تکلیف رسیدو نوانصاري اوغوښتل چه دغه ونې دسمره نه په قیمت واخلي سمره دخرڅولونه انکاروکړو، بیا ئې ورنه دغه ونې په تبادله وغوښتلې نوسمره بیاهم انکار وکړو بهرحال هغه نبی علیه السلام ته ددې ذکر وکړو نبی علیه السلام سره ته اوفرمائیل خپلې ونې خرڅې کړه هغه دنبی علیه السلام خبره ونه منله نوبیاورته نبی علیه السلام اوفرمائیل خپلې ونې ورسره بدل کړه لیکن داخبره ئې هم ونه منله نونبی علیه السلام اوفرمائیل دغه ونې دې انصاری ته هبه کړه اوددې په عوض کښې دا واخله نبی علیه السلام ډیر ترغیب ورکړو مګرسره یوه خبره هم ونه منله، په دې وخت کښې نبی علیه السلام اوفرمائیل ته نورو خلقوته تکلیف رسونکې یې اوبیا ئې انصاری ته اوفرمائیل دده ونې وباسه.

﴿عن سمرة بن جندب رضی الله عنه انه کانت له عضد من نخل فی حائط رجل من الانصار﴾

**مضمون حدیث:**

سیدنا سمره رضی الله عنه خپله واقعه پخپله بیانوی چه ما څو بوټی د یو انصاری په باغ کښې لګولې وو. سمره رضی الله عنه فرمائی نوچه دې انصاری سره په باغ کښې د هغه بال بچ هم وو، هغوی فرمائی چه زه به د خپلو بوټو د خیال ساتلو دپاره هغه باغ ته تلم راتلم چه د هغې په وجه به هغه باغ والا ته تکلیف وو او هغه به په مشقت کښې پریوتلو، هغوی فرمائی چه د باغ والا ماته درخواست اوکړو چه زه خپل بوټی د هغه په لاس باندې خرڅ کړم ما د بیع نه انکار اوکړو، بیا هغه مانه د دې خبرې درخواست اوکړو چه زه خپل بوټی د هغه د باغ نه منتقل کړم، ما د دې نه هم انکار اوکړو، هغه انصاری لاړو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ئې زما شکایت اوکړو، هغوی فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم زه راطلب کړم او هم دغه شان ئې دواړه خبرې زما مخې ته کیخودلې کومې چه هغه انصاری کړې وې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته هم انکار اوکړو رسول الله صلی الله علیه وسلم دریم څیز زما مخې ته کیخودلو چه خپل څیز هغه ته هبه کړه په دې باندې به تاته دومره دومره ثواب ملاوشی. ما د دې نه هم انکار اوکړو په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم ما ته اوفرمائیل ﴿ انت مضار ﴾ چه ته ډیر ضرر رسونکې ئې او رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه انصاری ته اووې چه د دهٔ بوټی اوباسه او بهر ئې اوغورځوه.

سیدنا سمره رضی الله عنه چه دا خپله واقعه چه په هغې کښې د هغوی ضد موندلې شی دا هغوی

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۶۳۳) (ضعیف)

خپله بيان فرمائی او ګويا خپله پکښې خپل عيب او کمې بيانوی دا د دې حضراتو د غايت اخلاص او ديانت داری خبره ده چه کوم حديث ئې څنګه د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دې هغه بعينه هم هغه شان نقل کړې شی اګر که هغه خپله د هغوی خلاف ولې نه وی،

(سکت المنذری عن تخريج الحديث واقتصر علی قوله فی سماع الباقر من سمرة بن جندب نظر فقد نقل من مولده و وفاة سمرة يتعذر معه سماعه منه وقيل فيه ما يمكن معه السماع منه.... والله عزوجل اعلم اهـ (عون)

[۳۶۳۷] (¹) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ: "أَنَّ رَجُلًا خَاصَمَ الزُّبَيْرَ فِي شِرَاجِ الْحَرَّةِ الَّتِي يَسْقُونَ بِهَا، فَقَالَ الْأَنْصَارِيُّ: سَرِّحِ الْمَاءَ يَمُرُّ، فَأَبَى عَلَيْهِ الزُّبَيْرُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ: اسْقِ يَا زُبَيْرُ، ثُمَّ أَرْسِلْ إِلَى جَارِكَ، فَغَضِبَ الْأَنْصَارِيُّ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنْ كَانَ ابْنَ عَمَّتِكَ؟، فَتَلَوَّنَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: اسْقِ، ثُمَّ احْبِسِ الْمَاءَ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى الْجَدْرِ، فَقَالَ الزُّبَيْرُ: فَوَاللَّهِ إِنِّي لَأَحْسِبُ هَذِهِ الْآيَةَ نَزَلَتْ فِي ذَلِكَ: فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ سورة النساء آية ٦٥".

دعبدالله بن زبير نه روايت دې فرمائی چه يو کس دزبير سره دنالو دمعاملې په باره کښې په جګړه وو کوي چه دکار ژنې زمکې دطرف نه راغلې وې اووډې نالونه به پټې سراب کيدل انصاری اووئيل اوبه مه بندوه اوزبير نه ددې نه انکار وکړو نبی ﷺ زبيرته اوفرمائيل خپل پټې اوبه کړه اوبيا اوبه خپل ګاونډې ته پريږده راوی وائی په دې خبره باندې انصاری ته غصه ورغله اووئې وئيل اې دالله رسوله زبير خوستادترور خوې د نبی ﷺ چه داخبره واوريده نومخ مبارک ئې دغصې نه سور شو او زبير ته ئې اوفرمائيل چه خپل پټې اوبه کړې نو اوبه بندې کړه تردې پورې چه اوبه به دپټو په پولو باندې روانې شې، زبير اووئيل په الله قسم زماخيال دې چه دا ايت مبارکه: «فلا وربك لا يؤمنون حتی يحكموك» په دې سلسله کښې نازل شوې دې۔

## مضمون حديث:

**قوله:** ﴿عَنْ عُرْوَةَ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ أَنَّ رَجُلاً خَاصَمَ الزُّبَيْرَ فِي شِرَاجِ الْحَرَّةِ الَّتِي يَسْقُونَ بِهَا الخ﴾ دا مشهور حديث دې چه د هغې مضمون دا دې عبدالله بن زبير رضی الله عنه د خپل پلار واقعه نقل فرمائی چه يو سړې زما د پلار زبير سره شراج حره يعنی د مقام حره د اوبو د لختو په باره کښې چه د هغې په ذريعه به خلقو پټی اوبه کول جهګړه اوشوه هغه انصاری سړی زما پلار ته وئيل چه ته اوبه پريږده چه هغه تيريدو سره زما پټی ته راشی، زبير رضی الله عنه د داسې کولو نه انکار اوکړو خکه چه قاعده دا ده چه د کوم سړی پټې او زمکه پورته طرف ته وی يعنی نهر سره ترلې، اول حق هغه ته د خروب کولو دې د هغه نه پس د هغه نه د لاندې پټی، او دې انصاری سړی په زبير رضی الله عنه باندې د دې خلاف کول غوښتل چه کله دا مسئله رسول

¹): صحيح البخاري/المساقاة ٦ (٢٣٦٠)، ٨ (٢٣٦٢)، الصلح ١٢ (٢٧٠٨)، تفسير سورة النساء ١٢ (٤٥٨٥)، صحيح مسلم/الفضائل ٣٦ (٢٣٥٧)، سنن الترمذي/الأحكام ٢٦ (١٣٦٣)، تفسير النساء (٣٢٠٧)، سنن النسائي/القضاة ٢٦ (٥٤١٨)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٢ (١٥)، الرهون ٢٠ (٢٤٨٠)، (تحفة الأشراف: ٥٢٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٦٥) (صحيح)

الله ﷺ ته راغله نو هغوی د قاعدې مطابق زبیر ﷺ ته هم دغه اوفرمائیل چه ته خپل پټې خړوب کړه د هغې نه پس لاندې د خپل ګاونډی دپاره پریږده په دې باندې هغه انصاری خفه شو او وې وئیل ﴿ ان کان ابن عمتک ﴾ (چه ستاسو دا فیصله هم په دې وجه ده) چه هغه ستاسو د ترور ځوئې دې، زبیر بن العوام ﷺ د رسول الله ﷺ د ترور صفیه بنت عبد المطلب ځوئې دې (لم تسلم من عمامته الا هی علی الصحیح کذا فی التجرید للذهبی) ﴿ فَتَلَوَّنَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم الخ ﴾ د انصاری په دې قول باندې د رسول الله ﷺ د مخ مبارک رنګ بدل شو او هغوی زبیر ﷺ ته اوفرمائیل چه ړومبی هم ته اوبه ورکړه او ترڅو پورې چه اوبه د پټی آخری سر ته نه وی رسیدلې مه ئې پریږده یعنی اول خو رسول الله ﷺ د مسامحت او ایثار حکم فرمائیلې وو چه د خپل حق پوره کیدو نه مخکښې اوبه پریږده خو چه کله هغوی د دې انصاری طرز عمل اولیدو نو بیا رسول الله ﷺ په هغه باندې زجرا او تنبیها زبیر ﷺ ته د استیفاء حق حکم اوفرمائیلو (چه دا سړې د رعایت قابل نه دې) [1] په بذل المجهود کښې لیکلې دی که دا انصاری مسلمان وو نو د هغه دا قول زلت شیطانی وو په غصه کښې هغه ته احساس پیدا نه شو چه زه څه وایم او که منافق وو نو بیا خو د اشکال هیڅ خبره نشته اوپه هغه باندې به د انصاری اطلاق بناء بر اتحاد قبیله وی. قال المنذری واخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه واخرجه البخاری ومسلم من حدیث عبدالله بن زبیر عن ابیه واخرجه البخاری والنسائی من حدیث عروة بن زبیر عن ابیه آهـ (عون)

[۳۶۳۸] ([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الْوَلِيدِ يَعْنِي ابْنَ كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي مَالِكِ بْنِ ثَعْلَبَةَ، عَنْ أَبِيهِ ثَعْلَبَةَ بْنِ أَبِي مَالِكٍ، أَنَّهُ سَمِعَ كُبَرَاءَهُمْ يَذْكُرُونَ: أَنَّ رَجُلًا مِنْ قُرَيْشٍ كَانَ لَهُ سَهْمٌ فِي بَنِي قُرَيْظَةَ، فَخَاصَمَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَهْزُورٍ يَعْنِي السَّيْلَ الَّذِي يَقْتَسِمُونَ مَاءَهُ، فَقَضَى بَيْنَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ الْمَاءَ إِلَى الْكَعْبَيْنِ لَا يَحْبِسُ الْأَعْلَى عَلَى الْأَسْفَلِ".

دثعلبه بن ابی مالك ﷺ نه روایت دې فرمائی چه مادخپلو مشرانونه اوریدلی دی چه یوقریشي دبني قریظه قبیلې دیوکس سره په اوبوکښې شریك وو نودغه کس یوځل نبی ﷺ ته داوبو دهغې ولې په باره کښې فریاد وکړو چه دکومې ولې اوبه به خلقو پخپل مینځ کښې تقسیمولې، نبی ﷺ فیصله وکړه ددوی په مینځ کښې چه کله اوبه دګیټو پورې ورسیږی نو پاسنې کس به په لاندینې کس باندې اوبه نه بندوی.

**قوله:** ﴿ أَنَّ رَجُلًا مِنْ قُرَيْشٍ كَانَ لَهُ سَهْمٌ فِي بَنِي قُرَيْظَةَ فَخَاصَمَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فِي مَهْزُورٍ الخ ﴾ مهزور د بنی قریظه د یوې وادئ نوم دې او دلته د دې نه مراد سیل مهزوردې لکه چه د دې نه روستو روایت کښې دی یعنی د سیل مهزور په باره کښې د یو قریشي سړی چه د هغه څه زمکه یا باغ په ارض بنو قریظه کښې وو چا سره د اوبه خور په سلسله کښې اختلاف شو نو د هغې په باره کښې رسول الله ﷺ فیصله اوفرمائیله چه پورته

[1] ) پس امام بخاری رحمه الله په دې حدیث باندې باب قائم کړې دې باب اذا اشار الامام بالصلح فابي حکم علیه بالحکم البین)

[2] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الرهون ٢٠ (٢٤٨١) (صحيح)

پټې کښې چه کله اوبه پورته ګیتو ته راورسی نو د هغې نه پس دې اوبه بندوی بلکه وړاندې دې ورکړی. (والحديث سكت عنه المنذري اهـ (عون)

[۳۶۳۹](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنِي أَبِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَضَى فِي السَّيْلِ الْمَهْزُورِ أَنْ يُمْسَكَ حَتَّى يَبْلُغَ الْكَعْبَيْنِ، ثُمَّ يُرْسِلَ الْأَعْلَى عَلَى الْأَسْفَلِ".

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ دمهزور (د یو وادی نوم دې) دنهر په سلسله کښې داسې فیصله کړیوه کله چه ددې نهر اوبه ګیتو پورې ورسیږی نودا دې پاسنی کس (دچا چه زمکه بره وی) په لاندینی کس باندې اوبه بندې کړې اوبیاچې برنې کس لاندینی ته اوبه پریږدی.

[۳۶٤۰](2) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عُثْمَانَ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي طُوَالَةَ، وَعَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "اخْتَصَمَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَانِ فِي حَرِيمِ نَخْلَةٍ فِي حَدِيثِ أَحَدِهِمَا، فَأَمَرَ بِهَا فَذُرِعَتْ، فَوُجِدَتْ سَبْعَةَ أَذْرُعٍ، وَفِي حَدِيثِ الْآخَرِ، فَوُجِدَتْ خَمْسَةَ أَذْرُعٍ، فَقَضَى بِذَلِكَ"، قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ: فَأَمَرَ بِجَرِيدَةٍ مِنْ جَرِيدِهَا فَذُرِعَتْ.

دابوسعید خدری ؓ نه روایت دې فرمائی چه دوه کسانونبی ﷺ ته دهغې زمکې په باره کښې جګړه راوړه کومه چه دباغ خواته وه، دیوراوي بیان دې چه نبی ﷺ ددې زمکې دناپ کولو حکم وکړو نودغه زمکه اوه لاسه وختله او بل راوی وئیلی دی چه پنځه لاسه وختله اونبی ﷺ ددې فیصله وکړه، عبدالعزیز وئیلی دی چه نبی ﷺ هندي ونو په لختوباندې ددې زمکې دناپ کولو حکم کړې وو، اوبیادازمکه ناپ کړې شوه.

## شرح الحدیث :

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ اخْتَصَمَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- رَجُلَانِ فِي حَرِيمِ نَخْلَةٍ الخ : د حریم نه مراد خوا کښې ځائې دې لکه چه وئیلې شی حریم د مصلی د کوم ذکر چه په ابواب السترة کښې تیر شوی دې په دې حدیث کښې د حریم نخله ذکر دې یعنی د اونې نه لاندې هغه ځائې کوم چه د دې اونې حق ګڼرلې شی، مضمون حدیث دا دې چه د دوه سړو په حریم نخله کښې اختلاف پیدا شو د دې تشریح دا ده چه یو سړی د خپل ځان دپاره د ارض موات احیاء کول غوښتل [شاړه زمکه ئې آبادوله] اوس په دواړو زمکو باندې د فصل [جداوالی] دپاره د ځائې پریخودلو ضرورت وو اوس دا وه چه فصل ته څومره ځائې پریخودلې شی د هغې د مقدار په باره کښې د دې دواړو سره خپل مینځ کښې اختلاف شو، په دې باندې رسول الله ﷺ دا فیصله اوفرمائیله چه هغه نخله دې ناپ کړې شی پس هغه اووه ذراع وه رسول الله ﷺ څومره چه د نخله طول وو هم د هغې په اندازه ئې د حریم [جداوالی] مقدار متعین کړوپس اوس دهمیشه دپاره هم داقاعده او ضابطه شوه چه د دوه ارض موات ترمینځه دې هم د دې مطابق د فصل [جداوالی] دپاره ځائې پریخودلې شی.

(1): سنن ابن ماجه/الرهون ۲۰(۲٤۸۲)، (تحفة الأشراف: ۸۷۳۵) (حسن صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٤۰۸) (صحيح)

**قوله:** ﴿ قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ فَأَمَرَ بِجَرِيدَةٍ مِنْ جَرِيدِهَا فَذُرِعَتْ ﴾ يعني رسول الله ﷺ دا اوفرمائيل چه د دې نخله د يو ښاخ په مقدار دې ذراع اخستلو سره ناپ کړې شی پس هم داسې اوکړې شوه. والحديث سكت عنه المنذرى (عون)

وهذا آخر كتاب القضايا وهو آخر ما اردت ايراده فى هذا الجزء وهو الجزء الخامس من الدر المنضود، وقد شرعت فيه العشرة الاخيرة من شهر رمضان ۱٤۲۳ھ الذى هو شهر الصبر والغفران الذى انزل فيه القرآن، فى المدينة المنورة ([1]) على صاحبها الف الف تحية وسلام، وقد كنت نازلا فى العوالى فى بيت حبيب الله قربان على المظاهرى، وهو الذى اعاننى فى جمع المواد والاملاء والتحرير حسب اعانته فى الجزء الرابع فجزاه الله تعالى وسائر من اعاننى فى هذا التاليف احسن الجزاء وانا ارجو من لطف الله تعالى وكرمه ان يتم هذا الشرح فى ستة اجزاء فكانه بقى جزء واحد، واسال الله سبحانه وتعالى السداد والتوفيق لما يحب ويرضى وان يكمل هذا الشرح ويجعله خالصا لوجهه الكريم ولا حول ولا قوة الا بالله العلى العظيم وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا ومولانا محمد واله وصحبه اجمعين. آمين.

بسم الله الرحمن الرحيم

# أَوَّلُ كِتَابُ الْعِلْمِ

## دعلم متعلق بيان

**(ما قبل سره ربط او مناسبت):**

د دې كتاب د ماقبل سره مناسبت دا په ذهن كښې راځی چه د دې نه مخكښې د كتاب القضاء په شروع كښې حديث تير شوې دې. ﴿ الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ وَاحِدٌ فِي الْجَنَّةِ وَاثْنَانِ فِي النَّارِ الحديث ﴾ چه په هغې كښې دا دی چه كوم قاضی صاحب حق لره په حق پيژندلو سره د هغې مطابق فيصله اوكړی هغه به جنت ته ځی، او كوم قاضی چه په جهالت سره فيصله اوكړی هغه به جهنم ته ځی، د دې حديث نه د علم ضرورت او اهميت معلوميږی.

په صحيح مسلم كښې هم كتاب العلم په آخر د كتاب كښې ذكر دې. او هم دغه شان په جامع ترمذی كښې هم، مونږ په ﴿ الحل المفهم ﴾ كښې د علم حقيقت او د هغې انواع علوم شرعيه او غير شرعيه، او د علم د حصول حكم شرعی هلته ذكر كړې دې د هغې طرف ته دې رجوع اوكړې شی هلته مونږ دا خبره كړې ده چه په ظاهر د قياس تقاضه دا ده چه كتاب العلم په شروع كښې راوړلې شی لكه چه په صحيح بخاری كښې دی چه په هغې كښې د ټولو نه مخكښې كتاب الايمان، او په هغې پسې متصل كتاب العلم په شروع كښې ذكر شوې دې. په دې باره كښې هلته دا نكته ليكلې شوې ده: يمكن ان يقال لعل فيه اشارة لطيفة الى ان منتهى علمنا يساوى مبتداه، فان العلم لا نهاية له، لا سيما علم الشريعة فانه بحر لا ينفد، لكه چه د بعض اكابرينو صوفياء نه نقل دی چه كله د هغوی نه د تصوف د انتهاء او كمال په باره كښې تپوس اوكړې شو چه هغه څه دې: ما النهاية؟ فقال: العود الى البداية او هم دا مطلب

[1] ) الا ثلثة احاديث من الباب الاخير فاني كتبتها بعد الرجوع الي الهند في سهارنپور)

د یو صوفی د دې مقولې دې ـ هنوز روز اول است..... چه لا خو اوس زمونږ د بسم الله ورځې دی (یعنی په تصوف کښې مو قدم کیخودلې دې) شیخ الهند نور الله مرقده په تراجم د بخاری کښې یو ځائې کښې دا لیکلې دی چه د هر سړی جهل د هغه د علم نه زیات دې ځکه چه فی نفسه معلومات (هغه امور چه علم په هغې پورې متعلق وی) خو غیر متناهی دی او د هر سړی خپل معلومات متناهی ده. اهـ پس د هر سړی علم محدود او متناهی شو او د هغه جهل غیر متناهی.

**(د علم تعریف)**

د علم حقیقت او د هغې انواع، او مختلف نوع سره د هغې تقسیمات او هم دغه شان رؤس ثمانیه او د علم شرف او فضیلت وغیره امور په تفصیل سره نواب صدیق حسن خان په خپل مشهور تصنیف، ابجد العلوم... کښې ذکر کړې دی او هم دغه شان په کشف الظنون کښې هم دی او ددې نه مخکښې طابش کبری زاده په مفتاح السعادة ومصباح السیادة کښې.

د منطق په کتابونو کښې هم د علم په تعریف او تحقیق باندې کلام کړې شوې دې، پس یو تعریف دا کړې شوې دې: ﴿ الصورة الحاصلة من الشئ عند العقل ﴾ او په شرح عقائد نسفیه کښې د علم تعریف داسې کړې شوې دې ﴿ هو صفة يتجلى بها المذكور لمن قامت هى به ﴾ یعنی د یو څیز علم دا دې چه کله د هغه څیز نوم واخستلې شی نو فورا د هغه څیز صورت او نقشه ذهن ته راشی مثلاً چه کوم سړې زید پیژنی او د هغه نه خبر دې نو کله چه د هغه مخکښې د زید نو فورا د زید شکل او صورت د هغه اورید ونکی ذهن ته منتقل کیږی، او که هغه زید نه پیژنی نو هغه وخت به ئې هیڅ هم په ذهن کښې نه راځی.

## (بَابُ الْحَثِّ عَلَى طَلَبِ الْعِلْمِ)

## بَابٌ فِي فَضْلِ الْعِلْمِ

### د علم د فضیلت بیان

[۳٦٤١] (1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، سَمِعْتُ عَاصِمَ بْنَ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ جَمِيلٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ: "كُنْتُ جَالِسًا مَعَ أَبِي الدَّرْدَاءِ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ، فَجَاءَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا أَبَا الدَّرْدَاءِ، إِنِّي جِئْتُكَ مِنْ مَدِينَةِ الرَّسُولِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَدِيثٍ بَلَغَنِي أَنَّكَ تُحَدِّثُهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَا جِئْتُ لِحَاجَةٍ، قَالَ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَطْلُبُ فِيهِ عِلْمًا سَلَكَ اللَّهُ بِهِ طَرِيقًا مِنْ طُرُقِ الْجَنَّةِ، وَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَتَضَعُ أَجْنِحَتَهَا رِضًا لِطَالِبِ الْعِلْمِ، وَإِنَّ الْعَالِمَ لَيَسْتَغْفِرُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ وَالْحِيتَانُ فِي جَوْفِ الْمَاءِ، وَإِنَّ فَضْلَ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ عَلَى سَائِرِ الْكَوَاكِبِ، وَإِنَّ الْعُلَمَاءَ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ، وَإِنَّ الْأَنْبِيَاءَ لَمْ يُوَرِّثُوا دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَرَّثُوا الْعِلْمَ فَمَنْ أَخَذَهُ أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ".

د کثیر بن قیس نه روایت دې فرمائی چه زه د دمشق په جومات کښې دابو الدرداء ظهره ناست وم په دې وخت کښې هغه نه یو کس راغې او ورته ئې اووئیل چه زه تاته دنبی علیه السلام

(1): سنن الترمذي/العلم ١٩ (٢٦٨٢)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٧ (٢٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٩٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٦٧٥)، سنن الدارمي/المقدمة ٣٢ (٣٥٤) (صحيح)

دکلی مدینې نه راغلې یم دیوحدیث په باره کښې ما اوریدلې دی چه ته ئې د نبی ﷺ نه بیانوې، اوزه تاته دبل غرض دپاره نه یم راغلی، ابوالدرداء رضی الله عنه اووئیل یقینا مادنبی ﷺ نه اوریدلی دی چه فرمائیل ئې څوک چه دعلم دزده کولو دپاره په یوه لاره روان شي نوالله تعالی به ورته جنت ته دتلو په لاروکښې یوه لاره اسانه کړي، اودعلم دزده کونکي دخوشحالولودپاره فرښتې خپلې وزرې غوړوي او یقینا کوم مخلوق چه په زمکه او اسمان کښې وسیږي هغوی ټول دده دپاره مغفرت غواړي تردې پورې چه په اوبوکښې مهیان (کبان) هم دده دپاره مغفرت غواړي او په عبادت کونکي باندې دعالم دومره فضیلت دی لکه څنګه چه دڅوارلسمې شپې دسپوږمۍ فضیلت په ټولو ستورو باندې دی اویقینا عالمان دانبیاو وارثان دي اوانبیاو درهم اودینار په میراث کښې نه دي پریخودلې هغوی خوصرف علم په میراث کښې پریخودلې دې، یقیناچاچه علم حاصل کړو ده الویه برخه حاصله کړه.

## مضمون حدیث :

**قوله:** ﴿ عَنْ كَثِيرِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ أَبِي الدَّرْدَاءِ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ فَجَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا أَبَا الدَّرْدَاءِ الخ ﴾ کثیر بن قیس فرمائی چه زه یوه ورځ د ابوالدرداء رضی الله عنه سره ناست اوم نو یو سړې د هغوی خدمت ته راغلو او عرض ئې اوکړو چه زه تاسو ته د مدینې طیبې نه د یو حدیث اوریدو دپاره راغلې یم چه د هغې په باره کښې ماته معلومه ده چه تاسو هغه د رسول الله ﷺ نه روایت کوئ، زما د دې راتلو مقصد د دې نه سوا هیڅ نه دې، نو هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی ﴿ يَقُولُ « مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَطْلُبُ فِيهِ عِلْمًا سَلَكَ اللَّهُ بِهِ طَرِيقًا مِنْ طُرُقِ الْجَنَّةِ ﴾ شارحینو لیکلي دی چه په دې کښې دوه احتماله دی یو دا چه دې سائل ته د ابوالدرداء رضی الله عنه نه هم دا حدیث مطلوب وو کوم چه هغوی اوریدل غوښتل. دویم دا چه حدیث مطلوب خو به ورته هغوی روستو اوړولې وی خو دا حدیث ئې د هغه د عمل د تحسین او تبشیر دپاره واورلو، چه کوم انسان د علم د حصول دپاره سفر کوی نو ګویا الله پاک هغه د جنت په لاره باندې بوځی یعنی د علم د حصول دپاره تلل دا د انجام په لحاظ داسې دی لکه د جنت په لاره تلل. او د دې نه د روستو حدیث الفاظ دا دی ﴿ الاسهل الله له به طريقا الى الجنة ﴾ چه د طالب العلم دپاره الله پاک د جنت لاره آسانوی، په دې وجه علم ذریعه ده د عمل او عمل سبب دې د دخول جنت.

## شرح الحدیث :

﴿ وَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَتَضَعُ أَجْنِحَتَهَا رِضًا لِطَالِبِ الْعِلْمِ الخ ﴾ د حدیث د دې جملې په وضاحت کښې په بذل کښې د امام خطابی رحمه الله نه درې مطلبونه لیکلي دی:

۱ د وزرو کیخودلو نه مراد تواضع ده یعنی د طالب العلم مخکښې ملائک په تواضع سره راځی، کقوله تعالی واخفض لهما جناح الذل.....

۲ الامساك عن الطيران والنزول عنده، یعنی که په زمکه باندې طالب العلم وی او ملائک پورته الوځی نو هغه د دې طالب العلم د وجې نه خپل الوتل ختمولو سره لاندې ... ته

راکوزیږي لکه دا قول د رسول الله ﷺ: ﴿ ما من قوم يذكرون الله تعالى الا حفت بهم الملائكة وغشيتهم الرحمة ﴾

۳: د دې نه مراد د ملائکو خپلو وزرو لره د طالب العلم دپاره خوروَل دی هغه لره په خپل ځان باندې د سوروَلو دپاره چه هغه منزل مقصود ته اورسوی، مراد ترې نه اعانت دې او تیسیر په طلب د علم کښې. اهـ

وړاندې په حدیث کښې دی چه د عالم دپاره آسمان او زمکې والا استغفار کوی تر دې چه په اوبو کښې دننه مهیان (ګویا دا استغفار د بر نه تر بحر ته رسیږی)

او دا چه علماء د انبیاء کرامو وارثان دی ځکه چه د انبیاء کرام ﷺ میراث درهم او دینار نه وی بلکه د هغوی میراث علم وی (لهذا طالبان او علماء د انبیاء ﷺ وارثان شو)

**قوله:** ﴿ لمن اخذه اخذ بحظ وافر ﴾ دا جمله یا خو خبر دې چه کوم سړی علم حاصل کړو هغه لوئې دولت حاصل کړو، او یا انشائیه ده چه کوم سړي علم حاصل کړی او د هغې طالب وی نو هغې لره په ښه طریقه حاصلول پکار دی. د دې حدیث په روستو طریق کښې دا جمله هم ذکر شوې ده ﴿ ومن ابطاء به عمله لم يسرع به نسبه ﴾ یعنی کوم سړی لره چه د هغه عمل روستو کړی نو د هغه عالی نسب ئې نه شی مخکښې کولې.

## د علم فضیلت او برتری

د احادیث الباب نه د علم فضیلت ښکاره دې د ملائکو د طالب العلم سره په تواضع باندې پیش کیدل، د هغه دپاره د جنت لاره برابروَل، د انبیاء ﷺ وارث کیدل یقینا دا د انتهائی درجې اعزاز دې. حضرت شیخ رحمه الله په حاشیه د بذل کښې د علامه شامی نه په ۲۸۹/۵ کښې نقل کړی دی: ﴿ مذاكرة العلم ساعة خير من احياء ليلة وله الخروج لطلبه بدون اذن الوالدين لو ملتحيا، اما الامرد فلا ﴾ یعنی د لږ ساعت علمی مذاکره د ټولې شپې د عبادت نه افضل ده، بله دا چه د طلب علم دپاره د کور نه وتل بغیر د والدینو د اذن نه هم جائز دې په دې شرط چه هغه وتلو والا د ګیرې والا وی، د بې ګیرې هلک دپاره جائز نه دی. والحديث الاول اخرجه الترمذي وابن ماجه، والحديث الثاني اخرجه مسلم اتم منه واخرجه الترمذي مختصرا، قاله المنذري.

[۳٦٤٢](¹)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَزِيرِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، قَالَ: لَقِيتُ شَبِيبَ بْنَ شَيْبَةَ فَحَدَّثَنِي بِهِ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي سَوْدَةَ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ يَعْنِي، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ.

ابوسودة دابوالدرداء رضی الله عنه نه او هغه دنبی ﷺ نه دتیر شوي روایت په شان روایت بیان کړي دي.

[۳٦٤٣](²)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ رَجُلٍ يَسْلُكُ طَرِيقًا يَطْلُبُ فِيهِ عِلْمًا إِلَّا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ بِهِ طَرِيقَ الْجَنَّةِ، وَمَنْ أَبْطَأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ".

(¹): تفرد به أبو داود، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٩٥١) (صحيح)

(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٣٧٧)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الذكر والتوبة ١١ (٢٦٩٩)، سنن الترمذي/العلم ٢ (٢٦٤٦)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٧ (٢٢٦)، مسند احمد (٢/٢٥٢)، سنن الدارمي/المقدمة ٣٢ (٣٥٦) (صحيح)

د ابوهریره ﷺ نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی هرڅوك چه ددین دعلم دحاصلولو دپاره په یوه لاربانديې روان شي نوالله تعالی به ده ته دجنت لاره اسانه کړي اوچالره چه خپل عمل وروسته دیکه کړو نودده نسب ده لره نشي مخکښې کولې.

## بَابُ رِوَايَةِ حَدِيثِ أَهْلِ الْكِتَابِ

### بابـ د اهل کتابو نه روایت بیانول

یعنی اهل کتاب چه کوم مضمون بیان کړی نو آیا د اهل اسلام دپاره هغې لره نقل کول او د روایت کولو اجازت شته.

[٣٦٤٤](¹)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي نَمْلَةَ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ بَيْنَمَا هُوَ جَالِسٌ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ مُرَّ بِجَنَازَةٍ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ، هَلْ تَتَكَلَّمُ هَذِهِ الْجَنَازَةُ؟، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اللَّهُ أَعْلَمُ"، فَقَالَ الْيَهُودِيُّ: إِنَّهَا تَتَكَلَّمُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا حَدَّثَكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ فَلَا تُصَدِّقُوهُمْ وَلَا تُكَذِّبُوهُمْ، وَقُولُوا: آمَنَّا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ، فَإِنْ كَانَ بَاطِلًا لَمْ تُصَدِّقُوهُ، وَإِنْ كَانَ حَقًّا لَمْ تُكَذِّبُوهُ".

دابونمله ﷺ نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ سره ناست وم اودهغه سره یو یهودي هم موجود وو او په دې وخت کښې یوجنازه تیریدله یهودي اووئیل اې محمده ایا دا مړې خبرې کوي نبی ﷺ اوفرمائیل الله تعالی ښه خبر دې ددینه پس یهودي اووئیل داجنازه خبرې کوي لیکن ددنیا خلق ددې خبرې نه آوری نبی ﷺ اوفرمائیل تاسوته چه اهل کتاب کوي خبرې وکړي نوتاسوبه دهغې نه تصدیق کوئ اونه تکذیب بلکه داسې به وائی چه مونږه په الله اودهغه په رسولانو ایمان راوړې دې په دې وخت کښې که چرې دغه خبره دروغ وي نوتاسو ورته ریشتیا اونه وئیل اوکه چرې رښتیاوي نوتاسودروغ ونه ګڼرله.

**قوله:** ﴿ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ هَلْ تَتَكَلَّمُ هَذِهِ الْجَنَازَةُ فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « اللَّهُ أَعْلَمُ » الخ ﴾ د دې حدیث راوی ابو نمله صحابی دې چه د هغه نوم عمار بن معاذ ﷺ دې. او د هغوی نه روایت کونکې د هغوی خوئې ابن ابی نمله دې چه د هغه نوم نمله دې.

د حدیث مضمون دا دې چه یو کرت د رسول الله ﷺ مخکښې یو جنازه تیره شوه، یو یهودی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه آیا دا جنازه خبرې کوی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل "الله اعلم" هغه یهودی اووئیل چه او خبرې کوی کیدې شی هغه دا خبره په خپل کتاب کښې لیدلې وی چه د هغې په بناء باندې هغه داسې اووئیل. د یهودی په دې خبره باندې رسول الله ﷺ خاموش پاتې شو او صحابه کرامو ﷺ ته ئې اوفرمائیل چه دا یهود چه کومه خبره تاسو ته کوی په هغې کښې مه د هغوی تصدیق کوئ او مه ئې تکذیب، بلکه وایئ چه ﴿ امنا بالله ورسوله ﴾ چه نه د باطل تصدیق اوشی او نه د حق تکذیب. د دې نه معلومه شوه چه د اهل کتابو حدیث نه دی روایت کول پکار.

رسول الله ﷺ د کلام جنازه په باره کښې اوفرمائیل "الله اعلم" حالانکه د نورو احادیثو نه په

¹): تفرد به، أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٢١٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٣٦) (ضعيف)

قبر کښې د ملائکو د سوال په جواب کښې د مړي خبرې کول په کثرت سره راغلي دي اوس يا خو دې داسې اوئيلې شي چه دا حديث د شروع دې کوم وخت چه رسول اللهﷺ ته په قبر کښې د ملکين او د مړي د سوال جواب علم نه وو. او يا دې داسې اوئيلې شي چه په دې حديث کښې رسول اللهﷺ د مړي د کلام په باره کښې توقف فرمائيلې دې په دې وجه چه د دې حديث تعلق مخصوص هغه مړي سره وونه دمطلق کلام ميت سره، افاده العلامه السندی.

## په دوه مختلفو بابونو کښې تطبيق:

د دې نه پس خان پوهه کړه چه وړاندې په کتاب کښې د څو ابوابو نه پس هم د دې سلسلې يو باب راروان دې، باب الحديث عن بنی اسرائيل چه په هغې کښې مصنفؒ دوه احاديث ذکر فرمائيلې دی په ړومبی حديث کښې دی ﴿ حدثوا عن بنی اسرائيل ولا حرج ﴾ په دې باندې بعض شراح حطابی وغيره ليکلې دی چه د يهودو نه د روايت حديث ممانعت په شروع د اسلام کښې وو، د احکام اسلاميه او قواعد دنيه د استقرار نه مخکښې، بيا چه کله د احکام اسلاميه استقرار اوشو او صحابه کرامؓ د يهود د تحريفاتو او تخليطاتو نه خبر شو نو بيا رسول اللهﷺ صحابه کرامو ته د حديث اهل کتاب د روايت اجازت ورکړو چه په دې صورت کښې کذب او صدق او د حق او باطل ترمينځه د خلط کيدو خطره نه وه. ګويا دا هم داسې اوشو څنګه چه رسول اللهﷺ په شروع کښې د کتابت حديث نه صحابه کرامؓ منع کړې وو د حديث د قرآن کريم سره د التباس او د خلط کيدو د وجې نه، او بيا رسول اللهﷺ دا نهی منسوخ کړه او د کتابت حديث اجازت ئې ورکړو چه هر کله د خلط ويره پاتې نه شوه.

او امام مالکؒ د ﴿ حدثوا عن بنی اسرائيل ﴾ په باره کښې فرمائی، ﴿ المراد جواز التحديث عنهم بما کان من امر حسن اما ما علم کذبه فلا ﴾ يعنی مراد دا دې چه اهل کتاب چه کومې ښه ښه خبرې تاسو ته بيانوی د هغې د نقل اجازت دې خو د کومې خبرې غلط کيدل چه معلوم وی ښکاره ده چه هغه په دې کښې داخل نه ده (کذا فی العون عن الفتح) او په حاشيه د بذل کښې دی ﴿ قال القاری فی المرقاة : لا حرج فی نقل الا عاجيب عنهم، وفی الرد المختار عن ابن حجر : هذا الحديث يقيد حل السماع الا عاجيب والغرائب کل ما لا يتيقن کذبه لقصد الفرحة لا الحجة ﴾ د امام خطابیؒ په نزد د باب اول حديث منسوخ او د باب دوم د هغې دپاره ناسخ شو او د امام مالکؒ په نزد د اول حديث تعلق د احکام او مسائلو سره دې او د دويم تعلق د عام مفيدو خبرو سره يا غرائبو سره دې احکامو سره نه، د دواړو احاديثو محمل بيل بيل دې لهذا د ناسخ او منسوخ منلو حاجت نشته.

## د اسرائيلياتو حکم:

په تفسير معارف القرآن کښې مفتی محمد شفيعؒ په مقدمه کښې دعنوان" د اسرائيلياتو حکم" لاندې ليکلې دی : اسرائيليات هغه روايتونو ته وائی کوم چه د اهل کتابو يعنی يهودو او نصاراو نه مونږ ته رارسيدلې دی، حافظ ابن کثيرؒ ليکلې دی چه د اسرائيلياتو درې قسمونه دی ۱: هغه روايات چه د هغې صداقت د قرآن او حديث د نورو

دلائلو نه ثابت دي مثلا د فرعون غرق کيدل او د موسی علیه السلام کوه طور ته تشريف اوړل. ۲: هغه روايات د کوم دروغژن کيدل چه د قرآن او حديث د نورو دلائلو نه ثابت وی مثلا په اسرائيلی رواياتو کښې ذکر دی چه سليمان علیه السلام په آخر عمر کښې (والعياذ بالله) مرتد شو د دې ترديد د قرآن کريم نه ثابت دې د الله پاک ارشاد دې ﴿ وما كفر سليمن ولكن الشيطين كفروا ﴾ هم دغه شان مثلا په اسرائيلی رواياتو کښې ذکر شوی دی (معاذ الله) چه داؤد علیه السلام د خپل سپه سالار اوريا ښځې سره زنا کړې وه يا ئې هغه په مختلفو تدبيرونو سره قتل کړو او د هغه د ښځې سره ئې نکاح اوکړه، دا هم ښکاره دروغ دی او دا قسم روايات غلط ګڼړل لازم دی. ۳: هغه روايات چه د هغې په باره کښې قرآن او سنت او نور شرعی دلائل خاموش دی لکه د تورات احکام وغيره، دغه شان رواياتو په باره کښې د رسول الله ﷺ تعليم دا دې چه د هغې په باره کښې دې سکوت اختيار کړې شی، نه دې د هغې تصديق اوکړې شی او نه تکذيب، خو په دې مسئله کښې د علماء کرامو اختلاف دې چه آيا د داسې رواياتو نقل کول هم جائز دی يا نه؟ حافظ ابن کثير رحمه الله قول فيصل دا بيان فرمائيلې دې چه د هغې نقل کول جائز خو دی خو د هغې نه هيڅ فائده نشته ځکه چه شرعی اعتبار سره هغه حجت نه دې. (مقدمه تفسير ابن كثير)

دويم حديث په دې باب کښې چه کوم مصنف رحمه الله ذکر کړې دې هغه دا دې، ﴿ كان رسول الله ﷺ يحدثنا عن بنى اسرائيل حتى يصبح ﴾ يعنی ډير کرته به رسول الله ﷺ مونږ ته د شپې د بنی اسرائيلو حالات د ناوخته پورې بيانول تر دې چه صبا به شو، د رومبی باب نه غرض د مصنف رحمه الله اخذ الرواية عن اهل الكتاب نه منع کول يعنی د هغوی نه دې روايت وانخستلې شی لکه چه د دې باب د حديث نه معلوميږی، او د دويم باب غرض حديث د بنی اسرائيلو نه يعنی د هغوی نه روايت کول او د هغوی قصص او واقعات نقل کول چه دا جائز او ثابت دی لکه چه د دې باب په دويم حديث کښې ذکر شوې دی، او د دې باب حديث اول يعنی ﴿حدثوا عن بنى اسرائيل ولا حرج ﴾ دې هم په دې معنی باندې محمول کړې شی يعنی ﴿ ذكر قصصهم واحوالهم ﴾ په دې صورت کښې به په دې دواړو کښې هيڅ اختلاف نه وی چه د هغې دپاره د څه توجيه پيش کولو ضرورت راشی، هذا ما عندی ان كان صوابا فمن الله تعالى وان كان خطاء فمنى.

[۳۶۴۵] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ خَارِجَةَ يَعْنِي ابْنَ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ: "أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَعَلَّمْتُ لَهُ كِتَابَ يَهُودَ، وَقَالَ: "إِنِّي وَاللَّهِ مَا آمَنُ يَهُودَ عَلَى كِتَابِي، فَتَعَلَّمْتُهُ، فَلَمْ يَمُرَّ بِي إِلَّا نِصْفُ شَهْرٍ حَتَّى حَذَقْتُهُ، فَكُنْتُ أَكْتُبُ لَهُ إِذَا كَتَبَ، وَأَقْرَأُ لَهُ إِذَا كُتِبَ إِلَيْهِ".

د زيد بن ثابت نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام راته حکم وکړو چه ديهوديانو تحرير زده کړم چنانچه ما دنبی علیه السلام دپاره ديهوديانو ليکل زده کړل اوراته ئې اوفرمائيل په الله مې دې

(۱): صحيح البخاري/ الأحكام ۴۰ (۷۱۹۵ تعليقًا)، سنن الترمذي/الاستئذان ۲۲ (۲۷۱۵)، (تحفة الأشراف: ۳۷۰۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۶۷۵) (حسن صحيح)

قسم وي زما په يهوديانو اعتماد نشته چه هغوی به زما د طرف، به صحيح تحرير وکړي زيد وائی نيمه مياشت نه وه تيره شوي چه ما ددې خلقو ليکل په ښې طريقې سره زده کړل بيا چه به کله نبی علیه السلام دځه ليکلو حکم کولو نو هغه ليکل به ما کول او کله چه به نبی علیه السلام ته کوم تحرير راغې نو هغه به ورته ما لوستلو.

﴿ قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَتَعَلَّمْتُ لَهُ كِتَابَ يَهُودَ وَقَالَ « إِنِّي وَاللَّهِ مَا آمَنُ يَهُودَ عَلَى كِتَابِي ». فَتَعَلَّمْتُهُ فَلَمْ يَمُرَّ بِي إِلاَّ نِصْفُ شَهْرٍ حَتَّى حَذَقْتُهُ الخ﴾

زيد بن ثابت رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته حکم اوفرمائيلو چه زه د يهودو ژبه ليکل او لوستل زده کړم، او وې فرمائيل چه زما په دې باندې اطمينان نشته چه يو يهودی زما مضمون اوليکی، هغوی فرمائی چه د هغوی د حکم په تعميل کښې ما د يهودو ژبه د نيمې مياشتې نه هم په کمه موده کښې زده کړله، او په دې کښې ماته ښه مهارت حاصل شو. نو د دې نه پس به ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرف نه يهودو ته ليکل کول او کله چه به د هغوی د طرف نه هغوی ته څۀ خط راتلو نو هغه به ورته ما اورولو.

**فائده** : مشهوره دا ده چه انجيل په سريانئ ژبه کښې دې لهذا د نصارای ژبه هم هغه شوه او تورات په عبرانئ ژبه کښې دې لهذا په ظاهر د يهودو ژبه هم هغه شوه. د صحيح بخاری په ړومبی باب کښې د ورقه بن نوفل رضی الله عنه په باره کښې ذکر دی.

﴿ وکان يکتب الکتاب العبرانی فيکتب من الانجيل بالعبرانية ﴾ وفی هامش اللامع عن القسطلانی : قيل : ان التوراة عبرانية والانجيل سريانی، وعن سفيان : ما نزل من السمآء وحی الا بالعربية وکانت الانبياء علیهم السلام تترجمه لقومها اهـ وفيه عن الکرمانی : يفهم منه ان الانجيل ليس عبرانيا وهو المشهور اهـ.

### د کاتبين وحی صحابه کرامو رضی الله عنهم تعين او نومونه :

د دې حديث نه معلومه شوه چه زيد بن ثابت رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د کاتبينو نه وو، مشهور کاتبين د وحی شپږ حضرات دی: ۱: عثمان بن عفان، علی بن ابی طالب، ابی بن کعب، زيد بن ثابت، معاويه بن ابی سفيان، عبدالله بن سعد بن ابی السرح رضی الله عنهم د ډيرو علماء کرامو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په کاتبينو باندې مستقل تصانيف دی چه د هغې فهرست ډير اوږد دې [1] چه د هغې دوه قسمونه دی کاتبين وحی يعنی قرآن وغيره، د دې په باره کښې خو هم دا ليکلې دی چه هغوی شپږ کسان دی، او دويم قسم مطلق کاتبين د قرآن کريم د وحی نه علاوه، د هغوی تعداد بعض مصنفينو يو ديرش ليکلې دې (واحد وثلاثون) بعضو د دې نه کم او زيات ليکلې دې. والحديث اخرجه الترمذی وقال حسن صحيح، واخرجه البخاری تعليقاً فی کتاب العلم، قاله المنذری.

---

[1] مخکښې هم ليکلې شوې دی اواوس هم مثلاً مخکښې المصباح المضی فی کتاب النبی، او په نوې کتابونو کښې کتاب الوحی د احمد عبدالرحمن عيسی اوکتاب النبی صلی الله علیه وسلم د محمد مصطفی الاعظمی.

## باب في كِتَابَةِ الْعِلْمِ

### دعلم دليكلو بيان

اوپه بعض نسخوكښې ﴿ باب كتابة العلم ﴾ او په بعضو كښې ﴿ باب فى كتاب العلم ﴾ په دې مسئله اوددې متعلق احاديثو باندې كلام د الدر المنضود په مقدمه كښې تيرشوې دې.

[٣٦٤٦](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَخْنَسِ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُغِيثٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: "كُنْتُ أَكْتُبُ كُلَّ شَيْءٍ أَسْمَعُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيدُ حِفْظَهُ، فَنَهَتْنِي قُرَيْشٌ، وَقَالُوا: أَتَكْتُبُ كُلَّ شَيْءٍ تَسْمَعُهُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَشَرٌ يَتَكَلَّمُ فِي الْغَضَبِ وَالرِّضَا، فَأَمْسَكْتُ عَنِ الْكِتَابِ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَوْمَأَ بِأُصْبُعِهِ إِلَى فِيهِ، فَقَالَ: اكْتُبْ، فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، مَا يَخْرُجُ مِنْهُ إِلَّا حَقٌّ".

دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي كله چه به ما دنبي عليه السلام نه يو حديث واوريد ونود يادولو دپاره به مې ليكلو بيا زه قريشيانو د ليكلو نه منع كړم او راته ئې اووئيل به چه دنبي عليه السلام نه هره خبره واورې هغه ليكې، حالانكه نبي عليه السلام هم برانسان دې نه خودغمې اود خوشحالى په دواړو حالتونوكښې خبرې كوي ملجه دا واوريدل نوليكل كول مې پريخول او ددې ذكر مې نبي عليه السلام ته وكړونبي عليه السلام پخپلو ګوتو باندې دخپل مخ طرف ته اشاره وكړه اوحكم ئې وكړو په ليكل كوه په هغه پاك ذات مې دې قسم وي دچاپه قبضه كښې چه زما روح دې ددې خولې نه دحق نه علاوه بله خبره نه وځي.

[٣٦٤٧](٢) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ زَيْدٍ، عَنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْطَبٍ، قَالَ: دَخَلَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ عَلَى مُعَاوِيَةَ، فَسَأَلَهُ عَنْ حَدِيثٍ، فَأَمَرَ إِنْسَانًا يَكْتُبُهُ، فَقَالَ لَهُ زَيْدٌ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَنَا أَنْ لَا نَكْتُبَ شَيْئًا مِنْ حَدِيثِهِ، فَمَحَاهُ".

دعبدالله بن حنطب نه روايت دې فرمائي چه زيد بن ثابت رضي الله عنه معلوه رضي الله عنه ته لاړو اوديوحديث په باره كښې ئې ورنه تپوس وكړو او يو كس ته ئې حكم وكړو چه وې ليكې، زيد ورته اووئيل يقينا مونږ ته نبي عليه السلام حكم كړې دې چه مونږ به دهغه احاديث نه ليكو نوهغه ليكلې شوې حديث وران كړو.

[٣٦٤٨](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ، عَنِ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ النَّاجِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "مَا كُنَّا نَكْتُبُ غَيْرَ التَّشَهُّدِ وَالْقُرْآنِ".

د ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږبه (دنبى عليه السلام نه) د تشهد اوقران نه علاوه نور ليكل نه كول.

[٣٦٤٩](٤) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ. ح وحَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ مَزْيَدٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ:

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٩٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٢/٢، ١٩٢)، سنن الدارمي /المقدمة ٤٣ (٥٠١) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٧٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٢/٥) (ضعيف الإسناد)

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٢٥٨) (شاذ)

(٤): انظر حديث رقم: (٢٠١٧)، (تحفة الأشراف: ١٥٣٨٣) (صحيح)

"لَمَّا فُتِحَتْ مَكَّةُ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْخُطْبَةَ خُطْبَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ يُقَالُ لَهُ: أَبُو شَاهٍ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، اكْتُبُوا لِي، فَقَالَ: اكْتُبُوا لِأَبِي شَاهٍ".

د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله مکه فتحه شوه نوښي ﷺ دخطې ورکولو دپاره اودریدو، راوی وائی چه یویمني سړې هم اودریدو کوم چه په ابوشاه باندې مشهور وو، عرض ئې وکړوچه اې دالله رسوله دا خطبه دې زما دپاره ولیکلی شي نبی ﷺ اوفرمایل د ابوشاه دپاره ئې ولیکئ.

[۳٦٥٠]( )حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي عَمْرٍو: "مَا يَكْتُبُوهُ؟" قَالَ: "الْخُطْبَةَ الَّتِي سَمِعَهَا يَوْمَئِذٍ مِنْهُ".

د ولید نه روایت دې فرمائی چه ابوعمرونه ئې روئیل دده دپاره ئې څه شي لیکل؟ هغه اوونیل چه دتنئ ورځې اوروليي شوې خطبه.

## بَابٌ فِي التَّشْدِيدِ فِي الْكَذِبِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم

### نبی علیه السلام نه د دروغو نسبت کولو د سزا بیان

[۳٦٥١]( )حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْمَعْنَى، عَنْ بَيَانِ بْنِ بِشْرٍ، قَالَ مُسَدَّدٌ أَبُو بِشْرٍ، عَنْ وَبَرَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ لِلزُّبَيْرِ: مَا يَمْنَعُكَ أَنْ تُحَدِّثَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا يُحَدِّثُ عَنْهُ أَصْحَابُهُ؟ فَقَالَ: "أَمَا وَاللَّهِ لَقَدْ كَانَ لِي مِنْهُ وَجْهٌ وَمَنْزِلَةٌ، وَلَكِنِّي سَمِعْتُهُ يَقُولُ: مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا، فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ".

عامربن عبدالرحمن بن زبیردخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه مازبیرته روئیل ته دنورصحابه کرامو په شان دنبی ﷺ نه (په کثرت سره) حدیث روایت ولې نه کوې هغه وونیل خبردار ماته د نبی ﷺ ډیرتقرب حاصل وولیکن ما دهغه نه اوریدلي وو چه فرمائیل ئې څوک چه په قصد سره کومه دروغ خبره ماته منسوب کړي نوهغه دې دځان دپاره په جهنم کښې کورجوړ کړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قُلْتُ لِلزُّبَيْرِ مَا يَمْنَعُكَ أَنْ تُحَدِّثَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ ـصلى الله عليه وسلم الخ ﴾

### شرح الحدیث:

عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د خپل پلار زبیر رضی الله عنه نه تپوس اوکړو، چه ستاسو دپاره د احادیثو په بیانولو کښې څنګه چه ستاسو ملګری بیانوی څه څیز مانع دې؟ نو هغوی اوفرمائیل چه والله زما چه رسول الله ﷺ سره کومه مرتبه او خپلولی ده هغه ښکاره ده[۳] (چه د هغې په

[۱]: انظر حدیث رقم (۲۰۱۷)، (تحفة الأشراف: ۱۵۳۸۳) (صحیح)

[۲]: صحیح البخاري/العلم ۳۸ (۱۰۷)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٤ (۳٦)، (تحفة الأشراف: ۳٦۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱٦٥، ۱٦٦)، سنن الدارمي/المقدمة ۲٥ (۲۳۹) (صحیح)

[۳]: حضرت زبیربن العوام (رض) د عشره مبشره اصحابو نه دې اود حضورپاک (ص) د ترور خونې (پهوپی زاد) وو. هم ددوی باره کښې وئیلی شوی وو په شراح حره والا حدیث کښې چه: ان کان ابن عمتك، کما تقدم.

وجه باندې ما د رسول الله ﷺ نه په کثرت سره احاديث واوريدل، خو د دې باوجود د ترک روايت وجه دا ده چه) ما د رسول الله ﷺ نه دا حديث اوريدلې دې چه کوم سړې په ما باندې قصدا دروغ اوائی نو هغه دې په جهنم کښې خپلې استوګنې ته لاړ شی.

په يو حديث کښې دی چه د هغې مضمون داسې دې که هغه مسلمان وی او که کافر دواړو خايونو کښې ئې استوګنه جوړه ده په جنت کښې هم او په جهنم کښې هم، چه د ايمان د راوړلو په صورت کښې جنت والا استوګنې ته او د ايمان نه راوړلو په صورت کښې د جهنم والا استوګنه کښې هغه اوساتلې شي. وفی الفتح : قوله : فليتبوا ای فليتخذ لنفسه منزلا، فهو امر بمعنى الخبر وبمعنى التهديد او بمعنى التحكم، او دعاء على فاعل ذلک ای بواه الله ذلک اه امام بخاری رحمه الله دا حديث او د دې قسم مضمون نور روايات په ﴿باب اثم من كذب على النبى ﷺ﴾ کښې ذکر کړی دی، د بخاری په حديث کښې د ﴿ متعمدا ﴾ لفظ نشته، او حافظ په هغې باندې کلام هم کړې دې او وئيلې ئې دی چه د زبير رضی الله عنه د دې حديث نه په استدلال کولو کښې د دې خبرې دليل دې چه د کذب اطلاق مطلقا په خلاف واقع خبر ورکولو باندې دې که هغه عمدا وی يا خطاء او هم دا صحيح قول دې، او د خطا په صورت کښې اګر چه ګناه نشته.(1) خو زبير رضی الله عنه ته په اکثار فی الحديث کښې خطره پيدا شوه د دې خبرې چه هسې نه هغه په خطاء کښې واقع شی چه د هغې ورته شعور هم نه وی، او په مختصر د منذری کښې دی: واخرجه البخاری عن الزبير انه قال : والله ما قال متعمدا وانتم تقولون متعمدا اه...... امام ابن ماجه رحمه الله د خپل سنن په شروع کښې داسې مضامين او ابواب قائم کړې دی، باب التوقی فی الحديث عن رسول الله ﷺ او دغه شان باب التغليظ فی تعمد الكذب على رسول الله ﷺ.....

## بَابُ الْكَلَامِ فِي كِتَابِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ

### بغير د پوهې نه د قرآن کريم معنی بيا نول

[۳۶۵۲](2) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِسْحَاقَ الْمُقْرِءُ الْحَضْرَمِيُّ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ مِهْرَانَ أَخِي حَزْمٍ الْقُطَعِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو عِمْرَانَ، عَنْ جُنْدُبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَالَ فِي كِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ بِرَأْيِهِ فَأَصَابَ فَقَدْ أَخْطَأَ".

دجندب رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چاچه په قران کريم کښې دخپل عقل نه څه ووئيل نوکه ده صحيح هم وئيلې وې بيا ئې هم غلطی وکړه.

﴿ عَنْ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ قَالَ فِى كِتَابِ اللَّهِ بِرَأْيِهِ فَأَصَابَ فَقَدْ أَخْطَأَ » ﴾

### شرح الحديث :

کوم سړې چه د کتاب الله تفسير په خپله رائې باندې اوکړی نو که هغه تفسير صحيح هم وی نو هغه بيا هم خطا اوکړه، د﴿ برايه ﴾ په مطلب کښې دوه احتماله دی اول دا چه په خپله

(1) قلت وفيه انه اذا لا اثم فكيف الوعيد.

(2): سنن الترمذي/تفسير القرآن ۱ (۲۹۵۲)، (تحفة الأشراف: ۳۲۶۲) (ضعيف)

رائې باندې ئې اوکړي بغير د دليل نه د خپل خواهش د لاندې د خپل غرض د موافقت دپاره، دويم مطلب دا دې چه صرف په ظاهر عربيت باندې نظر ساتلو سره قواعد د صرف او نحو او لغت مخې ته کيخودلو سره بغير د دې نه چه د قرآن کريم غرائب او مبهمات وغيره کښې سماع او منقول طرف ته رجوع اوکړي، په مجمع البحار کښې ليکلي دی چه د دې دويمې معنی د اخستلو په صورت کښې د ممانعت هيڅ وجه نشته اهـ لهذا اول معنی مراد شوه. د اکابرينو د کلام نه معلوميږي د کوکب او د فيض الباری وغيره نه چه کوم تفسير د قواعد عربيه او اصول شرعيه په رڼا کښې په خپل اجتهاد باندې اوکړې شی هغه صحيح او معتبر دې بلکه کتب تفسير ددې قسم تفسير نه ډک دی ځکه چه هغه تفسير کوم چه براه راست د رسول الله ﷺ نه منقول وی هغه ډير کم او اقل قليل دی، لهذا تفسير بالرائې په دې معنی باندې ممنوع نه دې، او که د هر آيت د تفسير منصوص من الشارع کيدل ضروری وې نو بيا د رسول الله ﷺ دعاء د ابن عباس رضی الله عنهما په باره کښې ﴿ اللهم فقه فی الدين وعلمه التاويل ﴾ په ظاهر کښې غير مفيد کيږي. د دې حديث په شرح ليکلو سره غور کولو باندې يو خبره په ذهن کښې راتلله بيا هم دغه شان خبره د معارف القرآن په مقدمه کښې په ښه انداز کښې ملاؤ شوه هغه دلته نقل کولې شی په اختصار سره.

## (د تفسير ماخذ)

د ماخذ تفسير په باره کښې هغې کښې ليکلې شوې دی چه د علم تفسير د کتابونو مراجع او سرچينې شپږ دی:

١: قرآن کريم، د علم تفسير رومبې ماخذ خپله قرآن کريم دې پس اکثر داسې کيږي چه يو آيت مجمل وی او وضاحت ته محتاج وی نو خپله د قرآن کريم دويم آيت د هغې مفهوم لره واضح کړي (بيا دې لره په هغه مقدمه کښې په مثال سره واضح کړې شوې دې).

٢: حديث: د هغې وضاحت په هغه مقدمه کښې کړې شوې دې، خو د الدر المنضود په مقدمه کښې د علم حديث چه کوم تعريف او غرض بيان کړې شوې دې هغه د دې د وضاحت دپاره کافی دې.

٣: دريم او څلورم ماخذ د صحابه کرامو رضی الله عنهم اقوال او د تابعينو اقوال دی. او پنځم ماخذ لغت د عربو هغوی ليکی: د قرآن کريم ډير آيتونه داسې دی چه د هغې په پس منظر کښې چونکه څه شان نزول يا بل څه فقهی يا کلامی مسئله نه وی په دې وجه د هغې په تفسير کښې د رسول الله ﷺ يا صحابه او تابعينو اقوال منقول نه وی. پس د هغې د تفسير ذريعه صرف لغت عرب وی او د لغت په بنياد باندې د هغې تشريح کولې شی، د دې نه علاوه که د يو آيت په تفسير کښې څه اختلاف پيدا شی نو په مختلفو آراء کښې د محاکمې دپاره هم د علم لغت نه کار اخستلې شی، شپږم ماخذ تدبر او استنباط..... دا د دې آخری ماخذ دې د قرآن کريم نکات او اسرار يو داسې لوئې سمندر دې چه د هغې هيڅ حد او غاية نشته پس کوم سړی ته چه الله پاک په اسلامی علومو کښې بصيرت ورکړې وی هغه چه څومره څومره په دې کښې غور کوی هم هغه هومره اسرار او نکات ئې مخې ته راځی، پس مفسرين کرام د خپل خپل

تدبر نتائج هم په خپلو تفسیرونو کښې بیان کړی دی، خو دا اسرار او نکات هغه وخت قابل قبول وی چه کله هغه د ذکر کړې شوې پنځو ماخذو سره تصادم نه ساتی..... الی اخره.

﴿ مَنْ قَالَ فِي كِتَابِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ بِرَأْيِهِ فَأَصَابَ فَقَدْ أَخْطَأَ ﴾ چا چه د قرآن کریم تفسیر په خپله رائې باندې اوکړو پس که هغه صحیح هم وی نو هغه خطاء او غلطې اوکړو هغه لره د خپل طرف نه تفسیر نه وو کول پکار، د شارحینو د کلام نه معلومیږی چه دا حدیث په خپل عموم او ظاهر باندې نه دې بلکه موؤل دې نچه د هغې وجه هم ښکاره ده ځکه چه خپله قرآن کریم وائی چه کوم خلق د لغت عرب نه خبر دی او د چا ژبه چه عربی ده د هغوی دپاره د قرآن کریم پوهه آسانه ده لکه چه د دې آیت کریمه مقتضی ده ﴿حم - وَالْكِتَابِ الْمُبِينِ - إِنَّا جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴾ اهل عربو ته خطاب دې چه مونږ دا کتاب په عربئ ژبه کښې (کومه چه ستاسو مورنئ ژبه ده) په دې وجه نازل کړې دې چه تاسو په دې باندې بغیر د واسطې نه پوهه شئ.

**قوله:** ﴿ وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِي هَذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ - قُرْآنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِي عِوَجٍ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ - وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ ﴾ لهذا د دې آیتونو په رنړا کښې به د دې حدیث مطلب دا اخستلې شی چه د قرآن کریم د کومو آیتونو د مفهوم د فهم دپاره صرف د لغت عرب نه خبریدل او په هغې کښې مهارت کافی نه دې بلکه د هغې د فهم دپاره د نور علم ضرورت دې. اسباب نزول یا نور علوم شرعیه سره مناسبت نو هلته بغیر د هغه معلوماتو نه صرف په خپلې رائې او پوهې سره تفسیر کول جرأت او غلطی ده اګر چه هغه رائې صحیح ولې نه وی، په حدیث کښې د ﴿ برایه ﴾ لفظ هم دې طرف ته اشاره کوی ځکه چه ښکاره ده چه د رائې د استعمال ضرورت خو هم هلته پیښیږی چرته چه صرف د لغت په پوهه باندې کار نه شی چلیدې، هم د داسې موقعو په لحاظ سره په دې حدیث کښې فرمائیلې شوې دی چه په خپله رائې دې مطلب نه متعین کوی بلکه د نقل طرف ته دې رجوع اوکړې شی هم دغه شان علماء کرام فرمائی چه په کومو آیتونو کښې د وعظ او نصیحت مضمون دې د هغې پوهه خو هر هغه چا دپاره آسانه ده چه په عربئ باندې پوهیږی. خو د آیتونو نه استنباط د احکام شرعیه ګران کار دې، د هغې دپاره د متعلقه علومو نه واقفیت ضروری دې. والله تعالی اعلم بالصواب. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، وقال الترمذی هذا حدیث غریب، وقد تکلم بعض اهل العلم فی سهیل بن ابی حزم قاله المنذری.

## بَاب تَكْرِيرِ الْحَدِيثِ

### د یو حدیث د بار بار ویلو بیان

[۳۶۵۳] (۱) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي عَقِيلٍ هَاشِمِ بْنِ بِلَالٍ، عَنْ سَابِقِ بْنِ نَاجِيَةَ، عَنْ أَبِي سَلَّامٍ، عَنْ رَجُلٍ خَدَمَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا حَدَّثَ حَدِيثًا أَعَادَهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ".

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۷۶) (ضعيف الإسناد)

ابو سلام د داسې كس نه روايت كوي چاچه د نبي ﷺ خدمت كړي دي فرمائيل ئې چه رسول الله ﷺ به كله څه خبره كوله نو درې ځله به ئې تكراروله (ددې دپاره چه ښه ياد شي).

﴿ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ إِذَا حَدَّثَ حَدِيثًا أَعَادَهُ ثَلاَثَ مَرَّاتٍ ﴾

**شرح الحديث:**

يعنى چه كله به رسول الله ﷺ څه خبره بيان فرمائيله نو هغه به ئې درې كرته فرمائيله.

د دې نه هر كلام او هره خبره مراد نه ده بلكه بعض هغه خبرې دى كومې چه زياتې مهتم بالشان وى، چه هغه ښه يادې كړې شى، د تكرار دا وجه چه هغه ښه يادې شي څپله په بعضو رواياتو كښې راغلې ده، پس په بخارى كښې يو روايت دې ﴿ كان اذا تكلم بكلمة اعادها ثلاثا حتى تفهم عنه ﴾ او د ترمذى په يو روايت كښې دى ﴿ حتى تعقل عنه ﴾ او په بذل كښې دى، قلت ﴿ ويحتمل ان يكون التكرار لاجل سهولة الحفظ ﴾ د بخارى شريف په دې روايت كښې د كوم چه پورته حواله وركړې شوې ده د كوم راوى چه انس رضي الله عنه دې [1] دا زيادت دې ﴿ واذا اتى على قوم فسلم عليهم سلم عليهم ثلاثا، وفى رواية انه كان اذا سلم سلم ثلاثا﴾ د رسول الله ﷺ د درې كرته سلام په باره كښې مختلف توجيهات كړې شوې دى، يو داچه ددې نه سلام د استيذان مراد دې چه د هغې حد ثلاثا دې لكه چه د ابوموسى اشعرى رضي الله عنه په حديث كښې ذكر شوې دى، او يو توجيه دا كړې شوې ده چه دا په هغه صورت كښې ده چه كله د هغوى دا خيال وى چه دا سلام ټولو نه دې اوريدلې، كذا فى الفتح، او يو توجيه دا هم كړې شوې ده چه د اول سلام نه مراد سلام د استيذان، او د دويم سلام نه مراد سلام تحيه، يعنى مجلس ته د داخليدو په وخت، او دريم سلام عند الرجوع عن المجلس.

## بَابٌ فِي سَرْدِ الْحَدِيثِ

### د زر زر خبرو كولو بيان

[۳۶۵۴] ([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَنْصُورٍ الطُّوسِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، قَالَ: جَلَسَ أَبُو هُرَيْرَةَ إِلَى جَنْبِ حُجْرَةِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَهِيَ تُصَلِّي، فَجَعَلَ يَقُولُ: "اسْمَعِي يَا رَبَّةَ الْحُجْرَةِ مَرَّتَيْنِ، فَلَمَّا قَضَتْ صَلاَتَهَا، قَالَتْ: أَلاَ تَعْجَبُ إِلَى هَذَا وَحَدِيثِهِ؟ إِنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُحَدِّثُ الْحَدِيثَ لَوْ شَاءَ الْعَادُّ أَنْ يُحْصِيَهُ أَحْصَاهُ".

د عروه نه روايت دې فرمائى چه ابوهريره رضي الله عنه دام المومنين عائشې دحجرې په خواكښې ناست وو اوهغه په مونځ كښې مشغوله وه او ابوهريره به همدا خبره كوله چه اې حجرې والا واوره دوه پيرې ام المومنين چه كله دمونځ نه فارغه شوه نو اوئې وئيل اې عروه اياته ددې كس (ابوهريره) د خبرونه تعجب نه كوې؟ نبي ﷺ چه به كله خبرې كولې نوداسې به وې كه چرې شمارونكې شميرلې نوشميرلې ئې شوې (يعنى په صافو الفاظو سره به ئې خبرې كولې).

**قوله:** سرد الحديث يعنى مسلسل او زر زر خبره كول.

---

[1] په ظاهر دلته كتاب كښې ﴿عن رجل خدم النبي ﷺ﴾ نه مراد هم هغوى دى.

[2] صحيح البخاري/المناقب ۲۳ (۳۵۶۷)، (تحفة الأشراف: ۱٦٤٤٥)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الزهد ۷۱ (۲٤۹۳) (صحيح)

قوله: ﴿عَنْ عُرْوَةَ قَالَ جَلَسَ أَبُو هُرَيْرَةَ إِلَى جَنْبِ حُجْرَةِ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - وَهِيَ تُصَلِّي الخ﴾
عروه رحمه الله فرمائی چه يو كرت ابوهريره رضي الله عنه د عائشې رضي الله عنها حجرې ته نزدې كيناستلو او هغې دننه مونځ كولو، نو ابوهريره رضي الله عنه يو يا دوه كرته چه مورې بي بي لره خبره واورئ لره خبره واورئ! ډير احاديث ئې زر زر واورول او لاړو. غالبا دا احاديث اورول به د استصواب او تصديق دپاره وو. عروه فرمائی چه كله موربيبي رضي الله عنها مونځ پوره كړو نو د ابوهريره رضي الله عنه په دې استعجال باندې ئې د تعجب اظهار او نكير كولو سره اوفرمائيل چه د رسول الله ﷺ د كلام طريقه خو دا وه چه دومره په اطمينان به ئې خبره فرمائيله چه كه يو شمير كونكى د هغوى الفاظ شميركول غوښتل نوشميرلې ئې شو. ددې نه د روستو حديث مضمون هم داسې دې.
والحديث اخرجه البخاري ومسلم بنحوه، قاله المنذري

[۳۶۵۵](۱)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "أَلَا يُعْجِبُكَ أَبُو هُرَيْرَةَ؟ جَاءَ فَجَلَسَ إِلَى جَانِبِ حُجْرَتِي يُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْمِعُنِي ذَلِكَ، وَكُنْتُ أُسَبِّحُ، فَقَامَ قَبْلَ أَنْ أَقْضِيَ سُبْحَتِي، وَلَوْ أَدْرَكْتُهُ لَرَدَدْتُ عَلَيْهِ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَسْرُدُ الْحَدِيثَ مِثْلَ سَرْدِكُمْ".

د عروه نه روايت دې فرمائی چه م المومنين عائشې ووئيل ايا ابوهريره رضي الله عنه نه تعجب نه كوې چه راغلې دې او زما د حجرې په خواكښې ناست دې؟اودنبي عليه السلام نه حديث بيانوي اوماته ئې اوروي او زه په مونځ كښې مشغوله وم اوزما د فارغيدونه مخكښې پاڅيدو اولاړو، كه چرې ماليدلې رې نزما به ورته وئيلي ووچه نبي عليه السلام به ستاپه شان زر زر گفتگونه كوله.

## بَابُ التَّوَقِّي فِي الْفُتْيَا
### په فتوى وركولو كښې د احتياط بيان

[۳۶۵۶](۲)حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ الصُّنَابِحِيِّ، عَنْ مُعَاوِيَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الْغَلُوطَاتِ".

دمعاويه بن ابى سفيان رضى الله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبي عليه السلام منع فرمائيلې ده دمغالطي وركولونه.
﴿عَنْ مُعَاوِيَةَ رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنِ الْغَلُوطَاتِ﴾
او په يو روايت كښې دى ﴿عن الاغلوطات﴾ چه د هغې واحد اغلوطه دې بروزن افعولة. لكه احموقه د خمق نه. لكه چه د ابن عباس رضي الله عنهما په حديث كښې د تقسيم غنيمت په روايت كښې تير شوې دى چه هغوى د نجده حروى په باره كښې فرمائيلې وو، لولا ان ياتى احموقة لما كتبت اليه.....

---

(۱): صحيح البخاري/المناقب ۲۳ (۳۵۶۸تعليقًا)، م فضائل الصحابة ۳۵ (۲۴۹۳)، (تحفة الأشراف: ۱۶۶۹۸)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/المناقب ۹ (۳۶۴۳)، مسند احمد (۱۱۸/۶، ۱۵۷) (صحيح)
(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۵/۵) (ضعيف)

## شرح الحديث :

يعنى رسول الله ﷺ د نادر او مشکل مسائلو په باره کښې د سوال کولو نه منع فرمائيلې ده کومو ته چه تعنتی سوالونه وئيلې شی او په عربئ کښې ورته احاجی او الغاز، ځکه چه دا قسم سوالاتو سره مقصود مخاطب لاندې ښکاره کول او د هغه شرمنده کول وی، شارحينو ليکلې دی ﴿ وفيه كراهية التعمق والتكلف بما لا حاجة للانسان اليه من المسئلة ﴾ او په بذل کښې د ګنګوهی رحمه الله د تقرير نه نقل دی ﴿ ولا ضير فيه اذا كان لتدريب التلامذة ﴾ يعنى استاد که د شاګردانو نه داسې سوالات اوکړی چه په هغوی کښې بيداری او پوهه پيدا کړی نو په دې کښې هيڅ باک نشته لکه چه امام بخاری رحمه الله دې طرف ته اشاره کړې ده په مستقل ترجمة الباب سره ﴿ باب طرح الامام المسئلة على اصحابه ليختبر ما عندهم من العلم ﴾

او په دې کښې د ابن عمر رضی الله عنهما والا حديث ﴿ ان من الشجر شجرة لا يسقط ورقها انها مثل المسلم حدثونی ما هی ﴾ الحديث ذکر فرمائيلې دې، په دې باندې حافظ رحمه الله ليکی: والنهی الوارد فی ابی داؤد محمول على مالا نفع فيه او خرج على سبيل التعنت.....

### (د باب سره مناسبت)

د دې حديث د باب سره مناسبت چه د هغې مضمون احتياط فی الفتوی دې داسې کيدې شی چه په داسې قسم سوالاتو کښې ويره ده د عدم احتياط د مجيب د طرف نه.

[٣٦٥٧] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُقْرِءُ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ يَعْنِي ابْنَ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَفْتَى.

د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمانې چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی څوک چه بغير د علم نه فتوې ورکوي د دې ګناه به په ده باندې وی.

(٢) وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي نُعَيْمَةَ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ الطُّنْبُذِيِّ رَضِيعِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أُفْتِيَ بِغَيْرِ عِلْمٍ كَانَ إِثْمُهُ عَلَى مَنْ أَفْتَاهُ"، زَادَ سُلَيْمَانُ الْمَهْرِيُّ فِي حَدِيثِهِ: وَمَنْ أَشَارَ عَلَى أَخِيهِ بِأَمْرٍ يَعْلَمُ أَنَّ الرُّشْدَ فِي غَيْرِهِ فَقَدْ خَانَهُ، وَهَذَا لَفْظُ سُلَيْمَانَ.

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت ده فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلي دې څوک چه بغير د علم نه فتوی ورکوي د دې ګناه به په ده باندې وي، سليمان نهري په خپل روايت کښې دا اضافه کړې ده چاپه خپل يو مسلمان ورور ته په قصد سره داسې مشوره ورکړه چه هغه ته نقصان رسوي نو يقينا ده خيانت اوکړو، دا د سليمان د روايت الفاظ دی.

﴿ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « مَنْ أُفْتِىَ بِغَيْرِ عِلْمٍ كَانَ إِثْمُهُ عَلَى مَنْ أَفْتَاهُ » ﴾ يعنى کوم سړی ته چه د هغه د استفتاء جواب بغير د تحقيق نه ورکړې شي

[١]: سنن ابن ماجه/المقدمة ٨ (٥٣)، (تحفة الأشراف: ١٤٦١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢١/٢، ٣٦٥)، سنن الدارمي/المقدمة ٢٠ (١٦١) (حسن)

[٢]: سنن ابن ماجه/المقدمة ٨ (٥٣)، (تحفة الأشراف: ١٤٦١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢١/٢، ٣٦٥)، سنن الدارمي/المقدمة ٢٠ (١٦١) (حسن)

وی او بیا دې مستفتی عامی د هغه فتوې مطابق عمل کړې وی نو د هغې ګناه به په مستفتی باندې نه وی بلکه په مفتی باندې به وی، خو د دې مفتی نه مراد هغه جاهل مفتی دې کوم چه د علماء په هیئت او صورت کښې وی، او که یو عامی د ځان په شان عامی سړی نه تپوس کولو سره په هغې باندې عمل اوکړی نو په دې صورت کښې به ګناه په سائل باندې وی.

د مفتی په غلطه فتوی ورکولو باندې څه حکم دې؟ په دې باندې څه اندازه کلام په ابواب التیمم باب فی المجروح یتیمم کښې تیر شوې دې. هغې ته رجوع اوکړئ. والحدیث اخرجه ابن ماجه مقتصرا علی الفصل الاول بنحوه، قاله المنذری.

## بَابُ كَرَاهِيَةِ مَنْعِ الْعِلْمِ

### د علم پټولو د ګناه بیان

[۳٦۵۸] (¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَكَمِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ فَكَتَمَهُ أَلْجَمَهُ اللَّهُ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوک چه دچانه دعلم دیوې مسئلې تپوس اوکړې اوهغه ورته جواب ورنکړې او مسئله پټه کړې نود قیامت په ورځ باندې به دې کس ته د اور واګې واچولې شي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ فَكَتَمَهُ أَلْجَمَهُ اللَّهُ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ » ﴾

### شرح الحدیث:

یعنی د کوم سړی نه چه څه مسئله اوتپوسلې شي چه هغه ته پرې علم وی او هغه ئې پټه کړی نو د قیامت په ورځ باندې به هغه مفتی ته الله پاک په خوله کښې د اور واړې واچوی. (اعاذنا الله منه)

په خوله کښې د واړو کیدل د کلام کولو نه مانع وی، نو چونکه دا سړې هم د مسئلې د بیانولو نه منع وو او ګویا هغه په خپله خوله کښې واړې اچولې وې نو دغه شان به الله پاک هم هغه ته د هغه د ګناه مشابه سزا ورکوی. قال الخطابی: وخرج هذا علی معنی مشاكلة العقوبة الذنب كقوله تعالى {الذين يأكلون الربا لا يقومون په دې حدیث کښې چه د کوم علم د کتمان نه منع کړې شوې ده د دې نه مراد هغه علم دی چه د هغې تعلیم لازمی او ضروری دی، لکه چه یو کافر د اسلام د قبلولو اراده اوکړی او د چا نه تپوس اوکړی چه ماته بیان کړئ دین اسلام څه څیز دې، د دې څه حقیقت دې، یا لکه چه څنګه یو جاهل سړې چه هغه له د مانځه طریقه نه ورځی او حال دا چه د مانځه وخت راغلو او هغه د چا نه د مانځه کیفیت او طریقه معلومه کړی، او دغه شان نور مسائل، او کوم علم

(¹): سنن الترمذي/العلم ۳ (۲٦۴۹)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۲۴ (۲٦۱)، (تحفة الأشراف: ۱۴۱۹٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲٦۳، ۳۰۵، ۳۴۴، ۳۵۳، ۴۹۵، ۴۹٦، ۴۹۹، ۵۰۸) (حسن صحيح)

چه د مستحباتو د قبيلې نه وي چه د هغې د پيژندلو خلقو ته څه خاص ضرورت نه وي هغه علم په دې كښې داخل نه دې (بذل عن الخطابي) او په حاشيه د بذل كښې دي ﴿ وقيل المراد به علم الشهادة كذا في المرقاة ﴾ يعني يو سړي ته د مدعي د كلام د صادق كيدلو علم دې او د هغه نه دې باره كښې شهادت طلب كړې نو هغه انكار اوكړي، وفيها ايضا وقيده في الكوكب بان لا تكون في الاظهار مقسدة اهـ...

### ايا حديث الباب موضوعي دې؟

د دې حديث په باره كښې په حاشيه د بذل كښې ليكلې دي: ﴿ تكلم بعضهم على الحديث بانه ضعيف بل موضوع،وفي المقاصد الحسنة: حسنه الترمذي وصححه الحاكم ﴾ اهـ د دې كتاب په مقدمه كښې هم د دې حديث په باره كښې او د دې نه علاوه هم چه په كومو احاديثو باندې ابن الجوزي رحمه الله د وضع حكم لګولې دې، ذكر كړې شوې دى او دا چه د دې قسم په ابوداؤد كښې نهه احاديث دى، حافظ منذري رحمه الله د دې حديث په باره كښې ليكي: واخرجه الترمذي وابن ماجه، وقال الترمذي حديث حسن، هذا آخر كلامه، وقد روى عن ابي هريرة رضي الله عنه من طريق منها فيها مقال، والطريق التي اخرجه بها ابوداؤد طريق حسن، فانه رواه عن التبوذكي وقد احتج به البخاري ومسلم عن حماد بن سلمة وقد احتج به مسلم واستشهد به البخاري عن علي بن الحكم وهو ابو الحكم البناني، قال الامام احمد ليس به باس، وقال ابوحاتم الرازي لا باس به صالح الحديث، عن عطاء بن ابي رباح وقد اتفق الامامان على الاحتجاج به ﴾

د دې نه پس هغوي فرمائي چه دا حديث د ډيرو صحابه كرامو نه نقل دې چه د هغوي نومونه ئې ذكر كړې دى، في كل منها مقال، او حافظ ابن القيم په تهذيب السنن كښې په دې باندې نور هم تفصيلي كلام فرمائيلې دې فارجع اليه لو شئت...

## بَابُ فَضْلِ نَشْرِ الْعِلْمِ

### د علم نشر كولو او خورولو بيان

[۳۶۵۹][1] حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَسْمَعُونَ، وَيُسْمَعُ مِنْكُمْ، وَيُسْمَعُ مِمَّنْ سَمِعَ مِنْكُمْ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي تاسو زمانه علم اورئ اوخلق به ستاسونه علم آوري اوستاسونه چه اعلم واوريدو دهغوي نه به ئې نورخلق واوري.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « تَسْمَعُونَ وَيُسْمَعُ مِنْكُمْ وَيُسْمَعُ مِمَّنْ سَمِعَ مِنْكُمْ » ﴾

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائي صحابه كرامو ته چه تاسو علم زمانه اورئ او بيا به روستو ستاسو نه اوريدلې شي او د هغوي نه پس به بيا د هغه چا نه اوريدلې شي چا چه ستاسو نه اوريدلې

[1]: تفرد به أبوداود، مسند احمد (۳۲۱/۱)، (تحفة الأشراف: ۵۵۳۲) (صحيح)

وی، یعنی صحابه کرام رضی الله عنهم به دین اوری د رسول الله ﷺ نه او تابعین به اوری د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه او تبع تابعین به ئې اوری د تابعینو نه، وهلم جرا.... ګویا په د ښکښې تحریض دې په نشر د علم باندې چه تاسو دا علم زما نه ښه محفوظ کړئ او دا خپلو روستو خلقو ته اورسوئ او هغوی دې هم روستو خلقو ته اورسوی.

[۳٦٦٠] ( ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ مِنْ وَلَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "نَضَّرَ اللَّهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا حَدِيثًا فَحَفِظَهُ حَتَّى يُبَلِّغَهُ، فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ إِلَى مَنْ هُوَ أَفْقَهُ مِنْهُ، وَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ لَيْسَ بِفَقِيهٍ".

د زید بن ثابت رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام و مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې الله تعالی دې هغه کس تر اوتازه اوساتې چا چه زمونږ نه حدیث واوریدو او یاد ئې کړو تردې چه دایې نورو ته هم ورسوو ځکه چه ډیر خلق داسې دی چه ددین خبره دخپل ځان نه پوهو خلقو ته هم رسوي څوك چه پخپله فقیهان نه دي.

﴿عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « نَضَّرَ اللَّهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا حَدِيثًا فَحَفِظَهُ الحديث ﴾ ددې حدیث شرح وغیره ددې کتاب په مقدمه کښې تیره شوې ده.

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، وقال الترمذی: حديث حسن واخرجه ابن ماجة من حديث عباد والد يحيى عن زيد بن ثابت رضی الله عنه قاله المنذری.

[۳٦٦١] ( ) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَهْلٍ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "وَاللَّهِ لَأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ بِهُدَاكَ رَجُلًا وَاحِدًا خَيْرٌ لَكَ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ".

سهل بن سعید دنبی کریم ﷺ نه روایت بیانوي فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیې دې په الله ئې دې قسم وي که چرې بوکس ته ستاپه ذریعه هدایت وکړی شي نوداستاد پاره دسرو اوښانونه غوره دي.

﴿عَنْ سَهْلٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « وَاللَّهِ لأَنْ يُهْدَى اللَّهُ بِهُدَاكَ رَجُلٌ وَاحِدٌ خَيْرٌ لَكَ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ » ﴾

د حدیث مضمون واضح دې چه که د یو سړی په کوشش سره یو سړې هم هدایت بیا مومی نو هغه د هغه دپاره د سرو اوښانو نه افضل دې کوم چه د عربو په نزد محبوب ترین څیز وو، د دې نه هم د نشر علم فضیلت معلومیږی.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی مطولا فی غزوة خيبر، وقوله هذا العلی رضی الله عنه قاله المنذری.

## باب الْحَدِيثِ عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ

### د بنی اسرائیلو نه د روایت نقل کولو بیان

په دې باب باندې کلام څو ابواب مخکښې په ﴿باب حدیث اهل الكتاب ﴾ کښې تیر شو.

[1]: سنن الترمذي/العلم ٧ (٢٦٥٦)، (تحفة الأشراف: ٣٦٩٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المقدمة ١٨ (١٢٣٠)، مسند احمد (٤٣٧/١، ١٨٣/٥)، سنن الدارمي/المقدمة ٢٤ (٢٣٥) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٧٣٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ١٠٢ (٢٩٤٢)، ١٤٣ (٣٠٠٩)، المناقب ٩ (٣٧٠١)، المغازي ٣٨ (٤٢١٠)، صحيح مسلم/فضائل الصحابة ٤ (٢٤٠٦)، مسند احمد (١٨٥/١) (صحيح)

[۳۶۶۲] ([1]) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَدِّثُوا عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَا حَرَجَ".

د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دبني اسرائیلو نه حدیث بیانوی او په دې کښې هیڅ حرج نشته.

[۳۶۶۳] ([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذٌ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي حَسَّانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: "كَانَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُنَا عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ حَتَّى يُصْبِحَ مَا يَقُومُ إِلَّا إِلَى عُظْمِ صَلَاةٍ".

دعبدالله بن عمرو رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه مونږته به نبی کریم صلی الله علیه وسلم دبني اسرائیلو واقعات بیانول تردې چه سحریه شواونه به پاڅید ومګر دمونځ په اراده باندې.

## بَابٌ فِي طَلَبِ الْعِلْمِ لِغَيْرِ اللَّهِ تَعَالَى

### باب د غیر الله دپاره د علم حاصلولو د بدئ بیان

[۳۶۶۴] ([3]) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُرَيْجُ بْنُ النُّعْمَانِ، حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ، عَنْ أَبِي طُوَالَةَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَعْمَرٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا مِمَّا يُبْتَغَى بِهِ وَجْهُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ لَا يَتَعَلَّمُهُ إِلَّا لِيُصِيبَ بِهِ عَرَضًا مِنَ الدُّنْيَا لَمْ يَجِدْ عَرْفَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" يَعْنِي رِيحَهَا.

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی څوک چه دیني علم ددنیا دغرض دپاره حاصل کړي نود قیامت په ورځ به دجنت بوئي قدرې هم محسوس نکړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا مِمَّا يُبْتَغَى بِهِ وَجْهُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ لاَ يَتَعَلَّمُهُ إِلاَّ لِيُصِيبَ بِهِ عَرَضًا مِنَ الدُّنْيَا لَمْ يَجِدْ عَرْفَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الخ﴾

يعنى كوم سړي چه د داسې علم په ذريعه چه په هغې باندې د الله پاک رضا حاصلولې شی. يعنى علم دين وشريعت، هغه د يو متاع دنيوى د حصول دپاره زده کړی نو د قيامت په ورځ باندې به هغه د جنت خوشبوئی بيانه مومی.

### شرح الحديث:

په دې حديث کښې د داسې سړی دپاره على وجه المبالغة د دخول جنت نفى ده چه جنت څه د هغې خوشبوئی به هم لاندې نه کړی. خو د اهل سنت په نزد داسې قسم احاديث موؤل دی، او تاويل دا دې چه د دې نه د دخول اول نفى مراد ده، يعنى بغير د سزا خوړلو نه جنت ته نه شی داخليدې، يو تاويل دا هم کړې شوې دې چه اګر چه داسې سړې که جنت ته داخل هم شی د هغه ځائې خوشبوئی به ورته حاصله نه وی، او يو تاويل مسموع د بعض مشائخو نه دا دې چه نيکان خلق کوم چه به د قيامت په ورځ جنتيان وی هغوی ته به په قيامت کښې د جنت ښکلې خوشبوئی محسوسيږی، نو په دې حديث کښې د دې نفى ده کومه چه د ﴿مما

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۰۷۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۷۴/۲، ۵۰۲، ۴۶/۳، ۵۶) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۹۳۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۷/۴) (صحيح الإسناد)

[3]: سنن ابن ماجه/المقدمة ۲۳ (۲۵۲)، (تحفة الأشراف: ۱۳۳۸۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۳۸/۲) (صحيح)

يبتغي وجه الله ﴾ د قيد نه مستفاد کيږي چه دا وعيد د علم دين په باره کښې دې که يو سړې دنيوي علومو لره د دنيا د ګټې دپاره حاصل کړي نو په دې کښې هيڅ باک نشته، اصل کښې دا دنيوي علوم کوم چه حقيقة علم هم نه دې بلکه د کار کسب د قبيل نه دې. علم حقيقي هم هغه دې چه په هغې سره د حق معرفت حاصل شي او د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ د اطاعت او د رضا کولو طريقه معلومه شي. قال الله تعالى ﴿ انما يخشى الله من عباده العلماء ﴾ والحديث اخرجه ابن ماجه، والترمذي وقال: هذا حديث حسن، قاله المنذري

## بَابٌ فِي الْقَصَصِ

### د قصو بيانولو بيان

[۳۶۶۵]()حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُسْهِرٍ، حَدَّثَنِي عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ الْخَوَّاصُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي عَمْرٍو السَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللَّهِ السَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَقُصُّ إِلَّا أَمِيرٌ، أَوْ مَأْمُورٌ، أَوْ مُخْتَالٌ".

د عوف بن مالك اشجعي رضی الله تعالى عنه نه روايت دې فرمائی چه (په وعظ او نصيحت کښې). قصې نه بيانوي مګر امير يا مامور او مغرور او متکبره کس.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الأَشْجَعِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « لاَ يَقُصُّ إِلاَّ أَمِيرٌ أَوْ مَأْمُورٌ أَوْ مُخْتَالٌ » ﴾

### شرح الحديث:

قصص يعني وعظ او تذکير هم د دې نه دې قاص يعني واعظ او مبلغ، په دې حديث کښې دا د ی چه دا عمل قصص يا خو امير کوی، يا د هغه نه لاندې مامور، او که د دې دواړو نه علاوه ئې بل څوک کوی نو هغه دريم سړې مختال او متکبر دې.

**(اشکال: ايا هر مسلمان وعظ نه شی کولې؟)**

دلته سوال دا واردیږی چه وعظ نصيحت خو هر عالم او مومن کولې شی، او د دې حديث نه معلوميږی چه دا کار صرف د امير يا مامور دې، دبل چا دپاره مناسب يا جائز نه دی، په دې وجه بعض شراح د دې دا تاويل کړې دې چه دا په خطبه باندې محمول دې، مطلق وعظ او نصيحت نه دې مراد ځکه چه خطبه ورکول هغه د امير يا د مامور منصب دې، يو تاويل دا هم په فهم کښې راځی چه ممکن ده دا مراد وی چه ﴿ فی حضرة الامير اوالمامور ولا يقص الا مختال ﴾ يعني کوم سړې چه د امير يا د هغه د مامور په موجودګئ کښې وعظ او نصيحت کوی هغه متکبر دې لهذا امام يا هغه سړې چه د امام د طرف نه وی د هغه په موجودګئ کښې بل سړی له نه دی پکار که هغه داسې کوی نو پوهه شه چه هغه متکبر دې، د ټولو نه غوره توجيه هغه ده کوم چه د جناب ګنګوهی په تقرير د ابوداؤد کښې ده: ﴿القاص المخلص مامور من الله تعالى، وذکر فان الذکرى تنفع المومنين ﴾ يعني په اخلاص سره وعظ او تقرير کونکې هم د الله پاک د طرف نه مامور دې لکه چه په آيت کريمه کښې دی پس د آيت کريمه

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳/۶، ۲۷، ۲۹) (حسن صحيح)

په عموم کښې به دا ذکر کړې شوې سرې هم داخل شی ﴿ فلله در الشيخ رحمه الله ﴾

[٣٦٦٦]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنِ الْمُعَلَّى بْنِ زِيَادٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ بَشِيرٍ الْمُزَنِيِّ، عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ النَّاجِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "جَلَسْتُ فِي عِصَابَةٍ مِنْ ضُعَفَاءِ الْمُهَاجِرِينَ، وَإِنَّ بَعْضَهُمْ لَيَسْتَتِرُ بِبَعْضٍ مِنَ الْعُرْيِ، وَقَارِئٌ يَقْرَأُ عَلَيْنَا إِذْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ عَلَيْنَا، فَلَمَّا قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَكَتَ الْقَارِئُ، فَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: مَا كُنْتُمْ تَصْنَعُونَ؟، قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُ كَانَ قَارِئٌ لَنَا يَقْرَأُ عَلَيْنَا، فَكُنَّا نَسْتَمِعُ إِلَى كِتَابِ اللَّهِ، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ مِنْ أُمَّتِي مَنْ أُمِرْتُ أَنْ أَصْبِرَ نَفْسِي مَعَهُمْ، قَالَ: فَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسْطَنَا لِيَعْدِلَ بِنَفْسِهِ فِينَا، ثُمَّ قَالَ بِيَدِهِ: هَكَذَا فَتَحَلَّقُوا وَبَرَزَتْ وُجُوهُهُمْ لَهُ، قَالَ: فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرَفَ مِنْهُمْ أَحَدًا غَيْرِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَبْشِرُوا يَا مَعْشَرَ صَعَالِيكِ الْمُهَاجِرِينَ بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَبْلَ أَغْنِيَاءِ النَّاسِ بِنِصْفِ يَوْمٍ وَذَاكَ خَمْسُ مِائَةِ سَنَةٍ".

دابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه دغریبو فقیرانو مهاجرینوپه ډله کښې کښیناستم اوپه مونږ کښې دقران یوقاري دقران تلاوت کولو په دې وخت کښې نبی علیه السلام راغې او مونږ ته مخامخ ودریدو نوقاري خاموش شواونبی علیه السلام په مونږ سلام واچولو اوتپوس ئې وکړو تاسو څه کول؟ مونږ عرض وکړو دې قاري د قران کریم تلاوت کولو او مونږ قران کریم ته غوږ ایخودلې ور بیا نبی علیه السلام اوفرمائیل ټول تعریفونه دهغه الله تعالی دپاره دي چاچه زماپه امت کښې داسې خلق پیداکړل دچاسره چه دکښیناستلوماته حکم شوې دې، راوی وائی بیانبی علیه السلام زمونږ په مینځ کښې کښیناستو ددې دپاره چه مونږ ټولوته یو برابر نزدې وی اوبیا ئې دخپلو مبارکو لاسونونه حلقه جوړه کړه اوکښیناستونه به اشاره وکړه نونول خلق دحلقې په شکل کښې کښیناستل اودتامو کسانو مخونه نبی علیه السلام ته متوجه شول، ابوسعید خدری (رض) فرمائی ماته معلومه شوه چه زمانه کې علاوه په دې کسانو کښې بل کس نه پیژندو نبی علیه السلام اوفرمائیل اې دفقیرانو اود مهاجرینو بلې تاسوته دې دقیامت په ورځ باندې دپوره نور بشارت وې، تاسو خوشحاله شی چه تاسو به دمالداره خلقونه نیمه ورځ مخکښې جنت ته ځې اوهغه نیمه ورځ به دپنځه سوو کالوسره برابروی.

## (مضمون الحديث)

﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ جَلَسْتُ فِي عِصَابَةٍ مِنْ ضُعَفَاءِ الْمُهَاجِرِينَ وَإِنَّ بَعْضَهُمْ لَيَسْتَتِرُ بِبَعْضٍ مِنَ الْعُرْيِ وَقَارِئٌ يَقْرَأُ عَلَيْنَا ﴾

د حدیث مضمون واضح دې ﴿ وان بعضهم ليستتر بعض ﴾ یعنی دې حضراتو سره د اغوستلو دپاره کپړې هم نه وې چه د هغې په وجه باندې د یو بل نه شاته خپل بدنونه پټول ﴿ فَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– وَسْطَنَا لِيَعْدِلَ بِنَفْسِهِ فِينَا ﴾ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ ترمینځه کیناستلو مونږ سره دخپلې برابرئ ښکاره کولودپاره، یعنی د تواضع په طور هغوی داسې اوکړل ﴿ ثُمَّ قَالَ بِيَدِهِ هَكَذَا فَتَحَلَّقُوا وَبَرَزَتْ وُجُوهُهُمْ لَهُ ﴾ یعنی بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل لاس

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٩٧٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/ الزهد ٦ (١٤٢٢)، (قوله: فقراء المهاجرون يدخلون الجنة قبل أغنياء الناس—) مسند احمد (٣/٦٣، ٩٦) (ضعيف)

مبارک سره اشاره کولو سره په دې باندې پوهه کړل چه تاسو ټول حلقه کښې کینئ، پس هغوی ټول د حلقې شکل کښې کیناستل او د ټولو مخونه د رسول الله ﷺ طرف ته شو. ﴿ أَبْشِرُوا يَا مَعْشَرَ صَعَالِيكِ الْمُهَاجِرِينَ بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الخ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل اې د مهاجرینو د غریبو جماعته! زه تاسو ته د قیامت په ورځ د کامل نور بشارت درکوم او رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائیل چه تاسو یعنی فقراء مهاجرین به جنت ته د مالدارو خلقو نه پنځه سوه کاله مخکښې جنت ته داخلیږئ.

داحدیث په ترمذی شریف کښې په مختلفو الفاظوسره راغلې دې ﴿ ففى رواية منه يدخل الفقراء الجنة قبل الاغنياء بخمس مائة عام نصف يوم قال الترمذى حسن صحيح، وفى رواية يدخل فقراء المسلمين، وفى رواية ان فقراء المهاجرين يدخلون قبل اغنيائهم بخمس مائة عام، وفى رواية يدخل فقراء المسلمين الجنة قبل اغنيائهم باربعين حريفا ﴾

[٣٦٦٧] (1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي عَبْدُ السَّلَامِ يَعْنِي ابْنَ مُطَهَّرٍ أَبُو ظَفَرٍ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ خَلَفٍ الْعَمِّيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَأَنْ أَقْعُدَ مَعَ قَوْمٍ يَذْكُرُونَ اللَّهَ تَعَالَى مِنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ أَرْبَعَةً مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ، وَلَأَنْ أَقْعُدَ مَعَ قَوْمٍ يَذْكُرُونَ اللَّهَ مِنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ أَرْبَعَةً".

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی یقیناکه چرې زه دداسې خلقوسره کښینم څوک چه د سحر دمونځ نه پس دنمر دختو پورې د الله په ذکر کښې مشغول وي نو ماته داعمل داسماعیل په اولاد کښې دڅلورو غلامانو آزادولونه زیات محبوب دې، اویقیناکه چرې زه دداسې خلقوسره کښینم څوک چه دمازیګرد مونځ نه پس دنمرپریوتوپورې دالله ذکر کوي نو داماته دڅلورو غوره غلامانو آزادولونه بهتره ده.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لأَنْ أَقْعُدَ مَعَ قَوْمٍ يَذْكُرُونَ اللَّهَ تَعَالَى مِنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ أَرْبَعَةً مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ الخ ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه د ذکر کونکو سره د سحر د مانځه نه د نمر ختلو پورې زه کینم نو دا خبره ماته د دې نه ډیره خوښه ده چه څلور غلامان آزاد کړم د اولاد اسماعیل علیه السلام نه، یعنی خالص عرب، او د حدیث په دویم جزء کښې بعینه هم دا مضمون د مازیګر د مانځه نه تر د نمر د پریوتلو پورې په باره کښې دې.

## د ذکر اجتماعی ثبوت او د هغې فضیلت:

د دې حدیث نه اول خو ذکر اجتماعی ثابتیږي او بل خاص د دې دوه وختونو فضیلت.

## (مسئله استرقاق العرب)

ددې حدیث نه د استرقاق العرب جواز هم معلومیږي، مسئله اختلافی ده د احنافو په نزد جائز نه دې، د احنافو د طرف نه بعض حضراتو د دې توجیه داسې کړې ده چه انه محمول على المبالغة.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٥١) (حسن)

[۳۶۶۸]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبِيدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْرَأْ عَلَيَّ سُورَةَ النِّسَاءِ، قَالَ: قُلْتُ: أَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ؟، قَالَ: إِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي، قَالَ: فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ حَتَّى إِذَا انْتَهَيْتُ إِلَى قَوْلِهِ: فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ سورة النساء آية ۴۱، فَرَفَعْتُ رَأْسِي، فَإِذَا عَيْنَاهُ تَهْمِلَانِ".

دعبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام راته وفرمائیل ماته سورة النساء واورو ماعرض اوکړو اجازه تاته اوروم اوحال دادې پنه تا باندې خوتران نازل شوی دې، نبی علیه السلام اوفرمائیل زه داغواړم چه دبل چادرې نه ئې واورم بیامادهغه په وړاندې تلاوت شروع کړو کله چه زه دې آیت کریمه : «فكيف إذا جئنا من كل أمة بشهيد» ته ورسیدم نوماخپل سر راپورته کړو اووې کتل چه دنبی علیه السلام دسترګونه اوښکې رواني وې (په دې نکرباندې چه زه به هم پخپل امت بانېي ګواه جوړیږم او معلومه نه ده چه زما امت به دڅه قسم أعمالو ارتکاب کوي.

﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « اقْرَأْ عَلَيَّ سُورَةَ النِّسَاءِ ». قَالَ قُلْتُ أَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ قَالَ « إِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي » ﴾

دا حدیث مصنف رحمه الله په باب القصص کښې ذکر فرمائیلې دې په ترجمة الباب او حدیث کښې ظاهرا خو هیڅ مناسبت نه معلومیږی مګر دا که اوئیلې شی چه قرآن کریم خو د وعظ او نصیحت د ټولو نه جامع کتاب دې بیا د هغې تلاوت داسې کول چه یو ئې بل ته اوروی په معانی کښې د غور او فکر سره دا سوا د قصص او تذکیر نه هیڅ نه دی.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي قاله المنذري. (آخر كتاب العلم)

# كِتَابُ الْأَشْرِبَةِ

## د څکلو څیزونو د احکامو بیان

**(ما قبل سره ربط اومناسبت):**

مصنف رحمه الله اول بیوع او تجارتونه او اجارې بیان کړې کوم چه د اسباب کسب نه دی فالان يذكر ما لاجله الكسب اى الاكل والشرب... پس د کتاب الاشربة نه پس ئې کتاب الاطعمة راوړلې دې، په اطعمه او اشربه دواړو کښې چه مصنف رحمه الله کوم ترتیب اختیار کړې دې یعنی د اشربه تقدیم په اطعمه باندې حال دا چه شرب د طعام نه پس وی، پس په صحیح بخاری او سنن ترمذی کښې ابواب الأشربة د ابواب الاطعمه نه پس دی، په دې کښې به دا وئیلې شی چه د پیدائش په شروع کښې یعنی د ماشوم د خوراک شروع د مشروب نه کیږی پس مصنف رحمه الله هم په دې کښې د دې لحاظ کولو سره داسې اوکړل.

[1]): صحيح البخاري/تفسير القرآن ۹ (۴۵۸۲)، فضائل القرآن ۳۲ (۵۰۴۹)، ۳۳ (۵۰۵۰)، ۳۵ (۵۰۵۵)، صحيح مسلم/المسافرين ۴۰ (۸۰۰)، سنن الترمذي/تفسير سورة النساء ۵ (۳۰۲۵)، (تحفة الأشراف: ۹۴۰۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۸۰، ۴۳۲) (صحيح)

## بَابٌ فِي تَحْرِيمِ الْخَمْرِ

### د شرابو د حرمت بيان

د شرابو حرمت د موافقات عمرﷺ نه دې لکه چه په حديث الباب کښې ذکر شوې دی، د شرابو تحريم په قرآنی آيتونو کښې په تدريج سره شوې دې، په دې سلسله کښې اول د بقرې آيتونه ﴿ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ الخ ﴾ نازل شو چه په هغې کښې دا فرمائيلې شوې دی چه خمر د لوئې گناه څيز ډې خو په دې کښې منافع هم دی، چه کله دا آيت کريمه نازل شو نو عمرﷺ دعا اوکړه ﴿ اللّٰهم بين لنا فى الخمر بيانا شفاء ﴾ چه اې الله د شرابو په باره کښې تشفى ورکونکې حکم نازل اوفرمايه، د دې نه روستو د سورة النساء آيت نازل شو. ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَىٰ ﴾ چه په هغې کښې صرف د مانځه په وخت کښې د شرابو حرمت بيان کړې شو، پس د رسول اللهﷺ د طرف نه به د مونځونو په وختونو کښې يو منادى آواز کولو ﴿ الا لا يقربن الصلاة سکران ﴾ په دې باندې هم عمرﷺ هم هغه دعا اوکړه کومه چه ئې مخکښې کړې وه، په دې باندې د سورة المائده آيت نازل شو ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ الخ ﴾ چه ددې په آخر کښې دی ﴿ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ ﴾ په دې آيت کريمه کښې صفا د خمر تحريم بيان کړې شوې دې او اوفرمائيلې شو چه تاسو د دې نه منع کيدونکی يئ او که نه... سيدنا عمرﷺ چه کله دا آيت کريمه واوريدو نو ډير زيات خوشحاله شو او وې فرمائيل ﴿انتهينا ﴾ اې الله مونږ به ترې نه ضرور خان ساتو. دا ټول مضمون د باب په دويم حديث کښې ذکر شوې دې، تحريم خمر په تاريخ د خميس کښې ليکلې دی چه د دې نزول په شپږمه هجرئ کښې اوشو او په تلقيح د ابن الجوزی کښې د دې په ځائې دريمه هجرى ليکلې شوې ده بعد احد (كذافى هامش البذل)

[۳۶۶۹](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبُو حَيَّانَ، حَدَّثَنِي الشَّعْبِيُّ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ، قَالَ: "نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ يَوْمَ نَزَلَ وَهِيَ مِنْ خَمْسَةِ أَشْيَاءَ: مِنَ الْعِنَبِ، وَالتَّمْرِ، وَالْعَسَلِ، وَالْحِنْطَةِ، وَالشَّعِيرِ، وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ، وَثَلَاثٌ وَدِدْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يُفَارِقْنَا حَتَّى يَعْهَدَ إِلَيْنَا فِيهِنَّ عَهْدًا نَنْتَهِي إِلَيْهِ: الْجَدُّ، وَالْكَلَالَةُ، وَأَبْوَابٌ مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا".

دعمرفاروقﷺ نه روايت دې فرمائى کله چه دشرابو دحرمت متعلق ايت کريمه نازل شو نو په دغه وخت کښې به شراب دپنځه څيزونونه جوړيدل انګور، کجورې، شهد، وريشې، اوغنم اوهرهغه شې کوم چ عقل ختموې هغه دشرابو په حکم کښې دې ارماداغوښتل چه نبى عليه السلام زمونږ نه دهغه وخته پورې جدانشې ترڅوچه ئې مونږ ته ددې څيزونوپه باره کښې معلومات نه وې راکړې يوخوپه وراثت کښې دنيکه حصه، دويم دکلاله په باره کښې او دريم دسود ديوڅو مقدماتو په باره کښې.

(1): صحيح البخاري/تفسير سورة المائدة ۱۰ (۴۶۱۹)، الأشربة ۲ (۵۵۸۱)، ۵ (۵۵۸۸)، صحيح مسلم/التفسير ۶ (۳۰۳۲)، سنن الترمذي/الأشربة ۸ (۱۸۷۴ تعليقًا)، سنن النسائي/الأشربة ۲۰ (۵۵۸۱)، (تحفة الأشراف: ۱۰۵۳۸) (صحيح)

﴿عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ قَالَ نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ يَوْمَ نَزَلَ وَهِيَ مِنْ خَمْسَةِ أَشْيَاءَ مِنَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْعَسَلِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ وَثَلَاثٌ وَدِدْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لَمْ يُفَارِقْنَا حَتَّى يَعْهَدَ إِلَيْنَا فِيهِنَّ عَهْدًا نَنْتَهِي إِلَيْهِ الْجَدُّ وَالْكَلَالَةُ ......الخ﴾

**شرح الحديث:**

په دې حديث کښې دوه اجزاء دی د يو تعلق د الاشربة سره دې کوم چه به مونږ روستو بيانوو او د دويم جزء تعلق د کتاب الفرائض او ربا سره دې، عمر ﷺ فرمائی چه درې مسئلې داسې داسې دی چه د هغې په باره کښې زما خواهش دا وو چه څومره به ښه وه که رسول الله ﷺ د دې وضاحت فرمائيلې وې په خپل ژوند کښې چه مونږ په هغې باندې په ښه طريقې سره عمل کړې وې او بيا ئې د هغه درې مسائلو تعين اوفرمائيلو په هغه دريو کښې ۱: د ميراث مسئله، ۲: د کلاله مسئله، ۳: د رباء مسئله...... حافظ ﷺ فرمائی چه د جد نه مراد دهغه دميراث مقداردې چه په هغې کښې د صحابه کرامو ﷺ ډير اختلاف پاتې شوې دې، پس په کتاب الفرائض د بخاری کښې راځی د عمر فاروق ﷺ په باره کښې چه خپله د هغوی نه په دې کښې دوه فيصلې منقول دی، او دويم څيز کلاله يعنی د هغې مصداق چه په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف دې ﴿من لا ولد له ولا والد، او بنو العم الا باعد او غير ذلک کما فی العون﴾ او د ابواب الربا نه مراد په ظاهر کښې رباء الفضل ده ځکه چه د ربا دويم قسم ربا النسيئه د دې حرمت خو د صحابه کرامو ﷺ ترمينځه متفق عليه دې او په ربا الفضل کښې د ابن عباس او ابن عمر ﷺ اختلاف په کتاب البيوع کښې تير شوې دې، حافظ فرمائی: د عمر ﷺ د دې کلام نه معلوميږی چه هغوی سره په بعض ابواب الربا کښې نص موجود وو او د بعضو په باره کښې نه وو هم په دې وجه ئې د هغې د معلوماتو خواهش لرلو.

**خمر د کومو څيزونو نه جوړولې شو:**

او د حديث ړومبې جزء دا دې چه کله د تحريم خمر حکم نازل شو نو هغه وخت خمر عام طور د پنځو څيزونو نه جوړولې شو، عنب، تمر، عسل، حنطه، شعير...... په دې سلسله کښې روايات د حديث مختلف دی، پس په صحيح مسلم کښې د انس ﷺ نه روايت دې ﴿لَقَدْ أَنْزَلَ اللَّهُ الآيَةَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ فِيهَا الْخَمْرَ وَمَا بِالْمَدِينَةِ شَرَابٌ يُشْرَبُ إِلاَّ مِنْ تَمْرٍ﴾ او هم د انس ﷺ نه په صحيح بخاری کښې دی: ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْنَا الْخَمْرُ حِينَ حُرِّمَتْ وَمَا نَجِدُ، يَعْنِي بِالْمَدِينَةِ - خَمْرَ الأَعْنَابِ إِلاَّ قَلِيلاً وَعَامَّةُ خَمْرِنَا الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ﴾

او په صحيح بخاری کښې د ابن عمر ﷺ نه روايت دې ﴿نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ وَإِنَّ فِي الْمَدِينَةِ يَوْمَئِذٍ لَخَمْسَةَ أَشْرِبَةٍ مَا فِيهَا شَرَابُ الْعِنَبِ﴾ او په صحيحينو کښې د انس ﷺ نه روايت دې: ﴿كُنْتُ أَسْقِي أَبَا عُبَيْدَةَ وَأَبَا طَلْحَةَ وَأُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ مِنْ فَضِيخِ زَهْوٍ وَتَمْرٍ فَجَاءَهُمْ آتٍ فَقَالَ إِنَّ الْخَمْرَ قَدْ حُرِّمَتْ فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ قُمْ يَا أَنَسُ فَأَهْرِقْهَا فَأَهْرَقْتُهَا﴾ وفی لفظ قال عبدالعزيز بن صهيب قلت لانس ما هو؟ قال بسرو رطب. (کذافی تهذيب السنن لابن القيم)

## د اشربة په باره د احنافو او د جمهور علماء کرامو اختلاف، مدلل او مفصل

د دې نه پس ښان پوهه کړئ چه د اشربه مکروه ډير قسمونه دی، خمر، سکر، فضيح، نقيع الذبيب، طلاء، باذق، المنصف، المثلث، الخليطان، مزر وغيره وغيره، شيخين (امام ابوحنيفه او امام ابويوسف) په نزد د دې احکام مختلف دی لکه چه وړاندې په تفصيل سره راځي. او د باقي ائمه ثلاث او د امام محمدؒ په نزد د دې ټولو يو حکم دې. د دې حضراتو په نزد که شراب د انګورو نه جوړ شی که د کجهورې نه که د شهدو نه او که د غلو نه، د مسکر کيدو نه پس په ټولو باندې د خمر اطلاق کيږی. او د ټولو حکم يو شان دې چه په دې قسمونو کښې د هر يو څاڅکې څکل هم جائز نه دی بلکه حرام دی، اګرچه دقلت په وجه باندې مقدار د سکر پيدا نه شی د حديث ﴿ما اسکر کثيره فقليله حرام﴾ نه استدلال کوی او د ﴿کل مسکر حرام﴾ او د ﴿والخمر ما خامر العقل﴾ وغيره وغيره نه هم،

**(اقسام اشربه)**

او د شيخينو رحمهما الله په نزد د اشربه محرمه درې قسمونه دی او درې درجات دی.

**قسم اول :**

خمر دی کوم چه يو د خاص قسم شرابو نوم دې يعنی النيئ من مآء العنب اذا اشتد وغلا وقذف بالزبد، يعنی د انګورو شيره چه پخ کړې شوې نه وی چه هغه په زمانه تيريدو سره ټينګه او غليظه شی او زګونه پکښې پيدا شی.

**قسم ثانی او درجه ثانيه :**

د دې مصداق درې قسم شرابونه دی :

۱: عصير العنب المطبوخ دون المثلث، يعنی د انګور شيره چه هغه دومره پخه کړې شی چه هغه د دوه ثلث نه کم اوسوزی، هغې ته طلاء هم وئيلې شی[۱]

۲: او نقيع التمر او دريم نقيع الذبيب يعنی د تمر او زبيب نبيذ غير مطبوخ په شرط د اشتداد اوقذف الزبد سره، يعنی کله چه دا زړيدو سره خراب شی اونشه پکښې پيدا شی.

**قسم ثالث :**

د دې نه مراد هغه باقی اشربه او انبذه ددی کوم چه د مختلفو غلو وغيره نه جوړولې شی

---

[۱] پس که د ادنی درجې طبخ ده نو هغې ته باذق وائی، او که طبخ نه نيم اوسوزی نو هې ته منصف وائی او که د نيم نه زيات اوسوزی او د دوه ثلث نه کم سوزيدلې وی نو دې ته طلاء وائی لکه چه په هدايه کښې دی د جامع الصغير نه، دا درې واړه قسمونه عصير مطبوخ باذق منصف او طلاء په حکم د حرمت کښې برابر دی، خو د طلاء اطلاق په مثلث باندې هم کيږی يعنی هغه عصير العنب چه دومره پوخ کړې شي چه دوه ثلث اوسوزی دا طلاء حلال ده کوم ته چه مثلث عنبی هم وائی : ففي موطاء الامام محمد رحمه الله لا باس بشرب الطلاء الذي قد ذهب ثلثاه وبقي ثلثة وهو لا يسكرا اهـ وفي هامش قوله الذي قد ذهب ثلثاه قيد ب هلان الطلاء الذي ذهب اقل من ثلثيه لا يحل كما قال في الجامع الصغير، محمد عن يعقوب عن ابي حنيفة قال الخمر حرام قليلها وكثيرها والسكر وهو النيئ وبه يظهر ان تدافع بين كلمات الفقهاء حيث حكم بعضهم علي الطلاء بالحرمة وبعضهم بالحلة بان الطلاء يطلق علي امرين احدهما حلال والاحرام كما حققه الفقيه حسن الشرنبلالي في رسالته نزهة ذوي النظر لمحاسن الطلاء والتمر... اهـ د طلاء ذکر په متن کښې په باب الداذی کښې هم راروان دې)

لکه غنم او اوربشې او جوار او شهد که هغه مطبوخ وی او که غیر مطبوخ هم دغه شان مثلث عنبی یعنی د انګورو هغه شیره چه د هغې د طبخ د وجې نه دوه ثلثه حصه اوسوزی او صرف یو ثلث ئې باقی پاتې شی. د دې تفصیل نه معلومه شوه چه د احنافو په نزد په شرابو کښې اصل دوه څیزونه دی اول عنب د دې نه خو خمر حقیقی جوړیږی دویم تمر او زبیب، زبیب اګر چه حقیقة عنب دې خو د دې حکم د عنب نه جدا دې، د حکم په لحاظ سره هغه د تمر برابر دې، د دې نه علاوه چه د نورو غلو نه کوم شراب جوړیږی هغه د دریمې درجې دی د هغې حکم بیل دې، بله دا چه عنب د کوم نه چه خمر اصلی جوړیږی په هغې کښې هم اصل دا ده چه هغه مطبوخ نه وی په اور باندې نه وی ړدلې شوې ګینې په طبخ سره هغه خمر د اول درجې نه دویمې درجې ته راځی او د هغې حکم بدلیږی.

**(احکام اشرب)**

اوس تاسو د دې پورته ذکر کړې شوو اقسام ثلاثه حکم اوپیژنئ. د قسم اول یعنی خمر حکم دا دې چه د دې یو قطره څکل هم حرام دی او که چا اوڅکله نو حد به پرې جاری کیږی اګر چه د قلت په وجه باندې نشه نه پیدا کوی او قسم ثانی یعنی طلاء، نقیع الزبیب د دې حکم دا دې چه د دې څکل مطلقا حرام دی خو حد به هغه وخت جاری کیږی چه کله ئې دومره مقدار څکلې وی چه په هغې سره نشه پیدا شوې وی، او د دریم قسم حکم دا دې چه د هغې دومره مقدار چه مفضی الی السکر نه وی په نیک نیتئ یعنی د تقوی په نیت سره ئې څکل جائز دی، او د تلهی او مستئ په نیت ئې څکل حرام دی خو حد به هم هغه وخت جاری کیږی چه په څکلو والا باندې نشه اوخیژی، او د امام محمد او ائمه ثلاثه په نزد د ټولو اشربه او انبذه حکم هم هغه دې کوم چه مونږ سره د قسم اول حکم دې (1)، ددې نه معلومه شوه چه د جمهورو په نزد د اشربه په حکم کښې تشدد دې او د احنافو په نزد د دې په بعض قسمونو کښې ګنجائش دې.

**احناف د ټولو شرابو د تحریم ولې قائل نه دی:**

اوس که څوک سوال اوکړی چه احنافو په دې کښې د احتیاط اړخ ولې اختیار نه کړو لکه چه د جمهورو مسلک دې؟ د دې جواب دا دې چه د احنافو مسلک په دې سلسله کښې په زور نظر باندې بناء دې، څکه چه د خمر په باره کښې د اهل لغت دوه اقوال دی یو دا چه هغه د عنب سره خاص دې صرف د انګورو شراب ته خمر وائی(2) دویم قول دا هم دې چه خمر

---

(1) وفي هامش البذل: وخلاصة مذهب الحنفية ان الاشربة ثلاثة اقسام، الخمر حرام مطلقا وله عشرة احكام، الثاني الاشربة الثلاثة العصير وهو نوعان الباذق والمنصف، ونقيع التمر وهو السكر، ونقيع الزبيب هذه حرام قليلها وكثيرها لكن حرمتها ظنية والثالث باقي الاشربة والمتخذة من الحبوب وغيرها حلال عند الشخين مالم يسكر، وحرام عند محمد والائمة الثلاث قليلها وكثيرها وبه يفتي، ويحد علي السكر من كلها علي الصحيح بخلاف الخمر فيحد علي قطرة منها وان لم يسكر، هذا خلاصة ما في الكوكب الدري اهـ بتصريف يسير)

(2) او امام نووی رحمه الله د جمهور قول هم دې ته ونیلې دې پس هغوی فرمائی : اتفق اصحابنا علي تسمية جميع هذه الانبذة خمرا لكن قال اكثرهم هو مجاز وانما حقيقة الخمر عصير العنب وقال جماعة منهم هو حقيقة اهـ من هامش الكوكب ۱۳/۲)

عام دی که انګوری وی او که غیر انګوری اګر چه صاحب هدایه خو تردې پورې فرمائیلې دی چه د خمر د انګورو سره خاص کیدو باندې د اهل علم اتفاق دې هغوی فرمائی : ولنا انه اسم خاص باطباق اهل اللغة فیما ذکرناه، ولهذا اشتهر استعماله فیه، وفی غیره غیره اهـ خو په دې باندې شیخ ابن الهمام رحمه الله نقد کړې دې او د خمر په باره کښې ئې د اهل لغت دواړه اقوال لیکلی دی، بلکه دا چه وړاندې په کتاب کښې راځی (باب الخمر مما هی) چه په هغې کښې مصنف رحمه الله مختلف روایتونه راوړې دی په یو روایت کښې دی (الخمر من هاتین الشجرتین النخلة والعنبة) په دې روایت سره د خمر د کهجورې او عنب سره خاص کیدل مستفاد کیږی په یو لحاظ سره د دې حدیث نه د شیخینو د مسلک تائید کیږی. په دې وجه د هغوی په نزد د خمر په اقسام ثلاثه کښې قسم ثانی هم دا ې کوم چه د انګور او کهجورو نه جوړ کړې شی کوم چه د احنافو په نزد هم مطلقا حرام دې او عام طور سره په احادیثو کښې چه په مختلفو قسمونو باندې کوم د خمر اطلاق شوې دې د دې نه مقصود بیان د لغت او اطلاق لره بیانول نه دی بلکه مقصود بالذات بیان د حکم دې چه هر څومره شرابونه چه مسکر دی هغه هم د خمر په شان حرام دی. د رسول الله ﷺ مقصد بیان حقائق نه دې بلکه بیان شرائع دې، او دویم مقصد د احنافو په دې تفصیل او تجزیه سره دا هم دې چه که د شرابو ټولو قسمونو باندې په هر صورت کښې مطلقا د حرمت فتوی اولګولې شی نو په دې کښې به ډیر اشکال پیدا شی، د کومو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه چه د تحریم خمر نه پس هم شرب نبیذ ثابت دې چه د هغې روایات په "بذل المجهود" کښې ذکر شوې دی پس په هغې کښې دی (قال فی البدائع وَأَبُو حَنِيفَةَ وَأَبُو يُوسُفَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا احْتَجَّا بِحَدِيثِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَآثَارِ الصَّحَابَةِ الْكِرَامِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ.(أَمَّا) الْحَدِيثُ فَمَا ذَكَرَهُ الطَّحَاوِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي شَرْحِ الْآثَارِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُمَا { أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أُتِيَ بِنَبِيذٍ فَشَمَّهُ فَقَطَّبَ وَجْهَهُ لِشِدَّتِهِ، ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَصَبَّهُ عَلَيْهِ وَشَرِبَ مِنْهُ } (وَأَمَّا) الْآثَارُ فَمِنْهَا مَا رُوِيَ عَنْ سَيِّدِنَا عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَشْرَبُ النَّبِيذَ الشَّدِيدَ، ومنها ما روی عند سیدنا علی رضی الله عنه انه اضاف قوما فسقاهم فسکر بعضهم فحده، فقال الرجل تسقینی ثم تحدنی، فقال علی انما احدک للسکر وغیر ذلک من الروایات المذکورة فی البذل وفی آخره : فاذا ثبت الاحلال من هولاء الصحابة الکرام رضی الله عنهم فالقول بالتحریم یرجع الی تفسیقهم، ولهذا عد ابوحنیفة رحمه الله احلال المثلث من شراط مذهب السنة والجماعة، فقال فی بینانها : ان یفضل الشخین ویحب الختنین وان یری المسح علی الخفین وان لا یحرم نبیذ التمر، لما ان فی القول بتحریمه تفسیق کبار الصحابة رضی الله عنهم، والکف عن تفسیقهم والامساک عن الطعن فیهم من شراط السنة والجماعة، واما ما ورد من الاخبار ففیها طعن ثم بها تاویل ثم قول بموجبها، الی ان قال : اما التاویل فهو انها محمول علی الشرب للتلهی توفیقا بین الدلائل صیانة لها عن التعارض، واما القول بالموجب فهو ان المسکر عندنا حرام وهو القدح الاخیر لان المسکر ما یحصل به الاسکار وانه یحصل بالقدح الاخیر وهو حرام قلیله وکثیره، وهذا قول بموجب الاحادیث ان ثبتت بحمد الله تعالی اهـ، وفی هامش البذل : قال ابن عابدین قال الامام ابوحنیفة لا افتی بحرمة

النبيذ ولو اعطيت الدنيا لان فيه تفسيق بعض الصحابة ولا اشربها ولو اعطيت الدنيا لانه لا حاجة اليه، فلله در فتواه وتقواه آه.: د صاحب بدائع په شان په بعض رواياتو د اباحت کښې په حاشيه د نصب الرايه کښې هم ذکر شوې دی، په هغې کښې دا هم دی چه روايات د منع لکه ﴿ کل خمر مسکر، وما اسکر الفرق منه فملاء الکف من حرام، هذا کله منسوخ نسخه شربه الصلب[1] يوم حجة الوداع، قالوا : ومن الدليل على ذلک انه کان ينهی وفد عبدالقيس عن شرب المسکر فوفدوا اليه بعد فراهم مصفرة الوانهم سيئة حالهم فساءلهم عن قصتهم فاعلموه انه کان لهم شراب فيه قوام ابد انهم فمنعهم من ذلک فاذن لهم فی شربه، وان ابن مسعود رضی الله عنه قال : شهدنا التحريم وشهدنا التحليل وغبتم، وانه کان يشرب الصلب من نبيذ التمر حتى کثرت الروايات عنه به وشهرت واذيعت، واتبعه عامة التابعين من الکوفيين. الی آخر ما ذکر.

﴿ ما اسکر کثيرة فقليله منه حرام ﴾ دې کښې زمونږ علماء کرامو تاويل کړې دې، يا خو دې داسې اوونيلې شی چه د دې نه هغه شرب مراد دې کوم چه لِلتَّلَهِّی وی نه لِلتَّقْوِی، او يا د دې نه مراد آخری جرعه (گوټ) مراد دې چه د هغې نه سکر پيدا شوې دی چه د هغې کثير او قليل ټول حرام دی، او يا دې بيا دې لره د شرابو په اقسام ثلاثه کښې په قسم اول يا ثانی باندې محمول کړې شی د دې دواړو قسمونو په باره کښې زمونږ رائې هم دا ده، او يو جواب په دې کښې د نسخ دې کوم چه اوس ذکر شوې دې، او يو جواب دا دې چه د حرمت نه مراد دا دې چه ملاء الکف حرام دې يعنی مفضی الی الحرام دې ځکه چه کوم څکل بغير د تقوی د نيت نه وی يعنی د تلهی دپاره وی هلته به لږ څکل باعث وی د پاره د شرب کثير، پس دا شرب قليل به سبب وی د حرام او کوم څيز چه سبب وی د حرامو دپاره هغه خپله هم حرام وی، او که دا څکل په نيت د تقوی علی الطاعة وی نو په دې صورت کښې به منجر الی الکثير نه وی، کذا فی الکوکب وفيه : انما يحتاج الی امثال هذه التاويلات لما ثبت من بعض الصحابة شرب امثالها فعلم بفعله ان المنهی ليس مطلقا عاما اه او يو توجيه په پورته عبارت کښې القول بالموجب تيره شوه چه د هغې مطلب دا دې چه فريق ثانی کوم دليل پيش کوی مونږ هغه منو ځکه چه هغه هم زمونږ په حق کښې مفيد دې. پس مونږ وايو چه کوم مقدار د نبيذ د سړی په حق کښې مسکر وی هغه مطلقا حرام دې د هغې قليل هم او کثير هم او کوم مقدار چه مسکر نه دې په هغې باندې به دحرمت حکم هم نه شی لګولې کيدې، والله تعالی اعلم. په دې سلسله کښې امام نسائی رحمه الله هم د احنافو نه خفه دې پس هغوی د حديث ﴿ ابی وقاص ان النبی ﷺ نهی عن قليل ما اسکر کثيرة ﴾ د لاندې فرمائی ﴿ وهذا الحديث دليل على تحريم المسکر قليله وکثيره، وليس کما يقول المخادعون بتحريمهم آخر الشربة دون ما تقدمها اذ لا خلاف بين اهل العلم ان السکر بکليته لا يحدث عن الشربة الاخيرة فقط دون ما تقدمها اه (نصب الرايه ۴/۳۰۳) والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

---

[1]) کذا في الأصل)

[۳۶۷۰]([1])حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى الْخُتَّلِيُّ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ، قَالَ عُمَرُ: اللَّهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانًا شِفَاءً، فَنَزَلَتِ الْآيَةُ الَّتِي فِي الْبَقَرَةِ: يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ سورة البقرة آية ۲۱۹، قَالَ: فَدُعِيَ عُمَرُ، فَقُرِئَتْ عَلَيْهِ، قَالَ: اللَّهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانًا شِفَاءً، فَنَزَلَتِ الْآيَةُ الَّتِي فِي النِّسَاءِ: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَقْرَبُوا الصَّلاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى سورة النساء آية ۴۳، فَكَانَ مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ يُنَادِي: أَلَا لَا يَقْرَبَنَّ الصَّلَاةَ سَكْرَانُ، فَدُعِيَ عُمَرُ فَقُرِئَتْ عَلَيْهِ، فَقَالَ: اللَّهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانًا شِفَاءً، فَنَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ سورة المائدة آية ۹۱، قَالَ عُمَرُ انْتَهَيْنَا".

د عمرفاروق رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي کله چه دشرابو دحرمت متعلق ايت نازل شو نو خلقو اووئيل اې الله زمونږ دپاره دشرابو متعلق واضح حکم بيان کړې، کله چه هغه آيت نازل شوکوم چه په سورة بقره کښې دې يعني : «يسألونك عن الخمر والميسر قل فيهما إثم كبير» الآية،نو عمرفاروق نه راوغوښتلې شو اوداحکم ورته واورولې شو هغه اووئيل اې الله مونږ ته صاف صاف حکم بيان کړې نوپه دې وخت کښې دسورة النساء دا ايت کريمه «يا أيها الذين آمنوا لا تقربوا الصلاة وأنتم سكارى» نازل شو کله چه به دمونځ دپاره تکبير کيدو نودنبي ﷺ اواز کونکي به وئيل چه نشي په حالت کښې دی څوك مونځ ته نه راځی اوبياعمرفاروق راوغوښتې شواودا آيت کريمه هم ورته واورولې شوه نوهغه بياووئيل اې الله دشرابو په سلسله کښې واضح حکم بيان کړې نو په دې باندې دا ايت کريمه نازل شو«فهل أنتم منتهون»، نوپه دې وخت کښې عمرفاروق اووئيل مونږه دشرابو اودجوارئ نه منع شو.

**قوله:** ﴿عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ لَمَّا نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ قَالَ عُمَرُ اللَّهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانًا شِفَاءً الخ ﴾ د دې حديث مضمون په شروع کښې تير شوې دې، والحديث اخرجه الترمذى والنسائى، وذكره الترمذى انه مرسل اصح، قاله المنذرى

[۳۶۷۱]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، "أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ دَعَاهُ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ، فَسَقَاهُمَا قَبْلَ أَنْ تُحَرَّمَ الْخَمْرُ، فَأَمَّهُمْ عَلِيٌّ فِي الْمَغْرِبِ، فَقَرَأَ: قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ، فَخَلَطَ فِيهَا، فَنَزَلَتْ: لا تَقْرَبُوا الصَّلاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ سورة النساء آية ۴۳".

ابوعبدالرحمن سلمي دعلی نه روايت کوی فرمائي چه يو کس علی نه ته او عبدالرحمن بن عوف ته دعوت ورکړو او په دوی دواړو ئې شراب اوڅکل خو په هغه وخت کښې کله چه دشرابو دحرمت حکم نه وو نازل شوې اوبياعلی نه دماښام په مونځ کښې ددوی امامت وکړو او «قل يا أيها الكافرون» به ولوستلو او په لوستلو کښې ئې ګډ وډې وکړه نوپه دې وخت کښې دا ايت کريمه نازل شو: «لا تقربوا الصلاة وأنتم سكارى حتى تعلموا ما تقولون».

[1]: سنن الترمذي/تفسير سورة المائدة ۸ (۳۰۴۹)، سنن النسائي/الأشربة ۱ (۵۵۴۲)، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۱۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵۳/۱) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/تفسير سورة النساء ۱۲ (۳۰۲۶)، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۷۵) (صحيح)

قوله: ﴿عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رضي الله عنه أَنَّ رَجُلاً مِنَ الأَنْصَارِ دَعَاهُ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ الخ﴾
د علی رضي الله عنه نه روایت دې چه یو انصاري سړي هغوی ته او عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنهما ته دعوت ورکړو او په هغوی باندې ئې شراب هم اوڅکل یعنی د تحریم خمر نه مخکښې، د ماښام د مانځه وخت راغلو نو علی رضي الله عنه امامت اوکړو چه په هغې کښې ئې ﴿ قل یا ایها الکفرون ﴾ تلاوت کړو او په هغې کښې ئې خلط اوکړو، یعنی داسې ئې اولوستلو ﴿قل یا ایها الکفرون لا اعبد ما تعبدون ونحن نعبد ما تعبدون ﴾ لکه چه د ترمذی په روایت کښې دی په دې باندې د سورة النساء آیت نازل شو چه په هغې سره صرف د مونځونو په وختونو کښې تحریم خمر نازل شو. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

[٣٦٧٢]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَقْرَبُوا الصَّلاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى سورة النساء آية ٤٣، وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ سورة البقرة آية ٢١٩، نَسَخَتْهُمَا الَّتِي فِي الْمَائِدَةِ: إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنْصَابُ سورة المائدة آية ٩٠".

دعبد الله ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه دا دوه ایتونه: «یا أیها الذین آمنوا لا تقربوا الصلاة وأنتم سکاری» او «یسألونك عن الخمر والمیسر قل فیهما إثم کبیر ومنافع للناس» دسورة مائده په دې ایت باندې: «إنما الخمر والمیسر والأنصاب» الآیة، منسوخ شوي دي.

[٣٦٧٣]([2]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كُنْتُ سَاقِيَ الْقَوْمِ حَيْثُ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ فِي مَنْزِلِ أَبِي طَلْحَةَ، وَمَا شَرَابُنَا يَوْمَئِذٍ إِلا الْفَضِيخُ، فَدَخَلَ عَلَيْنَا رَجُلٌ، فَقَالَ: إِنَّ الْخَمْرَ قَدْ حُرِّمَتْ، وَنَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْنَا: هَذَا مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی کله چه شراب حرامیدل نو په هغه وخت کښې زه ساقي وم اود ابوطلحه په کورکښې به مې په خلقوشراب څکول، او په هغه وخت کښې به مونږ شراب دکجورې نه جوړول، مونږ ته یوکس راغې او وئې وئیل شراب حرام شوي دي اودنبی صلی الله علیه وسلم دطرفه اعلان کونکي اعلان وکړو چه دې دنبی صلی الله علیه وسلم دطرف نه اعلان کوي.

قوله: ﴿عَنْ أَنَسٍ قَالَ كُنْتُ سَاقِيَ الْقَوْمِ حَيْثُ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ فِي مَنْزِلِ أَبِي طَلْحَةَ وَمَا شَرَابُنَا يَوْمَئِذٍ إِلاَّ الْفَضِيخُ الخ﴾ دا حدیث د باب د رومبی حدیث په شرح کښې سره د حوالې نه تیر شوې دې، په دې حدیث کښې دا دی چه په کومه زمانه کښې د تحریم خمر حکم نازل شو هغه وخت زمونږ د خلقو عام طور سره چه کوم شراب وو هغه فضیح وو یعنی نبیذ البسر یعنی غیر مطبوخ کوم چه په قسم ثانی کښې د نقیع التمر په نوم باندې تیر شوي دی کوم چه زمونږ په نزد هم حرام دی مګر دا چه مطبوخ وی په دې صورت کښې به جائز وی لا عند الجمهور.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٦٥) (حسن الإسناد)
[2]): صحیح البخاري/المظالم ٢١ (٢٤٦٤)، تفسیر سورة المائدة ١٠ (٤٦١٧)، ١١ (٤٦٢٠)، الأشربة ٢ (٥٥٨٠)، ٣ (٥٥٨٢)، ١١ (٥٥٨٣)، ١٢ (٥٥٨٤)، أخبار الآحاد ١ (٧٢٥٣)، صحیح مسلم/الأشربة ١ (١٩٨٠)، (تحفة الأشراف: ٢٩٢)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الأشربة ٢ (٥٥٤٣)، موطا امام مالك/الأشربة ٥ (١٢)، مسند احمد (١٨٣/٢، ١٨٩، ٢٢٧) (صحیح)

## بَابُ الْعِنَبِ يُعْصَرُ لِلْخَمْرِ
### د شرابو جوړولو دپاره دانګورو نچوړول

[۳۶۷٤]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعُ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ مَوْلَاهُمْ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْغَافِقِيِّ، أَنَّهُمَا سَمِعَا ابْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَعَنَ اللَّهُ الْخَمْرَ، وَشَارِبَهَا، وَسَاقِيَهَا، وَبَائِعَهَا، وَمُبْتَاعَهَا، وَعَاصِرَهَا، وَمُعْتَصِرَهَا، وَحَامِلَهَا، وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ".

دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ لعنت وئيلې دې په شرابو اوددې په څکونکي اوددې په ساتي باندې اوددې په خرڅونکي اوددې په اخستونکي اوددې په نچوړونکي اوددې په وړونکي اودچادپاره چه شراب وړلې شي په هغه باندې.
يعنى د انګورو شيره ويستل د خمر جوړولو دپاره.

**قوله:** ﴿ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم « لَعَنَ اللَّهُ الْخَمْرَ وَشَارِبَهَا وَسَاقِيَهَا وَبَائِعَهَا وَمُبْتَاعَهَا وَعَاصِرَهَا وَمُعْتَصِرَهَا وَحَامِلَهَا وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ » ﴾

### شرح الحديث:

دا حديث په روايت د انس بن مالک رضي الله عنه په ترمذى شريف کښې هم شته په کتاب البيوع کښې چه په هغې کښې داسې دى ﴿ لعن رسول الله ﷺ فى الخمر عشرة ۱: عاصرها، ۲: معتصرها، ۳: وشاربها، ٤: وحاملها، ٥: والمحمولة اليه، ٦: وساقيها ۷: وبائعها ۸: وآكل ثمنها ۹: والمشترى لها ۱۰: والمشتراة له ﴾ يعنى رسول الله ﷺ د شرابو په باره کښې په لسو کسانو باندې لعنت فرمائيلې دې: يعنى انګور لره د شرابو دپاره نچوړونکې، او معتصر د چا دپاره چه نچوړولې شى، او ښکاره خبره ده چه د عاصر نه مراد هغه سړې دې کوم چه ئې د بل دپاره نچوړوى او د معتصر نه مراد هغه دې کوم چه ئې د خان دپاره نچوړوى. (من الكوكب) او د شرابو په څکلو والا باندې، او د هغې په اوچتونکى باندې، د چا دپاره چه اوړلې شى په هغه باندې، او په هغه چا چه په بل ئې څکوى، او د هغې په خرڅونکى باندې، او د هغې په ګټه خوړونکى باندې او د شرابو په اخستونکى باندې او د چا دپاره چه اخستلې شى. په دې باندې دا ترجمه د ترمذى د روايت د ترتيب په اعتبار سره ده، او د ابوداؤد په روايت کښې صرف نهه ذکر شوې دى چه په هغې کښې يو خپله خمر دې ﴿لعن الله الخمر ﴾ علامه سندى رحمه الله فرمائى په هر يو څيز باندې لعنت د هغې په اعتبار سره وى لهذا په خمر باندې د لعنت مطلب د هغې د څکلو د حراموليې او په هغې باندې د نجاست حكم لګول دى. اهـ والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذرى

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْخَمْرِ تُخَلَّلُ
### د شرابو نه د سرکې جوړولو بيان

تخليل خمر (يعنى د شرابو نه سرکه جوړولو) والا مسئله مختلف فيه ده د امام احمد رحمه الله په نزد جائز نه ده، د هغوى په نزد په تخليل سره نه حلاليږى او د احنافو په نزد جائز ده، او د

(): سنن ابن ماجه/الأشربة ٦ (۳۳۸۰)، (تحفة الأشراف: ۷۲۹٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲٥، ۷۱) (صحيح)

امام شافعي رحمه الله په نزد که ايخودلې شوې شراب خپله سرکه شوه نو بيا خو حلال دي ګڼلې نه دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد دا کار خو ناجائز دې خو د تحليل نه پس د هغې خوراک جائز دي. (عون عن النيل)

[٣٦٧٥] (¹) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ السُّدِّيِّ، عَنْ أَبِي هُبَيْرَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "عَنْ أَيْتَامٍ وَرِثُوا خَمْرًا؟ قَالَ: أَهْرِقْهَا، قَالَ: أَفَلَا أَجْعَلُهَا خَلًّا؟ قَالَ: لَا".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه ابوطلحه دنبي عليه السلام نه ديتيمانو په باره کښې تپوس اوکړو چاته چه شراب په وراثت کښې پاتې شوي وو، نبي عليه السلام اوفرمائيل دا واړوئ دوئ اووئيل ايا سرکه ورنه جوړه نکړو؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل ددينه سرکه هم مه جوړوئ.

**قوله:** ﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ سَأَلَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ أَيْتَامٍ وَرِثُوا الخ﴾

يعنې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه تپوس اوکړې شو چه د بعض يتيم ماشومانو په حصه کښې په ميراث کښې شراب راغلې دي نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغې د توييولو حکم ورکړو او د سرکې د جوړولو اجازت ئې ورنکړو. دا حديث د حنابله په نزد خو په خپل ظاهر باندې دې تاويل ته حاجت نشته او د احنافو په نزد په ابتداء زمان باندې محمول دې ځکه چه هغه خلق د دې عادت وو او د کوم څيز چه عادت پيدا شي د هغې نه بچ کيدل د هغوی دپاره ګران وی په دې وجه رسول الله صلى الله عليه وسلم احتياطا او تنزيها د تخليل خمر نه هم منع اوفرمائيله چه د هغې نفرت ئې په زړه کښې کينی او دليل د اباحت په نورو روايتونو کښې دې لکه ﴿ نعم الادام الخل ﴾ او په يو روايت کښې دی ﴿ خير خلکم خل خمرکم ﴾ (کما فی حاشية الترمذی) والحديث اخرجه مسلم والترمذی، قاله المنذری

## بَابُ الْخَمْرِ مِمَّا هُوَ

### شراب د څه نه جوړيږی؟

[٣٦٧٦] (²) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنَ الْعِنَبِ خَمْرًا، وَإِنَّ مِنَ التَّمْرِ خَمْرًا، وَإِنَّ مِنَ الْعَسَلِ خَمْرًا، وَإِنَّ مِنَ الْبُرِّ خَمْرًا، وَإِنَّ مِنَ الشَّعِيرِ خَمْرًا".

دنعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي شراب دانګورونه جوړيږي او دکجورو اودشهدو اوغنمو او وربشونه هم جوړيږي.

**قوله:** ﴿ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ مِنَ الْعِنَبِ خَمْرًا ....الخ ﴾ په دې حديث کښې د هغه پنځو څيزونو ذکر دې د کومو چه د کتاب الاشربة په اول حديث کښې ذکر دې چه د دې تولو نه خمر جوړيږی، او د دې نه په روستو روايت کښې د ذرة يعنې جوارو ذکر هم دې او هم دغه شان د زبيب.

[1]: صحيح مسلم/الأشربة ٢ (١٩٨٣)، سنن الترمذي/البيوع ٥٨ (١٢٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٩/٣، ١٨٠، ٢٦٠)، سنن الدارمي/الأشربة ١٧ (٢١٦١) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الأشربة ٨ (١٨٧٢، ١٨٧٣)، سنن ابن ماجه/الأشربة ٥ (٣٣٧٩)، (تحفة الأشراف: ١١٦٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٧/٤، ٢٧٣) (صحيح)

## توجیه الحدیث علی مسلک الحنفیة :

په حاشیه د بذل کښې د الارشاد الرضی (١) نه منقول دی چه دا حدیث اګر چه په ظاهر کښې د احنافو خلاف دې خو په حقیقت کښې د دې نه د هغوی تائید کیږی ځکه چه لفظ خمر که دې ټولو څیزونو ته شامل وي لغة او استعمالا نو رسول الله ﷺ ته به د دې تفسیر په دې عنوان سره حاجت نه راتلو، ځکه چه هر کله په قرآن کریم کښې د تحریم ذکر راغلو نو د هغې عموم هغه څیزونو ته هم شامل شوی وی او اهل لسان هم پرې پوهه شو، لهذا معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ غرض په دې تفسیر سره بیان د حکم دې اه او د باب په دریم حدیث کښې کوم چه د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې هغه دا دې ﴿ الخمر من هاتین الشجرتین : النخلة والعنبة ﴾ دې باره کښې په کوکب او بذل دواړو کښې دا لیکلي دی چه په دې سره مقصود حصر نه دې خو صاحب د نتائج الافکار میلان د حصر طرف ته کړې دې، فقال بعد البحث : والحق ان المراد بالحکم الذی ارید بیانه بالحدیث هو حرمة قلیله وکثیره، وهذا المعنی لا یتحقق فی المتخذ من غیر تینک الشجرتین فصیح الحصر المستفاد من ذلک الحدیث بلا غباراه.....

زه وایم ځکه چه د احنافو په نزد د شرابو اقسام ثلاثه کښې چه کوم قسم ثانی دې د هغې تعلق صرف هم د دې دواړو سره دې زمونږ په نزد د دې حکم هم دا دې چه د دې قلیل او کثیر په حرمت کښې برابر دی، لهذا وئیلې کیدې شی چه خپله په دې احادیثو کښې تنوع اشربه او دهغې داختلاف اقسام ته اشاره موجود ده کومه چه احنافو اختیار کړې ده.

[٣٦٧٧] (٢) حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ أَبُو غَسَّانَ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى الْفُضَيْلِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ أَبِي حَرِيزٍ، أَنَّ عَامِرًا حَدَّثَهُ، أَنَّ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ الْخَمْرَ مِنَ الْعَصِيرِ، وَالزَّبِيبِ، وَالتَّمْرِ، وَالْحِنْطَةِ، وَالشَّعِيرِ، وَالذُّرَةِ، وَإِنِّي أَنْهَاكُمْ عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ".

دنعمان بن بشیر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې شراب دانګورو درس نه تیاریږي، اودوچو انګورونه اودوریشونه اودجوارو نه هم جوړیږي، اوزه تاسولره دهر نشه کونکې څیزنه منع کوم.

[٣٦٧٨] (٣) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنِي يَحْيَى، عَنْ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ: النَّخْلَةِ، وَالْعِنَبَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: اسْمُ أَبِي كَثِيرٍ الْغُبَرِيِّ يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غُفَيْلَةَ السُّحَيْمِيُّ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: أُذَيْنَةُ، وَالصَّوَابُ: غُفَيْلَةُ.

دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی شراب ددوه ونونه جوړیږي یعنی کجورې او انګور.

---

(١) د ا د «الکوکب الدري» په شان د ګنګوهی رحمه الله هغه تقریر ترمذی دې کوم چه زمونږ د شیخ د ترور خاوند مولانا رضی الحسن جمع فرمائیلې وو.

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٦٢٦) (صحیح)

(٣): صحیح مسلم/الأشربة ٤ (١٩٨٥)، سنن الترمذي/الأشربة ٨ (١٨٧٥)، سنن النسائي/الأشربة ١٩ (٥٥٧٥)، سنن ابن ماجه/الأشربة ٥ (٣٣٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٧٩، ٤٠٨، ٤٠٩، ٤٧٤، ٤٩٦، ٥١٨، ٥٢٦)، سنن الدارمي/الأشربة ٧ (٢١٤١) (صحیح)

حدیث النعمان بن بشیر رضي الله عنه الاول اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، وحدیث ابی هریرة رضي الله عنه اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْمُسْكِرِ

### دهر نشه کونکی څیز د مما نعت بیان

سکر په معنی د مسکر (وفی بعض النسخ "باب النهی عن المسکر")

[۳۶۷۹] (¹) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى فِي آخَرِينَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ، وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ، وَمَنْ مَاتَ وَهُوَ يَشْرَبُ الْخَمْرَ يُدْمِنُهَا لَمْ يَشْرَبْهَا فِي الْآخِرَةِ".

دعبد الله ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ فرمایلي دي دهرنشه کونکي څیز حکم دشرابو دي اوهرنشته کونکی څیز حرام دي او څوك چه مړ شي په داسي حال کښې چه شراب به ئي همیشه څکل نودقیامت په ورځ به دي دجنت دشرابونه محروم کړې شي.

(كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ) یعنی په حکم د خمر کښې، چه د کوم خمر بیان رسول الله ﷺ په مخکښې جمله کښې بیان فرمائی (وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ وَمَنْ مَاتَ وَهُوَ يَشْرَبُ الْخَمْرَ يُدْمِنُهَا لَمْ يَشْرَبْهَا فِي الْآخِرَةِ) یدمن د ادمان نه دي یعنی یو کار په دوام سره کول، کوم انسان چه همیشه شراب څکی یعنی د څکلو نه ئي توبه نه کوی نو هغه ته به په جنت کښې شراب طهور کوم چه به ټولو جنتیانو ته ملاویږی نه ملاویږی. والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، وحدیث النسائی مختصر، قاله المنذری.

(كُلُّ مُخَمِّرٍ خَمْرٌ) د تخمیر معنی تغطیه ده، نشه چونکه د انسان عقل پټوی په دې وجه خمر ته مخمر وائی.

[۳۶۸۰] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عُمَرَ الصَّنْعَانِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ، يَقُولُ: عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كُلُّ مُخَمِّرٍ خَمْرٌ، وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ، وَمَنْ شَرِبَ مُسْكِرًا بُخِسَتْ صَلَاتُهُ أَرْبَعِينَ صَبَاحًا، فَإِنْ تَابَ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِ، فَإِنْ عَادَ الرَّابِعَةَ كَانَ حَقًّا عَلَى اللَّهِ أَنْ يَسْقِيَهُ مِنْ طِينَةِ الْخَبَالِ، قِيلَ: وَمَا طِينَةُ الْخَبَالِ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: صَدِيدُ أَهْلِ النَّارِ، وَمَنْ سَقَاهُ صَغِيرًا لَا يَعْرِفُ حَلَالَهُ مِنْ حَرَامِهِ كَانَ حَقًّا عَلَى اللَّهِ أَنْ يَسْقِيَهُ مِنْ طِينَةِ الْخَبَالِ".

دعبد الله ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دهر عقل ختمونکي څیز هکم دشرابو دي اوهرنشته کونکي څیز حرام دي څوك چه داسې شي وڅې کوم چه نشه راولي نردده دڅلویښتو ورځو مونځونه به برباد کړې شي بیا کچرې دي توبه اوباسي نوالله تعالی به ئي قبوله کړي اوکه چرې دې په څلورم ځل باندې بیا وڅکي نو الله تعالی به خپله ذمه واري واپس واخلي ددې خبرې نه چه په دې شرابي به طینة الحبال وڅکولی شي

¹): صحيح مسلم/الأشربة ۸ (۲۰۰۳) سنن الترمذي/الأشربة ۱ (۱۸٦۱)، سنن النسائي/الأشربة ٤٦ (۵٦۷٦، ۵٦۷۷)، (تحفة الأشراف: ۷۵۱٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأشربة ۱ (۵۵۷۵)، سنن ابن ماجه/الأشربة ۱ (۳۳۷۷)، مسند احمد (۱۹/۲، ۲۲، ۲۸، ۳۵، ۱۹۸، ۱۲۳) سنن الدارمي/الأشربة ۳ (۲۱۳۵) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۷۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۷٤/۱) (صحيح)

صحابه کرامو عرض وکړو دطينة الخبال نه څه مراد دي؟ نبی ﷺ اوفرمائيل طينة الخبال ددوزخيانو نوونه دي اوبيا ئې اوفرمائيل څوك چه په يوداسې ماشوم شراب وڅکوي دکوم چه عمرکم ري اودحلال اوحرام تميز نشي کولی نودابه الله تعالی باندې لازم دي چه په ده باندې به طينة الخبال څکوي.

**قوله:** ﴿ وَمَنْ شَرِبَ مُسْكِرًا بُخِسَتْ صَلَاتُهُ أَرْبَعِينَ صَبَاحًا ﴾ او کوم سړې چه يو کرت شراب اوڅکی نو د هغه د څلويښتو ورځو مونځونه ناقص او بې برکته کيږي، پس که بنده توبه اوکړی نو الله پاک توبه قبلوی، او کوم سړې چه په څلورم کرت شراب اوڅکی نو الله پاک به په هغه باندې ضرور د طينة الخبال نه اوڅکوی. د طينة الخبال تفسير په حديث کښې په صديد اهل النار سره فرمائيلې شوې دې، د دوزخيانو وينې زوې، وړاندې په حديث کښې دی چه کوم سړې يو نابالغ ماشوم باندې شراب اوڅکوی نو دې څکونکی ته به هم ضرور الله پاک طينة الخبال اوڅکوی.

[٣٦٨١]( ) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ بَكْرِ بْنِ أَبِي الْفُرَاتِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی هريوشې چه نشه راولي هغه حرام دي لږ وي اوکه ډيروي.

**قوله:** ﴿ مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ ﴾ دا حديث د امام محمد او ائمه ثلاث په نزد په خپل ظاهر او عموم باندې دې، او د شيخينو په نزد څنګه چه مخکښې په تفصيل سره تير شوې دی موؤل دې.

والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٣٦٨٢]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِتْعِ؟، فَقَالَ: كُلُّ شَرَابٍ أَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَرَأْتُ عَلَى يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ الْجُرْجُسِيِّ، حَدَّثَكُمْ مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ الزُّبَيْدِيِّ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، بِهَذَا الْحَدِيثِ بِإِسْنَادِهِ، زَادَ: وَالْبِتْعُ: نَبِيذُ الْعَسَلِ، كَانَ أَهْلُ الْيَمَنِ يَشْرَبُونَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ مَا كَانَ أَثْبَتَهُ مَا كَانَ فِيهِمْ مِثْلُهُ يَعْنِي فِي أَهْلِ حِمْصَ يَعْنِي الْجُرْجُسِيَّ.

فرمائی چه دنبی ﷺ نه تپوس اوکړې شو دبتع نوي شرابر په باره کښې، نوونې فرمائيل هريوشراب چه نشته پيداکوي هغه حرام دي. امام ابوداؤد فرمائی مادا حديث يزيد بن عبدربه ته واورولو اوهغه داحديث دزبيدي نه اوهغه دزهري نه په دې طريقه نقل کړې دې البته په دې کښې دا اضافه ده چه تبع دشهدو شرابو ته وئيلې شي راوی وائی دين خلقو به

[1]: سنن الترمذي/الأشربة ٣ (١٨٦٥)، سنن ابن ماجه/الأشربة ١٠ (٣٣٩٣)، (تحفة الأشراف: ٣٠١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٤٣) (حسن صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الوضوء ٧١ (٢٤٢)، والأشربة ٤ (٥٥٨٥)، صحيح مسلم/الأشربة ٧ (٢٠٠١)، سنن الترمذي/الأشربة ٢ (١٨٦٣)، سنن النسائي/الأشربة ٢٣ (٥٥٩٤)، سنن ابن ماجه/الأشربة ٩ (٣٣٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٦٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الأشربة ٤ (٩)، مسند احمد (٣٨/٦، ٩٧، ١٩٠، ٢٢٦)، سنن الدارمي/الأشربة ٨ (٢١٤٢) (صحيح)

داشراب څکل، امام ابوداؤد فرمائی مادا امام احمد بن حنبل نه آوریدلی دی چه فرمائیل ئې «لا إله إلا الله» هغه څومره معتبر أوثقه سړې وو په قبیله حمص کښې دسرجسي نظیر نشته.

**قوله:** ﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَرَأْتُ عَلَى يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ الْجُرْجُسِيِّ حَدَّثَكُمْ مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ﴾
په پورته حدیث مذکور چه په هغې کښې البتع ذکر دې دا مصنف رحمه الله ته په دوه طریقو سره رارسیدلې دې یو په طریق د تحدیث یعنی سماع من لفظ الشیخ او دویم په طریق د قراءت علی الشیخ، قراءت علی الشیخ بعض وخت په طریقه د استفهام وی څنګه چه دلته دې: حدثکم محمد بن حرب، په اول طریقه کښې د مصنف رحمه الله استاد قعنبی دې، او په دویم طریق کښې علی بن یزید، په دې دویم طریق کښې د بتع د تفسیر زیادت دې، بتع نوم دې د نبیذ العسل، بله دا چه دا اهل یمن څکی.

**قوله:** ﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ يَقُولُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ مَا كَانَ أَثْبَتَهُ﴾ امام احمد رحمه الله د جرجسي توثیق فرمائی په طریقه د تعجب چه اوګورئ هغه څومره ثقه او ثبت دې. په اهل حمص کښې دهغوی برابر هیڅوک نشته، د تعجب دپاره خلق عام طور لفظ د سبحان الله استعمالوی او کله کلمه توحید هم استعمالوی لکه چه دلته استعمال شوې دی.[1]

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۶۸۳] ([2]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْيَزَنِيِّ، عَنْ دَيْلَمٍ الْحِمْيَرِيِّ، قَالَ: "سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا بِأَرْضٍ بَارِدَةٍ نُعَالِجُ فِيهَا عَمَلًا شَدِيدًا، وَإِنَّا نَتَّخِذُ شَرَابًا مِنْ هَذَا الْقَمْحِ نَتَقَوَّى بِهِ عَلَى أَعْمَالِنَا وَعَلَى بَرْدِ بِلَادِنَا، قَالَ: هَلْ يُسْكِرُ؟، قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: فَاجْتَنِبُوهُ، قَالَ: قُلْتُ: فَإِنَّ النَّاسَ غَيْرُ تَارِكِيهِ، قَالَ: فَإِنْ لَمْ يَتْرُكُوهُ فَقَاتِلُوهُمْ".

د دیلم الحمیري رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې تپوس اوکړو عرض مې اوکړواې دالله رسوله مونږ په یخ ملك کښې اوسیږو اوهلته کاروبارکوو او مونږ دځان دپاره دغنمونه شراب جوړوو نبی علیه السلام اوفرمائیل ایا دغه شراب نشه پیداکوي؟ ماعرض اوکړو هو، هغه شراب نشه پیداکوي نبی علیه السلام اوفرمائیل بیاخودډینه ځان وساتئ ماعرض اوکړو خلق ددې پریخودونکي نه دي نبی علیه السلام اوفرمائیل که چرې خلق شراب نه پریږدی نوتاسو ورسره جنګ وکړئ.

**قوله:** ﴿عَنْ دَيْلَمٍ الْحِمْيَرِيِّ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم الخ﴾

**شرح الحدیث:**

دیلم حمیری جیشانی رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! مونږ په داسې زمکه باندې اوسیږو چه هلته یخنی ده. په ظاهر کښې د یمن زمکه مراد څکه چه جیشان د

---

[1] ) زمونږ دلته په سهارنپور کښې په محله شاه ولایت کښې یو پخوانې حکیم صاحب وو (حکیم مختار صاحب مرحوم) چه عالم هم وو د هغوی عادت هم دا وو چه کله به ئې یو خبره د تعجب په طور بیانوله نو هغه به ئې په ﴿لا اله الا الله﴾ سره بیانوله یغفر الله لنا وله)

[2] ): ● تخریج: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۵۴۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳۱/۴، ۲۳۲) (صحیح)

يمن قبيله ده هلته مونږ په محنت او مشقت سره کار کوو او هلته مونږ د اوربشو نه شراب جوړوو چه څکو ئې د طاقت دپاره او د يخنئ نه د بچ کيدو دپاره، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه د هغې نه سکر پيدا کيږی؟ هغوی عرض اوکړو او جی. رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د هغې نه پرهيز کوه، ما عرض اوکړو چه هغه خلق خو هغې لره پريخودونکی نه دی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه که هغوی ئې نه پريږدی نو د هغوی سره قتال اوکړه.

[٣٦٨٤](١)حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: "سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَرَابٍ مِنَ الْعَسَلِ؟ فَقَالَ: ذَاكَ الْبِتْعُ، قُلْتُ: وَيُنْتَبَذُ مِنَ الشَّعِيرِ وَالذُّرَةِ، فَقَالَ: ذَلِكَ الْمِزْرُ، ثُمَّ قَالَ: أَخْبِرْ قَوْمَكَ أَنَّ كُلَّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ".

د ابوموسی نه روايت دې فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې دشهدو دشرابو په باره کښې تپوس اوکړو نوونې فرمائيل دشيدو دشرابو نوم بتع دې، ماعرض اوکړو دجوارو او وربشونه هم شراب جوړيږي نبی ﷺ اوفرمائيل هو، هغې ته مزر ونيلې شي اوبيا ئې اوفرمائيل تاسو خپل قوم خبر کړئ چه هرنشته کونکی څيز حرام دې.

﴿عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ شَرَابٍ مِنَ الْعَسَلِ الخ﴾

ابو موسی اشعری رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه د شراب عسل په باره کښې سوال اوکړو، رسول الله ﷺ اوفرمائيل هغې ته بتع وائی ما تپوس اوکړو چه خلق د اوربشو او جوارو نبيذ هم جوړوی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل د هغې نوم مزر دې او بيا ئې د هغې ټولو په باره کښې اوفرمائيل ﴿كل مسكر حرام﴾

ذرة په ضم د ذال سره او د را مخففه د فتحې سره يعنی جوار(٢) کومه چه يوه مشهوره غله ده د باجرې په شکل کښې خو سپينه.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم بنحوه من حديث سعيد بن ابي بردة عن ابيه، قاله المنذري

[٣٦٨٥](٣)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عَبْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو: أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "نَهَى عَنِ الْخَمْرِ، وَالْمَيْسِرِ، وَالْكُوبَةِ، وَالْغُبَيْرَاءِ، وَقَالَ: كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ ابْنُ سَلَامٍ أَبُو عُبَيْدٍ: الْغُبَيْرَاءُ: السُّكُرْكَةُ تُعْمَلُ مِنَ الذُّرَةِ، شَرَابٌ يَعْمَلُهُ الْحَبَشَةُ.

دعبد الله ابن عمرو رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائيلې ده دشرابو اوجوارئ اودکوبه «دول غړول اودغبيراء «دجوارو شراب نه اوفرمائيلې يې دي هرنشه کونکی څيز حرام دي.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩١٠٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المغازي ٦٠ (٤٣٤٣)، الأدب ٨٠ (٦١٢٤)، الأحكام ٢٢ (٧١٧٢)، صحيح مسلم/الأشربة ٧ (١٧٣٣)، سنن النسائي/الأشربة ٢٣ (٥٥٩٨)، سنن ابن ماجه/الأشربة ٩ (٣٣٩١)، مسند احمد (٤/٤١٠، ٤١٦، ٤١٧) (صحيح)

(٢) كذا في البذل وهو المشهور وفي هامش البذل عن المحيط الاعظم ٣/٢ ٨بضم المعجمة وتشديد المهملة المفتوحة وسكون المثناة الفوقية وقال اسمه في الهندية جوار اهـ وضبطه في المجمع بضم معجمة وخفة راء وقال هاوه عوض عن واو كذا في الاوجز اهـ)

(٣): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٩٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٥٨، ١٧١) (صحيح)

**قوله:** ﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَالْكُوبَةِ وَالْغُبَيْرَاءِ وَقَالَ « كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ » ﴾

میسر یعنی جواری او کوبه یعنی طبل (ډهول) او غبیراء د جوارو شراب چه هغې ته سُکُرکه هم وائی، د کوبه تفسیر په طبل سره خپله په کتاب کښې د څو روایتونه پس راروان دي او په بذل کښې لیکلي دی: الکوبة بالضم هی النرد او الطبل او البربط اهـ بربط یعنی سارنګی.

[٣٦٨٦] (١) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ عَبْدُ رَبِّهِ بْنُ نَافِعٍ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَمْرٍو الْفُقَيْمِيِّ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ وَمُفَتِّرٍ".

دام سلمه رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائیلې ده داستعمالولو دهر نشه راوستونکي څیز اودهر سستي پیدا کونکي څیزنه.

**قوله:** ﴿أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ وَمُفَتِّرٍ ﴾

مفتر یعنی فتور پیدا کونکې څیز، فتور مقدمه د سکر وی، په بدن کښې سستی، کمزوری او بیهوشی شان، په حاشیه د ابوداؤد کښې دی: حافظ عراقی رحمه الله د دې حدیث نه د حشیشه (بهنګ) په حرمت باندې استدلال کړې دې. اهـ د بهنګو په شان یو بل څیز وی چه هغې ته دهتوره وائی هغه هم بعض خلق څکی دا هم د مفضی الی السکر کیدو د وجې نه ناجائز دي. (٢)

[٣٦٨٧] (٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ يَعْنِي ابْنَ مَيْمُونٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عُثْمَانَ، قَالَ مُوسَى، هُوَ عَمْرُو بْنُ سَلْمٍ الْأَنْصَارِيُّ: عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ، وَمَا أَسْكَرَ مِنْهُ الْفَرَقُ فَمِلْءُ الْكَفِّ مِنْهُ حَرَامٌ".

دام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې هر نشه کونکو څیز حرام دې اوکوم یوشي چه دفرق (یوه پیمانه) په مقدار نشه پیدا کړې نودهغې یو چونګ هم حرام دي.

**قوله:** ﴿ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ وَمَا أَسْكَرَ مِنْهُ الْفَرَقُ فَمِلْءُ الْكَفِّ مِنْهُ حَرَامٌ ﴾

د دې حدیث ذکر مونږ سره د فریق ثانی د دلیل په شروع کښې شوې دې. والحدیث اخرجه الترمذی وقال هذاحدیث حسن، قاله المنذری.

## باب فِي الدَّاذِيِّ

### د داذی (شرابو) د حرمت بیان

د داذی په باره کښې لیکلي دی چه هغه د یو څیز تخم وی کوم چه په نبیذ کښې اچولې شی چه د هغې په وجه باندې په نبیذ کښې سختی او نشه پیدا کیږی کذا فی المجمع، او په

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨١٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٩٥، ٢٩٤، ٣٠٩) (ضعيف)

(٢) بعض جاهل صوفیاء او مجاور قسم خلق هم دا څکي لکه رسول شاهي وغیره، صاحب د عون المعبود د دې په حرمت باندې تفصیلي کلام کړې دې په څو پاڼو کښې بما لامزید علیه

(٣): سنن الترمذي/الأشربة ٣ (١٨٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٦٥)، وقد أخرجه: مسند أحمد (٦/٧١، ٧٢، ١٣١) (صحيح)

قاموس کښې ئې د داذی په باره کښې ليکلې دی شراب الفساق کيدې شی دا هم هغه وی چه هغې ته تاړی وئيلې شی، د تاړ او د کهجورې د اونې نه اوبه راوځی چه هغه څکی، تاړی هم که تازه اوڅکلې شی نو په دې کښې څه باک نشته، خو د ايخودلو د وجې نه زيات وخته پورې په دې کښې زګ او سختی پيدا شی بيا دا ناجائز کيږی.

[۳۶۸۸]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ حَاتِمِ بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، قَالَ: دَخَلَ عَلَيْنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ غَنْمٍ، فَتَذَاكَرْنَا الطِّلَاءَ، فَقَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو مَالِكٍ الْأَشْعَرِيُّ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَيَشْرَبَنَّ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي الْخَمْرَ يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ اسْمِهَا".

د مالك بن ابی مريم نه روايت دې فرمائی چه مونږه عبدالرحمن بن غنم نه راغلو اومونږه دتلاذکروکړو عبدالرحمن اووئيل ماته ابومالك اشعريه حديث بيان کړې دې چه نبی عليه السلام به فرمائيل يقينا زماپه امت کښې به څه خلق شراب څې اودې لره به بل نوم ږدي (يعنی نوم به ئې بدلوي).

﴿ دَخَلَ عَلَيْنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ غَنْمٍ فَتَذَاكَرْنَا الطِّلاَءَ فَقَالَ حَدَّثَنِي أَبُو مَالِكٍ الأَشْعَرِيُّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « لَيَشْرَبَنَّ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي الْخَمْرَ يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ اسْمِهَا » ﴾

مطلب دا دې چه په نوم بدلولو کښې هيڅ فرق نه راځی که حقيقة يو شراب مسکر وی نو هغه به د خمر په حکم کښې داخل وی اګر که د هغې نوم هر څه کيخودلې شی، د حقيقت او د مسمی اعتبار به وی د اسم نه.

### د طلاء تفسير :

په دې روايت کښې د طلاء ذکر دې، دلته په شروح کښې په بذل المجهود او عون المعبود وغيره کښې د دې تفسير په ما طبخ من عصير العنب حتى ذهب ثلثاه سره کړې شوې دې خو د کوم عصير دوه ثلثه چه سوزيدلې وی هغه حرام نه دې خو د کوم عصير چه د دوه ثلث نه کم سوزيدلې وی هغه د حرامو شرابو نه دې ﴿ فمقتضى المقام ان يفسر حتى ذهب اقل من ثلثيه ﴾ هسې خو اطلاق د طلاء په دې دواړو قسمونو باندې کيږی لکه چه د کتاب الاشربه په شروع کښې په حاشيه کښې تير شوې دی، فتنبه.

والحديث اخرجه ابن ماجه اتم من هذا، قاله المنذری

[۳۶۸۹]([2])حَدَّثَنَا شَيْخٌ مِنْ أَهْلِ وَاسِطٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مَنْصُورٍ الْحَارِثُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَ: سَمِعْتُ وَسُئِلَ سُفْيَانَ الثَّوْرِيَّ عَنِ الدَّاذِيِّ؟ فَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيَشْرَبَنَّ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي الْخَمْرَ يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ اسْمِهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ: الدَّاذِيُّ شَرَابُ الْفَاسِقِينَ.

امام ابوداؤد وائی دحارث بن منصور نه روايت دې دسفيان ثوري نه مې اوريدلی دی کله چه دهغه نه دداني شرابوپه باره کښې تپوس اوشو هغه اووئيل رسول الله فرمائيلي دي خامخا څکې به څه خلق زما دامت نه شرابو لره او په دې باندې به بل نوم ږدی، امام ابوداؤد وائي سفيان ثوری وئيلی دی چه داذی دفاسقانو شراب دي.

[1]: سنن ابن ماجه/الفتن ۲۲ (۴۰۲۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۶۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۲/۵) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود (صحيح)

## بَابٌ فِي الْأَوْعِيَةِ
### دشرابو دلوښو بيان

[۳۶۹۰]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ حَيَّانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَا: نَشْهَدُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الدُّبَّاءِ، وَالْحَنْتَمِ، وَالْمُزَفَّتِ، وَالنَّقِيرِ".

دعبدالله بن عمر اوعبدالله ابن عباس رضي الله عنهم نه روايت دې دوې وئيلې دي مونږ ګواهي ورکوو چه نبی عليه السلام منع فرماليل وه داستعمالولو دکدوارد چاټئ نه اود حرمني دګودي (غړکئ) اودلرګي نه دجوړشوي لوخي داستعمالولونه.

﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَابْنِ عَبَّاسٍ قَالاَ نَشْهَدُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ وَالنَّقِيرِ ﴾

په شروع کښې د تحريم خمر نه مخکښې چه په کومو لوښو کښې شراب جوړولې شو په دې باب کښې دهغې بيان دې، په دې لوښو کښې به شراب زر تياريدل.

**په مشکيزه کښې د شرابو جوړولو مصلحت :**

په شروع کښې رسول الله ﷺ په دې لوښو کښې د نبيذ جوړولو نه هم منع فرمائيلې وه او هدايت کړې شوې وو چه نبيذ دې په اسقيه يعنی مشکيزه کښې جوړ کړې شی مشکيزه هم داسې چه د هغې خوله د بره نه په څه څيز باندې اوتړلې شی. پس په وړاندې روايت کښې راروان دی ﴿ عليكم باسقية الادم التى يلاث على افواهها ﴾ ددې مصلحت دا وو چه کوم نبيذ په مشکيزو کښې جوړولې شی خصوصا هغه چه د پورته نه ئې خوله بند کړې شی نو په دې قسم مشکيزه کښې که د اشتداد او سکر آثار پيدا کيدل شروع شی نو د هغې به فورا پته لګی، د ګيس د وجې نه به هغه مشکيزه پړسيدل شروع شی، او په دې صورت کښې به سړې د دهوکې خوړلو او د نشائی شرابو نه بچ شی، په خلاف د هغه لوښو په کوم کښې چه د نبيذ جوړولو نه رسول الله ﷺ منع فرمائيلې ده هغوی فرمائی په دې لوښو کښې که نبيذ جوړولې شی نو څه ظاهری نخښه د اشتداد او نشې په هغې کښې ښکاره نه وی نو د هغې د وجې نه خطره وی د دې چه کيدې شی په دې نبيذ کښې نشه پيدا شوې وی چه د هغې احساس به جورونکی ته نه وی او هغه به دې لره غير مسکر ګنړلو سره څکل شروع کړی اصل وجه ددې منع داده چه د هغې حاصل احتياط او عدم اعترار دې ګڼني اصل بنياد د حرمت په لوښو وغيره باندې نه دې بلکه په سکر باندې دې نبيذ که په لوښی کښې جوړ کړې شی او که په مشکيزه کښې که په هغې کښې سکر پيدا نه شی نو حلال دې او که پيدا شوې وی نو حرام دې لکه چه په بعض روايتونو کښې رسول الله ﷺ د دې تصريح فرمائيلې ده نن غرض دا چه د شرابو د حرمت په ابتدائی زمانه کښې رسول الله ﷺ د دې لوښو د استعمال نه هم منع اوفرمائيله خو بيا چه صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو چه يا رسول

[1]: صحيح مسلم الأشربة ٦ (١٩٩٧)، سنن النسائي الأشربة ٣٦ (٥٦٤٦)، (تحفة الأشراف: ٥٦٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٢/١) (صحيح)

الله ﷺ مونږ. سره د دې نه علاوه نور لوښی نشته نو په دې باندې رسول الله ﷺ د هغه لوښو د استعمال اجازت اوفرمائیلو. پس د جمهورو په نزد د هغه لوښو په باره کښې چه کوم د منع روایات دی هغه منسوخ دی، بیا هم پکښې څه اندازه اختلاف باقی دې.

## د اوعیه اربعه وضاحت :

اوس وړاندې تاسو ددې اوعیه مذکوره فی الحدیث تفسیر واورئ. ﴿الدباء﴾ اوچ کدو چه د هغې نه دننه مغز اوباسی او د پیالې په شکل کښې شی. ﴿الحنتم﴾ الجرة الخضراء د خاورې نه جوړ شته منګه، ﴿المزفت﴾ د خاورې هغه لوښې چه په هغې باندې زفت لګیدلې وی، زفت د تارکولو په شان یو تور څیز وی کوم چه په کشتئ وغیره باندې هم لګوی چه هغې ته اوبه دننه داخل نه شی، په بعضو روایاتو کښې ﴿مقیر﴾ راغلې دې او دا دواړه یوه معنی لری، ﴿مقیر﴾ چه په کوم باندې قیر لګیدلې شوې وی قار هم وئیلې شی زفت ته دا دواړه یو څیز دې. ﴿النقیر﴾ د فعیل په وزن په معنی د مفعول یعنی منقور د کهجورې د تنې یوه ټکړه چه د هغې نه مغز ویستلو سره هغه ډډه کړې شی، لکه چه زمونږ په علاقو کښې چه د لرګی چټو وی د چهتنئ (دهنیا) میده کولو دپاره، په بعض روایاتو کښې د مزفت نه پس د نقیر په ځائې مقیر راغلې دې، دا صحیح نه دې، دا به تکرار شی ځکه چه مقیر او مزفت خو یو څیز دې په دې اوعیه کښې د نهی علت څه دې؟ په مزفت کښې د تیلو د لګیدو د وجې نه چونکه په هغې کښې د هوا سوری بند شی چه د هغې د وجې نه په هغې کښې اشتداد زر پیدا کیږی، دویم دا چه د دې لوښو خوله کهلاؤ وی او پلنه وی په خلاف د مشکیزه چه د هغې خوله ډیره تنګه وی چه په هغې کښې د اشتداد په وخت انتفاخ پیدا کیږی چه په هغې سره انسان ته پته لګی په خلاف د دې لوښو کښې، خو دا نهی په شروع کښې روستو د رسول الله ﷺ د طرف نه اجازت ملاؤ شو لکه چه د هم دې باب د څو روایتونو نه پس راځی ﴿کنت نهیتکم عن ثلاث وانا امرکم بهن الحدیث﴾ او د دې نه په روستو روایت کښې دی ﴿لما نهی رسول الله ﷺ عن الاوعیة قالت الانصار انه لا بد لنا قال فلا اذا﴾ یعنی انصارو عرض اوکړو چه زمونږ د دې لوښو نه بغیر ګزاره نه کیږی نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل هیڅ باک نشته. پس په ائمه کښې د احنافو په نزد دا نهی منسوخ ده، او هم دغه شان د حنابله په راجح قول کښې، او د امام شافعی رحمه الله په نزد کراهت باقی دې اګر که تحریم نه دې باقی، او د امام مالک رحمه الله په نزد په دې څلورو کښې په دوو کښې کراهت دې په دباء او مزفت کښې، هسې خو عام طور شراح د جمهورو مسلک نسخ نقل کوی. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری

[۳٦۹۱] (¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ يَعْلَى يَعْنِي ابْنَ حَكِيمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: "حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيذَ

¹): صحيح مسلم/الأشربة ٦ (١٩٩٧)، سنن النسائي/الأشربة ٢٨ (٥٦٢٢)، (تحفة الأشراف: ٥٦٤٩)، وقد أخرجه: حم ٣٤٨/١، ٤٨/٢، ١٠٤، ١١٢، ١١٥، ١٥٣) (صحيح)

الْجَرِّ، فَخَرَجْتُ فَزِعًا مِنْ قَوْلِهِ حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيذَ الْجَرِّ، فَدَخَلْتُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، فَقُلْتُ: أَمَا تَسْمَعُ مَا يَقُولُ ابْنُ عُمَرَ؟، قَالَ: وَمَا ذَاكَ؟، قُلْتُ: قَالَ: حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيذَ الْجَرِّ، قَالَ: صَدَقَ، حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيذَ الْجَرِّ، قُلْتُ: وَمَا الْجَرُّ؟، قَالَ: كُلُّ شَيْءٍ يُصْنَعُ مِنْ مَدَرٍ".

دسعید بن جبیر نه روایت دي فرمائی چه دعبد الله ابن عمر رضی الله عنه نه مي واوریدل چه نبی ﷺ هغه نبیذ حرام کړي دي کوم چه دخاورو په لوښي کښې جوړیږي ماچه دا واوریدل نوابن عباس ته لاړم او ورته مي ووئیل ایاتا آوریدلی دی څه چه ابن عمره وائی هغه تپوس اوکړو ابن عمر څه وائی ما ورته اووئیل هغه وائی چه نبی ﷺ د منګي نبیذ حرام کړیدي ابن عباس اووئیل هغه رښتیاوئیلي دي نبی ﷺ د منګي نبیذ حرام کړي دي ماعرض اوکړو «جر، ، څه شي دي؟ هغه اووئیل جر دخاورو لوښي ته وئیلي شي.

﴿حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– نَبِيذَ الْجَرِّ. قُلْتُ مَا الْجَرُّ قَالَ كُلُّ شَىْءٍ يُصْنَعُ مِنْ مَدَرٍ﴾

یعنی د خاورې متکه، خو په بذل کښې دی ای ما ینبذ فی الجرار[1] (الجرار جمع جرة) ولعل المراد من الجرار المدهونة، یعنی د لرګی لوښي. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری.

[٣٦٩٢] (²) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: وَقَالَ مُسَدَّدٌ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَذَا حَدِيثُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: "قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا هَذَا الْحَيَّ مِنْ رَبِيعَةَ قَدْ حَالَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ كُفَّارُ مُضَرَ، وَلَسْنَا نَخْلُصُ إِلَيْكَ إِلَّا فِي شَهْرٍ حَرَامٍ، فَمُرْنَا بِشَيْءٍ نَأْخُذُ بِهِ وَنَدْعُو إِلَيْهِ مَنْ وَرَاءَنَا، قَالَ: "آمُرُكُمْ بِأَرْبَعٍ، وَأَنْهَاكُمْ عَنْ أَرْبَعٍ: الْإِيمَانُ بِاللَّهِ، وَشَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَعَقَدَ بِيَدِهِ وَاحِدَةً، وَقَالَ مُسَدَّدٌ: الْإِيمَانُ بِاللَّهِ؟ ثُمَّ فَسَّرَهَا لَهُمْ "شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، وَإِقَامُ الصَّلَاةِ، وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ، وَأَنْ تُؤَدُّوا الْخُمُسَ مِمَّا غَنِمْتُمْ، وَأَنْهَاكُمْ عَنْ: الدُّبَّاءِ، وَالْحَنْتَمِ، وَالْمُزَفَّتِ، وَالْمُقَيَّرِ"، وَقَالَ ابْنُ عُبَيْدٍ: النَّقِيرِ: مَكَانَ الْمُقَيَّرِ، وَقَالَ مُسَدَّدٌ: وَالنَّقِيرِ وَالْمُقَيَّرِ وَلَمْ يَذْكُرِ الْمُزَفَّتِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو جَمْرَةَ نَصْرُ بْنُ عِمْرَانَ الضُّبَعِيُّ.

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ ته دعبدالقیس قبیلې رفد راغي اوهغوی عرض اوکړو اې دالله رسوله مونږیو داسې قبیله یو چه زمونږه اوستاپه مینځ کښې دمظیر کافران حائل دي اودعزتمندو میاشتونه علاوه مونږ ستا سره ملاقات نشوکولې مونږ ته داسې څیز وښايه چه مونږ پخپله هم په هغې باندې عمل کوو اودخان نه علاوه نورو خلقونه هم په هغې باندې حکم وکړو نبی ﷺ اوفرمائیل زه تاسوله په څلود خبرباندې حکم کوم اودڅلورو څیزولونه مومنع کرم (۱، حدي خیري ګواهی ورکول چه دالله نه علاو بل

---

[1]) الجر بفتح الجيم وتشديد الراء جمع جرة كتمر جمع تمرة وهو بمعنى الجرار الواحدة جرة، ويدخل فيه جميع انواع الجرار من الحنتم وغيره، وقوله من نذر بفتح الميم والدال الطين المجتمع الصلب، كذا في النهاية وهذا تصريح ان الجر يدخل فيه جميع انواع الجر المتخذة من المدر الذي هو التراب والطين آه، من العون.

[2]): صحيح البخاري/الإيمان ٤٠ (٥٣)، العلم ٢٥ (٨٧)، المواقيت ٢ (٥٢٣)، الزكاة ١ (١٣٩٨)، المناقب ٥ (٣٥١٠)، المغازي ٦٩ (٤٣٦٩)، الأدب ٩٨ (٦١٧٦)، خبر الواحد ٥ (٧٢٦٦)، التوحيد ٥٦ (٧٥٥٦)، صحيح مسلم/الإيمان ٦ (١٧)، الأشربة ٦ (١٩٩٥)، سنن الترمذي/السير ٣٩ (١٥٩٩)، الإيمان ٥ (٢٦١١)، سنن النسائي/الإيمان ٢٥ (٥٠٣٤)، الأشربة ٥ (٥٥٥١)، (تحفة الأشراف: ٦٥٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٨/١، ٢٧٤، ٢٩١، ٣٠٤، ٣٣٤، ٣٥٢،٣٤٠، ٣٦١)، سنن الدارمي/الأشربة ١٤ (٥٦٦٢)، ويأتي بعضه في السنة (٤٦٧٧) (صحيح)

څوك دعبادت لائق نه لو خپل لاس مبارك به اشاره وكړه دمسدد په روايت كښې دي مونبى عليه السلام اوفرمائيل په الله تعالى باندې ايمان راوړل اوبيا ئې ددې داسې تفسير وكړو رضي الله عنه نه دى خبرې ګواهى وركول چه دالله تعالى نه علاوه بل څوك حقدار دبندګى نشته. (۲) مونځ قائمول (۳) زكوة وركول (۴) دغنيمت دمال نه خمس جدا كول، اوزه تاسو دڅلور تسمه لوښو داستعمالولونه منع كوم :(۱) داستعمالولو دكدونه (۲) اودجانئ نه (۳) اود څرمنې دردودې غوړكئ نه (۴) اودلرګې نه دجوړشوي لوخي داستعمالولونه. ابن عبيد دمقير لفظ په ځائې باندې نقيرذكركړې دې اومسدد په خپل روايت كښې منير اونقيرذكركړې دې اومزفت ئې نه دى ذكركړې، امام ابوداؤد وائى دابوجمره نوم نصربن عمران دې.

قوله: ﴿ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا هَذَا الْحَيَّ مِنْ رَبِيعَةَ ﴾

## د وفد عبدالقيس والا حديث شرح :

دې خلقو عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ زمونږ چه كومه قبيله ده قبيله ربيعه د هغې ترمينځه او ستاسو ترمينځه د قبيله مضر كفار حائل دى په دې وجه مونږ تاسو ته صرف په اشهر حرم كښې راتلې شو ، ځكه چه په هغه مياشتو كښې د كفارو په نزد هم قتال ممنوع دې. پس تاسو مونږ ته د داسې څيز حكم او هدايت اوفرمايئ چه هغه مونږ په مضبوطيا سره اونيولې شو او د هغې طرف ته خپل قوم له هم دعوت وركړو كوم چه مونږ د خان نه روستو پريخودلې دى، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زه تاسو ته د څلورو څيزونو حكم كوم او د څلورو څيزونو نه مو منع كوم، وړاندې د هغه څلورو څيزونو حكم دې يو ايمان بالله يعنى شهادة ان لا اله الا الله وان محمدا رسول الله، او دويم مامور اقامة الصلوة، او دريم زكوة وركول او څلورم اداء الخمس، دا څلور پوره شو ،

## (اشكال)

په دې حديث كښې د حج او صوم ذكر نشته، خو په نورو رواياتونو كښې د صوم ذكر دې، لكه بخارى وغيره كښې، خو د حج ذكر د صحاح په روايت كښې نشته [1]نو يا خو په دې وجه چه هغه دغه وخت كښې يا خو فرض شوې نه وو او يا په دې وجه چه....... د حج فرضيت د يو قول مطابق په ۹ هجرى كښې شوې دې او د وفد عبد القيس راتلل په ۸ هجرى كښې وو خو مشهوره دا ده چه د حج فرضيت په شپږمه هجرئ كښې شوې دې نو كيدې شى چه د حج د ذكر ترک كولو بل څه وجه وى مثلا د هغه كفارو د وجې نه ئې په هغې باندې قدرت نه وى يا د هغې فرضيت على التراخى دې، يا دا چه د رسول الله ﷺ مقصد د ټولو احكاماتو نه خبرول نه وو بلكه د بعض احكاماتو نه وغيره وغيره.

## (د مامور به اشياؤ سره متعلق بل سوال او دهغې جوابونه)

خو د صوم ذكر د ابوداؤد نه علاوه په نورو كتابونو كښې شته نو بيا دا امور په ځائې د څلورو پنځه شو.

[1] اګر چه په مسند احمد او سنن كبرى د بيهقى كښې شته.

(دریمې جواب): د دې یو جواب کوم چه د بیضاوی نه نقل دې هغه دا دې چه دلته څومره ځیزونه نقل دی هغه ټول د ایمان بالله تفسیر دی لهذا مذکور امر واحد شو او باقی راوی اختصارا یا نسیانا حذف کړل، خو حافظ رحمه الله په دې توجیه باندې دا اشکال کړې دې چه په بعض روایتونو کښې د ﴿ شهادة ان لا اله الا الله ﴾ نه پس ﴿ وعقد بیده واحدة ﴾ ذکر دې چه د هغې نه معلومیږی چه د دې نه روستو چه کوم امور ذکر شوې دی هغه د شهادت تفسیر نه دې بلکه مستقل دې په دې وجه د بیضاوی توجیه صحیح نه ده لهذا د دې نه علاوه بل څه جواب باندې غور کول پکار دی.

(دویم جواب): یو جواب دا ورکړې شوې دې چه دا حضرات چونکه د کفار مضر ګاوندې کښې اوسیدل او د اهل جهاد وغنائم نه وو نو د هغوی د حال مناسبت سره رسول الله ﷺ د امر خامس زیادت هم اوفرمائیلو. یا دې داسې اوئیلې شی چه ادا خمس د ایتاء زکوة په عموم کښې داخل نه دې د دواړو تعلق د مال معین سره دې او یو جواب دا ورکړې شوې دې چه د ﴿ وان تودوا الخمس ﴾ عطف په ایمان باندې نه دې بلکه د دې عطف په اربع باندې دې ﴿ ای امرهم باربع وباعطاء الخمس ﴾ یعنی رسول الله ﷺ هغوی ته د دې څلورو ځیزونو حکم اوکړو او د اداء خمس اهـ من القسطلانی ۱/۳۷

قوله: ﴿وَأَنْهَاكُمْ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ وَالْمُقَيَّرِ ». وَقَالَ ابْنُ عُبَيْدٍ النَّقِيرِ مَكَانَ الْمُقَيَّرِ ﴾

صرف د ابن عبید روایت صحیح دې ګینې بیا به تکرار لازم شی ځکه چه مزفت او مقیر دواړه یو دی لکه چه مخکښې تیر شو.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ أَبُو جَمْرَةَ نَصْرُ بْنُ عِمْرَانَ الضُّبَعِيُّ ﴾ دا ابوجمره د ابن عباس رضی الله عنهما په شاګردانو کښې دې او یو بل راوی ابوحمزه دې بالحاء المهمله والزائ المعجمه هغه هم د ابن عباس رضی الله عنهما په شاګردانو کښې دې د هغوی نوم (عمران بن ابی عطاء) دې ﴿ ذکره الامام الترمذی فی عدة مواضع من جامعه ﴾

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

[۳۶۹۳](۱) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ نُوحِ بْنِ قَيْسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَوْنٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِوَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ: "أَنْهَاكُمْ عَنِ النَّقِيرِ، وَالْمُقَيَّرِ، وَالْحَنْتَمِ، وَالدُّبَّاءِ، وَالْمَزَادَةِ الْمَجْبُوبَةِ، وَلَكِنِ اشْرَبْ فِي سِقَائِكَ وَأَوْكِهِ".

د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی فرمائی چه نبی ﷺ دعبدالقیس وفد ته وئیلي وو چه زه تاسو لره د لرګي دلوښود استعمالولونه منع کوم اودهغه لوښي نه کوم چه دونې دبیخ نه جوړشي اوهمدارنګې دغوړ کړې شوي دلوښي داستعمال نه اودچاتئ اوډیدونه دجوړ کړې شوي لوښي داستعمال نه اودهغه مشک داستعمال نه دکوم چه لاندینئ حصه بنده کړې شوي نه وي لیکن تاسو دمشک نه اوبه څکي اوددې خوله به بنده ساتئ.

۱): صحیح مسلم/الأشربة ۶ (۱۹۹۲)، سنن النسائي/الأشربة ۳۸ (۵۶۴۹)، (تحفة الأشراف: ۱۵۰۹۳، ۱۴۴۷۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۹۱/۲، ۴۱۴) (صحیح)

﴿والمزادة المجبوبة﴾ هغه لویه مشکیزه چه د هغې خوله د پورته نه پرې کولو سره پلنه کړې شوې وی چه د پورته نه ئې اوبه راویستلې شی او د هغې دپاره عزلاء نه وی یعنی د مشکیزې لاندې طرف ته خوله، په داسې مشکیزه کښې رسول اللهﷺ د نبیذ جوړولو نه منع اوفرمائیله ځکه چه د هغې د خولې بندیدلو د وجې نه که په هغې کښې اشتداد پیدا شی نو د هغې انتفاخ به نه کیږی چه په هغې سره د سکر پته لګیږی. اوس دا چه په څنګه مشکیزه کښې نبیذ جوړ کړې شی؟ دې باره کښې په روستو روایت کښې راروان دی ﴿علیکم بالاسقیة الادم التی یلاث علی افواهها﴾ یعنی داسې دڅرمنې مشکونه چه د هغې خولې د بره نه اوتړلې شی او د دې هم معنی دې هغه لفظ کوم چه د دې نه روستو روایت کښې دې ﴿واشربوا فی الجلد الموکی علیه﴾ یعنی د کومې مشکیزې په خوله باندې چه مزې تړلې شوې وی، د خولې د بندوالی د وجې نه د انتفاخ په وجه باندې د اشتداد فوراً پته لګی.

[۳۶۹۴](¹)حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، وَسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي قِصَّةِ وَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ، قَالُوا: فِيمَ نَشْرَبُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ؟ فَقَالَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَلَيْكُمْ بِأَسْقِيَةِ الْأَدَمِ الَّتِي يُلَاثُ عَلَى أَفْوَاهِهَا".

د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه په واقعه دوند دعبدالقیس کښې مروي دي چه هغوی عرض اوکړوچه زمونږ دپاره په کوم لوښي کښې اوبه څکل پکاردي؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل دچرې په مشکونوکښې اوبه څکئ دکوموچه خوله بندیدلې شی.

[۳۶۹۵](²)حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ عَوْفٍ، عَنْ أَبِي الْقَمُوصِ زَيْدِ بْنِ عَلِيٍّ، حَدَّثَنِي رَجُلٌ كَانَ مِنَ الْوَفْدِ الَّذِينَ وَفَدُوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَبْدِ الْقَيْسِ يَحْسَبُ عَوْفٌ، أَنَّ اسْمَهُ قَيْسُ بْنُ النُّعْمَانِ، فَقَالَ: "لَا تَشْرَبُوا فِي نَقِيرٍ وَلَا مُزَفَّتٍ وَلَا دُبَّاءٍ وَلَا حَنْتَمٍ، وَاشْرَبُوا فِي الْجِلْدِ الْمُوكَإِ عَلَيْهِ، فَإِنِ اشْتَدَّ فَاكْسِرُوهُ بِالْمَاءِ، فَإِنْ أَعْيَاكُمْ فَأَهْرِيقُوهُ".

د زید بن علی نه روایت دې فرمائی چه دعبدالقیس په وفد کښې یو کس ماته بیان کړې دې کوم چه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو، د عوف ګمان دې چه ددغه کس نوم قیس بن نعمان وو هغه به وئیل چه نبی ﷺ فرمائیلی دی تاسو دلرګي په لوښوکښې څکل مه کوی اونه په کدوکښې اونه په چاټی کښې لیکن دڅرمنې په مشك کښې اوبه څکئ کله چه په نبیذ کښې سختوالې پیدا شې نوپه اوبو باندې ددې سختوالې کم کړئ که چرې بیاهم نرم نه شي نودا ضایع کړئ.

﴿فَإِنِ اشْتَدَّ فَاكْسِرُوهُ بِالْمَاءِ فَإِنْ أَعْيَاكُمْ فَأَهْرِيقُوهُ﴾ یعنی دې قسم مشک کښې هم که په نبیذ جوړولو سره اشتداد پیدا شی نو په هغې کښې دې اوبه یو ځائې کړې شی او د هغې تیزی دې ختم کړې شی. او که په هغې کښې دومره ډیر اشتداد پیدا شو چه په اوبو ملاولو سره نه کمیږی او تاسو عاجز کړی نو بیا هغه اوغورځوئ.

(¹): تفرد به أبو داود، انظر رقم: (۳۶۹۲)، (تحفة الأشراف: ۵۶۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۱/۱) (صحیح)
(²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۰٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۰٦/٤) (صحیح)

### د حدیث نه د مسلک حنفی تائید :

د دې حدیث نه معلومه شوه چه د خمر او باقی اشربه مسکره په حکم کښې فرق دې، ځکه چه حقیقی خمر په اوبو اچولو سره نه پاکیږی او نه ئې ځکل جائز کیدې شی ځکه چه ناپاک څیز په اوبو ګډولو سره نه پاکیږی. په خلاف د نورو انبذه مسکره چه که په هغې کښې سکر او اشتداد پیدا شی نو هغه داصلاح نه پس څکل جائز دی معلومه شوه چه د هغې حرمت لعینها دې. هم هغه وخت دې چه کله هغه حد اسکار ته اورسیږی، په خلاف د خمر چه د هغې حرمت لعینها دې. (كذافی المنهل)

حديث ابی هريرة رضي الله عنه اخرجه مسلم والنسائی، وحديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه النسائی مسنداومرسلا، وقد اخرج مسلم فی الصحیح حدیث ابی سعید رضي الله عنه فی وفد عبدالقیس وفیه....... قاله المنذری.

[٣٦٩٦](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ بَذِيمَةَ، حَدَّثَنِي قَيْسُ بْنُ حَبْتَرٍ النَّهْشَلِيُّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ، قَالُوا: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، فِيمَ نَشْرَبُ؟، قَالَ: لَا تَشْرَبُوا فِي الدُّبَّاءِ، وَلَا فِي الْمُزَفَّتِ، وَلَا فِي النَّقِيرِ، وَانْتَبِذُوا فِي الْأَسْقِيَةِ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَإِنِ اشْتَدَّ فِي الْأَسْقِيَةِ؟، قَالَ: فَصُبُّوا عَلَيْهِ الْمَاءَ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ لَهُمْ فِي الثَّالِثَةِ أَوِ الرَّابِعَةِ: أَهْرِيقُوهُ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَيَّ أَوْ حُرِّمَ الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْكُوبَةُ، قَالَ: وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ"، قَالَ سُفْيَانُ: فَسَأَلْتُ عَلِيَّ بْنَ بَذِيمَةَ عَنِ الْكُوبَةِ، قَالَ: الطَّبْلُ.

دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چه دقبیله عبدالقیس وفد عرض وکړو اې دالله رسوله مونږ به څکل په کومولوښوکښې کرونبی ﷺ اوفرمائیل دندونه جوړ شوي لوښي اونه دخاورو په لوښوکښې اونه دلرګي په لوښي کښې بلکه په مشکونوکښې نبيذ جوړ دوی عرض اوکړو اې دالله رسوله که چرې په مشکونوکښې جوش وکړي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل بیاپه کښې اوبه واچوئ هغوی بیاعرض اوکړو اې دالله رسوله که چرې په دریم یا څلورم ځل بیاجوش اوکړي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل بیا ئې واړوئ اوددینه پس ئې فورا اوفرمائیل یقینا الله تعالی په ماباندې شراب، جواري، اودول غړول حرام کړیدي، نبی ﷺ اوفرمائیل هریونشه راوستونکو څیز حرام دې، سفیان وائی مادعلی بن حزیمه نه دلفظ کوبه په باره کښې تپوس اوکړو هغه اووئیل کوبه ډول ته وئیلې شي.

[٣٦٩٧](٢)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ سُمَيْعٍ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ عُمَيْرٍ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدُّبَّاءِ، وَالْحَنْتَمِ، وَالنَّقِيرِ، وَالْجِعَةِ".

دعلی نه روایت دې فرمائی چه مونږه نبی ﷺ منع کړي وو دکدو دلوښي داستعمال نه اودچاټئ داستعمال نه اودلرګي دلوښي داستعمال نه او د وربشو دشرابو نه.

١): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٣٦٩٠)، (تحفة الأشراف: ٦٣٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٧٤، ٢٨٩، ٣٥٠) (صحيح)

٢): سنن النسائي/الزينة ٤٣ (٥١٨٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١١٩، ١٣٨) (صحيح)

[۳۶۹۸]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا مُعَرِّفُ بْنُ وَاصِلٍ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَيْتُكُمْ عَنْ ثَلَاثٍ، وَأَنَا آمُرُكُمْ بِهِنَّ: نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ فَزُورُوهَا فَإِنَّ فِي زِيَارَتِهَا تَذْكِرَةً، وَنَهَيْتُكُمْ عَنِ الْأَشْرِبَةِ أَنْ تَشْرَبُوا إِلَّا فِي ظُرُوفِ الْأَدَمِ فَاشْرَبُوا فِي كُلِّ وِعَاءٍ غَيْرَ أَنْ لَا تَشْرَبُوا مُسْكِرًا، وَنَهَيْتُكُمْ عَنْ لُحُومِ الْأَضَاحِيِّ أَنْ تَأْكُلُوهَا بَعْدَ ثَلَاثٍ فَكُلُوا وَاسْتَمْتِعُوا بِهَا فِي أَسْفَارِكُمْ".

دبريده رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي ماتاسو د درې څيزونونه منع کړي يئ خو اوس درته ددې اجازت درکوم (۱) ماتاسو دقبرونو دزيارت کولونه منع کړې وی اوس زيارت کولي شئ ځکه چه دقبرونوپه زيارت کولوسره ددنيانه ئې رغبتي اوداخرت ياد پيدا کيږی (۲) ماتاسومنع کړي وئ د چمتې نه علاوه په نورو لوښو کښې دنبيذ داستعمالولونه اوس تاسو په هرقسم لوښي کښې څکل کولې شئ ليکن دنشي والاخيز مه څکئ (۳) ماتاسومنع کړي وئ د درې ورځونه زيات دقرباني. دغوښودساتلونه اوس تاسو دقربانئ غوښه د درې ورځونه پس خوړلې شئ اودسفر په حالت کښې ددينه فائده اخستلی شئ.

[۳۶۹۹]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي مَنْصُورٌ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "لَمَّا نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْأَوْعِيَةِ، قَالَ: قَالَتِ الْأَنْصَارُ: إِنَّهُ لَا بُدَّ لَنَا، قَالَ: فَلَا إِذًا".

دجابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي کله چه نبي عليه السلام ددې لوښو استعمال منع کړونو راوی وائي چه انصاردنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شول او عرض ئې وکړو مونږ ته ددې ډيرضرورت پيښيږي نبي عليه السلام دوی ته اوفرمائيل اوس تاسو نه منع کوم.

[۳۷۰۰]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ زِيَادِ بْنِ فَيَّاضٍ، عَنْ أَبِي عِيَاضٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: "ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَوْعِيَةَ الدُّبَّاءَ، وَالْحَنْتَمَ، وَالْمُزَفَّتَ، وَالنَّقِيرَ، فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ: إِنَّهُ لَا ظُرُوفَ لَنَا، فَقَالَ: اشْرَبُوا مَا حَلَّ".

دعبد الله بن عمرو هديه روايت دې چه نبي عليه السلام دلوښو په باره کښې اوفرمائيل يو دکدونه جوړ کړي شوي لوښي اوبله چاټي اوبل دلرګي نه جوړ کړي شوي لوښي، په دې وخت کښې يوبانډچي عرض وکړو چه بياخوزمونږ دپاره يو لوښي هم جائز پاتې نه شونبي عليه السلام اوفرمائيل کوم څيز چه حلال وي هغه په هرقسم لوښي کښې څکلی شئ.

[۳۷۰۱]([4]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ يَعْنِي ابْنَ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: اجْتَنِبُوا مَا أَسْكَرَ.

امام ابوداؤد وائي چه اوحديث بيان کړي شوي دي ماته په شان د روايت دشريک فرمائي چه

---

[1]: صحيح مسلم/الجنائز ۳۶ (۹۷۷)، الأضاحي ۵ (۱۹۷۷)، الأشربة ۶ (۱۹۹۹)، سنن النسائي/الجنائز ۱۰۰ (۲۰۳۴)، الأضاحي ۳۶ (۴۴۳۴)، الأشربة ۴۰ (۵۶۵۴، ۵۶۵۵)، (تحفة الأشراف: ۲۰۰۱)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأشربة ۶ (۱۸۶۹)، سنن ابن ماجه/الأشربة ۱۴ (۳۴۰۵)، مسند احمد (۳۵۰/۵، ۳۵۵، ۳۵۶، ۳۵۷، ۳۶۱) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الأشربة ۸ (۵۵۹۲)، سنن الترمذي/الأشربة ۶ (۱۸۷۰)، سنن النسائي/الأشربة ۴۰ (۵۶۵۹)، (تحفة الأشراف: ۲۲۴۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۰۲/۳) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الأشربة ۸ (۵۵۹۴)، صحيح مسلم/الأشربة ۶ (۲۰۰۰)، (تحفة الأشراف: ۸۸۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۱/۲) (صحيح) (كلاهمابلفظ: "فأرخص له في الجر غير المزفت")

[4]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۸۸۹۵) (صحيح)

نبی ﷺ فرمائیلي دي تاسو دنشه راوستونکي څیز داستعمال نه ځان وساتئ.

[۳۷۰۲]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "كَانَ يُنْبَذُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سِقَاءٍ، فَإِذَا لَمْ يَجِدُوا سِقَاءً نُبِذَ لَهُ فِي تَوْرٍ مِنْ حِجَارَةٍ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه دنبی ﷺ دپاره به په مشك کښې نبیذ تیاریدل اوکچري مشك به ملاو نه شو نوبیابه دکانړي په لوښي کښې دهغه د دپاره به جوړولې شو.

**قوله:** ﴿عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ وَالْجِعَةِ﴾

جعه هغه نبیذ کوم چه د اوربشو نه جوړولې شي. اخرجه النسائی، قاله المنذری

**قوله:** ﴿عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ « نَهَيْتُكُمْ عَنْ ثَلَاثٍ وَأَنَا آمُرُكُمْ بِهِنَّ الخ﴾ د دې حدیث ذکر هم اوس نزدې تیر شو. اخرجه مسلم والنسائی بمعناه، قاله المنذری

﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كَانَ يِنتبذ لِرَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فِي سِقَاءٍ الخ﴾

یعنی د رسول الله ﷺ دپاره به د څرمنې په مشک کښې نبیذ جوړولې شو. که چرته به مشک نه وو نو بیا به د کانړی په پیاله کښې جوړولې شو، د دې نه هم دا معلومه شوه چه نهی عن الاوعیه منسوخ ده. والحدیث اخرجه البخاری والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الْخَلِيطَيْنِ

### دمخلوطو څیزونو نه د نبیذ جوړولو بیان

یعنی د دوه څیزونو په یو ځائې کولو سره چه کوم نبیذ جوړ کړې شي لکه زبیب او تمر، یا بسر او رطب.

### د کهجورو مختلف قسمونه او د هغې نومونه:

بسر یعنی هغه کهجوره چه د هغې څه حصه پخ شوې وی او څۀ باقی وی او رطب هغه چه پوره پخ شوې وی، او تمر هغه چه د رطب جوړیدو نه پس اوچه شي (چواره) او یو وی زهو چه د هغې ذکر په وړاندې حدیث کښې راروان دې یعنی بسرملون، یعنی هغه بسر چه په هغې باندې رنګ راتلل شروع شی، او کومه چه بالکل کچه وی هغې ته بلح وائی، ([2])

---

[1]): صحيح مسلم/الأشربة ٦ (١٩٩٩)، (تحفة الأشراف: ٢٧٢٢)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الأشربة ٢٧ (٥٦١٦)، ٣٨ (٥٦٥٠)، سنن ابن ماجه/الأشربة ١٢ (٣٤٠٠)، مسند احمد (٣/٣٠٤، ٣٠٧، ٣٣٦، ٣٧٩، ٣٨٤)، سنن الدارمي/الأشربة ١٢ (٢١٥٣) (صحيح)

[۳۷۰٤] [2]) ددې اقسامو په تعین کښې په شروح د حدیث کښې څه اختلافات هم په فهم کښې راځی، لاندې مونږ د لسان العرب ما حصل لیکو هغه دا چه د کهجورې د اونې د پیدا کیدو نه تر آخره پورې د هغې د تغیراتو په اعتبار سره چه کوم بیل بیل نومونه دی هغه دا دی: بالکل په شروع کښې د دې ګل ته طلع وائی لکه چه د آم د تولو نه اول حالت ته زمونږ په علاقو کښې بور وائی، د دې نه پس چه کله ګل پرانیزی او میوه پیدا کیدل شروع شی نو هغې ته خلال وائی بیا د دې نه پس د کجهورې شکل او صورت جوړیدو نه پس د هډوکی د سختیدو پورې دې ته بلح وائی، د دې نه پس چه کله په دې باندې زهو یعنی رنګ راشی احمرار یا اصفرار نو دې ته بسر وائی، بیا د دې د پخیدل شروع کیدو نه تر تمامیدو پورې دې ته رطب وائی بیا د اوچیدو نه پس ورته تمر وائی اهـ

[۳۷۰۳](۱)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ "نَهَى أَنْ يُنْتَبَذَ الزَّبِيبُ وَالتَّمْرُ جَمِيعًا، وَنَهَى أَنْ يُنْتَبَذَ الْبُسْرُ وَالرُّطَبُ جَمِيعًا".

دجابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نه ﷺ منع فرمائيلي ده چه دانګورو او کجورونه په يوځائي نبيذ جوړ کړې شي اودکچه او پخو اودوچو اودتازه کجورو نه په يوځائي دنبيذ جوړولونه منع فرمائيلي ده.

(۲)حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنِي يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ: "نَهَى عَنْ خَلِيطِ الزَّبِيبِ وَالتَّمْرِ، وَعَنْ خَلِيطِ الْبُسْرِ وَالتَّمْرِ، وَعَنْ خَلِيطِ الزَّهْوِ وَالرُّطَبِ، وَقَالَ: انْتَبِذُوا كُلَّ وَاحِدٍ عَلَى حِدَةٍ"، قَالَ: وحَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ.

قتاده دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائيلي ده ددينه چه وچې اوکجورې، اوا وهي کجوري اوتازه کجورې يوځائي کړې شي اونبيذ ورنه جوړ کړې شي اوفرمائيلي بردي چه تاسودهريونه جداجدا نبيذ تباروی، راوی وائی مادابوسلمة بن عبد الرحمن دلتاد به واسطه سره داحديث بيان کړې دې.

شرب الخليطين د جمهورو په نزد ناجائز دې که مسکر وی او که نه وی ځکه چه په حديث کښې د دې ممانعت راغلې دې، پس که هغه غير مسکر وی نو د هغې حرمت صرف من وجه دې اوکه مسکر وی نو بيا من وجهين دې، اوداحنافوپه نزد که مسکر نه وی نو جائز دې کينې حرام، مصنف رحمه الله په دې باب کښې د دواړو ډلو دليل ذکر فرمائيلي دې، پس د باب د شروع روايتونه د جمهورو دليل دې او د آخر دوه احاديث د احنافو مستدل دې.

وحديث جابر رضی الله عنه اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري. وحديث ابي قتادة رضی الله عنه ثاني حديث الباب، اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجه مسندا، قاله المنذري.

[۳۷۰۵](۳)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَحَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ رَجُلٍ، قَالَ: حَفْصٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "نَهَى عَنِ الْبَلَحِ وَالتَّمْرِ، وَالزَّبِيبِ وَالتَّمْرِ".

ابن ابی ليلي ديوکس نه روايت کوی، حفص رازي وئيلی دی چه دغه کس درسول الله دصحابه کرامونه دې فرمائيل ئې چه نبی کريم ﷺ منع فرمائيلي ده دکچه او پخو کجورو ديوځائي کولونه اودوځکو اردکجورو ديوځائي کولونه چه نبيذ جوړ کړې شي.

[1]: صحيح مسلم/الأشربة ٥ (١٩٨٦)، سنن الترمذي/الأشربة ٩ (١٨٧٦)، سنن النسائي/الأشربة ٩ (٥٥٥٨)، سنن ابن ماجه/الأشربة ١١ (٣٣٩٥)، (تحفة الأشراف: ٢٤٧٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأشربة ١١ (٥٦٠١)، مسند احمد (٢٩٤/٣، ٣٠٠، ٣٠٢، ٣١٧، ٣٦٣، ٣٦٩) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الأشربة ١١ (٥٦٠٢)، صحيح مسلم/الأشربة ٥ (١٩٨٨)، سنن النسائي/الأشربة ٦ (٥٥٥٣)، سنن ابن ماجه/الأشربة ١١ (٣٣٩٧)، (تحفة الأشراف: ١٢١٠٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الأشربة ٣ (٨)، مسند احمد (٢٩٥/٥، ٣٠٧، ٣٠٩، ٣١٠)، سنن الدارمي/الأشربة ١٥ (٢١٥٦) (صحيح)

[3]: سنن النسائي/الأشربة ٤ (٥٥٤٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٦٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٤/٤) (صحيح)

[۳۷۰٦](١)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ثَابِتِ بْنِ عُمَارَةَ، حَدَّثَتْنِي رَيْطَةُ، عَنْ كَبْشَةَ بِنْتِ أَبِي مَرْيَمَ، قَالَتْ: "سَأَلْتُ أُمَّ سَلَمَةَ، مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْهُ؟، قَالَتْ: كَانَ "يَنْهَانَا أَنْ نَعْجُمَ النَّوَى طَبْخًا، أَوْ نَخْلِطَ الزَّبِيبَ وَالتَّمْرَ".

دكبشه بنت ابی مریم نه روایت دې فرمائی چه ما دام سلمه رضی الله عنها نه دهغه څیزونو په باره کښې تپوس اوکړو دکومونه چه نبی علیه السلام منع فرمائيلې ده ام سلمه اوفرمائيل نبی علیه السلام دکجورو د پخولونه منع فرمائيلې ده اوددینه به ئې هم منع فرمائيله چه مونږه کجورې او وچکي يوځائې کړو (اونبيذ ورنه جوړ کړو).

**قوله:** ﴿سَأَلْتُ أُمَّ سَلَمَةَ مَا كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَنْهَى عَنْهُ قَالَتْ كَانَ يَنْهَانَا أَنْ نَعْجُمَ النَّوَى طَبْخًا أَوْ نَخْلِطَ الزَّبِيبَ وَالتَّمْرَ ﴾

## شرح الحديث :

په دې حديث کښې دوه جزه دی جزء ثانی خو په خليط پورې متعلق دې د کوم چه باب روان دې، او د جزء اول په مطلب کښې دوه احتماله دی اول دا چه د کهجورو نبيذ دې زيات پوخ نه کړې شی که پخول مقصود وی، ځکه چه په زيات پخولو سره به د نبيذ په ذائقه کښې تغير راشی، د هډوکی مزه او د هغې تريخ والې به پکښې شامل شی، او دويم مطلب ئې دا دې چه د کجهورې هډوکی دې پاځه نه کړې شی، ځکه چه د کجهورو هډوکی د څاروو اوښانو او ګډو بيزو خوراک وی نو د هډوکو په پخولو باندې به د هغوی خوراک ختم شی، د هډوکی د ټول رس وتلو د وجې نه.... ذكر المعنيين شيخنا رحمه الله تعالى بين سطور كتابه.... د عجم معنی نضج يعنی د پخولو ده.

[۳۷۰۷](٢)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي أَسَدٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُنْبَذُ لَهُ زَبِيبٌ فَيُلْقِي فِيهِ تَمْرًا، وَتَمْرٌ فَيُلْقِي فِيهِ الزَّبِيبَ".

د عائشه رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه کله به دنبی علیه السلام دپاره دوځکونه. نبيذ جوړيدل نوپه هغې کښې به ئې کجورې اچولې، اوچه کله به دکجورونه دهغه دپاره نبيذ جوړولې شو نوپه هغې کښې به ئې وچکي اچولې.

﴿ عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِى أَسَدٍ عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يُنْبَذُ لَهُ زَبِيبٌ فَيُلْقِى فِيهِ تَمْرًا ، وَتَمْرٌ فَيُلْقِى فِيهِ الزَّبِيبَ﴾

په دې حديث کښې د زبيب او د تمر د خليط ذکر دې او د رسول الله ﷺ هغې لره ځکل، د دې نه روستو حديث کښې هم عائشه رضی الله عنها فرمائی ﴿ كُنْتُ آخُذُ قَبْضَةً مِنْ تَمْرٍ وَقَبْضَةً مِنْ زَبِيبٍ فَأُلْقِيهِ فِى إِنَاءٍ فَأَمْرُسُهُ ثُمَّ أَسْقِيهِ النَّبِىَّ -صلى الله عليه وسلم ﴾ چه ما به د رسول الله ﷺ دپاره داسې نبيذ جوړولو چه يو موټې کجهورې به مې واخستلې او يو موټې اوچکي او بيا

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٨٢٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٩٦) (ضعيف الإسناد)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٩٩٥) (ضعيف الإسناد)

به مې هغه د اوبو په لوښی کښې واچولې او بیا به مې هغه اومږلې. د دې نه پس به مې په رسول الله ﷺ باندې څکلې.

[۳۷۰۸]( )حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ يَحْيَى الْحَسَّانِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو بَحْرٍ، حَدَّثَنَا عَتَّابُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ الْحِمَّانِيُّ، حَدَّثَتْنِي صَفِيَّةُ بِنْتُ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: "دَخَلْتُ مَعَ نِسْوَةٍ مِنْ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَى عَائِشَةَ، فَسَأَلْنَاهَا عَنِ التَّمْرِ وَالزَّبِيبِ؟ فقالت: كُنْتُ آخُذُ قَبْضَةً مِنْ تَمْرٍ، وَقَبْضَةً مِنْ زَبِيبٍ، فَأُلْقِيهِ فِي إِنَاءٍ، فَأَمْرُسُهُ، ثُمَّ أَسْقِيهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

عتاب بن عبدالعزیز الحماني وئیلی دی چه ماته صفیه بنت عطیه وئیلی دی چه زه دعبدالقیس دزنانو په وفد کښې دعائشه راضي الله عنهاپه خدمت کښې حاضره شوم او مونږ دهغې نه دکجورو اودوڅکو دنبیذ په باره کښې تپوس اوکړو، عائشه رضي الله عنها اووئیل مابه یوه لپه کجورې او یوه لپه وڅکي راواخستلې او په یولوښي کښې به مې واچولې اوبیابه مې په لاسونو ومږلې اوبیابه مې په نبی علیه السلام باندې وڅکولې.

## بَابٌ فِي نَبِيذِ الْبُسْرِ

### باب د کچه کهجورو نه نبیذ جوړول څنګه دی؟

[۳۷۰۹]( )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، وَعِكْرِمَةَ، أَنَّهُمَا كَانَا يَكْرَهَانِ الْبُسْرَ وَحْدَهُ وَيَأْخُذَانِ ذَلِكَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: "أَخْشَى أَنْ يَكُونَ الْمُزَّاءُ الَّذِي نُهِيَتْ عَنْهُ عَبْدُ الْقَيْسِ"، فَقُلْتُ لِقَتَادَةَ: مَا الْمُزَّاءُ؟، قَالَ: النَّبِيذُ فِي الْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ.

دابوقتاده رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه جابربن زید اوعکرمه رحمهما الله دواړوبه دپخو اوکچه کجورونه نبیذ جوړول مکروه ګڼړل اودابه ئې دابن عباس نه نقل کول چه ابن عباس فرمائیلی دی زه په دې ویریږم چه چرته ددې نه مزاء جوړ نشي دوم نه چه دقبیله عبدالقیس خلق منع کړې شوي وو، مادقتاده رحمه الله نه تپوس اوکړو چه مزاء څه شې دې؟ هغه اووئیل په. چاټئ کښې یادلرکي په لوښي کښې نبیذ جوړول.

﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَعِكْرِمَةَ أَنَّهُمَا كَانَا يَكْرَهَانِ الْبُسْرَ وَحْدَهُ وَيَأْخُذَانِ ذَلِكَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَخْشَى أَنْ يَكُونَ الْمُزَّاءَ الَّذِي نُهِيَتْ عَنْهُ .....الخ ﴾

### شرح الحدیث:

په دې روایت کښې جابر بن زید او عکرمه نبیذ البسر اګر چه هغه خانله جوړ کړې شوې وی مکروه ګڼړی او دا مسئله هغوی زده کړې وه د ابن عباس رضي الله عنهما نه. او ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه زه ویریږم د دې خبرې نه چه د کوم مزاء نه وفد د عبدالقیس منع کړې شوې وو هغه هم دا نه وی یعنی نبیذ البسر وحده، بیا په وړاندې روایت کښې راځی قتاده رحمه الله فرمائی چه د مزاء نه مراد هغه نبیذ دې کوم چه په حنتم یا مزفت کښې جوړ کړې شی د ابن عباس رضي الله عنهما د کلام نه دا مستفاد کیږی چه وفد عبدالقیس د مزاء نه منع کړې شوې وو او دا چه د هغې مصداق نبیذ البسر وحده دې خو زمونږ مخې ته چه د وفد عبدالقیس کوم روایتونه دی په هغې کښې خو چرته هم د مزاء ذکر نشته. فالله اعلم بالصواب. او وړاندې د قتاده رحمه الله په کلام کښې راځی چه

( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۶۹) (ضعيف الإسناد)
( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۳۸۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۰/٤، ۳۳٤) (صحيح الإسناد)

مزاء وائي هغه نبيذ ته کوم چه د خنتم او مزفت نه جوړ کړې شي. د دې دواړو روايتونو د يو ځائې کولو نه به دا نتيجه راوځي چه بسر وحده د کوم چه په دې روايت کښې ذکر دې د هغې نه هغه نبيذ بسر مراد دې کوم چه په حنتم يا مزفت کښې جوړ کړې شي ګينې بغير د دې نه د بسر وحده په ممنوع کيدلو کښې هيڅ وجه نشته، والله تعالیٰ اعلم بالصواب.

## بَابٌ فِي صِفَةِ النَّبِيذِ

### د نبيذ جوړولو طريقه

يعنى د نبيذ جوړولو او د هغې د ځکلو طريقه.

[۳۷۱۰](١)حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا ضَمْرَةُ، عَنِ السَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الدَّيْلَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَدْ عَلِمْتَ مَنْ نَحْنُ وَمِنْ أَيْنَ نَحْنُ، فَإِلَى مَنْ نَحْنُ؟، قَالَ: إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لَنَا أَعْنَابًا مَا نَصْنَعُ بِهَا؟، قَالَ: زَبِّبُوهَا، قُلْنَا: مَا نَصْنَعُ بِالزَّبِيبِ؟، قَالَ: انْبِذُوهُ عَلَى غَدَائِكُمْ وَاشْرَبُوهُ عَلَى عَشَائِكُمْ، وَانْبِذُوهُ عَلَى عَشَائِكُمْ وَاشْرَبُوهُ عَلَى غَدَائِكُمْ، وَانْبِذُوهُ فِي الشِّنَانِ وَلَا تَنْبِذُوهُ فِي الْقُلَلِ، فَإِنَّهُ إِذَا تَأَخَّرَ عَنْ عَصْرِهِ صَارَ خَلًّا".

د ديلمي رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض مووړته وکړو چه اې دالله رسوله تاته معلومه ده چه مونږ څوك يو؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائيل تاسو الله اودهغه رسول ته راغلي يي مونږ ورته عرض اوکړواي دالله رسوله مونږه دانګورو مالکان يو په هغې باندې څه اوکړو نبی ﷺ اوفرمائيل وچ ئې کړئ مونږ عرض اوکړو دانګورو دوچولوڅه فائده ده؟ نبی ﷺ اوفرمائيل دسحر په وخت کښې ئې په اوبوکښې لمدوی اومابنام ئې څکئ اوکوم چه مابنام المده کړئ نوسحرئې کی اوتاسوؤلره پکاردي چه د مري په مشکونوکښې دا لمده کړئ او يادخاورو په منګوکښې اوکه چرې په دې کښې تاخير وکړې شي نوبيا ددينه سرکه جوړيږي.-

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الدَّيْلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ ﴾ د دوی د پلار نوم فيروز دې، د ديلمى نه مراد هم هغه دې.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَتَيْنَا النبى –صلى الله عليه وسلم– فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ عَلِمْتَ مَنْ نَحْنُ وَمِنْ أَيْنَ نَحْنُ فَإِلَى مَنْ نَحْنُ قَالَ « إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ » ﴾

### شرح الحديث :

د دې په شرح کښې په بذل المجهود کښې ليکلې دی د مسند احمد د روايت په حوالې سره چه فيروز ديلمی رضي الله عنه چه يمنی دې او د هغه قوم چه کله اسلام قبول کړو نو د هغوی قوم يو جماعت د وفد په طور د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راوليږلو چه په هغوی کښې فيروز الديلمی رضي الله عنه هم شامل وو. چا چه راتلو سره رسول الله ﷺ ته د خپل اسلام خبر ورکړو، چه په هغې سره رسول الله ﷺ د هغوی اسلام قبول کړو. په دې موقع باندې دې وفد رسول الله ﷺ ته هغه څه عرض کړل کوم چه دلته په دې کتاب کښې ذکر شوې دی، يعنی دا چه يا

(١): سنن النسائي/الأشربة ٥٥ (٥٧٣٨)، (تحفة الأشراف: ١١٠٦٢)، وقد أخرجه: دي/الأشربة ١٣ (٢١٥٤) (حسن صحيح)

رسول الله ﷺ تاسو ته معلومه ده چه مونږ څوک يو او د چرته نه ستاسو خدمت ته حاضر شوي يو او دا چه مونږ اسلام راوړي دي. اوس مونږ ستاسو نه دا تپوس کوو چه زمونږ ولي او يار او مددګار څوک دي؟ نو رسول الله ﷺ په جواب کښې اوفرمائيل : ﴿ الله ورسوله ﴾ نو په دې اوريدو هغوی اووې ﴿ حسبنا ورضينا ﴾

**قوله:** ﴿ فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ لَنَا أَعْنَابًا مَا نَصْنَعُ بِهَا الخ ﴾ هغوی عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! مونږ سره د انګورو باغونه دی يعنی هلته فراخی ده نو مونږ د هغه انګورو نه څنګه فائده اوچتولې شو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ د هغې نه زبيب (اوچکې) جوړې کړئ. مونږ تپوس اوکړو بيا په زبيب باندې څه اوکړو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د هغې نبيذ جوړولو سره د سحر ننبيذ د ماښام د خوراک نه پس څکئ. او د ماښام جوړ شوې نبيذ د سحر د خوراک نه پس څکئ، او بيا ئې اوفرمائيل ګورئ ! دا نبيذ په مشکونو کښې جوړوئ او په منګو کښې ئې مه جوړوئ.

**قوله:** ﴿ فَإِنَّهُ إِذَا تَوَخَّرَ عَنْ عَصْرِهِ صَارَ خَلًّا ﴾ د دې جملې دوه مطلبه کيدې شی اول دا چه د دې تعلق د ﴿ امر بالنبيذ فی الشنان ﴾ سره دې يعنی د دې حکمت هغه دا چه کوم نبيذ په مشکيزه کښې جوړولې شی که هغه په وخت باندې استعمال نه کړې شی بلکه په مشک کښې پريخودلې شی نو په وخت تيريدو سره به هغه نبيذ خل يعنی سرکه شی. او په هغې کښې به څه نقصان او اضاعت نه وی په خلاف د دې چه که په منګی وغيره کښې جوړ کړې شی او په هغې کښې ډير وخته پورې وی نو په دې صورت کښې به د هغه نبيذ نه شراب جوړ شی چه په هغې کښې د مال ضائع کول دی. او دويم احتمال دا دې چه د دې تعلق د ﴿ نهی عن النبذ فی القلل ﴾ سره دې چه نبيذ په منګه کښې مه جوړ کړو څکه چه په دې صورت کښې که هغه د ډير ساعته پورې هم په هغې کښې پروت وی نو د هغې نه به سرکه جوړه شی کوم چه خلاف مقصود دې اګر چه حلال دې، كذا فی البذل نقلا عن تقرير حضرة الجنجوهی قدس سره، والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری

[۳۷۱۱](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَ يُنْبَذُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سِقَاءٍ يُوكَأُ أَعْلَاهُ، وَلَهُ عَزْلَاءُ يُنْبَذُ غُدْوَةً فَيَشْرَبُهُ عِشَاءً، وَيُنْبَذُ عِشَاءً فَيَشْرَبُهُ غُدْوَةً".

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه دنبی ﷺ دپاره به په مشک کښې نبيذ اچولې شول اودمشک پاځنئ خوله به بندولې شوه اودنبی ﷺ مشک دوو خولو والارو، کوم نبيذ چه به سحر لمده کړې شول هغه به ئې په ماسخوتن کښې څکل اوکوم چه به دسحر په وخت کښې په اوبو کښې واچولې شول هغه به ئې ماسخوتن څکل.

**قوله:** ﴿ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ أُمِّهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - قَالَتْ كَانَ يُنْبَذُ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي سِقَاءٍ يُوكَأُ أَعْلَاهُ وَلَهُ عَزْلَاءُ الخ ﴾

(١): صحيح مسلم/الأشربة ٩(٢٠٠٥)، سنن الترمذي/الأشربة ٧(١٨٧١)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٣٦) (صحيح)

## شرح الحديث :

يعنى په بعض مشکونو کښې دوه خولې وى يو پورته طرف ته چه د هغې نه اوبه ډکوى، او لاندې طرف ته چه هغې ته عزلاء وائى. چه کله مشک زوړند وى نو چه کله د هغې نه نبيذ ويستل وى نو په هغه خوله باندې ويستلې شى، چه د هغې مصلحت دا دې چه په مشک کښې چه کوم سکر پيدا کيدل شروع شوې وى نو هغه د لاندې طرف نه وى په دې وجه نبيذ چه کله څکلې شى نو هغه د لاندې والا خولې نه راويستلې شى چه د سکر پيدا کيدلو علم د شروع نه اوشى د څکلو نه مخکښې د ړومبى حديث مطلب دا دې چه د رسول الله ﷺ دپاره داسې مشک کښې نبيذ جوړولې شو چه د هغې پورته خوله به مزى سره تړلې شوه او د څکلو دپاره به نبيذ د عزلاء نه ويستلې شو کوم نبيذ چه به سحر جوړولې شو هغه به رسول الله ﷺ ماښام استعمالول او کوم نبيذ چه به د ماښام په وخت جوړولې شو هغه به رسول الله ﷺ سحر استعمالول.

د دې نه روستو روايت کښې دا زيادت دې چه په سحر والا نبيذ کښې د ماښام وخت کښې د څکلو نه پس که به څه پاتې شو نو هغه به غورځولې شو دغه شان د ماښام والا نبيذ سره به هم هم دغه شان کولې شو، مطلب دا چه دا بچ شوې نبيذ به ئې بل وخت نه استعمالول د نشې د ويرې نه چه چرته نشته پيدا نه شى، او دا مشک به په دواړو وختونو کښې خالى کولو سره په اوبو باندې وينځلې شو چه د مخکښې نبيذ څه اثر پکښې باقى پاتې نه شى.

[۳۷۱۲] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ شَبِيبَ بْنَ عَبْدِ الْمَلِكِ يُحَدِّثُ، عَنْ مُقَاتِلِ بْنِ حَيَّانَ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي عَمَّتِي عَمْرَةُ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، "أَنَّهَا كَانَتْ تَنْبِذُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُدْوَةً، فَإِذَا كَانَ مِنَ الْعَشِيِّ فَتَعَشَّى شَرِبَ عَلَى عَشَائِهِ، وَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ صَبَبْتُهُ أَوْ فَرَغْتُهُ، ثُمَّ تَنْبِذُ لَهُ بِاللَّيْلِ، فَإِذَا أَصْبَحَ تَغَدَّى فَشَرِبَ عَلَى غَدَائِهِ، قَالَتْ: نَغْسِلُ السِّقَاءَ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً". فَقَالَ لَهَا أَبِي: مَرَّتَيْنِ فِي يَوْمٍ؟ قَالَتْ: نَعَمْ".

دعائشه رضى الله عنها نه روايت دې فرمائى چه مابه دنبى ﷺ دپاره د سحر په وخت کښې دنبيذ انتظام شروع کړو کله چه به شپه راغله نوهغه به دخوراک نه پس حل اوچه کوم به ورنه باقى پاتې شو نوهغه به يې واړول، اوچه دشپې به مې کوم نبيذ تيارکړو اوبيابه سحرشونون ﷺ به سحر دناشتې نه پس څکل او مونږ به مشك سحر اوماښام وينځلو، مقاتل وئيلى دى چه زماپلار حيان ورته اووئيل په يوه شپه او ورځ کښې به مو دوه ځل وينځلوا ورته ئې اوفرمائيل چه هو، دوه پيرې به مو وينځلو.

**تشريح:** مقاتل بن حيان رحمه الله فرمائى : چه زما پلار حيان د خپلې خور عمره نه تپوس اوکړو چه آيا مشک به په يو ورځ کښې دوه کرته وينځلې شو؟ نو هغوى اوفرمائيل او دوه کرته به وينځلې شو.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۵۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۴/۶) (حسن الإسناد)

[۳۷۱۳](١)حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي عُمَرَ يَحْيَى الْبَهْرَانِيِّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ يُنْبَذُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزَّبِيبُ، فَيَشْرَبُهُ الْيَوْمَ وَالْغَدَ وَبَعْدَ الْغَدِ إِلَى مَسَاءِ الثَّالِثَةِ، ثُمَّ يَأْمُرُ بِهِ، فَيُسْقَى الْخَدَمُ أَوْ يُهَرَاقُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: مَعْنَى يُسْقَى الْخَدَمُ: يُبَادَرُ بِهِ الْفَسَادَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو عُمَرَ يَحْيَى بْنُ عُبَيْدٍ الْبَهْرَانِيُّ.

دعبدالله بن عباس ﷺ نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ دپاره به د اوسکو نه نبیذ جوړیدل او په همدغه ورځ به ئې سکل او په دې پسې بله ورځ به ئې هم څکل د درې ورځې دماښامه پورې، اوحکم به ئې کولوچه کوم باقی پاتې شي هغه په خادمانو وڅکوئ پائې واړوئ که چرې شدت په کښې پیدا شوې وي، امام ابوداؤد وئیلی دی چه د يُسْقَى الْخَدَمُ، مفهوم دادې چه دخرابیدونه مخکښې.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ يُنْبَذُ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- الزَّبِيبُ فَيَشْرَبُهُ الْيَوْمَ وَالْغَدَ وَبَعْدَ الْغَدِ إِلَى مَسَاءِ الثَّالِثَةِ الخ ﴾ په دې روایت کښې دا دی چه د رسول الله ﷺ دپاره چه به کوم نبیذ جوړولې شو هغه به هغوی هم په هغه ورځ په کومه ورځ چه به جوړولې شو د هغې نه په بله ورځ او بیا د هغې نه په بله ورځ تر ماښام پورې څکلو بیا که به د هغې نه روستو بچ شو نو او به ئې فرمائیل چه په خادمانو باندې دې اوڅکلې شی یا دې توئې کړې شی یعنی که څوک څکلو والا ئې نه وی. امام ابوداؤد ﷫ فرمائی چه خادمانو باندې د څکلو به ئې څکه حکم فرمائیلو چه د ایساریدو په وجه باندې خراب نه شی په دې وجه هم اوس دې استعمال کړې شی د خرابیدو نه مخکښ، د خرابیدو نه مراد نشه پیدا کیدل دی.

**(تطبیق بین الروایتین)**

په دې روایت باندې دا اشکال پیدا کیږی چه د دې نه مخکښې په ډیرو روایتونو کښې راغلی دی چه د هغوی دپاره به کوم نبیذ جوړولې شو نو رسول الله ﷺ به د سحر نبیذ ماښام او د ماښام نبیذ به ئې سحر څکل او بیا به لوښې وینځلې شو. او د باب په دې آخری روایت کښې تر د درې ورځو پورې څکل ذکر شوې دی. د دې جواب دا دې چه دا په احتلاف زمان باندې محمول دې، تیر روایت د ګرمئ په زمانه باندې محمول دې او دا روایت د یخنئ په موسم. والحديث اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری....

## بَابٌ فِي شَرَابِ الْعَسَلِ

### د شهدو د شربت څکلو بیان

[۳۷۱۴](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، أَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُخْبِرُ: "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى

[1]: صحيح مسلم/الأشربة ٩ (٢٠٠٤)، سنن النسائي/الأشربة ٥٥ (٥٧٤٠)، سنن ابن ماجه/الأشربة ١٢ (٣٣٩٩)، (تحفة الأشراف: ٦٥٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٢، ٢٤٠، ٢٨٧، ٣٥٥) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/تفسير سورة التحريم (٤٩١٢) الطلاق ٨ (٥٢٦٧)، الأيمان ٢٥ (٦٦٩١)، صحيح مسلم/الطلاق ٣ (١٤٧٤)، سنن النسائي/عشرة النساء ٤ (٣٤١٠)، الطلاق ١٧ (٣٤٥٠)، الأيمان ٤٠ (٣٨٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٢٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٢١) (صحيح)

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْكُثُ عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، فَيَشْرَبُ عِنْدَهَا عَسَلًا، فَتَوَاصَيْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ أَيَّتُنَا مَا دَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلْتَقُلْ: إِنِّي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ مَغَافِيرَ، فَدَخَلَ عَلَى إِحْدَاهُنَّ، فَقَالَتْ لَهُ ذٰلِكَ، فَقَالَ: بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، وَلَنْ أَعُودَ لَهُ، فَنَزَلَتْ: لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ تَبْتَغِي سورة التحريم آية، إِلَى إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللّٰهِ سورة التحريم آية ٣، لِعَائِشَةَ وَحَفْصَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَى بَعْضِ أَزْوَاجِهِ حَدِيثًا سورة التحريم آية ٣، لِقَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا".

دام المومنين عائشة ﷞ نه روايت دي فرمائي چه نبي كريم ﷺ به دزينب بنت جحش په كوركښې قيام كولو اودشهد و شربت به ئې څكلو، ما او ام المومنين حفصة ﷞ مشوره وكړه چه كله نبي كريم ﷺ زمونږ خواته تشريف راوړي نوپه مونږ كښې دې ورته هره يوه داخبره وكړي چه ستادخولې مباركې نه دمغافير (يوقسم چيردي دګوم نه چه بوي څي) بوي څي نوبيا چه به كله نبي ﷺ دهرې يوې خواته ورتلونوهمدا خبره به ئې ورته كوله نبي ﷺ به ورته وئيل چه داسې نه ده مادزينب په كوركښې شهد څكلى دي اودنن نه پس به ئې هيڅ كله ونه څكم نوددې متعلق دا ايت كريمه نازل شو: «لم تحرم ما أحل الله لك تبتغي» تر «إن تتوبا إلى الله» پورې، وعائشه اوحفصة ﷞ ته حكم اوشو چه دالله تعالى نه بخښنه اوغواړئ، په دې باره كښې چه نبي ﷺ خپلې يوې بي بي ته پټه خبره كړې وه چه ماشهد څكلي دي.

**شرح الحديث:**

**قوله:** ﴿ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم كَانَ يَمْكُثُ عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَيَشْرَبُ عِنْدَهَا عَسَلًا الخ﴾ دا د تحريم غسل والا مشهور حديث دې چه د هغې مضمون دا دې چه د رسول الله ﷺ عادت مباركه اګر كه عدل بين الزوجات وو، د هرې زوجې محترمې دپاره خپل نمبر مقرر وو خو روزانه به په څه نه څه وخت كښې اګر كه د هرې يوې نمبر به وو رسول الله ﷺ به د سلام او ملاقات دپاره ازواج مطهراتو كښې هرې يوې ته په ولاړه ولاړه تشريف اوړولو. د هغوى په بيبيانو كښې زينب بنت جحش ﷞ دا اوكړل چه كله به رسول الله ﷺ هغې كره لاړو نو هغوى باندې ئې د شهدو شربت اوڅكلو چه د هغې يو مصلحت به دا هم وو چه هغې كره لږ زيات ايسار شي، عائشې ﷞ ته چه كله دا معلومه شوه نو د دې په باره كښې عائشه ﷞ فرمائي چه ما او حفصه ﷞ خپل مينځ كښې دا فيصله اوكړه چه مونږ كښې چاته هم رسول الله ﷺ راغلو نو هغوى ته دې داسې اوائي چه ﴿ اني اجد منك ريح مغافير ﴾ چه ستاسو نه خو په مونږ د مغافير بوئي راځي. پس هم داسې اوشوه نو رسول الله ﷺ د دې په جواب كښې اوفرمائيل ﴿ بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَلَنْ أَعُودَ لَهُ ﴾ يعنى ما خو شهد څكلى دى نه مغافير، خو د هغې سره رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائيل (ځكه چه هغوى باندې خپله هم بدبوئى بده لګيدله) چه د بيا دپاره به زه دا هر ګز نه څكم او دا خبره رسول الله ﷺ قسم خوړلو سره اوفرمائيله، د دې قصې په روايت كښې دا هم راځي چه رسول الله ﷺ هغوى ته دا هم فرمائيلې وو چه زما د دې تحريم ذكر چا ته هم مه كوئ، خو هغوى د دې ذكر يو بل ته اوكړو په دې واقعه باندې دا ايات كريمه نازل شو ﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ ﴾ او د عائشې او حفصې ﷞ په باره كښې داسې اوفرمائيلې شو ﴿ إِنْ تَتُوبَا

إِلَى اللَّهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا ﴾ چه تاسو دواړو له هم توبه کول پکار دی چه تاسو يو نامناسب کار کړې دې. او د دې نه روستو روايت کښې دی ﴿ قَالَتْ سَوْدَةُ بَلْ أَكَلْتَ مَغَافِيرَ ﴾ او د رسول اللهﷺ دا جواب ﴿ سقتنى حفصة ﴾ چه د هغې نه معلوميږی چه څکونکې خپله حفصة رضي الله عنها وه.

[۳۷۱۵]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ وَالْعَسَلَ، فَذَكَرَ بَعْضَ هَذَا الْخَبَرِ، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْتَدُّ عَلَيْهِ أَنْ تُوجَدَ مِنْهُ الرِّيحُ، وَفِي الْحَدِيثِ، قَالَتْ سَوْدَةُ: بَلْ أَكَلْتَ مَغَافِيرَ، قَالَ: بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا سَقَتْنِي حَفْصَةُ، فَقُلْتُ: جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْمَغَافِيرُ مُقْلَةٌ وَهِيَ صَمْغَةٌ، وَجَرَسَتْ رَعَتْ، وَالْعُرْفُطُ نَبْتٌ مِنْ نَبْتِ النَّحْلِ.

ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم ﷺ به خواږه څيزونه اوشهد ډير خوښول اوبيائي ددې حديث څه حصه بيان کړه او اوئې فرمائيل: چه نبی علیه السلام به دا بدګڼړل دجسم دڅه حصې نه ئې بوي لاړشي، په يوحديث کښې دی چه سودة رضي الله عنها اوفرمائيل: چه تا مغافير څکلی دي، نبی علیه السلام اوفرمائيل داسې نه ده ماشهد څکلي دي اوحفصې راباندې څکولي دي ما ووئيل کيدې شي چه دشهدو مچئ دعرفطه په بوټي (دکوم نه چه بوي ځي) کيناستلې وي اوددې رس ئې څکلی وي ام المومنين عائشې رضي الله عنها هم اوفرمائيل چه دشهدو دبدبويه کيدو وجه همدا کيدې شي.

﴿ فَقُلْتُ جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ ﴾ ([2]) يعنی چه کله رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه ما مغافير نه دی څکلی بلکه شهد مې څکلی دی نو په دې باندې هغوی اووې چه بيا داسې کيدې شي چه د کومې مچې هغه شهد وو کوم چه تاسو څکلې وو هغې کيدې شی د عرفط اونې رس څکلې وی په دې وجه د هغې نه پيدا کيدونکی شهدو کښې د هغې بوئی راغلو، ګويا زما خبره صحيح ده چه ستاسو د خولې نه د مغافير بوئی راځی.

د شهدو مچې چه د کوم ګل رس راښکلو سره شهد جوړوی نو په هغه شهدو کښې د هغې بوئی راځی، مغافير د مغفور جمع ده، مغفور د يو اونې د چير نوم دې.. د کومې اونې نه چه هغه راوځی هغې ته عرفط وائی دا اونه د ازغنو ډکه وی او د هغې په چير کښې خوږوالې وی چه هغې له په اوبو کښې ګډولو سره بعض خلق څکی خو په دې کښې بدبوئی وی چه کله رسول اللهﷺ د هغې د څکلو نفی اوفرمائيله نو د هغوی بی بی د هغې دغه شان توجيه اوکړه کومه چه پورته ذکر شوې ده.

## په شرب عسل والا حديث کښې اختلاف د رواياتو:

د ابوداؤد د دې ذکر کړی شوی روايت نه څو خبرې مستفاد شوې اول دا چه د سورة تحريم شان نزول د تحريم عسل واقعه ده، دويمه خبره دا چه په رسول اللهﷺ باندې شهد

[1]): صحيح البخاري/الأطعمة ۳۲ (۵۴۳۱)، الأشربة ۱۰ (۵۵۹۹)، ۱۵ (۵۶۱۴)، الطب ٤ (۵۶۸۲) (الحيل ۱۲ (۶۹۷۲)، صحيح مسلم/الطلاق ۳ (۱۴۷۴)، سنن الترمذي/الأطعمة ۲۹ (۱۸۳۱)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ۳۶ (۳۳۲۳) (تحفة الأشراف: ۱۶۷۹۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۵۹)، دي/الأطعمة ۳٤(۲۱۱۹) (صحيح)

[2]) د دې په باره کښې امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی ﴿ نبت من نبت النحل ﴾ يعنی دا يو قسم ګيا ده کومه چه د شهدو مچې خوری او بيا د هغې نه شهد جوړوی)

ځکونکې زينب بنت جحش ﷺ ده لکه چه د ابوداؤد په ړومبی روايت کښې دی، او په دويم روايت کښې دا دی چه شهد ځکونکې حفصه ﷺ وه او په هغوی باندې اشکال کونکې سوده ﷺ وه. او په ړومبی روايت کښې دا دی چه اشکال کونکې عائشه او حفصه ﷺ دې دواړو کښې يوه وه، د ابوداؤد دا دواړه مختلف روايتونه په صحيح بخاری کښې هم دی، د دې دواړو روايت کونکې خپله عائشه ﷺ ده، اول حديث په طريق د عبيد بن عمير عن عائشه دې، او دويم په طريق د عروه عن عائشه دې.

اکثر شارحين علامه عينی حافظ ابن حجر او د قسطلانی ﷺ ميلان دې طرف ته دې چه ځکونکې زينب بنت جحش ﷺ وه ځکه چه حفصه ﷺ خو خپله د عائشې ﷺ په ډله کښې وه د زنيب ﷺ په خلاف کښې چه هغه په حزب مخالف کښې ده بلکه اصل مد مقابل هم هغه ده. او په روايت کښې د دې وضاحت دې چه ماته په دې مسئله کښې غيرت راغلو لهذا د هغې تقاضا هم دا ده چه ځکونکې دې د عائشې ﷺ د حزب مخالف نه وی. سهارنپوری صاحب په بذل کښې هم دې ته ترجيح ورکړې ده بلکه دويم روايت ته ئې غلط وئيلې دې. فرمائی ﴿ وهذا غلط من احد الرواة، وانما كانت سقته زينب كما ذكره المولف فى الرواية المتقدمة اهـ ﴾ دا کلام د امر ثانی سره متعلق شو.

## د ايت په شان نزول کښې د تحريم عسل او تحريم ماريه ﷺ کښې اختلاف

او امر اول کوم چه مستفاد من الحديث دې يعنی دا چه د تحريم تعلق د عسل سره دې دا خبره هم مختلف فيه ده د دې په مقابل کښې دا ده چه د دې نه مراد تحريم د ماريه قبطيه ﷺ دې، دا اختلاف هم د مفسرينو او د محدثينو په نزد مشهور دې، خو د تحريم عسل والا روايتونه د صحيحينو دی، او د تحريم ماريه والا روايتونه د غير صحيحينو، په دې اختلافاتو باندې مختصر کلام مگر جامع په الابواب والتراجم ٥/٣٧ کښې ذکر شوې دې هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی، په هغې کښې دا هم دی. قال ابن كثير : الصحيح انه كان فى تحريمه العسل ، وقال الخطابى : الاكثر على ان الاية نزلت فى تحريم ماريه الى آخر ما فيه.......

د تحريم ماريه واقعه داسې ليکلې شوې ده چه يو کرت رسول الله ﷺ داسې حال کښې چه د حفصه ﷺ په کور کښې ناست وو او حفصه ﷺ د رسول الله ﷺ نه اجازت اخستلو سره د څه ضرورت په چه باندې بهر تلې وه رسول الله ﷺ ماريه ﷺ هلته راطلب کړه او د هغوی سره ئې صحبت اوفرمائيلو، چه کله په واپسئ باندې حفصه ﷺ دا اوليدل نو په دې باندې ئې د خفگان اظهار اوفرمائيلو. په دې باندې رسول الله ﷺ ماريه په ځان باندې حرامه کړه چه په هغې باندې د سورة تحريم آيتونه نازل شو، په جلالين کښې هم دا قول اختيار کړې شوې دې او په حاشيه د جمل کښې دا د تحريم واقعه په تفصيل سره نقل کړې شوې ده که غواړې نو هغې ته رجوع اوکړه........ دلته يوه بله واقعه ده يعنی د رسول الله ﷺ د ايلاء او د اعتزال عن النساء چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ د خپلو ازواج مطهراتو نه تر يو مياشت پورې د ځانله اوسيدو قسم کړې وو او بيا دا قسم رسول الله ﷺ پوره کړې هم وو او دا مياشت رسول الله ﷺ ځانله په کمره کښې تيره کړې وه. د دې سبب څه شوې وو حافظ

فرمائی چه په دې کښې هم دغه شان اختلاف دې لکه چه څنګه پورته ذکر کړې شوې واقعه د تحریم کښې اختلاف دې، د بعض روایتونو نه معلومیږی چه د اعتزال سبب د رسول الله ﷺ د بیبیانو نفقه کښې د زیادت طلب دې، او په یو قول کښې دا دی چه د دې سبب د راز ښکاره کول دی چه د تحریم عسل یا د ماریه رضي الله عنها نه پس رسول الله ﷺ د دې تحریم د اظهار نه منع اوفرمائیله خو هغه بی بی هغې لره په خائې د اخفاء هغه ښکاره کړو په دې باندې رسول الله ﷺ خفه کیدو سره تر یوې میاشتې پورې جدائی اختیار اوفرمائیله. خو د کوم تحریم د وجې نه چه په رسول الله ﷺ باندې عتاب اوشو هغه دا اعتزال عن النساء نه دې لکه چه د ترمذی د روایت نه دا شبه کیږی. کما حققه فی الکوکب الدری فی کتاب التفسیر، فارجع الیه لو شئت.

حدیث الباب الاول اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، والثانی اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه مختصرا ومطولا، قاله المنذری

## بَابٌ فِي النَّبِيذِ إِذَا غَلَى

**کله چه په نبیذ کښې سختوالې پیداشی نو دد دې د استعمال څه حکم دې؟**

[۳۷۱۶] () حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَاقِدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "عَلِمْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَصُومُ، فَتَحَيَّنْتُ فِطْرَهُ بِنَبِيذٍ صَنَعْتُهُ فِي دُبَّاءٍ، ثُمَّ أَتَيْتُهُ بِهِ فَإِذَا هُوَ يَنِشُّ، فَقَالَ: اضْرِبْ بِهَذَا الْحَائِطِ، فَإِنَّ هَذَا شَرَابُ مَنْ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ".

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ماته معلومه وه چه نبی علیه السلام به اکثر وخت روژه نیوله په دې ورځ هم مانبی علیه السلام ته نبیذ پیش کړل کوم چه دندو په لوخي کښې وو ماچه ورته کله دا پیش کول نونبیذ جوش وهلي وو، نبی علیه السلام اوفرمائیل دا په دیوال اووله، اودا به هغه څوك څي دچاچه په الله اوپه ورځ د آخرت ایمان نه وي.

**قوله:** ﴿ فَتَحَيَّنْتُ فِطْرَهُ بِنَبِيذٍ صَنَعْتُهُ فِي دُبَّاءٍ ثُمَّ أَتَيْتُهُ بِهِ فَإِذَا هُوَ يَنِشُّ الخ ﴾

ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چه یو کرت داسې اوشوه چه د رسول الله ﷺ روژه وه نو ما د افطار د وخت انتظار کولو سره د افطار په وخت رسول الله ﷺ ته هغه نبیذ یوړول کوم چه ما په دباء کښې جوړ کړې وو چه کله ما هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړل نو هغې هغه وخت جوش وهلو یعنی د فساد او نشې پیدا کیدو د وجې نه نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿اضْرِبْ بِهَذَا الْحَائِطَ﴾ دا نبیذ په دیوال باندې اوغورځوه څکه چه دا د هغه خلقو شراب دی چه په الله او آخرت باندې ایمان نه لری. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

............

[1]: سنن النسائي/الأشربة ۲۵ (۵۶۱۳)، ۴۸ (۵۷۰۷)، سنن ابن ماجه/الأشربة ۱۵ (۳۴۰۹)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۹۷)، (صحيح)

## بَابٌ فِي الشُّرْبِ قَائِمًا
### په ولاړه د اوبو څکلو بیان

[٣٧١٧](١)حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يَشْرَبَ الرَّجُلُ قَائِمًا".

د انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده ددینه چه څوک دې په ولاړه اوبه وڅکی.

**قوله:** ﴿ نَهَى أَنْ يَشْرَبَ الرَّجُلُ قَائِمًا ﴾

**د شرب قائما په باره کښې اختلاف د روایاتو:**

د شرب قائما په باره کښې روایات دواړه قسم راغلی دی، د منع هم او د جواز هم، امام بخاری رحمه الله خو په صحیح بخاری کښې د شرب قائما باب تړلو سره صرف د جواز حدیث یعنی حدیث د علی رضی الله عنه کوم چه دلته په آبوداؤد کښې د دې نه روستو را روان دې ذکر فرمائیلې دې. د ابن بطال رائې خو دا ده چه د امام بخاری رحمه الله اشاره دې طرف ته ده چه د هغوی په نزد احادیث د منع ثابت نه دی، قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه امام مالک او امام بخاری د نهی د احادیثو تخریج نه دې کړې، خو امام مسلم رحمه الله د هغې تخریج کړې دې پس د هغوی په یو روایت کښې دی مرفوعا ﴿ لا یشربن احدکم قائما فمن نسی فلیستقی ﴾ حافظ رحمه الله فرمائی چه د علماء کرامو رائې دې باره کښې مختلف دی، اول ترجیح او دا چه احادیث د جواز اثبت او اقوی دی د احادیث نهی نه، دویم قول دا چه احادیث د منع منسوخ دی په احادیث جواز سره په قرینه د عمل الخلفاء الراشدین ومعظم الصحابة والتابعین بالجواز، دریم قول په جمع بین الروایتین دې پس بعضو وئیلې دی چه د قیام نه مراد مشی ده او امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه احادیث د نهی په عدم تسمیة عند الشرب باندې محمول دی یعنی کوم سړې چه ئې په ولاړه باندې بغیر د بسم الله نه څکی، اوکه باقاعده بسم الله وئیلو سره ئې څکی نو په داسې څکلو کښې هیڅ باک نشته، دریمه رائې په دې کښې دا ده چه احادیث د نهی په کراهت تنزیه باندې محمول دی او احادیث د ثبوت په بیان د جواز باندې، وهذ احسن المسالک واسلمها........ او یو قول په دې کښې دا هم دې چه احادیث د نهی په طب باندې محمول دی او په شفقت باندې چه هسې نه چه په ولاړه باندې په تندئ سره څکلو باندې په مرئ کښې اونخلی، لهذا په اطمینان سره څکل پکار دی اهـ ملخصا من الاوجز ٦/٢٣٩ او یو قول په دې کښې دا هم دې چه احادیث د جواز په زیاتی اوبو د اودس یا زمزم باندې محمول دی او احادیث د نهی د هغې نه په علاوه باندې.

والحدیث اخرجه مسلم والترمذی وابن ماجه بنحوه،

(١): صحيح مسلم الأشربة ١٤ (٢٠٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٣٦٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي الأشربة ١١ (١٨٧٩)، سنن ابن ماجه الأشربة ٢١ (٣٤٢٤)، مسند احمد (١١٨/٣، ١٤٧، ٢١٤)، سنن الدارمي الأشربة ٢٤ (٢١٧٣) (صحيح)

[۳۷۱۸] ([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مِسْعَرِ بْنِ كِدَامٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنِ النَّزَّالِ بْنِ سَبْرَةَ، أَنَّ عَلِيًّا دَعَا بِمَاءٍ فَشَرِبَهُ وَهُوَ قَائِمٌ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ رِجَالًا يَكْرَهُ أَحَدُهُمْ أَنْ يَفْعَلَ هَذَا، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ مِثْلَ مَا رَأَيْتُمُونِي أَفْعَلُهُ".

د نزال بن سبره نه روایت دې فرمائی چه علی نه اوبه راوغوښتلې اوپه ولاړه ئې وڅښلې اووئې فرمائیل بعضې خلق دا بدګنړی یقینا ما نبی ﷺ په داسې کولو باندې لیدلې وو لکه څنګه چه تاسو زه ولیدلم.

وحديث علي رضي الله عنه ثاني حديثي الباب اخرجه البخاري والترمذي والنسائي، قاله المنذري.

## بَابُ الشَّرَابِ مِنْ فِي السِّقَاءِ

### د مشک د خولې نه د اوبو څښلو بیان

[۳۷۱۹] ([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا قَتَادَةُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشُّرْبِ مِنْ فِي السِّقَاءِ، وَعَنْ رُكُوبِ الْجَلَّالَةِ وَالْمُجَثَّمَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْجَلَّالَةُ الَّتِي تَأْكُلُ الْعَذِرَةَ.

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائیلې ده دمشک په خوله باندې د اوبو څکلونه او دسورلۍ دمردار خور څاروي نه اوخوړلو دمرداري نه.

**قوله:** ﴿ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ ‑صلى الله عليه وسلم‑ عَنِ الشُّرْبِ مِنْ فِي السِّقَاءِ وَعَنْ رُكُوبِ الْجَلاَّلَةِ وَالْمُجَثَّمَةِ الخ ﴾

### شرح الحديث:

یعنی رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده د مشک په خوله باندې خوله لګولو سره د څکلو نه، چه د هغې علماء کرامو مختلف مصلحتونه لیکلی دی مثلاً دا چه ممکن ده چه په مشک کښې څه ضرری څیز وی، یا دا چه ناڅاپه اوبه په حلق کښې تلو سره حلق اولګی، یا په اوبو تویدلو سره د څکونکی جامې لوندې شی، بلکه دا چه همیشه یا بار بار داسې کولو سره په مشک کښې دننه ددې نه بوئی پیدا کیږی.

وړاندې په حدیث کښې د رکوب جلاله نه منع ده، جلاله هغه څاروې دې چه آزاد ګرزیدو په وجه باندې پلیت څیزونه خوری تردې چه د هغه په خوله کښې د نجاست بوئی راشی.

وړاندې په حدیث کښې دی ﴿ والمجثمه ﴾ مجثمه ته مبصوره هم وئیلې شی یعنی د مجثمه ځناور د خوراک نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده، مجثمه هغه ځناور (څاروې یا مرغۍ) ته وائی کوم چه په شرعی ذبح باندې د قدرت باوجود قید کولو سره په غشی وغیره باندې ویشتلو سره مړ کړې شی.

---

[1]: صحيح البخاري/الأشربة ١٦ (٥٦١٥)، سنن الترمذي/الشمائل ٣٢ (٢٠٩)، سنن النسائي/الطهارة ١٠٠ (١٣٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٨/١، ١٢٠، ١٢٣، ١٣٩، ١٥٣، ١٥٩) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الأطعمة ٢٤ (١٨٢٥)، سنن النسائي/الضحايا ٤٣ (٤٤٥٣)، سنن ابن ماجه/الأشربة ٢٠ (٣٤٢١)، (تحفة الأشراف: ٦١٩٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأشربة ٢٤ (٥٦٢٩)، مسند احمد (٢٢٦/١، ٢٤١، ٢٩٣، ٣٢١، ٣٣٩)، سنن الدارمي/الأشربة ١٩ (٢١٦٣) ١٣ (٢٠١٨) (صحيح)

والحدیث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجه، ولیس فی حدیث البخاری وابن ماجه ذکر الجلالة والمجثمة، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي اخْتِنَاثِ الْأَسْقِيَةِ

### د مشک خوله تاوول او بیا ترې اوبه څکل

اسقیه جمع ده د سقاء یعنی مشک او د اختناث نه مراد د مشک خولې لره بهر طرف ته اړول چه په هغې کښې سختی او کلک والې راشی چه بیا په هغې باندې خوله لګولو سره اوبه اوڅکلې شی، دا ترجمه بلفظ الحدیث ده، د حدیث الفاظ هم داسې دی، په دې ترجمة الباب کښې او پورته کښې دغرض په اعتبار سره هیڅ فرق په نظر نه راځی، دواړه ابواب نزدې نزدې دی.

[۳۷۲۰](1)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ اللَّهِ ابْنَ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ اخْتِنَاثِ الْأَسْقِيَةِ".

دابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه پیغمبر پاک صلی الله علیه وسلم منع فرمائیلې ده دمشک نه په داسې شان سره دابو څکلو نه چه خوله ئې تاوکړې شوې وي.

[۳۷۲۱](2)حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ عِيسَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "دَعَا بِإِدَاوَةٍ يَوْمَ أُحُدٍ، فَقَالَ: اخْنِثْ فَمَ الْإِدَاوَةِ، ثُمَّ شَرِبَ مِنْ فِيهَا".

عیسی بن عبد الله انصاری دخپل پلار عبد الله رضی الله عنه نه روایت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام د احد په ورځ یو مشك اوبه راوغوښتلې اوبیا ئې حکم اوکړو چه ددې خوله تاو کړئ او بیا ئې ددینه اوبه وڅکلې.

د دې باب په دویم حدیث کښې د اختناث اسقیه جواز ذکر شوې دې چه د هغې مختلف توجیهات کیدلې شی: یو دا چه د منع تعلق د لوئې مشک سره دې یا دا چه د اباحت تعلق په احیانا باندې دې چه کله کله داسې کولې شی او د منع تعلق په کثرت او عادت باندې دې چه د هغې عادت واچولې شی، یا دا نهی محمول ده په شفقت او په ثبوت د اباحت او په جواز باندې. (بذل)

وحدیث ابی سعید رضی الله عنه اخرجه مسلم والترمذی وابن ماجه، والحدیث الثانی اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

---

(1): صحیح البخاري/الأشربة ۲۳ (۵٦۲٤)، صحیح مسلم/الأشربة ۱۳ (۲۰۲۳)، سنن الترمذي/الأشربة ۱۷ (۱۸۹۰)، سنن ابن ماجه/الأشربة ۱۹ (۳٤۱۸)، (تحفة الأشراف: ٤۱۳۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۳، ٦۷، ٦۹، ۹۳) دي/ الأشربة ۱۹ (۲۱٦۵) (صحیح)

(2): سنن الترمذي/الأشربة ۱۸ (۱۸۹۱)، (تحفة الأشراف: ۵۱٤۹) (منكر)

## بَابٌ فِي الشُّرْبِ مِنْ ثُلْمَةِ الْقَدَحِ

### د پیالۍ د مات شوی ځائي نه د اوبو څکلو بیان

هم دا الفاظ د حدیث هم دی، ثلمة القدح د پیالې هغه ځائي چه مات شوې وی، موضع الانکسار، هلته خوله لګولو سره د څکلو نه د منع کولو مختلف مصلحتونه کیدې شی مثلا دا چه هغه حصه پاکه نه وی د خیری د جمع کیدو د وجې نه، یا دا چه د هغې په شونډو کښې د ننوتلو خطره ده.

[۳۷۲۲] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي قُرَّةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشُّرْبِ مِنْ ثُلْمَةِ الْقَدَحِ، وَأَنْ يُنْفَخَ فِي الشَّرَابِ".

دابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده د پیالې په مات ځائي باندې داوبو څکلونه، اود پوکې کولونه اوبوته.

﴿ وَأَنْ يُنْفَخَ فِي الشَّرَابِ ﴾ یعنی د څکلو په څیز کښې د پوکې وهلو نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده، دا پوکې وهل که د یو بسری وغیره د اوبو نه د لرې کولو دپاره وی او که د هغې د یخولو په نیت باندې، ځکه چه دا د ادب او نظافت خلاف ده، پوکې سره په هغې کښې د لاړو د غورځیدلو خطره ده، وړاندې مستقل یو باب را روان دې. باب فی النفخ فی الشراب، چه په هغې کښې دا حدیث ذکر شوې دې. ﴿ نهی ان یتنفس فی الاناء او ینفخ فیه ﴾

## بَابٌ فِي الشُّرْبِ فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ

### د سپینو زرو یا سرو زرو په لوښی کښې د خوراک څښاک بیان

[۳۷۲۳] (²) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: كَانَ حُذَيْفَةُ بِالْمَدَائِنِ، فَاسْتَسْقَى، فَأَتَاهُ دِهْقَانٌ بِإِنَاءٍ مِنْ فِضَّةٍ، فَرَمَاهُ بِهِ، وَقَالَ: إِنِّي لَمْ أَرْمِهِ بِهِ إِلَّا أَنِّي قَدْ نَهَيْتُهُ فَلَمْ يَنْتَهِ، وَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الْحَرِيرِ، وَالدِّيبَاجِ، وَعَنِ الشُّرْبِ فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، وَقَالَ: هِيَ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا، وَلَكُمْ فِي الْآخِرَةِ".

دابن ابی لیلي نه روایت دې فرمائی چه حذیفه نه په مدائن ښارکښې وو اوهغه اوبه وغوښتلې نو یو زمیندار ورته د سپینو زرو په لوښي کښې اوبه راوړلې، حذیفه هغه لوښې اوغورځولو اوونې وئیل چه ما دا لوښې ځکه وغورځولو چه دا زمیندار ما ددې کار نه منع کړې وو لیکن دې منع نه شو، یقینا نبی علیه السلام د ریښمو د جامو او د دیباج (یو خاص قسم ریښم) داغوستلو نه اود سرو زرو او د سپینو زرو د لوښي د استعمال نه منع فرمائیلې ده او دائې هم

¹): سنن الترمذي/الأشربة ١٥ (١٨٨٧)، (تحفة الأشراف: ٤١٤٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صفة النبي ٧ (١٢)، مسند احمد (٨٠/٣) (صحيح)

²): صحيح البخاري/الأطعمة ٢٩ (٥٤٢٦)، الأشربة ٢٧ (٥٦٣٢)، ٢٨ (٥٦٣٣)، اللباس ٢٥ (٥٨٣١)، ٢٧ (٥٨٣٧)، صحيح مسلم/اللباس ١ (٢٠٦٧)، سنن الترمذي/الأشربة ١٠ (١٨٧٨)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ٣٣ (٥٣٠٣)، سنن ابن ماجه/الأشربة ١٧ (٣٤١٤)، (تحفة الأشراف: ٣٣٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٥/٥، ٣٩٠، ٣٩٦، ٣٩٨، ٤٠٠، ٤٠٨)، دي/الأشربة ٢٥ (٢١٧٦) (صحيح)

فرمائیلي دي چه داځیزونه په دنیا کښې د کافرانو دپاره دي اوستاسودپاره به په اخرت کښې وي.

**قوله:** ﴿ كَانَ حُذَيْفَةُ بِالْمَدَائِنِ فَاسْتَسْقَى فَأَتَاهُ دِهْقَانٌ بِإِنَاءٍ مِنْ فِضَّةٍ فَرَمَاهُ بِهِ الخ ﴾

یعنی حذیفه رضی الله عنه چه په مدائن کښې اوسیدلو چا لره چه عمر رضی الله عنه د هغه ځائې امیر جوړ کړې وو یو کرت هغوی اوبه طلب کړې نو هغوی ته یو زمیندار یعنی چودهری د چاندئ په پیاله کښې اوبه راوړلې نو هغوی هغه اوغورځوله. (۱) او وې فرمائیل ما دا هسې نه ده ویشتلې بلکه ما دې په دې کښې د راوړلو نه منع کړې وو خو دې منع نه شو حالانکه رسول الله صلی الله علیه وسلم منع فرمائیلې ده د لبس حریر او دیباج نه، یعنی سړي ئې منع کړي دي، او منع ئې فرمائیلې ده د سرو او سپینو زور په لوښی کښې د ځکلو نه، یعنی مطلقا که ښځې وي او که سړي او فرمائیلي ئې دي چه دا په دنیا کښې صرف د کفارو دپاره دي او ستاسو دپاره صرف په آخرت کښې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْكَرْعِ

### د یو لوښی نه په خوله باندې د ځکلو بیان

د لوښی یا لپې نه بغیر براه راست په حوض یا نهر باندې خوله لګولو سره اوبه ځکل.

[۳۷۲۴](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنِي فُلَيْحٌ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، وَهُوَ يُحَوِّلُ الْمَاءَ فِي حَائِطِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَاءٌ بَاتَ هَذِهِ اللَّيْلَةَ فِي شَنٍّ وَإِلَّا كَرَعْنَا، قَالَ: بَلْ عِنْدِي مَاءٌ بَاتَ فِي شَنٍّ".

د جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یو نبی علیه السلام د خپل یو ملګري سره دیو انصاري خواته لاړو او هغه خپل باغ اوبه کولو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل که چرې ستا سره په مشک کښې بیګاني پاتې شوي اوبه وي نوبهتره ده ورنه زه به ئې د نهر په خوله باندې وځکم هغه عرض اوکړو هو، زما سره په مشک کښې بیګاني پاتې شوي اوبه موجودي دي.

**قوله:** ﴿ دَخَلَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- وَرَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الأَنْصَارِ وَهُوَ يُحَوِّلُ الْمَاءَ فِي حَائِطِهِ « إِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَاءٌ بَاتَ هَذِهِ اللَّيْلَةَ فِي شَنٍّ وَإِلاَّ كَرَعْنَا » ﴾

یو کرت رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د یو صحابی د یو انصاری باغ ته لاړو چه هغه خپل باغ ته اوبه ورکولې نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: که تا سره د شپې زړې اوبه په مشک کښې پرتې وی (نو راوړه) ګینې مونږ به په دې ګودر باندې خوله اولګوو او اوبه به اوځکو. هغوی

---

(۱) علامه عینی رحمه الله د دې جملې ترجمه هم دا کړې ده ﴿ ولفظه: فرمي بالقدح بالشراب او رمي الشراب بالقدح ﴾ او حضرت په بذل کښې لیکلي دی ﴿ فرماه به اي فرمي حذيفه الدهقان بذلك الاناء ﴾ یعنی حذیفه رضی الله عنه په هغه پیاله باندې هغه دهقان ویشتلو او د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې دی: ﴿ ويويد ما افاده الشيخ ما في الفتح من اختلاف الروايات ففي رواية فرمي به في وجهه وفي اخري ما يالوا ان يصيب به وجهه ﴾ اهـ

(۲): صحيح البخاري/الأشربة ۲۰ (۵۶۱۳)، سنن ابن ماجه/الأشربة ۲۵ (۳۴۳۲)، (تحفة الأشراف: ۲۲۵۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۲۸/۳، ۳۴۳، ۳۴۴)، سنن الدارمي/الأشربة ۲۲ (۲۱۶۹) (صحیح)

عرض اوکړو چه او یا رسول اللهﷺ ما سره د شپې په مشک کښې پرتې اوبه موجود دی.

په دې واقعه کښې اګر چه د کرع ضرورت نه دې راغلې خو دا ده چه رسول اللهﷺ د هغې اراده اوفرمائیله، بلکه ترې نه دا هم معلومه شوه چه رسول اللهﷺ به په مشک یا لوښو کښې د شپې پرتې زړې اوبه خوښولې.

د کتاب الاشربه د آخری باب په آخری حدیث کښې راروان دی چه ﴿ كان يستعذب [۳۷۲۳] یوې چینې نوم دې چه د مدینې طیبې نه د دوه ورځو په مزل لرې ده خوړې اوبه راوړلې شوې.

په دې باندې بذل کښې لیکلې دی: ځکه چه په هغه زمانه کښې د مدینې طیبې اکثر اوبه مالګینې او تروې وې.

**د حضرت حاجی صاحبؒ یو معمول:**

د سید الطائفه حضرت حاجی صاحبؒ په باره کښې مشهوره ده او مونږ د حضرت شیخ نه ډیر کرته واوریده چه حاجی صاحب به ښه یخې اوبه څکلې او فرمائیل به ئې چه په یخو اوبو څکلو سره د زړه نه الحمد لله اوځی او په ګرمو اوبو کښې دا خبره نه وی. خپله زمونږ شیخ هم د ډیرو یخو اوبو څکلو عادت وو او د خپل تائید دپاره به ئې د حاجی صاحب دا مقوله نقل فرمائیله. والحدیث اخرجه البخاری وابن ماجه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي السَّاقِي مَتَى يَشْرَبُ

### داوبو تقسیمونکی به کله اوبه څکی؟

| [۳۷۲۵]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي الْمُخْتَارِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "سَاقِي الْقَوْمِ آخِرُهُمْ شُرْبًا". |
|---|

دعبدالله بن ابی اوفی نه روایت دې فرمائی چه رسول اللهﷺ فرمائیلی دی ساقي لره پکاردي چه دټولونه په اخرکښې اوبه اوڅکی.

﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « سَاقِيَ الْقَوْمِ آخِرُهُمْ شُرْبًا»﴾

خلقو لره اوبه ورکونکې د خپل څکلو په اعتبار سره د ټولو نه آخری وی.

په دې حدیث کښې د ادب او استحباب بیان دې چه داسې کیدل پکار دی، په خلاف د دې چه د اوبو ورکونکې که خپل نفس مقدم اوساتی نو دا به د هغه د حرص علامت وی (كذا في البذل) ، او په هغې کښې دا هم دی چه که څوک ساقی د خپل حصې په اندازه د مخکښې نه واخلی نو بیا هم څه باک نشته، جائز دی. ١هـ

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه مختصرًا، قاله المنذری.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥١٨٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساجد ٥٥ (٦٨١)، سنن الترمذي/الأشربة ٢٠ (١٨٩٥)، سنن ابن ماجه/ (٣٤٣٤) كلاهما عن أبي قتادة، مسند احمد (٣٥٤/٤، ٣٨٢، ٣٠٣/٥) (صحيح)

[۳۷۲۶]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أُتِيَ بِلَبَنٍ قَدْ شِيبَ بِمَاءٍ، وَعَنْ يَمِينِهِ أَعْرَابِيٌّ، وَعَنْ يَسَارِهِ أَبُو بَكْرٍ، فَشَرِبَ، ثُمَّ أَعْطَى الْأَعْرَابِيَّ، وَقَالَ: الْأَيْمَنَ فَالْأَيْمَنَ".

دانس بن مالك ﷛ نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ ته داسې شوده راوړلې شو چه اوبه په كښې اچولولې شوې وې اودنبي ﷺ يوجانب ته ياباني چې ناست وو اوبل طرف ته ابوبكر فيناست وو نبي ﷺ چه شوده وڅكل او بيا ئې پياله باندچې ته وركړه اوبيا ئې اوفرمائيل اول دښي طرف والاحق دې بيا د چپ طرف والا.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- أُتِيَ بِلَبَنٍ قَدْ شِيبَ بِمَاءٍ وَعَنْ يَمِينِهِ أَعْرَابِيٌّ وَعَنْ يَسَارِهِ أَبُو بَكْرٍ الخ ﴾

د رسول الله ﷺ په خدمت كښې لسى پيش كړې شوه په داسې حال كښې چه د رسول الله ﷺ ښى طرف ته يو اعرابى او ګس طرف ته صديق اكبر ﷛ وو، رسول الله ﷺ د هغې نه اول په خپله لسى اوڅكله، او وې فرمائيل ﴿ الايمن فالايمن ﴾ يعنى د ښى طرف والا راجح او مقدم دې په ګس طرف والا باندې.... د دې حديث په ظاهر كښې د ترجمة الباب سره مناسبت نشته، او په بذل كښې ئې د ګنګوهي ﷫ د تقرير نه دا نقل فرمائيلې دى چه مصنف ﷫ دا حديث په دې باب كښې ظاهرا په دې وجه راوړلې دې چه پورته قاعده ﴿ ساقي القوم آخرهم شربا ﴾ په هغه صورت كښې دې چه يو سړې مشترک څيز په خپلو ملګرو كښې تقسيموی، هلته هغه له پكار دى چه د خپلې حصې څيز روستو واخلى،او چرته چه كوم څيز خالص خپل حق وى يا خپل ملک وى د مخكښې نه، يا هغه ته هديه كړې شوې وى د هغه دپاره دا ضرورى نه ده چه هغه دې نورو لره په خپل ځان باندې مقدم كړى. اهـ فللله درالشيخ.

د شمائل ترمذى په يو روايت كښې دى، ابن عباس ﷠ فرمائي چه يو كرت زه او خالد بن الوليد ﷛ دواړه د رسول الله ﷺ سره ميمونې ﷞ كره لاړو، هغې مونږ ته په يو پياله كښې پئ راوړل چه هغه رسول الله ﷺ اوڅكل، زه د هغوى ښى طرف ته اوم او خالد ګس طرف ته، نو رسول الله ﷺ د بچ شوې پيو د تقسيم چه كله اراده اوفرمائيله نو ما ته ئې اوفرمائيل چه حق خو ستا دې، خو كه ته غواړې نو زه به په دې كښې خالد ته ترجيح وركړم، ما عرض اوكړو چه ستاسو جوټه مباركه داسې معمولى څيز نه دې چه په هغې كښې دې بل ته ترجيح وركړې شى، لهذا هغه هغوى خپله اوڅكل.

ددې روايت نه پس امام ترمذى ﷫ فرمائي چه ميمونه ﷞ د خالد بن الوليد او د ابن عباس ﷛ او دغه شان د يزيد بن الاصم د دې درې واړو ترور وه. ګويا هم په دې وجه باندې دوى واړه دواړه د رسول الله ﷺ سره كور ته داخل شوې دى د ميمونې ﷞ د محرم كيدو د وجې نه.

(): صحيح البخاري/الأشربة ١٤ (٥٦١٢، ١٨٩٣)، ١٨ (٥٦١٩)، المساقاة ١ (٢٣٥٢)، الهبة ٤ (٢٥٧١)، صحيح مسلم/الأشربة ١٧ (٢٠٢٩)، سنن الترمذي/الأشربة ١٩ (١٨٩٣)، سنن ابن ماجه/الأشربة ٢٢ (٣٤٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صفة النبي ٩ (١٧)، مسند احمد (١١٠/٣، ١١٣، ١٩٧)، سنن الدارمي/الأشربة ١٨ (٢١٦٢) (صحيح)

**خبرداري** : په دې حديث د انس رضی الله عنه کښې چه دا راغلی دی ﴿ وعن يمينه اعرابی ﴾ دا حديث چونکه په بخاری کښې هم شته په دې باندې حافظ په فتح الباری ۳۷/۵ (کتاب المساقاة) کښې ليکلی دی چه ابن التين د بعض شارحينو نه نقل کړې دې چه د دې اعرابی نه مراد خالد بن الوليد رضی الله عنه دې، په دې باندې دا اشکال کړې شوې دې چه د خالد بن الوليد رضی الله عنه په شان شخصيت ته خو اعرابی نه شی وئيلې کيدې، حافظ فرمائی : کيدې شی چه د دې تفسير باعث هغه حديث د ابن عباس رضی الله عنهما وی کوم چه په ترمذی شريف کښې دې ﴿ قال دخلت انا وخالد بن الوليد على ميمونة الحديث المذكور قريبا ﴾ کيدې شی چه دې قائل دا ګنړلې وی چه دا يوه قصه ده خو دا صحيح نه ده ځکه چه د ترمذی په روايت کښې چه کومه قصه ذکر ده هغه د بيت ميمونه ده او دا د انس رضی الله عنه قصه د انس رضی الله عنه په کور کښې راغلې ده.. الی آخر ما بط...... لهذا يو لره په بل باندې حمل کول غلط دی. والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۷۲۷]([1]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ أَبِي عِصَامٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا شَرِبَ تَنَفَّسَ ثَلَاثًا، وَقَالَ: هُوَ أَهْنَأُ وَأَمْرَأُ وَأَبْرَأُ".

د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی صلی الله عليه وسلم چه به کله اوبه څکلی نو په درې ساه ګانو کښې به ئې څکلی اوفرمائيل به ئې چه په اوبو څکلو کښې ساه اخستل تنده ختموي اوخوراک ازموي اوتندرستي پيدا کوي.

**قوله:** ﴿كَانَ إِذَا شَرِبَ تَنَفَّسَ ثَلَاثًا وَقَالَ « هُوَ أَهْنَأُ وَأَمْرَأُ وَأَبْرَأُ » ﴾

يعنی د رسول الله صلی الله عليه وسلم عادت مبارک د څکلو په څيز کښې دا وو چه رسول الله صلی الله عليه وسلم به هغه په درې ساګانو باندې څکلو او فرمائيل به ئې چه دا درې کرته څکل ډير زيات مزيدار، په څکلو کښې اسان او په تالو کښې د اينختلو د ضرر نه پاک وی.

د څکلو يو ادب خو په دې حديث کښې ذکر دې چه اوبه کم از کم په دوه يا درې ساګانو باندې څکل پکار دی، کما تقدم فی کتاب الطهارة ﴿ واذا شرب فلا يشرب نفسا واحدا ﴾ او دويم ادب په روايت کښې دا راغی ﴿ واذا شرب احدکم فلا يتنفس فی الاناء ﴾ چه د اوبو څکلو ترمينځه چه کله ساه اخلی نو لوښې دې د خولې نه جدا کړی، په لوښی کښې دې ساه نه اخلی.د دې حديث د ترجمة الباب سره هيڅ خصوصی مناسبت نشته، بس دا ده چه دا هم د څکلو د ادب نه يو ادب دې. والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

..........

[1]: صحيح مسلم/الأشربة ١٦ (٢٠٢٨)، سنن الترمذي/الأشربة ١٣ (١٨٨٤)، الشمائل (٢١٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٨/٣، ١١٩، ١٨٥، ٢١١، ٢٥١) (صحيح)

# بَابٌ فِي النَّفْخِ فِي الشَّرَابِ وَالتَّنَفُّسِ فِيهِ

## اوبو ته د پوکې کولو بيان

[۳۷۲۸](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُتَنَفَّسَ فِي الْإِنَاءِ أَوْ يُنْفَخَ فِيهِ".

د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ منع فرمائيلې ده ددينه چه ساه واخستلی شي په لوښي کښې اود پوې کولو نه په اوبو کښې.

**قوله:** ﴿ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنْ يُتَنَفَّسَ فِي الْإِنَاءِ أَوْ يُنْفَخَ فِيهِ ﴾

د نفخ في الشراب نه د نهی حديث نزدې هم تير شوې دې، دا احاديث خو واضح دی چه د هغې نه معلوميږی چه دا دواړه ادبونه دوه مستقل او خانله خانله دينی يعنی يو خو په يو ساه باندې د څکلو نه منع، خو د بعض رواياتو الفاظ لږ ګران دی تاويل ته محتاج دی لکه چه په يو روايت کښې دی کوم چه اکثر کتابونو د صحاح کښې دې چه د هغې الفاظ دا دی ﴿ ان رسول الله ﷺ كان يتنفس في الاناء ثلاثا ﴾ په دې حديث سره هم مقصود د راوی تعدد د تنفس بيانول مقصود دې چه رسول الله ﷺ به په درې ساه ګانو باندې اوبه څکلې او د اوبو څکلو ترمينځه به ئې ساه اخستله، دا مطلب نه دې چه په لوښی کښې دننه به ئې ساه اخستله ګينې د نورو احاديثو خلاف به شی، په دې وجه حافظ منذری رحمه الله د دې دواړو احاديثو د ذکر کولو نه پس فرمائی: ﴿ والجمع بينهما ظاهر ﴾

[۳۷۲۹](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ خُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ، قَالَ: "جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَبِي فَنَزَلَ عَلَيْهِ، فَقَدَّمَ إِلَيْهِ طَعَامًا، فَذَكَرَ حَيْسًا أَتَاهُ بِهِ، ثُمَّ أَتَاهُ بِشَرَابٍ، فَشَرِبَ فَنَاوَلَ مَنْ عَلَى يَمِينِهِ، وَأَكَلَ تَمْرًا، فَجَعَلَ يُلْقِي النَّوَى عَلَى ظَهْرِ أُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى، فَلَمَّا قَامَ قَامَ أَبِي فَأَخَذَ بِلِجَامِ دَابَّتِهِ، فَقَالَ: ادْعُ اللَّهَ لِي، فَقَالَ: اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيمَا رَزَقْتَهُمْ، وَاغْفِرْ لَهُمْ وَارْحَمْهُمْ".

د عبدالله بن بسر سليمي نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام زما پلار خواته تشريف راوړو او دهغه ميلمه شو زما پلار ورته خوراك پيش کړو راوی وائی چه حلوائي ورته پيش کړه نبي ﷺ اوخوړله اوبيا ئې ورته اوبه راوړل هغه ئې هم وشکلې او دځان نه ښی طرف والا کس ته ئې ورکړې اوبيا ئې کجوروې اوخوړلې اودکجورو زړي به ئې دګوتو په شاګانو باندې غورځول، کله چه دتلو دپاره پاڅيدو نو زما پلارهم پاڅيدو اودنبی ﷺ د سورلئ واګې ئې ونيولې او عرض ئې وکړو اې دالله رسوله زما دپاره دالله تعالی نه دعا وغواړه، نبي ﷺ اوفرمائيل اې الله دوی ته برکت ورکړې په هغه څيز کښې کوم چه تادوی ته ورکړې دې او بخښنه وکړې دوی ته اورحم وکړې په دوی باندې.

---

(۱): سنن الترمذي/ الأشربة ١٥ (١٨٨٨)، سنن ابن ماجه/الأشربة ٢٣ (٣٤٢٩، ٣٤٣٠)، (تحفة الأشراف: ٦١٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٢٠، ٣٠٩، ٣٥٧)، سنن الدارمي/الأشربة ٢٧ (٢١٨٠) (صحيح)

(۲): صحيح مسلم/الأشربة ٢٢ (٢٠٤٢)، سنن الترمذي/الدعوات ١١٨ (٣٥٧٦)، (تحفة الأشراف: ٥٢٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٨٨، ١٩٠)، سنن الدارمي/الأطعمة ٢ (٢٠٦٥) (صحيح)

## شرح الحديث :

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُسْرٍ – قَالَ جَاءَ رَسُولُ اللّٰهِ –صلى الله عليه وسلم– إِلَى أَبِى فَنَزَلَ عَلَيْهِ فَقَدَّمَ إِلَيْهِ طَعَامًا الخ ﴾ عبدالله بن بسرﷺ فرمائي چه يو كرت رسول اللهﷺ زما پلار ته تشريف راوړلو، زما والد صاحب د هغوى دپاره خوراک راوړلو "حيس" يعنى داسې خوراک کوم چه د کهجورو پنير او کچو نه جوړيږي د دې نه پس ئې ورله د څکلو دپاره اوبه راوړلې چه رسول اللهﷺ اوڅکلې او باقى ئې ښى طرف والا ته ورکړې، د دې نه پس ئې کهجورې اوخوړلې، وړاندې په روايت کښې دى ﴿ فَجَعَلَ يُلْقِي النَّوَى عَلَى ظَهْرِ أُصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى ﴾ يعنى د کهجورو د خوارک په وخت باندې به ئې د هغې هډوکې د دوه ګوتو سبابه او وسطى په شا باندې کيخودل، يعنى هډوکې به ئې په هغه لوښى کښې نه اچول په کوم کښې چه کهجورې کيخودلې شوې وې چه هډوکى د کهجورو سره ګډوډ نه شي چه د ادب خلاف ده، بيا دا چه د هغه هډوکو سره به ئې څه كول؟ نو جواب دا دې چه غورځول به ئې، يعنى اول ئې د لاس په شا کيخودل او بيا ئې اوغورځول، يعنى رسول اللهﷺ هغه د کهجورو په پليټ کښې څه ايخودل چه د لاس په تلى کښې ئې هم نه کيخودل په د کوم طرف نه چه خوراک کولې شى چه د ډير نظافت خبره ده. كذا في البذل عن فتح الودود بتوضيح.

د دې روايت الفاظ په کتب حديث کښې مختلف دى، د ترمذى په روايت کښې دى (په كتاب الدعوات کښې) ﴿ يلقى النوى باصبعه ﴾ او په مشكوة کښې په روايت د مسلم ﴿ يلقى النوى بين اصبعيه ﴾ دې او په يو روايت کښې ﴿ فجعل يلقى النوى على ظهر اصبعة ﴾ څنګه چه دلته په ابوداؤد کښې دى، هم په دې وجه د دې مختلفو روايتونو د وجې نه په الكوكب الدرى ۲/۳۰۷ کښې د دې جملې په شرح کښې ليکلى دى : ﴿ اى كان يجمع الاصبعين فيضع من فيه النواة على ظهرهما فيفتح ما بين الاصبعين حتى يسقط النوى من بينهما على الارض ﴾ يعنى اول به ئې دوه ګوتې يو ځائې کړې او د هغې په شا باندې به ئې هډوکى کيخودل او بيا به ئې هغه ګوتې پرانستلې چه په هغې سره به هغه هډوکى لاندې پريوتل، په دې صورت کښې ﴿ بين الاصبعين ﴾ او ﴿ على ظهر الاصبعين ﴾ دواړه خبرې اوموندلې شوې. فلله در الشيخ ﷺ..... په حديث الباب کښې دا هم ذکر دى چه رسول اللهﷺ هغه صحابىﷺ سره د خوراک کولو نه پس چه كله د واپسئ اراده اوفرمائيله نو هغوى د رسول اللهﷺ نه د دعاء درخواست اوکړو نو رسول اللهﷺ د هغوى دپاره دا دعاء اوکړه ﴿ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيمَا رَزَقْتَهُمْ وَاغْفِرْ لَهُمْ وَارْحَمْهُمْ ﴾ چه ډيره مختصر او جامع دعا ده، مونږ او تاسو لره هم په دې باندې عمل كول پكار دى چه د چاكره خوراک اوکړئ نو د هغوى دپاره داسې دعا کوئ.

**ايا د رسول اللهﷺ عادت مبارک د خوراک سره د اوبو څکلو وو؟ :**

په دې روايت کښې ﴿ فقدم اليه طعاما ﴾ نه پس دى ﴿ ثم اتاه بشراب فشرب ﴾ په دې باندې حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې فرمائى ﴿ هذا نص فى شربه عليه الصلوة والسلام ويخالفه ما قال ابن القيم : لم يكن من هديه ان يشرب على طعامه فيفسده اهـ ﴾ يعنى د دې حديث نه د

خوراک سره سره د اوبو څکلو پته لګی ګویا رسول الله ﷺ به د خوراک سره سره اوبه هم څکلې (یا کم از کم داسې اووایه چه هغه وخت کښې رسول الله ﷺ داسې اوکړل) خو حافظ ابن القیم رحمه الله په زاد المعاد کښې د دې خلاف لیکلي دی هغه دا چه د رسول الله ﷺ معمول د خوراک سره د اوبو څکلو نه وو ځکه چه دا ضرری څیز دې. هغوی په زاد المعاد کښې صرف هم دومره لیکلي دی خو د رسول الله ﷺ د دې معمول په ثبوت یا تائید کښې ئې د یو حدیث یا روایت حواله نه ده ورکړې بلکه صرف د دې په تائید کښې ئې د شاعر قول لیکلي دې.[1]

په دې کښې د قدیم طبیبانو د رائې هم د معلوموولو ضرورت دې د هغوی رائې په دې باره کښې څه ده مشهوره هم دا ده چه هغوی په دې کښې د تاخیر شرب قائل دی او دا چه هغه د طعام په هضم کښې مفید دې، زما والد صاحب حکیم محمد ایوب مرحوم مغفور باقاعده طبیب حاذق وو د هغوی معمول خو د خوراک سره د اوبو څکلو وو دغه شان زمونږ د حضرت شیخ هم. د دې حدیث په ظاهر کښې د ترجمة الباب سره هیڅ مناسبت نشته خو ډیر په مشکل سره، مثلاً چه داسې اوئیلي شي ﴿ فاتاه بشراب فشرب ﴾ نه مراد دا دې چه رسول الله ﷺ د خپل عادت شریفه مطابق اوبه اوڅکلې او د هغوی عادت شریفه په څکلو کښې عدم النفخ فی الشراب وو. والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

## باب مَا يَقُولُ إِذَا شَرِبَ اللَّبَنَ

### د پیلو څکلو په وخت کښې د دعا بیانږ

[۳۷۳۰] ([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ زَيْدٍ، ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ حَرْمَلَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كُنْتُ فِي بَيْتِ مَيْمُونَةَ، فَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ، فَجَاءُوا بِضَبَّيْنِ مَشْوِيَّيْنِ عَلَى ثُمَامَتَيْنِ، فَتَبَزَّقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ خَالِدٌ: إِخَالُكَ تَقْذَرُهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟، قَالَ: أَجَلْ، ثُمَّ أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَبَنٍ فَشَرِبَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيهِ وَأَطْعِمْنَا خَيْرًا مِنْهُ، وَإِذَا سُقِيَ لَبَنًا فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيهِ وَزِدْنَا مِنْهُ فَإِنَّهُ لَيْسَ شَيْءٌ يُجْزِئُ مِنَ الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ إِلَّا اللَّبَنُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا لَفْظُ مُسَدَّدٍ.

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه زه دام الحرمین میرنه رضی الله عنها په کورکښې موجود وم چه نبی علیه السلام دخالد بن ولید سره راغې او په دوه لرګو کښې ورته وریته کړې شوې هوسئ راوړلې شوه نبی علیه السلام چه ولیدله نوتونې کړل خالد ووئیل داسې معلومیږي چه تا ددې نه نفرت وکړو؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل هو، بیا ورته شوده راوړلې شول نودهغې نه ئې اوڅکل او وئې فرمائیل: کله چه په تاسو کښې یو کس خوراک وکړي نوهغه لره پکاردي چه

[1] (هغوی لیکی قال الشاعر:
لا تکن عند اکل سخن وبرد ودخول الحمام تشرب بماء
فاذا ما اجتنبت ذلك حقا لم تخف ما حييت في الجوف داء)

[2]): سنن الترمذي/الدعوات ٥٥ (٣٤٥٥)، (تحفة الأشراف: ٦٢٩٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الأطعمة ٣٥ (٣٣٢٢)، مسند احمد (١/٢٢٥)، سنن النسائي/اليوم والليلة (٢٨٦) (حسن)

دا دعا اووائي: «اَللّٰهُمَّ بارك لنا فيه وأطعمنا خيرا منه» وإذا قي با قل «اللّٰهُمَّ بارك لنا فيه وزدنا منه» بیانبی ﷺ اوفرمائیل په نعمتونو کښې بل داسې نعمت نشته چه دخوراك اوڅښاك دواړو دپاره کار ورکړی. امام ابوداؤد فرمائی چه داد مسدد د روایت الفاظ دي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كُنْتُ فِي بَيْتِ مَيْمُونَةَ فَدَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- وَمَعَهُ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ فَجَاءُوا بِضَبَّيْنِ مَشْوِيَّيْنِ عَلَى ثُمَامَتَيْنِ الخ ﴾

## شرح الحدیث:

ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه زه د خپلې ترور میمونې رضی الله عنها په کور کښې ووم نو رسول الله ﷺ هم هلته تشریف راوړلو هغوی سره خالد بن الولید رضی الله عنه هم وو پس درسول الله ﷺ د دوؤ ضب یعنی د خادمئ[1] غوښه چه هغه وریته کړې شوې وه، په دوه لرګو باندې کیخودلو سره راوړلې شوه، رسول الله ﷺ هغې ته کتلو سره د نفرت د اظهار په طور لاړې مبارک تهوکړې. په دې باندې خالد رضی الله عنه اوفرمائیل چه تاسو جوړې دا ناخوښه ګنړئ؟ هغوی اوفرمائیل او.

## یو اشکال او د هغې جواب:

په بذل کښې د حضرت ګنګوهی رحمه الله د تقریر نه نقل کړې شوې دی چه کله د یو انسان مخې ته د خوراک څکاک یو داسې څیز راوړلې شی د کوم نه چه د هغه نفرت وی نو د هغه کرکه پیدا کیږی او د هغې په وجه ئې خوله کښې اوبه راځی، کومې چه هغه تهوکی، هم دغه شان دلته هم شوې دی چه غیر اختیاری طور د رسول الله ﷺ په خوله مبارکه کښې د کراهت د وجې نه اوبه شان راغلې. اوس ښکاره ده چه د هغې تیرول خو د طبع سلیم دپاره ګرانه ده نو هغه به ضرور تهوکلې شی. دا خبره نه ده چه رسول الله ﷺ قصداً د اظهار کراهت دپاره تهوکړې، چه د هغه حدیث خلاف شی ﴿ كان لا يذم ذواقا ولا يمدحه ﴾ كما في الشمائل چه رسول الله ﷺ به د خوراک څکاک په څیز کښې نه عیب راویستلو او نه به ئې د هغې زیات تعریف کولو. اهـ او وړاندې په کتاب الاطعمة کښې حدیث راروان دې ﴿ ما عاب رسول الله ﷺ طعاما قط، ان اشتهاه اكله وان كرهه تركه ﴾.

د ضب په باره کښې د ائمه اختلاف دې د ائمه ثلاث په نزد بغیرد کراهت نه جائز دې او د احنافو په نزد مکروه دې په کتاب الاطعمه کښې ﴿باب فی اکل الضب﴾ مستقل باب راروان دې.

وړاندې په حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله سړې د خوراک یو څیز خوری نو هغه له پکار دی چه داسې اوائی: ﴿ اللهم بارک لنا فيه واطعمنا خيرا منه ﴾ او کله چه پئ څکی نو داسې دې وائی ﴿ اللهم بارک لنا فيه وزدنا منه ﴾ او ﴿ واطعمنا خيرا منه ﴾ دې نه وائی څکه چه د خوراک څکاک په څیزونو کښې د تولو نه غوره پئ دی چه هغه د طعام او شراب دواړو کار کوی. په بذل کښې لیکلې دی چه ګویا پئ هم په دې حیثیت سره فوقیت

---

[1] دا د سمساره په شکل یو ځناور دې چه په دښتو او صحراګانو کښې په زمکه کښې اوسیږی، د سمساره نه وړوکې وی او د کربوړی یعنی چرمخکئ نه غټ وی، حکیمان ددې غوړی په دوایانو کښې استعمالوی. (مترجم)

لری په غوښه باندې، اگر چه د غوښې دپاره نورې خوبیانې دی چه د هغې په وجه هغې ته سید الطعام وائی. والحدیث اخرجه الترمذی وقال حسن، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي إِيكَاءِ الْآنِيَةِ

### دلوښو د سرو نو د پټولو بیان

یعنی د لوښو خوله بنده ساتل او که مشک وی نو د هغې خوله په مزی وغیره باندې ترل او پرانستلې نه پریخودل خصوصا د شپې په وخت.

[۳۷۳۱] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَغْلِقْ بَابَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ بَابًا مُغْلَقًا، وَأَطْفِ مِصْبَاحَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، وَخَمِّرْ إِنَاءَكَ وَلَوْ بِعُودٍ تَعْرُضُهُ عَلَيْهِ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، وَأَوْكِ سِقَاءَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ".

دجابر ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبي کریم ﷺ فرمائیلي دي: خپله دروازه بنده ساته اودالله نوم یادکړه، یقینا شیطان بندي دروازي نشي بیرته کولې اوخپله ډیوه هم بله مه پرېږده اودالله نوم اخله اودلوخوسرونه پټوه اگر که په لرگي وي اوداوبو په لوخي باندې سرایخودلي ساته او د الله نوم یادوه.

په حدیث الباب کښې دی چه د شپې دروازه بسم الله لوستلو سره بندوئ، ځکه چه شیطان بنده دروازه نه شي پرانستلې، او هم دغه شان بسم الله لوستلو سره ډیوه مړه کوئ، او هم دغه شان د الله پاک نوم اخستلو سره لوښې پټوئ اگر چه د یو لرگی په ذریعه وی کوم چه تاسو په دې لوښی باندې په پلن والی کیږدئ او هم دغه شان د مشک خوله هم ترئ دغه شان په روستو روایت کښې هم راروان دی چه شیطان ته د دې خبرې طاقت نه دې ورکړې شوې چه هغه بنده دروازه پرانستلې شی یعنی کومه چه په بسم الله وئیلو سره بنده کړې شوې وی، او هم دغه شان نه هغه غوټه پرانستلې شی او نه پټ کړې لوښې. او د ډیوې د مړې کولو حکمت رسول اللهﷺ دا بیان کړو چه ډېر کرته فویسقه یعنی مږه د خلقو په کور کښې اور لگوی یعنی د شپې که بله ډیوه پریخودلې شی نو کیدې شی چه مږه د بلې ډیوې باتې د تیلو په لالچ کښې راښکلو سره یو ځائې ته یوسی او بیا د هغې نه اور اولگی.

[۳۷۳۲] (²) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْخَبَرِ وَلَيْسَ بِتَمَامِهِ، قَالَ: فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ بَابًا غَلَقًا، وَلَا يَحُلُّ وِكَاءً، وَلَا يَكْشِفُ إِنَاءً، وَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ تُضْرِمُ عَلَى النَّاسِ بَيْتَهُمْ أَوْ بُيُوتَهُمْ.

جابر بن عبد الله ﷺ دنبی ﷺ نه دتیرشوی روایت په شان روایت نقل کړی دی او پوره په پوره ئې نه دی بیان کړې مگردا اضافه ئې پکښې کړې ده چه شیطان بنده دروازه نه بیرته کوي اونه بند مشک بیرته کوي اونه بند لوخي بیرته کوي (اودچراغ بل پاتې کیدو په وجه منږکار دختر کورونه سوزوي.

---

¹): صحیح البخاري/الأشربة ۲۲ (۵۶۲۳)، صحیح مسلم/الأشربة ۱۲ (۲۰۱۲)، (تحفة الأشراف: ۲٤٤٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأدب ۷٤ (۲۸۵۷)، سنن ابن ماجه/الأشربة ۱٦ (۳٤۱۰)، والأدب ٤٦ (۳۷۷۱)، مسند احمد (۳/۳۵۵) (صحیح)

²): صحیح مسلم/الأشربة ۱۲ (۲۰۱۲)، سنن الترمذي/الأطعمة ۱۵ (۱۸۱۲)، (تحفة الأشراف: ۲۹۳٤) (صحیح)

په دې حديث کښې دا راغلي دي چه بنده دروازه شيطان نه شي پرانستلې، خو سوال دا دې چه پورته صحن چه آزاد دې کوم چه بنديدې نشي، په هغه ځائې خو راتلې شي د دې جواب دا دې چه په جامع الصغير کښې په روايت د امام احمد رحمه الله دا زيادت دې ﴿ انهم لم يوذن لهم فى التسور ﴾ چه شيطانانو ته په ديوال باندې راوختلو سره د راتلو اجازت نشته، که راځي نو صرف په دروازه به راځي.

حديث جابر رضي الله عنه الاول اخرجه البخارى ومسلم، والنسائى، وحديث الثانى اخرجه مسلم والترمذى وابن ماجه، قاله المنذرى.

او هم په دې حديث د جابر رضي الله عنه په دريم طريق کښې دا زيادت راروان دې چه خپل واړۀ ماشومان ماښام کښې سنبهال ساتئ بهر ته ئې مه پريږدئ، ځکه چه د ماښام په وخت د جناتو انتشار وي هغوي شرارت کوي او اوچتول کوي.

[۳۷۳۳](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَفُضَيْلُ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ السُّكَّرِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ شِنْظِيرٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، رَفَعَهُ، قَالَ: "وَاكْفِتُوا صِبْيَانَكُمْ عِنْدَ الْعِشَاءِ"، وَقَالَ مُسَدَّدٌ: عِنْدَ الْمَسَاءِ فَإِنَّ لِلْجِنِّ انْتِشَارًا وَخَطْفَةً.

د جابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى کريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي: د ماخوستن په وخت کښې خپل ماشومان دخپل ځان سره کينوئ اود مسدد په روايت کښې دعشاء په ځائې باندې لفظ منقول دې (يعنى د ماښام په وخت کښې ماشومان بهر گرځيدو ته مه پريږدئ ځکه چه په دې وخت کښې شيطانان راخوريږي.

د دې خبرې اهتمام مونږ په خپل وړوکوالى کښې کتلې دې چه د کور زړو زنانو به د ماښامې بهر ته دوتلو نه منع کوله. او د دې نه روستو روايت کښې دى چه يو کرت رسول الله صلى الله عليه وسلم اوبه طلب کړې نو يو سړې په منډه منډه راغلو او په يو پياله کښې ئې نبيذ راوړل، دې سړى دا پياله هم داسې پرانستلې راوړې وه. رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: ﴿ الا خمرته ولو ان تعرض عليه عودا ﴾ چه تا دا پټه ولې نه کړه اگر که يو لرگې دې پرې کيخودلې وې.

والحديث الثالث سكت عنه المنذرى، واخرجه البخارى فى مواضع، والترمذى، ومسلم، وابن ماجه، قاله الشيخ محمد عوامه. والحديث الرابع اخرجه البخارى ومسلم بنحوه من حديث ابى صالح وابى سفيان طلحة بن نافع عن جابر، واخرجه مسلم ايضا من حديث ابى صالح وحده، قاله المنذرى.

[۳۷۳٤](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَاسْتَسْقَى، فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: أَلَا نَسْقِيكَ نَبِيذًا؟ قَالَ: بَلَى، قَالَ: فَخَرَجَ الرَّجُلُ يَشْتَدُّ، فَجَاءَ بِقَدَحٍ فِيهِ نَبِيذٌ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا خَمَّرْتَهُ وَلَوْ أَنْ تَعْرِضَ عَلَيْهِ عُودًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ الْأَصْمَعِيُّ: تَعْرِضُهُ عَلَيْهِ.

(۱): صحيح البخاري/بدء الخلق ١٦ (٣٣١٦)، الاستئذان ٤٩ (٦٢٩٥)، سنن الترمذي/الأدب ٧٤ (٢٨٥٧)، (تحفة الأشراف: ٢٤٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٨/٣) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الأشربة ١٢ (٥٦٠٦)، صحيح مسلم/الأشربة ١٢ (٢٠١١)، (تحفة الأشراف: ٢٢٣٣) (صحيح)

دجابر رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه مونږ دنبی کریم ﷺ سره موجود ووچه اوبه ئې اوغوښتلي نوپه خلقو کښې یوکس ووئیل آیا نبیذ درته رانوړو؟ نبی ﷺ اوفرمائیل ولي نه راوی وائی چه بیادغه کس روان شوپه تیزۍ سره او په یولوخي کښې ئې نبیذ راوړل، نبی ﷺ اوفرمائیل سردي ورله ولي نه پټولوکم ازکم بولړګي خوبه دي ورباندې ایخودلي وو. امام بوداود فرمائی چه داصمعي دا الفاظ بیان کړي دي: تعرضه علیه.

[٣٧٣٥]([1]) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُسْتَعْذَبُ لَهُ الْمَاءُ مِنْ بُيُوتِ السُّقْيَا"، قَالَ قُتَيْبَةُ: عَيْنٌ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْمَدِينَةِ يَوْمَانِ.

دام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه دنبی ﷺ دپاره به دسقیانوي خوږې چینې نه اوبه راوړلې شوې، قتیبه وئیلی دی چه دا یوه چینه وه چه دمدینې نه ددوه ورځو په مزل لرې وه.

﴿عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– كَانَ يُسْتَعْذَبُ لَهُ الْمَاءُ مِنْ بُيُوتِ السُّقْيَا﴾ د دې حدیث حواله او مضمون هم په باب الکرع کښې تیر شوې دي.

## آخر كتاب الاشربة

وهوآخر ما اردت ايراده فى هذا الجزء وهو الجزء الخامس من الدر المنضود، وقد شرعت فيه العشرة الاخيرة من شهر رمضان ١٤٢٣هـ الذى هو شهر الصبر والغفران الذى انزل فيه القرآن، فى المدينة المنورة ([2]) على صاحبها الف الف تحية وسلام، وقد كنت نازلا فى العوالى فى بيت حبيب الله قربان على المظاهرى، وهو الذى اعاننى فى جمع المواد والاملاء والتحرير حسب اعانته فى الجزء الرابع فجزاه الله تعالى وسائر من اعاننى فى هذا التاليف احسن الجزاء وانا ارجو من لطف الله تعالى وكرمه ان يتم هذا الشرح فى ستة اجزاء فكانه بقى جزء واحد، واسال الله سبحانه وتعالى السداد والتوفيق لما يحب ويرضى وان يكمل هذا الشرح ويجعله خالصا لوجهه الكريم ولا حول ولا قوة الا بالله العلى العظيم وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا ومولانا محمد واله وصحبه اجمعين. آمين.

**محمد عاقل عفا الله عنه**

........................

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٧٠٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٠/٦، ١٠٨) (صحيح)

[2]: الا ثلثة احاديث من الباب الاخير فاني كتبتها بعد الرجوع الي الهند في سهارنفور)

# كِتَابُ الْأَطْعِمَةِ

## دخوراک د څیزونو د احکامو بیان

## بَابُ مَا جَاءَ فِي إِجَابَةِ الدَّعْوَةِ

### د دعوت قبلولو بیان

[۳۷۳۶](1)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْوَلِيمَةِ فَلْيَأْتِهَا".

دابن عمر رضی الله تعالی عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی کله چه ستاسو یو کس ته د ولیمې دعوت ورکړې شي نو پکار ده چه ورته ورشي.

[۳۷۳۷](2)حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، زَادَ: فَإِنْ كَانَ مُفْطِرًا فَلْيَطْعَمْ، وَإِنْ كَانَ صَائِمًا فَلْيَدْعُ.

دابن عمر رضی الله تعالی عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی : باقی دتیرشوی روایت په شان مگر په دې کښې دا زیادت دې چه که چرې غیر روژه دار وي نوخوراك دې وکړي اوکه چرې روژه دار وي نوخوراك کول دې پرېږدي.

**قوله:** ﴿ إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْوَلِيمَةِ فَلْيَأْتِهَا ﴾ او هم د دې حديث په دويم طريق کښې دا دی ﴿فَإِنْ كَانَ مُفْطِرًا فَلْيَطْعَمْ وَإِنْ كَانَ صَائِمًا فَلْيَدْعُ ﴾ چه کله په تاسو کښې څوک په وليمه کښې راطلب کړې شی نو هلته دې لاړ شی، پس که روژه ئې نه وی نو خوراک دې اوکړی، او که روژه ئې وی نو د دعوت ورکونکی دپاره دې دعا اوکړی. په دې صورت کښې به ﴿ فليدع ﴾ د امر صيغه وی د دعا يدعو نه، او دا هم احتمال دې چه دا لفظ ﴿فليدع ﴾ د ودع يدع نه وی يعنی خوارک دې پرېږدی.

د کتاب الصلوة په شروع کښې تير شوې دی چه په يو روايت کښې داسې دی ﴿ وان کان صائما فليصل ﴾ او په يو بل روايت کښې دی ﴿فليجب ﴾ او په بل روايت کښې دی ﴿ وان کان صائما فليقل انی صائم ﴾ په دې دواړو روايتونو کښې په ظاهره تعارض دې په دې باندې کلام په کتاب الصوم کښې تير شوې دې، د هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی.

### د وليمې متعلق درې فوائد :

په دې حديث کښې دوه مسئلې دی يو حکم د وليمې، دويم دعوت قبلول د وليمې، دريم څيز د وليمې تعريف او نور څيزونه د ميلمستوب او د هغې نومونه په کتاب النکاح کښې په ﴿ باب قلة المهر ﴾ کښې د ﴿ اولم ولو بشاة الحديث ﴾ د لاندې د وليمې حکم تير شوې دې چه اهل الظواهر د هغې د وجوب قائل دی او هم دا يو روايت د ائمه ثلاثه نه دې خو په

1): صحيح البخاري/النكاح ٧١ (٥١٧٣)، صحيح مسلم/النكاح ١٦ (١٤٢٩)، (تحفة الأشراف: ٨٣٣٩، ٧٩٤٩)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/النكاح ٢٥ (١٩١٤)، موطا امام مالك/النكاح ٢١(٤٩)، مسند احمد (٢/٢٠)، سنن الدارمي/الأطعمة ٤٠ (٢١٢٧)، النكاح ٢٣ (٢٢٥١) (صحيح)

2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٨٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٧) (صحيح)

مشهور قول کښې وليمه د ائمه اربعه په نزد سنت ده وړاندې يو مستقل باب راروان دې ﴿استحباب الوليمة﴾ او د اجابت وليمه په باره کښې روايات مختلف دی، قيل مستحبة، وقيل واجبة وقيل فرض كفاية.([1])

د اجابت دعوت په باره کښې نور اختلاف په وړاندې حديث کښې هم راروان دې خو وجوب د اجابت د دعوت په اعتبار سره دې د خوراک کولو په اعتبار سره نه دې هغه بيا هم مستحب دې واجب نه دې. پس وړاندې په روايت کښې راځی ﴿من دعی فليجب فان شاء طعم وان شاء ترک﴾ دريم څيز يعنی د وليمې تعريف : وليمه د هغه خوراک نوم دې چه د عرس يعنی د وادۀ په موقع باندې تيار کړې شی، دا د ولم نه اخستلې شوې دې چه د هغې معنی جمع ده دا خوراک چونکه د زوجينو د اجتماع يعنی د رخصت کيدو نه پس وی هم په دې وجه دې ته وليمه وائی([2]).

### ﴿د ضيافت اقسام﴾

علماء کرامو ليکلی دی چه د ضيافت اته قسمونه دی. ۱: الوليمة للعرس، ۲: والخرس بضم الخاء المعجمة ويقال بالصاد المهملة ايضا للولادة يعنی د ماشوم د پيدا کيدو په موقع باندې چه کوم دعوت اوکړې شی، ۳: والاعذار بكسر الهمزة والعين المهملة والذال المعجمة للختان د ماشوم د سنت په وخت چه کوم دعوت کولې شی. ۴: والوكيرة للبناء يعنی د نوې کور د تعمير په وخت چه کوم دعوت اوکړې شی، ۵: والنقيعة لقدوم المسافر ماخوذة من النقع وهو الغبار يعنی هغه دعوت چه سړې ئې د سفر نه په خيريت سره واپس کيدو باندې کوی د خپل طرف نه، يا د بل د طرف نه د هغه دپاره اوکړې شی، وړاندې د دې مستقل باب راروان دې، ۶:والعقيقة يوم سابع الولادة، ۷: والوضيمة بفتح الواو وكسر الضاد المعجمة....... الطعام عند المصيبة.... خو دا قسم ضيافت په اسلام کښې جائز نه دې، ۸: والمادبة بضم الدال وفتحها مطلق هغه ضيافت چه بغير د څه خاص سبب نه اوکړې شی. د دې نه پس حافظ فرمائی چه په دې مشهورو قسمونو کښې يو قسم بل هم باقی پاتې شو يعنی ۹: حذاق بكسر المهملة وتخفيف الذال المعجمة الطعام الذى يتخذ عند حذق الصبى.... يعنی هغه خوراک او دعوت کوم چه د يو ماشوم په حذاقت باندې يعنی د هغه په عقل مند کيدو باندې اوکړې شی او دا هم وئيلې شوی دی چه دا هغه دعوت دې کوم چه د ماشوم په ختم القرآن باندې اوکړې شی يا د هغه د څه صناعت په تکميل يا کاميابئ باندې اوکړې شی. اهـ من تحفة الاحوذی ۳/۱۶۰.

---

[1]) وترجم البخاري باب حق اجابة الوليمة قال الحافظ يشير الي وجوب الاجابة وقد نقل ابن عبدالبر ثم عياض ثم النووي الاتفاق علي القول بوجوب الاجابة لوليمة العرس، وفيه نظر، نعم المشهور من اقوال العلماء الوجوب، وصرح جمهور الشافعية والحنابلة بانها فرض عين، ونص عليه مالك، وعن بعض الشافعية والحنابلة انها مستحبة، وذكر اللخمي من المالكية انه المذهب، وكلام صاحب الهداية يقتضي الوجوب مع تصريحه بانها سنة، فكانه اراد انها وجبت بالسنة وليست فرضا كما عرف من قاعدتهم وعن بعض الشافعية والحنابلة هي فرض كفاية اهـ من الابواب والتراجم ۲۴۰/۵)

[2]) وفي البذل : ويجوز ان يولم بعد النكاح او بعد الرخصة او بعد ان يبني بها والثالث هو الاولي)

[٣٧٣٨](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُجِبْ عُرْسًا كَانَ أَوْ نَحْوَهُ".

د ابن عمر رضی الله تعالی عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی کله چه په تاسو کښې ستاسو یو مسلمان ورور چاته دعوت ورکړې نوهغه دې قبول کړې برابره خبره ده چه دولیمې دعوت وې یادولیې په شان کوم بل یو تقریب وې.

[٣٧٣٩](٢) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنَا الزُّبَيْدِيُّ، عَنْ نَافِعٍ بِإِسْنَادِ أَيُّوبَ وَمَعْنَاهُ.

نافع دایوب په سند سره دایوب د روایت په شان روایت بیان کړې دې.

﴿إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُجِبْ عُرْسًا كَانَ أَوْ نَحْوَهُ﴾

## د اجابت دعوت حکم شرعی:

د دې حدیث نه په ظاهر کښې مطلق د دعوت اجابت وجوب په فهم کښې راځی، هم دغه شان د دې نه روستو روایت کښې ﴿من دعی فلم یجب فقد عصی الله ورسوله﴾ خو امام خطابی رحمه الله فرمائی چه دا احادیث به هم په ولیمه باندې محمول کولې شی، د نورو دعوتونو دا حال نه دې، د ولیمې د خصوصیت وجه لامر النبی ﷺ بها ولما فی اتیان الولیمة من اعلان النکاح... امام نووی رحمه الله د قاضی عیاض رحمه الله نه د ولیمې نه علاوه د نورو دعوتونو په باره کښې د جمهورو مسلک عدم وجوب نقل کړې دې، په خلاف د اهل ظاهر او د بعض سلفو چه د هغوی په نزد د هر دعوت اجابت واجب دې. (عون)

حدیث ابن عمر رضی الله عنه الاول اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، وحدیث الثانی اخرجه مسلم وابن ماجه وحدیث الثالث اخرجه مسلم، وحدیث جابر رضی الله عنه اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[٣٧٤٠](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ دُعِيَ فَلْيُجِبْ، فَإِنْ شَاءَ طَعِمَ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ".

د جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چاته چه دعوت ورکړې شی نوهغه دې قبول کړې دده خوښه ده چه خوراك کوې او که خوراك نه کوې.

[٣٧٤١](٤) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا دُرُسْتُ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ أَبَانَ بْنِ طَارِقٍ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ دُعِيَ فَلَمْ يُجِبْ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ، وَمَنْ دَخَلَ عَلَى غَيْرِ دَعْوَةٍ دَخَلَ سَارِقًا وَخَرَجَ مُغِيرًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبَانُ بْنُ طَارِقٍ مَجْهُولٌ.

د عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی چاته چه دعوت ورکړې شي او قبول ئې نکړې نوده دالله اودالله درسول نافرمانی وکړه، او څوك چه بغیر

(١): صحیح مسلم/النکاح ١٦ (١٤٢٩)، (تحفة الأشراف: ٧٥٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٨/٢، ١٠١، ١٢٧، ١٤٦) (صحیح)

(٢): صحیح مسلم/النکاح ١٦ (١٤٢٩)، (تحفة الأشراف: ٨٤٤٢)

(٣): صحیح مسلم/النکاح ١٦ (١٤٣٠)، (تحفة الأشراف: ٢٧٤٣)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصیام ٤٧ (١٧٥١)، مسند احمد (٣٩٢/٣) (صحیح)

(٤): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٤٦٩) (ضعیف)

بلني یو دعوت ته ورشي نو دې پرغل دې چه دغه کورته ورداخل شو اودلوټ مارکولو نه پس به راواپس شي، امام ابوداؤد وئیلی دی ابان بن طارق مجهول راوی دې.

د ابن عمر رضی الله عنهما د حدیث په یو طریق کښې دا هم دی ﴿ ومن دخل علی غیر دعوة دخل سارقا وخرج مغیرا ﴾ په سرقه کښې چونکه د اخفاء معنی ده او بغیر د راغوښتلو نه چونکه په پټه باندې داخلیږی په دې وجه هغه ته سارق اوئیلې شو، او د داخلیدو نه پس چه کله هغه د ټولو سره خوراک اوکړو نو اوس چونکه د هغه پرده ختم شوه ټولو هغه اولیدو په دې وجه هغه ته مغیر اوئیلې شو یعنی غاصب، لوټ مار کونکې.

د دې نه روستو په حدیث د ابوهریره رضی الله عنه کښې هم موقوفا راروان دی کوم چه د مسلم په روایت کښې مرفوعا دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : بدترین خوراک د هغه ولیمې خوراک دې چه په هغې کښې صرف مالدارو ته دعوت ورکړې شي او فقیران پریخودلې شي.

[٣٧٤٢]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: "شَرُّ الطَّعَامِ طَعَامُ الْوَلِيمَةِ يُدْعَى لَهَا الْأَغْنِيَاءُ وَيُتْرَكُ الْمَسَاكِينُ، وَمَنْ لَمْ يَأْتِ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ".

اعرج د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کوی فرمائی چه ابوهریر هند به وئیل دهغې ولیمې طعام په ټولو طعامونو کښې ډیر بدترین دې کوې ته چه مالداره خلق رابللی شي او مسکینان پریخودلې شي، او څوك چه دعوت قبول نکړې نوده دالله اودرسول نافرماني وکړه.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه موقوفا ایضا، واخرجه مسلم من حدیث ثابت بن عیاض عن ابی هریرة رضی الله عنه مسندا، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي اسْتِحْبَابِ الْوَلِيمَةِ عِنْدَ النِّكَاحِ

### د نکاح په وخت کښې د ولیمې کولو د استحباب بیان

[٣٧٤٣]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، قَالَ: "ذُكِرَ تَزْوِيجُ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ عِنْدَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، فَقَالَ: مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلَمَ عَلَى أَحَدٍ مِنْ نِسَائِهِ مَا أَوْلَمَ عَلَيْهَا أَوْلَمَ بِشَاةٍ".

د حماد بن ثابت نه روایت دې فرمائی چه دانس بن مالك په وړاندې دزینب بنت جحش دنکاح ذکر وشو هغه اوفرمائیل نبی علیه السلام دازواجو مطهراتو په نکاح داسې ولیمه نه ده کړې څنګه چه ئې دزینب په نکاح کښې کړې وه نبی علیه السلام دزینب په نکاح کښې په یوه چیلئ باندې ولیمه کړې وه.

قوله: ﴿ عن أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فَقَالَ مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَوْلَمَ عَلَى أَحَدٍ مِنْ نِسَائِهِ مَا أَوْلَمَ عَلَيْهَا أَوْلَمَ بِشَاةٍ ﴾

یعنی په څومره اهتمام سره چه رسول الله ﷺ د زینب بنت جحش رضی الله عنها ولیمه کړې وه

[1]): صحیح البخاري/ النکاح ٧٣ (٥١٧٧)، صحیح مسلم/النکاح ١٦ (١٤٣٢)، سنن ابن ماجه/النکاح ٢٥ (١٩١٣)، (٢١١٠)، (تحفة الأشراف: ١٣٩٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٤٠)، سنن الدارمي/الأطعمة ٢٨ (٢١١٠) (صحیح)

[2]): صحیح البخاري/النکاح ٦٨ (٥١٦٨)، صحیح مسلم/النکاح ١٣ (١٤٢٨)، سنن النسائي/الکبری ٤ (٦٦٠٢)، سنن ابن ماجه/النکاح ٢٤ (١٩٠٨)، (تحفة الأشراف: ٢٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٢٧) (صحیح)

داسې ئې د چا په نکاح باندې هم نه وه کړې ورانده د هغې بیان دې چه رسول اللهﷺ بیزه ذبح کړه وه، او د دې نه روستو روایت کښې دی ﴿ اولم علی صفیة بسویق وتمر ﴾ چه د صفیه رضی الله عنها په ولیمه کښې ئې په ستوانو او کهجورو سره د ولیمې دعوت اوکړو. په دې تقابل سره د زینب رضی الله عنها د ولیمې فوقیت په فهم کښې راځي.

[٣٧٤٤](1) حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا وَائِلُ بْنُ دَاوُدَ، عَنِ ابْنِهِ بَكْرِ بْنِ وَائِلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَوْلَمَ عَلَى صَفِيَّةَ بِسَوِيقٍ وَتَمْرٍ".

د انس بن مالك رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام چه کله دصفیه رضی الله عنها په نکاح کښې ولیمه کوله نو په ستوانو اوکجوروباندې ئې کړي وه.

حدیث الباب الاول اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه بنحوه، والحدیث الثانی اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة، وقال الترمذی : غریب، قاله المنذری.

## بَابُ الإِطْعَامِ عِنْدَ الْقُدُومِ مِنَ السَّفَرِ

### د سفر نه د واپسئ په وخت کښې د خوراک صدقه کولو بیان

[٣٧٤٧](2) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ نَحَرَ جَزُورًا أَوْ بَقَرَةً".

**ترجمه:** دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه هرکله نبی علیه السلام مدینې ته راغې نو یواوبښ یا غواګئ ذبح کړه.

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم الْمَدِينَةَ نَحَرَ جَزُورًا أَوْ بَقَرَةً ﴾

چه کله رسول اللهﷺ د سفر نه په واپسئ باندې مدینې طیبې ته راورسیدلو ,لعله من سفر غزوة تبوک کذا فی البذل، نو رسول اللهﷺ یو اوبښ یا غوا ذبح کړه، د دې دعوت نوم نقیعه دې کما تقدم قریبا فی انواع الضیافة.

سکت علیه المنذری، وعزاه المزی الی البخاری وهوفیه (٣٠٨٩) من روایة وکیع، به، قاله عوامة.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الضِّيَافَةِ

### باب د میلمستیا ورکولو بیان

[٣٧٤٨](3) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْكَعْبِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ جَائِزَتُهُ يَوْمُهُ وَلَيْلَتُهُ الضِّيَافَةُ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ وَمَا بَعْدَ ذَلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ، وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَثْوِيَ عِنْدَهُ حَتَّى يُحْرِجَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قُرِئَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ وَأَنَا

---

1): سنن الترمذي/النكاح ١٠ (١٠٩٥)، سنن النسائي/النكاح ٧٩ (٣٣٨٤)، سنن ابن ماجه/النكاح ٢٤ (١٩٠٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/النكاح ١٤ (١٣٦٥)، الجهاد ٤٣ (١٣٦٥) (صحيح)

2): صحيح البخاري/الجهاد ١٩٩، ٣٠٨٩، (تحفة الأشراف: ٢٥٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٩/٣، ٣٠٢، ٣١٩، ٣٦٣) (صحيح الإسناد)

3): صحيح البخاري/الأدب ٣١ (٦٠١٩)، ٨٥ (٦١٣٥)، الرقاق ٢٣ (٦٤٧٦)، صحيح مسلم/الإيمان ١٩ (٤٨)، سنن الترمذي/البر والصلة ٤٣ (١٩٦٧)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥ (٣٦٧٥)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٥٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صفة النبي ﷺ ١٠ (٢٢) مسند احمد (٣١/٤، ٣٨٤/٦، ٣٨٥)، سنن الدارمي/الأطعمة ١١ (٢٠٧٨) (صحيح)

شَاهِدٌ، أَخْبَرَكُمْ أَشْهَبُ، قَالَ: وَسُئِلَ مَالِكٌ عَنْ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: جَائِزَتُهُ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ؟ فَقَالَ: يُكْرِمُهُ، وَيُتْحِفُهُ، وَيَحْفَظُهُ، يَوْمًا وَلَيْلَةً وَثَلَاثَةُ أَيَّامٍ ضِيَافَةٌ.

د ابوشریحه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبی ﷺ به فرمائیل دچاچه په الله تعالی اوپه ورځ داخرت ایمان وي نوهغه لره پکاردي چه دخپل میلمه په بهترې طریقي سره عزت وکړي، اودمیلمه جائزه یوه ورځ اویوه شپه ده او میلمستیا د درې ورځو اودرې شپو پورې وي اوددینه پس صدقه ده اودمیلمه دپاره حلال نه دي چه په زیات اوسیدلو سره کوربه ته تکلیف ورسوي.ابوداؤد وائي: حادث بن مسکین ته اولوستلې شو او زه موجود ووم چه اشهب هغوی ته خبر ورکړې دې، ابوداؤد وائي: د امام مالک رحمه الله نه د نبی کریم ﷺ ددې فرمان «جائزته یوم ولیلة» باره کښې تپوس اوشو نو هغوی اووئیل: ددې مطلب دادې چه کوربه دې یوه ورځ او یوه شپه دهغه عزت اواکرام اوکړي، تحفې او هدیې دې ورکوي،اودهغه حفاظت دې کوي او درې ورځو پورې دې ورله ملمستیا کوي.

## شرح الحدیث:

**قوله:** ﴿ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ جَائِزَتُهُ يَوْمُهُ وَلَيْلَتُهُ ﴾

کوم سړې ایمان لری په الله پاک او د آخرت په ورځ باندې نو هغه له پکار دی چه ورکړی خپله میلمه ته د هغه جائزه د یوې ورځې او د یوې شپې، د جائزه په تفسیر کښې درې اقوال مشهور دی چه په هغې کښې یو قول امام مالک رحمه الله د جائزه په تفسیر کښې دا فرمائیلې دې چه یو ورځ او یو شپه دې د میلمه ښه خیال اوساتلې شی، د هغه دپاره دې په خوراک کښې د وس مناسب تکلف اوکړې شی، او په باقی درې ورځو کښې دې صرف میلمستیا د ما حضر اوکړې شی. او دویم تفسیر دا دې چه د میلمه دپاره د هغه د واپسئ په وخت د یوې شپې خوراک د هغه سره کړې شی، او دریم تفسیر دا کړې شوې دې چه د میلمه دوه قسمونه دی یو هغه چه قصدا د چا د ملاقات دپاره لاړ شی او دویم هغه چه ضمنا په لاره کښې د چا سره د ملاقات کولو دپاره لاړ شی او تلل بل خوا مقصود وی، د میلمه د اول قسم دپاره حق د میلمستیا درې ورځې دې او د دې دویم قسم دپاره حق د میلمستیا صرف یوه ورځ دې. (كذا فی هامش البذل)

د دې نه پس په حدیث کښې دی چه د میلمه د میلمستیا حق صرف درې ورځې دې د دې نه پس که هغه ایساریږی نو د د کوربه د طرف نه تبرع او صدقه ده، او دا چه د هغوی دپاره جائز ده چه د چا سره دومره ایسار شی چه په هغې سره ملیمه په تنګسیا کښې اخته شی، د حدیث الباب نه معلومه شوه چه د میلمه میلمستوب کول د ایمان بالله وبالیوم الاخر د مقتضیاتو نه دې چه د هغې نه د دې ډیر لوئې اهمیت فهمیږی هم په دې وجه علماء کرام فرمائی چه میلمستوب د شریعت د محاسنو او د ښکلې اخلاقو نه دې، او د بعض علماء کرامو په نزد لکه لیث بن سعد په نزد خو کم از کم د یوې شپې میلمستیا واجب منلې ده.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۷۴۹]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الضِّيَافَةُ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ فَمَا سِوَى ذَلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ".

ابوهريره ﷺ وائي چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل: ملمستيا درې ورځو پورې ده، اوكوم چه ددې نه علاوه وي هغه صدقه ده.

## بَابٌ فِي كَمْ تُسْتَحَبُّ الْوَلِيمَةُ
### د وليمې دعوت د څو ورځو پورې پكار دې؟

[۳۷۴۵]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُثْمَانَ الثَّقَفِيِّ، عَنْ رَجُلٍ أَعْوَرَ مِنْ ثَقِيفٍ كَانَ يُقَالُ لَهُ مَعْرُوفًا أَيْ يُثْنِي عَلَيْهِ خَيْرًا إِنْ لَمْ يَكُنِ اسْمُهُ زُهَيْرَ بْنَ عُثْمَانَ فَلَا أَدْرِي مَا اسْمُهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْوَلِيمَةُ أَوَّلَ يَوْمٍ حَقٌّ، وَالثَّانِيَ مَعْرُوفٌ، وَالْيَوْمَ الثَّالِثَ سُمْعَةٌ وَرِيَاءٌ"، قَالَ قَتَادَةُ: وَحَدَّثَنِي رَجُلٌ: أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ دُعِيَ أَوَّلَ يَوْمٍ فَأَجَابَ، وَدُعِيَ الْيَوْمَ الثَّانِيَ فَأَجَابَ، وَدُعِيَ الْيَوْمَ الثَّالِثَ فَلَمْ يُجِبْ، وَقَالَ: أَهْلُ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ.

دعبدالله بن عثمان ثقفي نه روايت دې فرمائي چه ماد قبيله ثقيف ديو كوڼ سترګي كس نه آوريدلي دى څوك چه په معروف باندې مشهور وو كه چرې دده نوم عثمان بن زهيرنه وي نوبيا ماته معلومه نه ده چه دده څه نوم دې هغه به وئيل چه نبي ﷺ فرمائيلي دى دوليمې داولنئ ورځي خوراك حق دې اود دويمې ورځي خوراك نيكي ده اود دريمې ورځي خوراك رياكاري او نمائش دې، ابوقتاده وائي ماته يوكس وئيلي دى چه سعيد بن مسيب ته چه كله دوليمې په اوله ورځ دعوت وركړې شو نوقبول ئې كړو او په دويمه ورځ ئې هم قبول كړو، خو البته په دريمه ورځ ئې قبول نكړو او وئې فرمائيل چه داخلق رياكاران دې.

يعنى دعوت وليمه څومره ورځې مستحب دې؟ په حديث الباب كښې دى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ الْوَلِيمَةُ أَوَّلَ يَوْمٍ حَقٌّ وَالثَّانِي مَعْرُوفٌ وَالْيَوْمُ الثَّالِثُ سُمْعَةٌ وَرِيَاءٌ ﴾ چه وليمه د رومبئ ورځې حق ده يعنى ثابته او سنت موكده، او د دويمې ورځې هغه ښه كار دې يعنى صرف مستحب ده غير موكد.....او په دريمه ورځ ثابت نه ده بلكه شهرت طلب كول او رياكارى ده.

وړاندې په روايت كښې دى چه د سعيد بن المسيب رحمه الله د وليمې په رومبئ ورځ باندې دعوت اوكړې شو نو هغوى هغه منظور كړو او په دويمه ورځ ئې هم منظور كړو، او په دريمه ورځ چه دعوت كونكې راغلو نو هغوى منظوره نه كړه بلكه قاصد ئې په كاڼړي ويشتلو او وې فرمائيل: ريا كار دې.

### د وليمې دعوت تر څو ورځو پورې كول مستحب دى:

د جمهورو په نزد لكه څنګه چه په حديث الباب كښې دى وليمه صرف دوه ورځې ده، او د امام مالك رحمه الله په نزد اووه ورځې ده واليه ميل البخاري، پس هغوى په خپل صحيح كښې ترجمه قائم كړې ده ﴿ باب حق اجابة الوليمة ومن اولم بسبعة ايام ونحوه ولم يوقت النبي ﷺ يوما ولا يومين ﴾ او امام بخارى رحمه الله په خپل تاريخ كښې د ابوداؤد د پورته بيان كړى شوى روايت په

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۲۸۰۸)، وقد أخرجه: حم(۳۵۴/۲) (حسن، صحيح الإسناد)
(): سنن الدارمي الأطعمة ۲۸ (۲۱۰۹)، (تحفة الأشراف: ۳۶۵۱، ۱۸۷۱۹) (ضعيف)

باره کښې فرمائی ﴿ولا یصح اسناده، ولا یصح له صحبة یعنی لزهیر الی آخر ما فی الابواب والتراجم ٥/٢٤٠ فارجع الیه لو شئت ﴾ او په هغې کښې دا هم دی چه په دریمه ورځ باندې د ولیمې اجابت مکروه دې او په دویمه ورځ هم د معمولی درجې استحباب دې واجب قطعا نه دې، او بعض علماء لکه رویانی وغیره وائی چه په دریمه ورځ د ولیمې کراهت هله دې چه کله هغه سړې مدعو کړې شی چا ته چه مخکښې هم دعوت کړې شوې وو، او قاضی عیاض رحمه الله فرمائی: استحب اصحابنا لاهل السعة کونها اسبوعا، قال وقال بعضهم : محله اذا دعی فی کل یوم من لم یدع قبله ولم یکرر علیهم ﴾ یعنی د مالکیانو په نزد د اووۀ ورځو پورې د استحباب صورت کښې دی چه کله هره ورځ نوې او بیل تحلقو ته دعوت ورکړې شی، تکرار د دعوت مستحب نه دې. والحدیث اخرجه النسائی مسندا ومرسلا، قاله المنذری.

[٣٧٤٦](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فَدُعِيَ الْيَوْمَ الثَّالِثَ فَلَمْ يُجِبْ، وَحَصَبَ الرَّسُولَ.

دسعید بن مسیب نه هم داواقعه نقل شوې ده او په دې کښې داسې دی چه په دریمه ورځ کله هغه ته دعوت ورکړې شې نو ورته لاړو بلکه قاصد ئې په کانړې وویشتو.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الضِّيَافَةِ

### باب د میلمستیا ورکولو بیان

[٣٧٥٠](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَخَلَفُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ أَبِي كَرِيمَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْلَةُ الضَّيْفِ حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ، فَمَنْ أَصْبَحَ بِفِنَائِهِ فَهُوَ عَلَيْهِ دَيْنٌ إِنْ شَاءَ اقْتَضَى وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ".

دابو کریمه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی په هریو مسلمان باندې د میلمه دپاره یوه شپه تیرول حق دې اوځوک چه کله دیو مسلمان په کور کښې پاتې شي نوګویاکښې یوه شپه میلمستیا کول ئې په کور والاباندې قرض دې که خوښه ئې وي نوپوره دې کړي یادې پریږدي.

﴿ عَنْ أَبِي كَرِيمَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لَيْلَةُ الضَّيْفِ حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فَمَنْ أَصْبَحَ بِفِنَائِهِ فَهُوَ عَلَيْهِ دَيْنٌ إِنْ شَاءَ اقْتَضَى وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ » ﴾

د ابو کریمه یعنی مقدام بن معدیکرب رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه د میلمه د یوې ورځ میلمستیا په هر مسلمان باندې واجب ده، لهذا کوم سړې چه د کوم سړی په کور باندې شپه تیره کړی نو د هغه شپې میلمستوب د هغه په ذمه شو، که غواړی نو حپل حق دې ترې نه واخلی، او که نه اخلی نو ورته دې پریږدی. د وړاندې روایت مضمون هم دا دې بلکه په هغې کښې دا اضافه ده چه د میلمه امداد (هغه ته د هغه په حق ورکولو کښ) په هر مسلمان باندې واجب دې که د کوربه د فصل نه وی او که د هغه د نقد مال نه.

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٦٥١، ١٨٧١٩) (ضعيف)
(٢): سنن ابن ماجه/الأدب ٥ (٣٦٧٧)، (تحفة الأشراف: ١١٥٦٨) (صحيح)

علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه دا احادیث د ابتداء اسلام دی کوم وخت چه میلمستوب واجب وو. کوم چه روستو منسوخ شو چه هغې طرف ته امام ابوداؤد رحمه الله په راتلونکی باب کښې اشاره فرمائیلې ده، او دویم جواب د دې دا دې چه دا په حالت د اضطرار او احتیاج باندې محمول دی، کذا فی البذل، خو په دویم صورت کښې به روستو ضمان ورکول واجب وی، په حاشیه د بذل کښې د دې ډیر توجیهات بیان کړې شوې دی پس یو تاویل دا کړې شوې دې چه د دې حدیث تعلق د اهل ذمه نه دې یعنی د اهل ذمه سره د معاهدې په وخت که د عهد ضیافت عهد هم اخستلې شوې وی نو د هغوی نه به حق ضیافت اخستلې شی، روستو ذکر شوې حدیث کښې هم دې طرف ته اشاره ده او یو قول په دې کښې دا هم دې چه دا حدیث د عمال سره مخصوص دې چه کله هغوی د صدقاتو د اخستلو دپاره په یو ځائې کښې شپه تیره کړی نو د هغوی دپاره حق ضیافت واجب دې. والحدیث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری

[۳۷۵۱]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي أَبُو الْجُودِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْمُهَاجِرِ، عَنِ الْمِقْدَامِ أَبِي كَرِيمَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا رَجُلٍ أَضَافَ قَوْمًا فَأَصْبَحَ الضَّيْفُ مَحْرُومًا فَإِنَّ نَصْرَهُ حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ حَتَّى يَأْخُذَ بِقِرَى لَيْلَةٍ مِنْ زَرْعِهِ وَمَالِهِ".

دابو کریمه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی څوک چه دچاخواته په میلمستیا ورشي او محروم پاتې شي (یعنی څه اکرام ئې ونه شي نوپه ټولو مسلمانانو باندې دده امداد کول ضروری کیږی تردې پورې چه دغه میلمه ددغه خلقو دمال اوفصل نه خپله میلمستیا وصول کولې شی.

[۳۷۵۲]([2]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّهُ قَالَ: قُلْنَا: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّكَ تَبْعَثُنَا، فَنَنْزِلُ بِقَوْمٍ فَمَا يَقْرُونَنَا، فَمَا تَرَى؟، فَقَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنْ نَزَلْتُمْ بِقَوْمٍ فَأَمَرُوا لَكُمْ بِمَا يَنْبَغِي لِلضَّيْفِ فَاقْبَلُوا، فَإِنْ لَمْ يَفْعَلُوا، فَخُذُوا مِنْهُمْ حَقَّ الضَّيْفِ الَّذِي يَنْبَغِي لَهُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذِهِ حُجَّةٌ لِلرَّجُلِ يَأْخُذُ الشَّيْءَ إِذَا كَانَ لَهُ حَقًّا.

د عقبة بن عامرنه روایت دې فرمائی چه مونږ نبی علیه السلام ته عرض وکړو اې د الله رسوله ته مونږه دجهاد په سلسله کښې اودنورو غرضونو دپوره کولو دپاره اکثر په سفر لیږې کله کله زمونږه ورتلل داسې خلقوته وشي څوک چه مونږ ته میلمستیانه راکوي نوپه دې سلسله کښې زمونږ دپاره څه کول مناسب دي؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل که چرې تاسو یو قوم ته ورشئ اوهغوی ستاسو دپاره هر رنګه انتظام وکړي څومره چه د میلمه دپاره کولې شي نوتاسو هغه قبول کړئ اوکه چرې داني ونه کړي نوتاسودهغوی نه د میلمستیاد حق هومره مال وصول کړئ.

(عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ أَنَّهُ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّكَ تَبْعَثُنَا فَنَنْزِلُ بِقَوْمٍ فَلَا يَقْرُونَنَا فَمَا تَرَى الخ) دا حدیث به په اهل ذمه باندې محمول کولې شی یا په عمال باندې لکه چه په مخکښې

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٥٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣١/٤، ١٣٣)، دي/الأطعمة ١١ (٢٠٨٠) (ضعيف)
[2]: صحيح البخاري/المظالم ١٨ (٢٤٦١)، الأدب ٨٥ (٦١٣٧)، صحيح مسلم/اللقطة ٣ (١٧٢٧)، سنن الترمذي/السير ٣٢ (١٥٨٩)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥ (٣٦٧٦)، (تحفة الأشراف: ٩٩٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٩/٤) (صحيح)

توجيهاتو کښې تير شوې دی، خو د ګنګوهیؒ په تقرير کښې دی چه د حديث الباب مطلب دا دې چه هغه خلق نه خو زمونږ ميلمستيا کوی او نه زمونږ په لاس باندې د خوراک څکاک څيز خرڅوی، بعض اهل ذمه عناداً داسې کوی، نو په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه تاسو خپل حق د هغوی نه اخلئ يعنی بالقيمة ئې ترې نه په زبردستئ اخلئ، هم دغه شان توجيه امام ترمذیؒ هم فرمائيلې ده.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم وابن ماجه، واخرجه الترمذي من حديث ابن لهيعة وقال حسن، قاله المنذري.

## بَابُ نَسْخِ الضَّيْفِ يَأْكُلُ مِنْ مَالِ غَيْرِهِ

### د ميلمه د پاره د بل چا د مال خوړلو د حکم د منسوخ کيدو بيان

### د ترجمة الباب غرض او په هغې کښې اختلاف د نسخو:

په رومبی باب کښې چه د کوم حق الضيف ذکر وو په دې باب سره مصنفؒ د هغې منسوخ کيدل بيانوی، په شروع کښې لکه چه اوس تير شو چه حق الضيف واجب وو، تر دې چه ضيف ته دا حق هم وو چه بغير د مالک د رضا نه د خپل ضيافت حق وصول کړی، روستو دا حکم د سورة النساء په آيت کريمه ﴿ لا تاكلوا اموالكم بينكم بالباطل الا ان تكون تجارة عن تراض منكم ﴾ په ذريعه باندې منسوخ کړې شو چه د بل چا مال بغير د اجازت نه خوړل جائز نه دی، حرام دی. د دې آيت کريمه د نزول نه پس بعض حضراتو په خپل اجتهاد باندې دا اوګڼړله چه مطلقا د بل مال خوړل ممنوع دی حال دا چه د سورة النساء د آيت کريمه دا مقصد نه دې. د دې غلط فهمئ د لرې کولو د پاره د سورة النور دا آيت کريمه نازل شو ﴿ لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ وَلَا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَن تَأْكُلُوا مِن بُيُوتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ آبَائِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أُمَّهَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ إِخْوَانِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخَوَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ أَوْ بُيُوتِ عَمَّاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خَالَاتِكُمْ أَوْ مَا مَلَكْتُم مَّفَاتِحَهُ أَوْ صَدِيقِكُمْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَأْكُلُوا جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا ﴾

د دې آيت کريمه په نزول سره هغه غلط فهمی ختم شوه او مسئله واضح شوه چه خپل مينځ کښې په يو ځائې خوراک کښې هيڅ باک نشته.[1]

په کوم ترجمة الباب کښې چه مونږ بحث کوو په دې کښې مختلف نسخې دی، يو نسخه کښې دی ﴿ باب نسخ اليق فی الاكل من مال غيره ﴾ (يعنی د مال غير د خوړلو په باره کښې چه صحابه کرامؓ په کومه (تنګسيا) کښې پريوتلې وو د هغې ختميدل) زما په نزد دا نسخه راجح ده، پورته ذکر کړې شوې تقرير په دې باندې صحيح طريقې سره منطبق کيږی، وايضا لا يرد على هذا التقرير ايراد الطبری المذكور فی البذل، فتدبر وتشكر....

[1] په اردو نسخه کښې د سورة النور آيت کريمه کښې غلطی وه په دې وجه مونږ پوره او صحيح رانقل کړو..... مترجم)

[٣٧٥٣]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ سورة النساء آية ٢٩، فَكَانَ الرَّجُلُ يُحْرَجُ أَنْ يَأْكُلَ عِنْدَ أَحَدٍ مِنَ النَّاسِ بَعْدَ مَا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ، فَنَسَخَ ذَلِكَ الآيَةُ الَّتِي فِي النُّورِ، قَالَ: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَأْكُلُوا سورة النور آية ٦١ مِنْ بُيُوتِكُمْ إِلَى قَوْلِهِ أَشْتَاتًا سورة النور آية ٦١، كَانَ الرَّجُلُ الْغَنِيُّ يَدْعُو الرَّجُلَ مِنْ أَهْلِهِ إِلَى الطَّعَامِ، قَالَ: إِنِّي لأَجَّنَحُ أَنْ آكُلَ مِنْهُ، وَالتَّجَنُّحُ الْحَرَجُ، وَيَقُولُ: الْمِسْكِينُ أَحَقُّ بِهِ مِنِّي، فَأُحِلَّ فِي ذَلِكَ أَنْ يَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ، وَأُحِلَّ طَعَامُ أَهْلِ الْكِتَابِ".

عکرمه دعبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روایت کوی چه فرمائیل ئې چه دا ایت کریمه: «لا تأکلوا أموالکم بینکم بالباطل إلا أن تکون تجارة عن تراض منکم» چه کله نازل شو نو په دې وخت کښې هریوکس به دبل کس سره خوړل ګناه ګڼړله نوبیاد سورة نور ایت: «لیس علیکم جناح أن تأکلوا من بیوتکم..... أشتاتا» نازل شو اوړومبنې حکم منسوخ شو یعنی په تاسوباندې ګناه نشته که چرې تاسو پخپلوکورونوکښې خوراك کوئ یادپلار په کورکښې خوراك کوئ یادخپلو خامنو او رونړو په کورکښې خوراك کوئ یادخویندو په کورونوکښې یادترورریانو اوترونو اوماماګانو په کورونوکښې یا په هغه کورونوکښې دکومو تالې اوچابیانې چه ستاسو سره دي یاددوستانوپه کورونوکښې، دمخکښې زمانې دخلقو داحالت وو چه مالداره کس به خلقو ته دخوراك دعوت ورکولو نوخلقوبه وئیل مونږ ته ددنه خوراك کول ګناه ښکاري بلکه مسکین زمونږ نه زیات مستحق دې چه داخوراك وکړې ددې ایت دنازلیدونه پس داحکم صحیح وګڼړلې شو یعنی یومسلمان دبل مسلمان نه خوراك کول جائزکړې شول کله چه په هغې دالله نوم اخستلې شوې وي اوداهل کتابوخوراك هم درست وګرخولې شو.

قوله: ﴿ كَانَ الرَّجُلُ الْغَنِيُّ يَدْعُو الرَّجُلَ مِنْ أَهْلِهِ إِلَى الطَّعَامِ قَالَ إِنِّي لأَجَّنَحُ [٢] أَنْ آكُلَ مِنْهُ ﴾
یعنی د سورة النساء د آیت د نزول نه پس د اکل مال غیر په باره کښې دومره احتیاط کول شروع شو چه یو سړی به چرته خپل خپلوانو ته د خوراک دعوت ورکړو نو هغه به د دې نه هم انکار کولو او دا به ئې وئیل چه زه خو دا ګناه او حرج ګڼرم، په چا مسکین او فقیر باندې ئې اوخروه نو بیا د هغوی د دې خیال د لرې کولو دپاره د سورة النور آیت کریمه نازل شو، ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَأْكُلُوا جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا...الخ﴾.

**قوله:** ﴿ فَأُحِلَّ فِي ذَلِكَ أَنْ يَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ ﴾ یعنی د اکل مال غیر اجازت ورکړې شو د مالک د اجازت نه پس په دې شرط چه هغه مال غیر داسې وی چه په هغې باندې د الله پاک نوم اخستلې شوې وی یعنی حلال وی، او هم دغه شان د اهل کتاب طعام هم ناجائز کړې شو.

[١]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٦٤) (حسن الإسناد)
[٢] اجنح د باب افعل نه د واحد متکلم صیغه ده چه د هغې اصل اتجنح دې مشتق من الجناح)

## بَابٌ فِي طَعَامِ الْمُتَبَارِيَيْنِ

### د فخر (ښودنط) دپاره په ضد با ندې خلقوته د خوراک ورکولو بیان

[٣٧٥٤](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ خِرِّيتٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ، يَقُولُ: كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ طَعَامِ الْمُتَبَارِيَيْنِ أَنْ يُؤْكَلَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَكْثَرُ مَنْ رَوَاهُ عَنْ جَرِيرٍ لَا يَذْكُرُ فِيهِ ابْنَ عَبَّاسٍ، وَهَارُونُ النَّحْوِيُّ ذَكَرَ فِيهِ ابْنَ عَبَّاسٍ أَيْضًا، وَحَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ لَمْ يَذْكُرِ ابْنَ عَبَّاسٍ.

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي كريم ﷺ ددوه فخركونكو دډوډې خوړلونه منع فرمائيلې ده. امام ابوداد فرمائي چه اكثرو راويانوددې روايت په سند كښې دحريرنه ابن عباس نه دی ذكركړي البته هارون نحوي ابن عباس ذكركړي دي او همدارنګې حماد بن زيد هم دحريريه سند كښې ابن عباس نه دی ذكركړي.

په حديث الباب كښې دی چه رسول الله ﷺ د متبارييين يعنی د متفاخرين د خوراک نه منع فرمائيلې ده چه هغه دې اوخوړلې شي، يعنی كوم دعوت چه د فخر او رياء په طور اوكړې شي د هغې خوړل جائز نه دی، هم د دې هم معنی حديث په كتاب الاضحيه كښې تير شوې دې، ﴿ نهی رسول الله ﷺ عن معاقرة الاعراب ﴾

## بَابُ الرَّجُلِ يُدْعَى فَيَرَى مَكْرُوهًا

### كله چه څوک يو دعوت ته حاضر شي او هلته د شريعت خلاف عمل ووينی

[٣٧٥٥](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُمْهَانَ، عَنْ سَفِينَةَ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ: "أَنَّ رَجُلًا أَضَافَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ فَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا، فَقَالَتْ فَاطِمَةُ: لَوْ دَعَوْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكَلَ مَعَنَا، فَدَعَوْهُ، فَجَاءَ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى عِضَادَتَيِ الْبَابِ فَرَأَى الْقِرَامَ قَدْ ضُرِبَ بِهِ فِي نَاحِيَةِ الْبَيْتِ، فَرَجَعَ، فَقَالَتْ فَاطِمَةُ لِعَلِيٍّ: الْحَقْهُ فَانْظُرْ مَا رَجَعَهُ، فَتَبِعْتُهُ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا رَدَّكَ؟، فَقَالَ: إِنَّهُ لَيْسَ لِي أَوْ لِنَبِيٍّ أَنْ يَدْخُلَ بَيْتًا مُزَوَّقًا".

د ابوعبدالرحمن سفينه رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يوكس علي رضي الله عنه ميلمه كړواودده دپاره ئې دخوراك انتظام وكړو. فاطمه رضي الله عنها اووئيل كاش چه مونږنبي ﷺ راغوښتلې وې نوهغه به هم زمونږ سره خوراك كړې وو. نوننبي ﷺ ئې را اوغوښتو، نبي ﷺ تشريف راوړو اوخپل لاسونه ئې ددروازې په چوكاټ باندې كيښودل په دې وخت كښې نبي ﷺ دكورپه يوګوټ كښې يوه پرده وليدله چه لګيدلې وه اوتصويران ورباندې جوړ شوي وو، نبي ﷺ چه كله دا وليدل نو واپس روان شو، علي رضي الله عنه فرمائي چه زه ورپسې روان شوم اوتپوس مې ورنه وكړو چه ته ولې واپس روان شوې؟نبي ﷺ اوفرمائيل ديو نبي دپاره داسې كورته تلل جائز نه دې چرته چه نقش ونګارشوي وي.

قوله: ﴿ أَنَّ رَجُلاً أَضَافَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ فَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا فَقَالَتْ فَاطِمَةُ لَوْ دَعَوْنَا رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَأَكَلَ مَعَنَا الخ ﴾

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٠٩١) (صحيح)

(٢): سنن ابن ماجه/الأطعمة ٥٦ (٣٣٦٠)، (تحفة الأشراف: ٤٤٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٢٠، ٢٢١، ٢٢٢) (حسن)

یعنی یو سړي د علی ﷺ میلمه شو. هغوی د هغه دپاره خوراک تیار کړو، چه کله د خوراک وخت راغلو نو فاطمي ﷺ اووئیل چه که په دي خوراک باندي بابا جان یعنی رسول الله ﷺ هم راطلب کړي شي نو ښه به وي، پس رسول الله ﷺ ته هم دعوت ورکړي شو، چه کله رسول الله ﷺ دروازي ته راورسیدلو نو خپل دواړه لاسونه ئي په دروازه باندي کیخودل او اودریدلو، ځکه چه رسول الله ﷺ اولیدل چه یوه نرئ پرده د کور په یو طرف کښي زوړنده وه (په ظاهر کښي د ډول او ښکلا دپاره) نو رسول الله ﷺ واپس شو کور ته داخل نه شو، فاطمي ﷺ علی ﷺ ته اووئیل چه لړ لاړ شئ او اوګورئ چه هغوی ولي واپس شو، سیدنا علی ﷺ فرمائی چه زه په رسول الله ﷺ پسي لاړم او د دي وجه مي اوتپوسله نو هغوی اوفرمائیل ﴿ لیس لنبی ان یدخل بیتا مزوقا ﴾ د یو نبی دپاره مناسب نه دی چه داسي کور ته داخل شی چه هغه ډولی کړي شوي وی.

دا حدیث د لږ ډیر اختلاف سیاق او سباق سره په کتاب اللباس ﴿ باب فی اتخاذ الستور ﴾ کښي هم راروان دي. چه په هغي کښي دا دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ﴿ وما انا والدنیا وما انا والرقم ﴾ او په یو بل طریق کښي دی ﴿ قال وکان سترا موشیا ﴾ د دي حدیث نه ترجمة الباب ثابتیږی چه که مدعو د داعی کور ته رسیدو سره څه ناجائز او منکر څیز اولیدو نو د هغه د خبرداری دپاره دي تري نه واپس شی د حضرت ګنګوهی ﷫ په تقریر کښي دی چه ممکنه ده چه په دي قرام کښي تصویرونه وو، او یا دا چه دا بي ځایه زوړند کړي شوي وو په دیوال وغیره باندي چه په هغي باندي نکیر راغلي دي ﴿ان الله لم یامرنا ان نكسوا الحجارة الحدیث ﴾ والحدیث اخرجه ابن ماجة، قاله المنذری.

## بَابُ إِذَا اجْتَمَعَ دَاعِيَانِ أَيُّهُمَا أَحَقُّ

**کله چه په یو وخت کښي دوه دعوت کونکي چاته دعوت ورکړي نو کوم یو ته تلل پکار دی؟**

یعنی که په یو وخت کښي د دوه سړو د طرف نه دعوت راشی نو د چا به منظور کولي شی؟ په حدیث الباب کښي دی

[۳۷۵۶] ([1]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ عَبْدِ السَّلَامِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ أَبِي خَالِدٍ الدَّالَانِيِّ، عَنْ أَبِي الْعَلَاءِ الْأَوْدِيِّ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحِمْيَرِيِّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا اجْتَمَعَ الدَّاعِيَانِ، فَأَجِبْ أَقْرَبَهُمَا بَابًا، فَإِنَّ أَقْرَبَهُمَا بَابًا أَقْرَبُهُمَا جِوَارًا، وَإِنْ سَبَقَ أَحَدُهُمَا فَأَجِبِ الَّذِي سَبَقَ".

حمید بن عبد الرحمن په صحابه کرامو کښي دیو کس نه روایت کوی فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي: کله چه په یو وخت کښي دوه دعوت کونکي جمع شي نو د کوم چه دروازه نزدي وي هغه زیات حق داردي اویقیناد چاچه دروازه نزدي وي هغه په ګاوند کښي هم مخکښي وي اوکه چرې یودبل نه مخکښي شي نو دمخکني دعوت قبلول زیات مناسب دي.

﴿ فَأَجِبْ أَقْرَبَهُمَا بَابًا فَإِنَّ أَقْرَبَهُمَا بَابًا أَقْرَبُهُمَا جِوَارًا وَإِنْ سَبَقَ أَحَدُهُمَا فَأَجِبِ الَّذِی سَبَقَ ﴾

[1]: تفرد به أبوداو، (تحفة الأشراف: ١٥٥٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٨/٥) (ضعيف)

یعنی د کوم سړي دروازه چه تاته نزدې وي هغه زیات مستحق دې د اجابت دعوت د قرب او ګاونډ د وجې نه، او که د دوه کسانو د طرف نه دعوت متعاقبا یعنی وړاندې روستو راشي نو د کوم د طرف نه چه پیغام مخکښې راشي هغه زیات مستحق دې.

## باب إِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ وَالْعَشَاءُ

### بابه کله چه د ماښام مونځ او ډوډئ په یو وخت تیاره شي نو څه به کوي؟

[٣٧٥٧](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ الْمَعْنَى، قَالَ أَحْمَدُ، حَدَّثَنِي يَحْيَى الْقَطَّانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا وُضِعَ عَشَاءُ أَحَدِكُمْ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا يَقُومُ حَتَّى يَفْرُغَ". زَادَ مُسَدَّدٌ: وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ إِذَا وُضِعَ عَشَاؤُهُ أَوْ حَضَرَ عَشَاؤُهُ لَمْ يَقُمْ حَتَّى يَفْرُغَ، وَإِنْ سَمِعَ الْإِقَامَةَ، وَإِنْ سَمِعَ قِرَاءَةَ الْإِمَامِ.

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی کله چه په تاسوکښې دیوکس دماښام ډوډئ تیاره شي اودمونځ دپاره تکبیر هم وشي نوترهغې دمې نه پاڅي ترڅوچه فارغ شوي نه وي. امام ابوداؤد فرمائی چه دمسدد په روایت کښې دا اضافه ده چه کله به ابن عمرفاته د ماښام ډوډئ کیخودې شوه نوچه ترڅوبه دمونځ نه فارغ شوي نه وو مونځ ته به نه پاڅیدو، اګر که هغه به دقران تلاوت یادامام دقرات اواز هم اوریدو.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِذَا وُضِعَ عَشَاءُ أَحَدِكُمْ وَأُقِيمَتِ الصَّلاَةُ فَلاَ يَقُومُ حَتَّى يَفْرُغَ » ﴾ د دې حدیث شرح په کتاب الطهارة ﴿ باب ایصلی الرجل وهو حاقن ﴾ کښې تیره شوې ده، هغې ته دې رجوع اوکړې شی.

والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى، وليس فى حديث مسلم فعل ابن عمر رضي الله عنهما، قاله المنذرى.

[٣٧٥٨](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا مُعَلَّى يَعْنِي ابْنَ مَنْصُورٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُؤَخِّرِ الصَّلَاةَ لِطَعَامٍ وَلَا لِغَيْرِهِ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی دطعام اودبل شي په وجه باندې مونځ مه روسته کوئ.

﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ تُؤَخِّرِ الصَّلاَةَ لِطَعَامٍ وَلاَ لِغَيْرِهِ »﴾ د دې حدیث په باره کښې هم کلام مخکښې تیر شوې دې.

[٣٧٥٩](٣) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ الطُّوسِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ عُثْمَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، قَالَ: "كُنْتُ مَعَ أَبِي فِي زَمَانِ ابْنِ الزُّبَيْرِ إِلَى جَنْبِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، فَقَالَ عَبَّادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ:

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٢١٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ٤٢ (٦٧٣)، الأطعمة (٥٤٦٣)، صحيح مسلم/المساجد ١٦ (٥٥٩)، سنن الترمذي/الصلاة ١٤٥ (٣٥٤)، سنن ابن ماجه/الإقامة ٣٤ (٩٣٤)، مسند احمد (٢/٢٠، ١٠٣) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٧٥٨) (ضعيف)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٢٨١) (حسن الإسناد)

إِنَّا سَمِعْنَا أَنَّهُ يُبْدَأُ بِالْعَشَاءِ قَبْلَ الصَّلَاةِ، فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ: وَيْحَكَ، مَا كَانَ عَشَاؤُهُمْ أَتُرَاهُ كَانَ مِثْلَ عَشَاءِ أَبِيكَ".

دعبدالله بن عبيد بن عميره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زه دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما په دور كښې دهغه سره وم عباد بن عبدالله اووئيل چه مونږه دا آوريدلي دي چه دنبي ﷺ په زمانه كښې به دمابنام دوخت خوراك په مونځ باندې مخكښې كولې شو ،عبدالله بن عمره اووئيل په تاسو باندې افسوس دې تاسوددوى خوراك دخپل پلاردخوراك په شان ګنړئ.

**د تقديم طعام على الصلوة سره متعلق يو ښكلې واقعه :**

**قوله:** ﴿ كُنْتُ مَعَ أَبِي فِي زَمَانِ ابْنِ الزُّبَيْرِ إِلَى جَنْبِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ فَقَالَ عَبَّادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ إِنَّا سَمِعْنَا أَنَّهُ يُبْدَأُ بِالْعَشَاءِ قَبْلَ الصَّلَاةِ. فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ وَيْحَكَ مَا كَانَ عَشَاؤُهُمْ أَتُرَاهُ كَانَ مِثْلَ عَشَاءِ أَبِيكَ ﴾ يو سړې د عبدالله بن زبير رضي الله عنهما د دور خلافت خبره نقل كوى چه زه يو ورځ د عبدالله بن زبير رضي الله عنهما په خوا كښې ناست وو(په يو مجلس كښې ذكر اوشو چه خوراک مخكښې كول پكار دى او كه مونځ دواړه څيزونه نزدې وو، خوراک هم حاضر وو او د مانځه وخت هم وو) نو عباد بن عبدالله بن زبير اووې چه مونږ دا اوريدلې دى چه په داسې صورت كښې خوراک په مانځه باندې مقدم كول پكار دى نو په دې باندې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل هلاک شې د هغه حضراتو خوراک (كوم چه د تقديم خوراک قائل دى) ستا د پلار د خوراک په شان خو نه وو يعنى مخكښې خلقو خو به د خوراک په څو نوالو باندې اكتفاء كوله، د داسې خلقو دپاره رسول الله ﷺ دا قاعده جوړه كړه چه هغه دې خوراک په مانځه باندې مقدم كوى او كوم خلق چه د پوزې پورې خيټه ډكوى د هغوى دپاره خو دا قاعده نه ده (ځكه چه د زيات خوراک كولو په وجه باندې به زيات وخت لګى چه په هغې سره به مونځ كښې تاخير راشى) او خپله د ابن عمر رضي الله عنهما دا عادت مبارک تير شوې دې چه هغوى به په داسې صورت كښې خوراک لره په مانځهٔ باندې مقدم كولو ﴿ وان سمع الا قامة وان سمع قراءة الامام ﴾ د دې وجه هم دا ده چه هغوى به په څو نمړو باندې اكتفاء كوله. والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، وقال الترمذي: حديث حسن، قاله المنذري

## بَابٌ فِي غَسْلِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ الطَّعَامِ

### د خوراک په وخت كښې د لاسو نو وينځلو بيان

د دې نه پس دويم باب راروان دى ﴿ باب غسل اليدين قبل الطعام ﴾ په دې كښې په ظاهره تكرار دې اوس يا خو دې دا اوئيلې شى چه دلته نسخې مختلف دى پس په بعض نسخو كښې باب ثانى نشته لهذا هم دې نسخې ته به ترجيح وركولې شى، او يا دې بيا دا اوئيلې شى چه په رومبى باب سره غرض نفى د غسل ده او په دويم سره غرض اثبات الغسل دې لكه چه د دواړو بابونو د احاديثو نه معلوميږى. او حاصل د ترجمتينو به دا وى چه د خوراک نه مخكښې لاس وينځل ضرورى نه دى لكه چه په اول باب كښې دى او كه وينځلې شى نو غوره دى كما فى الباب الثانى، هسې د غسل اليدين بعد الطعام استحباب خو متفق عليه دې. خو په غسل اليد قبل الطعام كښې اختلاف دې. جمهور خو دې ته هم مستحب وائى او

بعض علماء لکه سفیان الثوری دې ته مکروه وائی، پس په بعض نسخو کښې دی: ﴿ وکان سفیان یکره الوضوء قبل الطعام ﴾

[٣٧٦٠]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ، فَقُدِّمَ إِلَيْهِ طَعَامٌ، فَقَالُوا: أَلَا نَأْتِيكَ بِوَضُوءٍ؟، فَقَالَ: إِنَّمَا أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلَاةِ".

دعبدالله بن عباس ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ دبیت الخلاء نه راووتو اوخوراک ورته پیش کړې شو خلقو عرض وکړو د اودس د پاره درته اوبه راوړو؟ نبی ﷺ اوفرمائیل ماته صرف دمونځ دپاره داودس کولو حکم شوې دې.

قوله: ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- خَرَجَ مِنَ الْخَلاَءِ فَقُدِّمَ إِلَيْهِ طَعَامٌ فَقَالُوا أَلاَ نَأْتِيكَ بِوَضُوءٍ فَقَالَ « أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلاَةِ » ﴾

## شرح الحدیث:

یعنی یو کرت رسول الله ﷺ د استنجاء کولو نه بهر تشریف راوړلو او چونکه د خوراک وخت وو په دې وجه خوراک راوړلې شو، بعض صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چه آیا د اودس دپاره اوبه راوړلې شی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د اودس حکم خو د اقامت الصلوة په وخت دې.

د حضرت ګنګوهی ﷺ په تقریر کښې دی چه بیا هم احتمال دې چه دلته د اودس نه مراد شرعی اودس مراد وی ځکه چه صحابه کرامو ﷺ ته معلومه وه چه د رسول الله ﷺ عادت مبارک د مداومت علی الطهارة دې، خو هغوی هغه وخت د شرعی اودس نه انکار اوفرمائیلو چه د دې هر وخت کیدل ضروری نه دی. پس په دې صورت کښې نفی د شرعی اودس اوشوه، د لغوی اودس نه یعنی غسل یدین..... د دې کار هغې سره هیڅ عرض نشته، نه نفیا او نه اثباتا، او دا احتمال هم شته چه د ویونکې مراد د اودس نه لغوی اودس مراد وی یعنی غسل یدین، بیا که څوک داسې اوائی چه دا څنګه کیدې شی چه د اودس نه مراد به اودس لغوی وی، ځکه چه رسول الله ﷺ خو اوفرمائیل چه ﴿إِنَّمَا أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلاَةِ ﴾ د قیام الی الصلوة دپاره خو هم هغه شرعی اودس پکار دې نه لغوی اودس. پس د دې جواب به دا وی چه د صحابه کرامو ﷺ مراد خو د اودس نه لغوی اودس وو خو رسول الله ﷺ اودس لره په شرعی اودس باندې محمول کولو سره مسئله بیان اوفرمائیله چه د شرعی اودس ضرورت خو د مانځه دپاره وی او د صحابه کرامو ﷺ چه کوم مراد وو په اودس سره یعنی د غسل ید د یادولو د هغې جواب رسول الله ﷺ په خپل عمل سره یعنی ترک غسل الیدین سره ظاهر اوفرمائیلو. (بذل) والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، وقال الترمذی: حدیث حسن، وحدیث سلمان اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

(): سنن الترمذي/الأطعمة ٤٠ (١٨٤٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٠١ (١٣٢)، (تحفة الأشراف: ٥٧٩٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحيض ٣١ (٣٧٤)، مسند احمد (٢٨٢/١، ٣٥٩) (صحيح)

## بَابٌ فِي غَسْلِ الْيَدِ قَبْلَ الطَّعَامِ

### د خوراک کولو نه مخکښې د لاسونو وينځلو بيان

[٣٧٦١](١)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا قَيْسٌ، عَنْ أَبِي هَاشِمٍ، عَنْ زَاذَانَ، عَنْ سَلْمَانَ، قَالَ: قَرَأْتُ فِي التَّوْرَاةِ: أَنَّ بَرَكَةَ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ قَبْلَهُ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: بَرَكَةُ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ قَبْلَهُ وَالْوُضُوءُ بَعْدَهُ"، وَكَانَ سُفْيَانُ يَكْرَهُ الْوُضُوءَ قَبْلَ الطَّعَامِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ ضَعِيفٌ.

دسلمان نه روايت دې فرمائي چه ما په تورات کښې لوستلي وو چه په خوراك کښې برکت دخوراك و نه مخکښې په اودس کولوسره حاصليږي مادديې ذکر: نبی ﷺ ته وکړو نبی ﷺ اوفرمائيل: په خوراك کښې برکت په دې سره راځي چه مخکښې او روسته دې ورنه اودس اوکړې شي، صفيان به دخوراك نه مخکښې اودس کول نه خوښول، امام ابوداؤد فرمائي دا روايت ضعيف دې.

## بَابٌ فِي طَعَامِ الْفُجَاءَةِ

### د ناڅاپه وخت کښې د لاسونو وينځلو نه بغير د خوراک کولو بيان

[٣٧٦٢](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا عَمِّي يَعْنِي سَعِيدَ بْنَ الْحَكَمِ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، أَخْبَرَنِي خَالِدُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ قَالَ: "أَقْبَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ شِعْبٍ مِنَ الْجَبَلِ وَقَدْ قَضَى حَاجَتَهُ، وَبَيْنَ أَيْدِينَا تَمْرٌ عَلَى تُرْسٍ أَوْ حَجَفَةٍ، فَدَعَوْنَاهُ، فَأَكَلَ مَعَنَا وَمَا مَسَّ مَاءً".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه ني ن ﷺ د قضاء حاجت نه فارغ شو اود يوې غونډۍ نه را واوړيدو او تشريف ئې راوړو او زمونږ مخې ته په دې وخت کښې په يودال باندې کجورې پرتې وې ياپيالې پرتې وې مونږ نبی ﷺ ته دعوت ورکړو او زمونږ سره ئې کجورې وخوړلې او لاسونه ئې اونه وينځل.

د فجاءة په بذل کښې دوه تفسيرونه دی اول دا چه ناڅاپه چاته دعوت ورکول او چالره په خوراک باندې راغوښتل بغير د څه تيارئ او اهتمام نه، او دويم تفسير دا چه عين د خوراک په وخت څوک مدعو کول، يعنی د اول نه هغه ته د خوراک خبر نه ورکول، کوم چه بعض خلق د خپل شان خلاف ګڼړي، او په داسې صورت کښې هغه نه منظوروی، حال دا چه په حديث شريف کښې دی: جابر رضی الله عنه فرمائي چه يو کرت رسول الله ﷺ د يو غر د طرف نه تشريف راوړلو د قضاء حاجت نه پس، چه کله هغوی زمونږ مخې ته تير شو نو زمونږ مخې ته کهجورې پرتې وې په يو ډهال باندې (کوم چه د پليټ په شان وی) مونږ هغوی ته د کهجورو د خوراک دپاره دعوت ورکړو. رسول الله ﷺ مونږ سره کيناستلو او وې خوړلې سبحان الله! د رسول الله ﷺ د تواضع څه شان دې... صلوات الله وسلامه عليه.

دلته د فجاءة دواړه معنی چه کومې ذکر کړې شوې بيا موندې شی د دې واقعې نه د تواضع او سادګئ اختيارولو سبق ملاويږی.

---

(١): سنن الترمذي/الأطعمة ٣٩ (١٨٤٦)، (تحفة الأشراف: ٤٤٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤١/٥) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٧٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٧/٣) (ضعيف الإسناد)

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ ذَمِّ الطَّعَامِ

### په خوراک کښې د عيب راوښکلو د مذمت بيان

[٣٧٦٣](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "مَا عَابَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا قَطُّ إِنِ اشْتَهَاهُ أَكَلَهُ وَإِنْ كَرِهَهُ تَرَكَهُ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ هيڅ کله دخوراک يوڅيز ته بدنه دي وئيل که زړه به ئې غوښتل نو اوبه ئې خوړلو اوکه زړه به ئې نه غوښتل نونه به ئې خوړل.

د دې باب او د دې حديث مضمون او حواله مونږ سره په ﴿ باب ما يقول اذا شرب اللبن ﴾ کښې تيره شوې ده نو اعادې ته ئې حاجت نشته. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي وابن ماجه، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الِاجْتِمَاعِ عَلَى الطَّعَامِ

### په جمع د خوراک کولو د فضيلت بيان

[٣٧٦٤](٢)حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي وَحْشِيُّ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا نَأْكُلُ وَلَا نَشْبَعُ، قَالَ: فَلَعَلَّكُمْ تَفْتَرِقُونَ؟، قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ: فَاجْتَمِعُوا عَلَى طَعَامِكُمْ، وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ يُبَارَكْ لَكُمْ فِيهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِذَا كُنْتَ فِي وَلِيمَةٍ فَوُضِعَ الْعَشَاءُ فَلَا تَأْكُلْ حَتَّى يَأْذَنَ لَكَ صَاحِبُ الدَّارِ.

وحشي بن حرب دخپل پلار نه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوي فرمائي چه دنبي ﷺ صحابه کرامو عرض وکړو اې دالله رسوله مونږ خوراک کور ليکن مړيږونه، نبي ﷺ اوفرمائيل زماګمان دې چه تاسو ځانله ځانله خوراک کرئ هغوی اووئيل هو، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل تاسو يوځائې خوراک شروع کړئ اود الله نوم اخلئ په دی کښې به برکت راځی، امام ابوداؤد فرمائی کله چه په تاسوکښې يوکس ته دوليمې دعوت ورکړې شي او ډوډئ ورته کيخودې شي نوترڅوپورې چه مضبان اجازت نه وي کړې خوراک شروع کول نه دي پکار.

قوله: ﴿ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا نَأْكُلُ وَلاَ نَشْبَعُ. قَالَ « فَلَعَلَّكُمْ تَفْتَرِقُونَ ». قَالُوا نَعَمْ. قَالَ « فَاجْتَمِعُوا عَلَى طَعَامِكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ يُبَارَكْ لَكُمْ فِيهِ » ﴾

بعض صحابه کرامو رضي الله عنهم رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ! مونږ خوراک کوو خو مړيږو نه، رسول الله ﷺ اوفرمائيل کيدې شی چه تاسو ځانله ځانله خوراک کوئ؟ هغوی عرض اوکړو جی بالکل هم دغه شان ده، رسول الله ﷺ اوفرمائيل يو ځائې کيناستلو سره بسم الله وئيلو سره خوراک کوئی بيا به پکښې برکت وی.

والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذري

١): صحيح البخاري/المناقب ٢٣ (٣٥٦٣)، صحيح مسلم/الأشربة ٣٥ (٢٠٦٤)، سنن الترمذي/البر والصلة ٨٤ (٢٠٣١)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٤ (٣٢٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٤٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٧٤، ٤٧٩، ٤٨١) (صحيح)

٢): سنن ابن ماجه/الأطعمة ١٧ (٣٢٨٦)، (تحفة الأشراف: ١١٧٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٥٠١) (حسن)

# بَابُ التَّسْمِيَةِ عَلَى الطَّعَامِ

## د خوراک شروع کولو نه مخکښې د بسم الله وئیلو بیان

د خوراک په شروع کښې بسم الله وئیل د جمهورو په نزد سنت ده،

[۳۷۶۵] (۱) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا دَخَلَ الرَّجُلُ بَيْتَهُ فَذَكَرَ اللَّهَ عِنْدَ دُخُولِهِ وَعِنْدَ طَعَامِهِ قَالَ الشَّيْطَانُ: لَا مَبِيتَ لَكُمْ وَلَا عَشَاءَ، وَإِذَا دَخَلَ فَلَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ عِنْدَ دُخُولِهِ قَالَ الشَّيْطَانُ: أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ، فَإِذَا لَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ عِنْدَ طَعَامِهِ، قَالَ: أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ وَالْعَشَاءَ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه دنبي ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې کله چه یو کس خپل کورته داخل شي اوددا خلیدو په وخت کښې اودخوراك په وخت کښې الله تعالی یادکړي نوشیطان ووائي دلته نه دخوراك دپاره څه پاتې شو اونه دشپې تیریدودپاره ځائې پاتې شو، او کله چه یوکس خپل کورته داخل شي اوددا خلیدو په وخت کښې الله تعالی یادنکړي نوشیطان ووائي اوس دلته داوسیدوګنجائش پیداشو بیاکچرې دخوراك په وخت کښې هم بسم الله ونه واي نو په دې وخت کښې شیطان ووائي اوس دخوراك اوداوسیدو دواړو دپاره انتظام اوشو.

### مضمون حدیث:

د حدیث الباب مضمون دادې چه کله یو سړې خپل کور ته په الله پاک د ذکر سره داخل شی (په ظاهر کښې د دخول بیت دعا مراد ده کومه چه په حدیث کښې راغلې ده) او د خوراک په وخت بسم الله لولی نو شیطان خپلو کشرانو ته وائی ﴿ لا مبیت لکم ولا عشاء ﴾ چه اوس به نه تاسو په دې کور کښې شپه تیره کړئ او نه به په خوراک کښې ستاسو حصه وی او که بغیر د دعا نه کور ته داخل شی نو شیطان خپلو ملګرو ته وائي چه تاسو ته دلته د شپې تیرولو موقع خو ملاؤ شوه او د دې نه پس که هغه سړې په خوراک باندې هم بسم الله اونه لولی نو هغه ورته وائی چه اوس به تاسو ته مبیت او عشاء دواړه ملاویږی. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

وړاندې د حذیفه رضی الله عنه حدیث راروان دې چه د هغې مضمون دا دې چه کله مونږ رسول الله ﷺ سره په خوراک کښې شرکت کولو نو په مونږ کښې به چا مونږ هم د خوراک دپاره لاس نه ور اوږدلو تر څو چه به رسول الله ﷺ شروع نه فرمائیله (دا یو مستقل ادب شو) وړاندې یو بله واقعه بیانوی چه یو کرت مونږ د رسول الله ﷺ سره خوراک کولو چه ناڅاپه یو باندچی راغلو په تیزئ سره لکه چه هغه له څوک دیکې ورکوی او هغه د راتلو سره خوراک ته لاس راوړد کړو (یعنی بغیر د بسم الله نه) رسول الله ﷺ د هغه لاس اونیولو، لږ ساعت پس هم په دغه تیزئ سره یوه وینځه دسترخوان ته راغله او راتلو سره هغې هم د خوراک اراده اوکړه.

[1]: صحيح مسلم/الأشربة ١٣ (٢٠١٨)، سنن لبن ماجه/الدعاء ١٩ (٣٨٨٧)، (تحفة الأشراف: ٢٧٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٤٦، ٣٨٣) (صحيح)

رسول الله ﷺ د هغې هم لاس اونيولو او وې فرمائيل چه بيشکه شيطان د خپل خان دپاره هغه خوراک حلالوی يعنی په هغې کښې خپله حصه پيدا کول غواړی په کوم باندې چه د الله پاک نوم نه وی اخستلې شوې. او په تحقيق سره شيطان دا اعرابی راوستلې وو په خوراک کښې د خپلې حصې د پيدا کولو دپاره هم په دې وجه ما د هغه لاس اونيولو. او هم دغه شان د دې وينځې هم، قسم دې په هغه ذات چه د چا په لاس کښې زما ساه ده چه يقينا د شيطان لاس هغه وخت زما په لاس کښې وو د دې دواړو د لاسونو سره،

[۳۷٦٦]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ خَيْثَمَةَ، عَنْ أَبِي حُذَيْفَةَ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: "كُنَّا إِذَا حَضَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا لَمْ يَضَعْ أَحَدُنَا يَدَهُ حَتَّى يَبْدَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَإِنَّا حَضَرْنَا مَعَهُ طَعَامًا، فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ كَأَنَّمَا يُدْفَعُ فَذَهَبَ لِيَضَعَ يَدَهُ فِي الطَّعَامِ، فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ، ثُمَّ جَاءَتْ جَارِيَةٌ كَأَنَّمَا تُدْفَعُ فَذَهَبَتْ لِتَضَعَ يَدَهَا فِي الطَّعَامِ، فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهَا، وَقَالَ: إِنَّ الشَّيْطَانَ لَيَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ الَّذِي لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ، وَإِنَّهُ جَاءَ بِهَذَا الْأَعْرَابِيِّ يَسْتَحِلُّ بِهِ فَأَخَذْتُ بِيَدِهِ، وَجَاءَ بِهَذِهِ الْجَارِيَةِ يَسْتَحِلُّ بِهَا فَأَخَذْتُ بِيَدِهَا، فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، إِنَّ يَدَهُ لَفِي يَدِي مَعَ أَيْدِيهِمَا".

د حذيفة رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه کله به مونږ دنبی ﷺ سره خوراک ته کيناستونو په مونږ کښې به هيڅ مخکښې خوراک نه شروع کولو ترڅوچه به نبی کريم ﷺ شروع نه وه کړې، يوځل مونږ دنبی ﷺ سره خوراک ته کيناستو نوبانډچی په منډه راغې اوهغه داسې په منډه را روان وولکه چه څوک ئې دوروسته نه ديکه کوې او په خوراک کښې ئې دشامليد و اراده اوکړه،نبی ﷺ دهغه لاس اونيولو بيا ددينه پس يوه ماشومه په منډه راغله اوهغه داسې په منډه را روانه وه لکه چه څوک ئې دوروسته نه ديکه کوې او په خوراک کښې ئې د شامليد و اراده اوکړه،ليکن نبی ﷺ دهغې لاس اونيولواو اولې فرمائيل: شيطان په دې طريقې سره خوراک دخان دپاره حلالوې په کوم باندې چه دالله تعالى نوم وانه خستل شي،شيطان اول بانډچی راوستودې دپاره چه دخان دپاره خوراک حلال کړې نو په دې وجه مادهغه لاس اونيولو، بيا ئې داماشومه راوستله چه ددې په ذريعه دخان دپاره خوراک حلال کړي نوما ددې لاس هم ونيولو، په هغه ذات مې دې قسم وي دچاپه لاس کښې چه زما روح دردشيطان لاس ددوی دواړودلاسونوسره زما په لاس کښې دې.

د دې حديث نه چه د تسمية على الطعام کوم اهميت او فائده معلوميږی هغه ښکاره ده، او دا خبره هم ترې نه مستفاد کيږی چه په يو فراخه دسترخوان باندې چه په هغې باندې څو کسان خوراک کوی په هغې کښې صرف ديو يا دوه کسو بسم الله لوستل کافی نه دی بلکه په دستر خوان کښې شريک هر يو لره بسم الله لوستل پکار دی که په دستر خوان کښې د شريک يو کس نه هم بسم الله پاتې شوه نو شيطان ته به د شرکت موقع ملاؤ شي، څکه چه ښکاره ده چه رسول الله ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم کوم چه د هغوی سره وو او د مخکښې نه ئې خوراک کولو هغوی تولو بسم الله لوستلې وه.

(): صحيح مسلم/الأشربة ١٣ (٢٠١٧)، (تحفة الأشراف: ٣٣٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٨٣، ٣٨٣، ٣٨٨، ٣٩٧) (صحيح)

ددې حديث نه دا هم معلومه شوه چه شيطان او جنات خوراک کوی، لکه چه په دې باندې کلام په ابواب الاستنجاء کښې ﴿ لكم كل عظم لم يذكر اسم الله عليه ﴾ کښې تير شوې دی.

د دې نه پس د عائشې رضي الله عنها حديث راروان دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړې د خوراک په شروع کښې بسم الله هيره کړي، او بيا ورته په مينځ کښې راياد شی نو هغه له پکار دی چه داسې اوائی : ﴿ بِسْمِ اللَّهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ ﴾.

والحديث اخرجه مسلم والنسائي، قاله المنذري.

[۳۷۶۷]([1]) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ هِشَامٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ الدَّسْتُوَائِيَّ، عَنْ بُدَيْلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ امْرَأَةٍ مِنْهُمْ يُقَالُ لَهَا: أُمُّ كُلْثُومٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ تَعَالَى، فَإِنْ نَسِيَ أَنْ يَذْكُرَ اسْمَ اللَّهِ تَعَالَى فِي أَوَّلِهِ، فَلْيَقُلْ: بِسْمِ اللَّهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلي دي: کله چه يو کس په تاسو کښې خوراک شروع کړی نوهغه له پکاردي چه اول دالله تعالی نوم واخلي که چرې په دې وخت کښې دهغه نه دالله نوم اخستل هيرشي نوبيادي داسې ووائی بسم الله أوله وآخره يعنی دالله په نوم سره خوراک کوم په اول کښې او په اخر کښې.

**مضمون الحديث :**

د دې نه پس د اميه بن مخشی رضي الله عنه حديث راروان دې هغوی فرمائی چه يو کرت رسول الله ﷺ تشريف فرما وو د هغوی مخې ته يو سړی خوراک کولو هغه بسم الله نه وه لوستلې، هغه هم دغه شان خوراک کولو، چه کله د هغه آخری نمړئ پاتې شوه نو هغه ﴿بِسْمِ اللَّهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ ﴾ اولوستلو، په دې باندې رسول الله ﷺ مسکې شو او وې فرمائيل چه د دې سړی سره شيطان مسلسل خوراک کولو، چه کله هغه په اخيره کښې بسم الله اولوستله نو شيطان هغه هر څه چه هغه خوړلی وو هغه ئې قئ کړل. يعنی د بسم الله د نه لوستلو د وجې نه چه کومه بې برکتی پيدا کيدله هغه برکت واپس راغلو. او دا هم وئيلې شوی دی چه دا په خپل حقيقت باندې محمول دې ځکه چه هرکله هغه حقيقة خوری نو په واقع کښې قئ هم کولې شی. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

[۳۷۶۸]([2]) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى يَعْنِي ابْنَ يُونُسَ، حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ صُبْحٍ، حَدَّثَنَا الْمُثَنَّى بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْخُزَاعِيُّ، عَنْ عَمِّهِ أُمَيَّةَ بْنِ مَخْشِيٍّ، وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا وَرَجُلٌ يَأْكُلُ، فَلَمْ يُسَمِّ حَتَّى لَمْ يَبْقَ مِنْ طَعَامِهِ إِلَّا لُقْمَةٌ، فَلَمَّا رَفَعَهَا إِلَى فِيهِ، قَالَ: بِسْمِ اللَّهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ، فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: مَا زَالَ الشَّيْطَانُ يَأْكُلُ مَعَهُ، فَلَمَّا ذَكَرَ اسْمَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ اسْتَقَاءَ مَا فِي بَطْنِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: جَابِرُ بْنُ صُبْحٍ جَدُّ سُلَيْمَانَ بْنِ حَرْبٍ مِنْ قِبَلِ أُمِّهِ.

داميه بن مخشي نه روايت دې فرماي چه نبی عليه السلام ناست وو او يو سړي خوراک کول اوبسم

---

[1]: سنن الترمذي/الأطعمة ٤٧ (١٨٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٨٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الأطعمة ٧ (٣٢٦٤)، مسند احمد (٦/١٤٣، ٢٠٧، ٢٤٦، ٢٦٥)، سنن الدارمي/الأطعمة ١ (٢٠٦٣) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٣٦) (ضعيف)

الله كي ونه وئيله تردې پورې چه دخوراك نه يوه نورئ باقي پاتې شوه كله چه هغه دغه دخوړلو دپاره اوچته كړه نورې وئيل چه: بسم الله أوله وآخره » نبي ﷺ چه دا واوريدل نوونې خندل اوبيا ئې اوفرمائيل ددې كس سره شيطان پوشان خوراك كولو كله چه ده دالله نوم واخستو نوشيطان ئې وكړو او دده په خيټه كښې چه څه وو هغه يئې وګرځول. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

## باب مَا جَاءَ فِي الأَكْلِ مُتَّكِئًا

### د ډډې وهلو په حالت كښې د خوراك كولو بيان

[٣٧٦٩]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الأَقْمَرِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا جُحَيْفَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا آكُلُ مُتَّكِئًا".

دابوجحيفة ﷺ نه روايت دې فرمائي چه نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي چه زه په داسې حال كښې خوراك نه كوم چه ډډه مې وهلې وي.

[٣٧٧١]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سُلَيْمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسًا، يَقُولُ: "بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَجَعْتُ إِلَيْهِ فَوَجَدْتُهُ يَأْكُلُ تَمْرًا وَهُوَ مُقْعٍ".

د مصعب بن سليم نه روايت دې فرمائي چه دانس بن ئې مالكه نه مې اوريدلي دي فرمائيل ئې چه يوځل زه د نبي ﷺ چرته وليكلم نوهركله چه ورته واپس راغلم نوما وليد وچه د ډډې وهلو په حالت كښې ئې كجورې خوړلې.

**قوله:** ﴿سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُولُ بَعَثَنِي النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم فَرَجَعْتُ إِلَيْهِ فَوَجَدْتُهُ يَأْكُلُ تَمْرًا مُقْعٍ﴾

**شرح الحديث:**

سيدنا انس ﷺ فرمائي چه يو كرت رسول الله ﷺ زه د يو كار دپاره اوليږلم چه كله هغوی ته راواپس شوم نو ما هغوی په داسې حال كښې بيا موندل چه هغوی كهجورې خوړلې په ملا باندې ډډه وهلو سره دخپلو په سرپه ناسته.

دا روايت په شمائل ترمذی كښې هم شته چه په هغې كښې داسې دی ﴿ وهو مقع من الجوع ﴾ د دې په شرح كښې علامه مناوی فرمائی:

﴿ اى متساندا الى ما وراله من الضعف الحاصل له بسبب الجوع، ففى القاموس : اقعى فى جلوسه تساند الى ما ورائه، وليس الاستناد من اداب الاكل لانه فعله للضرورة، وقال القارى : اى محتبيا مستندا الى ما ورائه من الضعف الحاصل له بالجوع ﴾

د دې حديث نه د رسول الله ﷺ ډډه وهل ثابت شو، د ﴿ اكل متكئا ﴾ په باره كښې رسول الله ﷺ خپله فرمائی ﴿ لا آكل متكئا ﴾ هم په دې وجه تكيه لګولو سره خورک كول

---

[1]: صحيح البخاري/الأطعمة ١٣ (٥٣٩٨)، سنن الترمذي/الأطعمة ٢٨ (١٨٣٠)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٦ (٣٢٦٢)، (تحفة الأشراف: ١١٨٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٨/٤، ٣٠٩)، سنن الدارمي/الأطعمة ٣١ (٢١١٥) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الأشربة ٢٤ (٢٠٤٤)، سنن الترمذي/الشمائل (١٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٠/٣، ٢٠٣)، دي/الأطعمة ٢٦ (٢١٠٦) (صحيح)

خلاف ادب او خلاف سنت دی، خو په دې موقع باندې رسول اللهﷺ تکيه لګولو سره خوراک کولو د عذر جوع د وجې نه، چه د هغې طرف ته راوی خپله اشاره کړې ده، او شارحينو هم خپله د هغې وضاحت کړې دې. والحديث اخرجه البخاری، والترمذی، والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

د دې نه روستو روايت کښې دی ﴿ مَا رُئِيَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَأْكُلُ مُتَّكِئًا قَطُّ وَلاَ يَطَأُ عَقِبَهُ رَجُلاَنِ ﴾

[۳۷۷۰](1)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ شُعَيْبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "مَا رُئِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ مُتَّكِئًا قَطُّ، وَلَا يَطَأُ عَقِبَهُ رَجُلَانِ".

دعبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه هيڅکله نبی کريمﷺ په داسې حالت کښې نه دې ليدلې شوې چه د ډډې وهلو په حال کښې ئې خوراک کړې وی اوچه کله به دوه کسان وړېسې وو نود تواضع د وجې نه به دهغوی ﷺ نه مخکښې کيدو.

## شرح الحديث :

يعنی رسول اللهﷺ کله هم په تکيه لګولو سره په خوراک باندې نه دې ليدلې شوې، او نه به د رسول اللهﷺ د خپو چاپونه وړانول دوه سړو.... يعنی دوه سړی به په رسول اللهﷺ پسې شاته شاته نه تلل، يعنی د رسول اللهﷺ عادت مبارک د تلو په وخت د خپلو ملګرو نه د وړاندې تلو نه وو ﴿ اما ان يمشی خلفهم کما جاء او يمضی فيهم ﴾ بلکه يا خو به رسول اللهﷺ شاته روان وو يا د خپلو ملګرو سره يو ځائې په ﴿ رجلان ﴾ کښې مشهوره دا ده چه ﴿ بفتح الراء وضم الجيم ﴾ دې لکه چه په ترجمه کښې اختيار کړې شوې ده دويم احتمال د راء د کسرې او د جيم د سکون دې. يعنی قدمين، ﴿ يعنی لا يمشی خلفه احد ذو رجلين ﴾ (بذل)

## د آکل متکئا مصداق او تفسير :

د آکل مُتَّکِئًا څو تفسيرونه کړې شوې دی يو دا چه : ﴿ ان يتمکن فی الجلوس للاکل علی ای صفة کان ﴾ يعنی ښه کلک کيناستلو سره خوراک پکار دې هر څنګه چه وی، داسې ناستې سره به هم هغه سړې خوراک کوی چه د چا خوراک زيات وی، د زيات خوراک عادت وی، ﴿ وقيل ان يميل علی احد شقيه ﴾ يعنی يو طرف ته ښکته کيدو سره خوراک کول، ښی يا ګس طرف ته په څه څيز باندې تکيه لګولو سره، ﴿ وقيل ان يعتمد علی يده اليسری من الارض ﴾ يعنی په ګس لاس باندې په زمکه باندې تکيه لګول چه په داسې ناسته باندې منع په بعضو روايتونو کښې مطلقا هم راغلې دې بغير د خوراک نه. خطابی رحمه الله فرمائي چه اکثر خلق دا ګڼړی چه د متکئ معنی ښی يا ګس طرف ته په ډډه باندې کيناستل دی حال دا چه داسې نه ده، بلکه متکئ هغه سړې دې چه په ګدئ کيناستلو يا په تکيه باندې کيناستلو سره خوراک کوی، خو ابن الجوزی رحمه الله د اتکاء هم هغه معنی اخستلې ده د کوم د تخصيص نه چه خطابی انکار کړې دې يعنی ښی يا ګس طرف ته ډډه وهل. او ملا علی قاری رحمه الله په

(1): سنن ابن ماجه/المقدمة ۲۱ (۲۴۴)، (تحفة الأشراف: ۸۶۵۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۶۵، ۱۶۷) (صحيح)

مرقاة کښې د بعضو محققینو نه نقل کړې دی چه د دې نه مراد پړلت وهلو سره خوراک کول دی ځکه چه دا هیئت هم هغه سړې اختیاروی کوم چه د زیات خوراک عادت وی، او دا د تکبر علامت هم دې.

## د خوراک په وخت د ناستې غوره طریقه:

حافظ فرمائی: غوره په صفت د جلوس کښې دا ده چه د په دواړو کونډو او په ظهور د قدمین باندې کیناستلو سره خوراک اوکړی او یا ښئ کونډئ اودروی او ګسه اوغوړوی، او حضرت په بذل کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه نقل کړی دی چه غوره او مقبول هیئت په خوراک کښې هم هغه دې چه په هغې کښې د خوراک طرف ته پوره توجه بیا موندلې شی (چه د الله پاک یو نعمت دې) او هغه هیئت داسې نه دی کیدل پکار چه په هغې کښې زیات خوراک کولې شی د خیټې د فراخه کیدو د وجې نه (لکه د پړلت وهلو په وخت کښې) او نه هغه هیئت د متکبرینو وی، پس په کوم هیئت کښې چه دا درې واړه صفات اوموندلې شی هغه به د ټولو نه افضل وی او په کوم کښې چه صرف دوه بیا موندلې شی یا یو هغه به د دې نه د کمې درجې وی. اهـ بزیادة، والحدیث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الْأَكْلِ مِنْ أَعْلَى الصَّحْفَةِ

## د کاسې د مینځ نه د خوراک کولو بیان

[٣٧٧٢] (١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلَا يَأْكُلْ مِنْ أَعْلَى الصَّحْفَةِ وَلَكِنْ لِيَأْكُلْ مِنْ أَسْفَلِهَا فَإِنَّ الْبَرَكَةَ تَنْزِلُ مِنْ أَعْلَاهَا".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی کله چه په تاسو کښې یوکس خوراك کوي نودکاسې دمینځ نه دې نه خوري بلکه دیوطرف نه دې خوري ځکه چه برکت ددې په مینځ کښې اچولې شي (اوبیا غاړوته راخوریږي).

په حدیث الباب کښې دا دی چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه کله په تاسو کښې څوک خوراک کوی نو د کاسې د پورته طرف نه دې کوی یعنی د مینځ نه دې نه خوری بلکه د هغې نه د لاندې حصې یعنی خپلې مخې نه دې خوری، روستو رسول الله ﷺ د دې حکمت ارشاد فرمائیلې دې چه دا په دې وجه چه په مینځ د کاسې کښې برکت نازلیږی. لهذا د هغې تقاضا دا ده چه د مینځ حصه د خوراک نه خالی کیدل نه دی پکار دې دپاره چه په هغې باندې مسلسل برکت نازلیږی.

والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

(١): سنن الترمذي/الأطعمة ١٣ (١٨٠٥)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ١٢ (٣٢٧٧)، (تحفة الأشراف: ٥٥٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٧٠، ٣٠٠، ٣٤٣، ٣٤٥، ٣٦٤)، سنن الدارمي/الأطعمة ١٦ (٢٠٩٠) (صحيح)

[۳۷۷۳](¹)حَدَّثَنَا عَمْرُوبْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عِرْقٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُسْرٍ، قَالَ: "كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَصْعَةٌ يُقَالُ لَهَا: الْغَرَّاءُ، يَحْمِلُهَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ، فَلَمَّا أَضْحَوْا وَسَجَدُوا الضُّحَى أُتِيَ بِتِلْكَ الْقَصْعَةِ يَعْنِي وَقَدْ ثُرِدَ فِيهَا، فَالْتَفُّوا عَلَيْهَا، فَلَمَّا كَثَرُوا جَثَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ: مَا هَذِهِ الْجِلْسَةُ؟، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللَّهَ جَعَلَنِي عَبْدًا كَرِيمًا، وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا عَنِيدًا، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُوا مِنْ حَوَالَيْهَا وَدَعُوا ذِرْوَتَهَا يُبَارَكْ فِيهَا".

دعبدالله بن بسر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه دنبی ﷺ د الغراء په نوم باندې يوه لويه كاسه وه كومه چه څلوروكسانو اوچتوله كله چه داشراق دمونځ وخت شونودرې صلاة الضحي وكړو اودا كاسه راوړي شوه او دثريد نه ډكه وه هركله چه ګڼه جوړه شوه اودوی ورنه چاپيره شول نونبی ﷺ خپل زنګنونه سيده كړل اوكيناستو نو په دې وخت كښې يواعرابي ووئيل داد ناستې څرنګه طريقه ده نبی ﷺ اوفرمائيل يقينازه الله تعالى نيك بنده جوړ كړي يم اوالله تعالى تكبركونكي نه يم جوړ كړي اوبيائي داهم اوفرمائيل چه دكاسې دغاړونه خوری او مينځ ئې پريږدئ.

**قوله:** ﴿ كَانَ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَصْعَةٌ يُقَالُ لَهَا الْغَرَّاءُ يَحْمِلُهَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ فَلَمَّا أَضْحَوْا وَسَجَدُوا الضُّحَى أُتِيَ بِتِلْكَ الْقَصْعَةِ الخ ﴾

## رسول الله ﷺ او صحابه كرامو رضي الله عنهم چه به يو ځائې په كوم لوښی كښې خوراک فرمائيلو

يعنی رسول الله ﷺ او د هغوی صحابه كرامو رضي الله عنهم چه به په كوم لوښی كښې خوراک فرمائيلو هغه يو لويه پياله وه كومه چه به څلورو كسانو راوړله او په هغې كښې به ثريد اچولې شوې وو. د دې پيالې نوم عراء وو، پس چه كله به د څښت وخت شو او صحابه كرامو رضي الله عنهم به د څښت مونځ اوكړو نو دا پياله به راوړلې شوه ټول حضرات به د هغې نه چاپيره د حلقې په شكل كښې كيناستل يو كرت چه كله خوراک كونكی زيات شو نو رسول الله ﷺ راغونډ په دواړو كونډو باندې كيناستلو (ښكاره خبره ده چه دا ډير د تواضع هيئت دې هم په دې وجه) يو اعرابی اووې.دا د ناستې څنګه هيئت دی؟ په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ إِنَّ اللَّهَ جَعَلَنِي عَبْدًا كَرِيمًا وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا عَنِيدًا ﴾ چه الله پاک زه شريف الطبع انسان پيدا كړې يم، او متكبر او سخت خوئی والا ئې نه يم جوړ كړې. بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل د دې پيالې د څلورو واړو طرفونو نه خوراک كوئ، او د دې د مينځ حصه پريږدئ چه په دې كښې بركت نازليږی.

په شمائل ترمذی كښې د رسول الله ﷺ د قدح ذكر هم راغلی چه په هغې باندې امام ترمذی رحمه الله مستقل باب ترلې دې چه په هغې كښې دا دی: ﴿ عن ثابت قال اخرج الينا انس بن مالك رضي الله عنه قدح خشب غليظ مضببا بحديد الحديث ﴾ يعنی د رسول الله ﷺ د لرګی يو پياله وه چه په هغې كښې د اوسپنې پټری لګيدلې وو، چه د هغې په باره كښې انس رضي الله عنه دا هم

¹): سنن ابن ماجه/الأطعمة ٦ (٣٢٦٣)، ١٢ (٣٢٧٥)،(تحفة الأشراف: ٥١٩٩)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الأطعمة ١٦ (٢٠٩٠) (صحيح)

فرمائی چه رسول اللهﷺ به د څکلو تول څیزونه په دې پیاله باندې څکل ﴿ الماء والنبيذ والعسل واللبن ﴾ او دا غراء د کوم چه په حديث الباب کښې ذکر دې د يو لوئې لوښی نوم دې چه په هغې کښې به رسول اللهﷺ او صحابه کرامو﷡ يو ځائې ثريد خوړلو. والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذري.

[٣٧٧٨]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مَعْشَرٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقْطَعُوا اللَّحْمَ بِالسِّكِّينِ فَإِنَّهُ مِنْ صَنِيعِ الْأَعَاجِمِ، وَانْهَسُوهُ فَإِنَّهُ أَهْنَأُ وَأَمْرَأُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ.

د أم المومنين عائشة ﷞ نه روايت دې فرمائی چه رسول الله فرمائيلي دی غوښه به په چاړه نه پريکوي (د پخيدونه پس) ځکه چه داد عجميانو طريقه ده بلکه په غاښونو به ئې پريکوئ ځکه چه په دې کښې لذت زيات وي او زر هضم کيږي.

**قوله:** ﴿لاَ تَقْطَعُوا اللَّحْمَ بِالسِّكِّينِ فَإِنَّهُ مِنْ صَنِيعِ الأَعَاجِمِ الخ﴾

## په قطع اللحم بالسكين كښې اختلاف د روايتونو:

په دې حديث کښې په چړې سره د غوښې د پرې کولو نه منع کړې شوې ده چه دا د عجميانو طريقه ده او رسول اللهﷺ فرمائی چه غوښه په خپلو غاښونو باندې راښکلو سره خورئ چه هغه ډير مزيداره لګی.

د دې حديث ذکر د الدر المنضود په مقدمه کښې راغلي دې چه دا په هغه احاديثو کښې دې په کوم باندې چه ابن الجوزي﷫ د وضع حکم لګولي دې، خو موضوعی وئيل خو ګران دی او ضعيف ورته وئيلې کيدې شی، په صحاح سته کښې ان شاء الله سوا د ابن ماجه د بعض احاديثو نه هيڅ حديث موضوعی نشته.

په چاړۀ باندې د غوښې د پرې کولو ثبوت په رواياتو کښې موجود دې لکه چه په کتاب الطهارة ﴿ باب فى ترک الوضوء مما مست النار ﴾ کښې په حديث تير شوې دې. ﴿واخذ الشفرة فجعل يجزلى بها منه ﴾ وقد تقدم الكلام هناک........ يو توجيه چه کومه هلته نه ده تيره شوې هغه دا ده چه منع د هغه غوښې سره متعلق ده چه ښه پخه شوې وی. ﴿ قد تامل نضجه ﴾ ځکه چه هلته په چړې باندې د پرې کولو حاجت هم نه وی د نرميدو د وجې نه په لاس باندې کار چليدې شی.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الْجُلُوسِ عَلَى مَائِدَةٍ عَلَيْهَا بَعْضُ مَا يُكْرَهُ

### په کوم دسترخوان چه ناجائزه څيزونه پراته وی هلته د کيناستلو بيان

[٣٧٧٤]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ بُرْقَانَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ مَطْعَمَيْنِ: عَنِ الْجُلُوسِ عَلَى مَائِدَةٍ يُشْرَبُ عَلَيْهَا الْخَمْرُ، وَأَنْ يَأْكُلَ الرَّجُلُ وَهُوَ مُنْبَطِحٌ عَلَى بَطْنِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ لَمْ يَسْمَعْهُ جَعْفَرٌ مِنَ الزُّهْرِيِّ، وَهُوَ مُنْكَرٌ.

---

[١]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٢٥١) (ضعيف)

[٢]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٨٠٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبرى (٦١٠٧)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٦٢ (٣٣٧٠) (حسن)

سالم دخپل پلار عبدالله رضی الله عنه نه روایت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام د دوه قسمه خوراک کولونه منع فرمائیلي ده یوخوئي په داسې دسترخوان باندې دخوراك کولونه منع فرمائیلي ده په کوم چه شراب استعمالیږي دویم په نسکوره باندې دخوراك کولونه، امام ابوداؤد فرمائي داحدیث منکردن دا حدیث جعفربن برقان دزهري نه نه دي اوریدلی.

په حدیث الباب کښې دا دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوه قسمه خوراکونو نه منع فرمائیلي ده، یو په هغه دسترخوان باندې چرته چه شراب څکلې کیږي، او یو دا چه انسان داسې خوراک اوکړي چه هغه په خیټه باندې ملاست وي. والحدیث اخرجه النسائی.

[٣٧٧٥]([1])حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ، أَنَّهُ بَلَغَهُ عَنِ الزُّهْرِيِّ بِهَذَا الْحَدِيثِ.

دجعفرنه روایت دې فرمائی چه ماته دزهري نه دتیرشوي حدیث په شان حدیث رارسیدلی دې.

## بَابُ الْأَكْلِ بِالْيَمِينِ

### په ښی لاس باندې د خوراک کولو بیان

[٣٧٧٦]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ جَدِّهِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَأْكُلْ بِيَمِينِهِ، وَإِذَا شَرِبَ فَلْيَشْرَبْ بِيَمِينِهِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَأْكُلُ بِشِمَالِهِ وَيَشْرَبُ بِشِمَالِهِ".

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی کله چه خوراك کوي یوکس په تاسوکښې نوخوري دې په ښی لاس باندې، اوکله چه شکل کوي نوڅکل دې کوي په ښی لاس باندې یقینا شیطان په چپ لاس باندې خوراك اوڅکل کوي.

﴿ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَأْكُلُ بِشِمَالِهِ وَيَشْرَبُ بِشِمَالِهِ ﴾ دا حدیث د جمهورو په نزد په حقیقت باندې محمول دې، قال فی النیل ﴿ والذي عليه الجمهور من السلف والخلف من المحدثين وغيرهم أن أكل الشيطان محمول على ظاهره وان للشيطان يدين ورجلين وفيهم ذكر وانثى وأنه يأكل حقيقة بيده إذا لم يدفع وقيل إن أكلهم على المجاز والاستعارة وقيل أن أكلهم شم واسترواح ولا ملجئ إلى شيء من ذلك ﴾ اهـ په ابواب الاستنجاء کښې تقریبا دا ټول مضمون تیر شوي دي، دا چه تیر شو چه دا حدیث په مجاز باندې محمول دي یعنی معنی مجازی دا کیدې شی چه ﴿ انه يامر بذلك ويحرض عليه ﴾ یعنی په کس لاس باندې شیطان تیارول کوی والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی قاله المنذري.

[٣٧٧٧]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ لُوَيْنٌ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ، عَنْ أَبِي وَجْزَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ادْنُ بُنَيَّ، فَسَمِّ اللَّهَ وَكُلْ بِيَمِينِكَ وَكُلْ مِمَّا يَلِيكَ".

[1]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٨٠٩) (حسن لغيره)

[2]): صحيح مسلم/الأشربة ١٣ (٢٠٢٠)، سنن الترمذي/الأطعمة ٩ (١٧٩٩)، (تحفة الأشراف: ٨٥٧٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صفة النبي ٤ (٦)، مسند احمد (٢/٨، ٣٣، ١٠٦، ١٤٦)، سنن الدارمي/الأطعمة ٩ (٢٠٧٣) (صحيح)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٦٨٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأطعمة ٢ (٥٣٧٦)، صحيح مسلم/الأشربة ١٣ (٢٠٢٢)، سنن الترمذي/الأطعمة ٤٧ (١٨٥٧)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٧ (٣٢٦٧)، موطا امام مالك/صفة النبي ١٠ (٣٢)، مسند احمد (٤/٢٧)، سنن الدارمي/الأطعمة ١ (٢٠٦٢) (صحيح)

د ابوسلمه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی رانزدې شه اې بچوړیه دالله نوم یاد کړه او په ښی لاس باندې خوره اوخوراك کوه دهغه ځائې نه کوم چه تاته نزدې وي.

**قوله:** ﴿عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « اذنُ منى الخ» ﴾

په بعض نسخو کښې د دې نه پس د ﴿ یا بنی ﴾ زیادت دې، ځکه چه دا عمر بن ابی سلمه د ام المومنین ام سلمه رضی الله عنها خوئې دې د هغوی دړومبي خاوند ابوسلمه رضی الله عنه نه، هم په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿یا بنی ﴾

په دې حدیث کښې دوه اداب ذکر دی یو ﴿ اکل بالیمین ﴾ او د کاسې د غاړې نه کومه چه خوراک کونکی ته نزدې وی د هغې نه خوراک کول. کماتقدم باب الاکل من اعلی الصحفة.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه من حدیث ابی نعیم، وهب بن کیسان، عن عمر بن ابی سلمة بنحوه واخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه من حدیث عروة بن الزبیر عن عمر بن ابی سلمة، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي أَكْلِ اللَّحْمِ

### دغوښې خوړلو بیان

[۳۷۷۹] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُعَاوِيَةَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ، قَالَ: "كُنْتُ آكُلُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَآخُذُ اللَّحْمَ بِيَدِي مِنَ الْعَظْمِ، فَقَالَ: أَدْنِ الْعَظْمَ مِنْ فِيكَ فَإِنَّهُ أَهْنَأُ وَأَمْرَأُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: عُثْمَانُ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ صَفْوَانَ وَهُوَ مُرْسَلٌ.

دصفوان بن امیه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ما دنبی ﷺ سره خوراك کولو اومابه غوښه دهډ وکونه جداکوله نبی ﷺ اوفرمائیل هډوکې خولې ته نزدې کړه ځکه چه په دې طریقې سره دغوښې په خوړلو کښې خوند زیات وي اوزرهضم کیږي.

په ظاهر کښې مراد صفة الاکل یعنی د غوښې د خوراک طریقه بیانول دی. پس مضمون د حدیث دادې صفوان بن امیه رضی الله عنه فرمائی چه یو کرت ما د رسول الله ﷺ سره خوراک کولو داسې چه د هډوکی نه مې غوښه شوکوله او هغه مې خوړله، رسول الله ﷺ اوفرمائیل داسې مه کوه بلکه هم دا هډوکې خولې ته نزدې کړه او په غاښونو باندې ئې راوشوکوه چه داسې ډیره مزیداره لګی.

[۳۷۸۰] (²) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ زُهَيْرٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عِيَاضٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "كَانَ أَحَبُّ الْعُرَاقِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرَاقَ الشَّاةِ".

دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه په ټولوهډوکو کښې دنبی ﷺ دچیلی دغوښې هډوکې خوښ وو.

---

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٩٤٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأطعمة ٣٢ (١٨٣٥)، مسند احمد (٤٠١/٣، ٤٦٦/٦)، سنن الدارمي/الأطعمة ٣٠ (٢١١٤) (ضعيف)

(²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٢٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٧/١) (صحيح)

## مضمون حدیث :

قوله: ﴿كَانَ أَحَبُّ الْعُرَاقِ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- عُرَاقُ الشَّاةِ﴾

عراق د عرق جمع ده هغه هډوکي چه په هغې باندې غوښه وی، یعنی د رسول اللهﷺ د بیزې هغه غوښه ډیره خوښه وه کومه چه په هډوکی باندې لګیدلې وی، بعض خلق خالصه د غوښې بوټئ خوښوی. او بعضو ته د هډوکی والا غوښه خوښه وی د رسول اللهﷺ هم دا قسم غوښه خوښه وه. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری

او د دې نه روستو روایت کښې راځی ﴿ان النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يُعْجِبُهُ الذِّرَاعُ. قَالَ وَسُمَّ فِي الذِّرَاعِ وَكَانَ يَرَى أَنَّ الْيَهُودَ هُمْ سَمُّوهُ﴾

یعنی د رسول اللهﷺ د لاس غوښه خوښه وه هم په دې وجه رسول اللهﷺ ته زهر ورکونکې هم په دې کښې زهر ورکړې وو ځکه چه هغه ته معلومه وه چه د رسول اللهﷺ ذراع خوښ دې او هغوی به هم دا خوری.

[٣٧٨١]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ بِهَذَا الْإِسْنَادِ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْجِبُهُ الذِّرَاعُ، قَالَ: وَسُمَّ فِي الذِّرَاعِ وَكَانَ يَرَى أَنَّ الْيَهُودَ هُمْ سَمُّوهُ.

امام ابوداؤد والې په دې سند سره دعبدالله بن مسعود نه مروې دې چه دنبی ﷺ به دځنګل غوښه ډیره خوښه وه او نبی ﷺ ته دځنګل په غوښه کښې زهر ورکړې شوي وو او دهغه دا خیال وو چه په دې کښې زهر یهودیانو اچولي دي.

### (زهر ورکونکې څوک وو؟)

رسول اللهﷺ ته زهر کوم یهودی ورکړې وو د هغې په باره کښې حدیث په کتاب الدیات کښې راروان دې ﴿باب فی من سقی رجلا سما او اطعمه فمات ایقاد منه﴾ د لاندې... هلته د دې سلسلې ډیر روایتونه دی هلته دا هم دی : قال ابوداؤد هذه اخت محرب الیهودیة... یعنی کومې یهودی زنانه چه رسول اللهﷺ ته زهر ورکړې وو هغه د مرحب خور وه، د چه نوم دهغې زینب بنت الحارث وو، ﴿وذكر الزهری انها اسلمت اه﴾ من المنهل او د ابن الجوزی رحمه الله په تلقیح صفحه ۴۵ کښې دا هم دی چه دا زنانه د سلام بن مشکم ښځه وه. والحدیث اخرجه الترمذی، وقد اخرجه البخاری ومسلم من حدیث ابی زرعه بن عمرو بن جریر عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول اللهﷺ رفع الیه الذراع وکانت تعجبه الحدیث. قاله المنذری.

## بَابٌ فِي أَكْلِ الدُّبَّاءِ

### د کدو خوړلو بیان

د دباء ذکر په اوعیه د نبیذ کښې تیر شوې دې یعنی کدو کوم ته چه لوکی هم وئیلې شی، بعض په دې کښې مستطیل وی، بعض مستدیر، د نبیذ جوړولو دپاره خو زیات مناسب مستدیر وی چه د پیاله په شکل کښې وی، بهر حال هر یو چه وی دا د بهر نه شین وی او دننه سپین وی. ددې مغز نرم او نرئ وی. اطباء و د دې ډیرې فائدې لیکلې دی حضرت شیخ

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٢٣٣) (صحيح)

ﷺ په خصائل نبوی ﷺ کښې ليکي : د کدو فوائد علماء حديث ډير زيات ليکلي دی او د طب په کتابونو کښې هم د دې ډير فوائد ليکلي شوي دی. د هغه تولو نه دا هم ده چه عقل تيزوی، دماغو ته طاقت ورکوی. اهـ........ د کدو يو قسم بل دې چه د هغې د بهر نه رنگ گلابی شان وی او دننه زير کوم ته چه خوږ کدو وائی کوم چه دلته ([1]) په حجاز کښې هم وی خو د کمې سره........ هغه د دې نه مراد نه دې، ځکه چه کوم کدو رسول الله ﷺ ته محبوب وو د هغې په باره کښې په يو روايت کښې دا راغلی دی ﴿عن جابر بن طارق رضي الله عنه قال دخلت علی النبی ﷺ فرايت عنده دباء يقطع، فقلت ما هذا؟ قال نكثر به طعامنا ﴾ (شمائل) د دې نه معلوميږی چه دا کدو به په غوښه وغيره نورو ترکارو کښې اچولې شو چه په هغې سره به په ترکاري کښې اضافه کيدله. دا خبره د کدو په دې دويم قسم کښې نه شی موندلې، دا خو مستقل پخولې شي. والله تعالی اعلم.

[۳۷۸۲]([2])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: "إِنَّ خَيَّاطًا دَعَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَهُ، قَالَ أَنَسٌ: فَذَهَبْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى ذَلِكَ الطَّعَامِ، فَقَرَّبَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُبْزًا مِنْ شَعِيرٍ، وَمَرَقًا فِيهِ دُبَّاءٌ وَقَدِيدٌ، قَالَ أَنَسٌ: فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ مِنْ حَوَالَيِ الصَّحْفَةِ، فَلَمْ أَزَلْ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ بَعْدَ يَوْمِئِذٍ".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه يو درزی (خيات) يوه ورځ نبی عليه السلام ته دعوت ورکړو انس وائی دنبی عليه السلام سره ډغه دعوت ته زه هم لاړم نبی عليه السلام ته دوربشو ډوډئ اوشورواه اوکدو اوپشيدلې غوښه پيش کړې شوه انس رضي الله عنه وائې مانبی عليه السلام اوليدو چه داسې په کوټونو کښې به ئې دکدو چندې لټولې نو زه دهغې ورځې نه دکدو خوړل خوښوم.

**قوله:** ﴿إِنَّ خَيَّاطًا دَعَا رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– لِطَعَامٍ صَنَعَهُ ﴾

يعنی يو درزی رسول الله ﷺ ته د خوراک دعوت ورکړو، انس رضي الله عنه فرمائی چه په دې دعوت کښې زه هم د هغوی سره لاړم، دې داعی د رسول الله ﷺ مخې ته د اوربشو ډوډئ او خوروا کيخودله چه په هغې کښې ئې کدو او غوښه پيش کړه، سيدنا انس رضي الله عنه فرمائی چه ما رسول الله ﷺ اوليدو چه رسول الله ﷺ به په تالی کښې د کدو ډکړې کتلې. ﴿ فَلَمْ أَزَلْ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ بَعْدَ يَوْمِئِذٍ ﴾

د دې خياط په باره کښې په يو روايت کښې دی چه هغه د رسول الله ﷺ غلام او آزاد کرده وو. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

.........

[1] ، دا ليکل چونکه په حجاز کښې شوي وو په دې وجه لفظ دلته اوليکلې شو

[2] ): صحيح البخاري/البيوع ۳۰ (۲۰۹۲)، الأطعمة ٤ (۵۳۷۹)، ۲۵ (۵٤۲۰)، صحيح مسلم/الأشربة ۲۱ (۲۰٤۱)، سنن الترمذي/الأطعمة ٤۲ (۱۸۵۰)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ۲٦ (۳۳۰٤)، (تحفة الأشراف: ۱۹۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/النكاح ۲۱ (۵۱)، مسند احمد (۳/۱۵۰)، سنن الدارمي/الأطعمة ۱۹ (۲۰۹٤) (صحيح)

## بَابٌ فِي أَكْلِ الثَّرِيدِ

### د ثريد (ماته شوې ډوډۍ) خوړلو بيان

[٣٧٨٣] (1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَسَّانَ السَّمْتِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُبَارَكُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ أَحَبَّ الطَّعَامِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الثَّرِيدُ مِنَ الْخُبْزِ، وَالثَّرِيدُ مِنَ الْحَيْسِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ ضَعِيفٌ.

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه دنبي عليه السلام به ټولو خوراکونو کښې دډوډۍ ثريد اودحيس ثريد ډير خوښ وو، امام ابوداؤد فرمائي دا روايت ضعيف دې.

قوله: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ أَحَبَّ الطَّعَامِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الثَّرِيدُ مِنَ الْخُبْزِ، وَالثَّرِيدُ مِنَ الْحَيْسِ"، ثريد د خوراک يو خاص قسم دې مشهوره ده چه د ډوډۍ ټکړې په غوښه او خوروا کښې ګډولې شی د دې حديث نه معلومه شوه چه د ثريد دوه قسمونه دی په يو کښې صرف د غوښې او د ډوډۍ ټکړې وی، دا خو مالګين ثريد شو. او يو ثريد هغه دې کوم چه د ډوډۍ د ټکړو سره د کهجورو او پنير او غوړو په يو ځائې کولو باندې جوړولې شی، دا ګويا خوږ ثريد شو، په دې حديث کښې دا دی چه د رسول الله ﷺ دا دواړه خوښ وو.

د ثريد په احاديثو کښې په کثرت سره تعريف راغلې دې، په دې کښې ډيرې خوبيانې دی، د لذت سره سره په کښې غذائيت او په خوراک کښې ډير زيات لطيف او نرم وی چه معيده کول هم نه غواړی، په سهولت سره هضميږی، يو مشهور حديث دې «فضل عائشة على النساء كفضل الثريد على سائر الطعام» په دې باندې په حاشيه د خصائل کښې ليکلې دی: يعنى كما ان الثريد جامع لفوائد شتى من الغذائية واللذة والقوة حتى قيل انه يعيد الشيخ الى صباه، كذلك هى تجمع بين فضائل شتى من الفضل، والفقه والفصاحة والفطانة وغيرها. اهـ

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ التَّقَذُّرِ لِلطَّعَامِ

### په خوراک کښې د نفرت (ناخوښۍ) کولو بيان

يعنى د خوراک د څيز نه کرکه کول او اظهار د کراهت

[٣٧٨٤] (2) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سِمَاكُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنِي قَبِيصَةُ بْنُ هُلْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَأَلَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: "إِنَّ مِنَ الطَّعَامِ طَعَامًا أَتَحَرَّجُ مِنْهُ؟ فَقَالَ: لَا يَتَخَلَّجَنَّ فِي صَدْرِكَ شَيْءٌ ضَارَعْتَ فِيهِ النَّصْرَانِيَّةَ".

قبيصه بن هلب دخپل پلار نه روايت کوی فرمائي چه دنبي کريم نه مې اوريدلی دی چه يو کس ورنه تپوس اوکړو د خوراک په څيزونو کښې بعضې داسې دی چه زه ئې پاک نه ګڼړم نبي عليه السلام اوفرمائيل ستا په زړه کښې دی داسې سوچ پيدا نشي په کوم باندې چه نصرانيان مبتلا وو (ځکه چه هغوی به په هرڅيز کښې شک کولو).

1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٨٢) (ضعيف)

2): سنن الترمذي/السير ١٦ (١٥٦٥)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٢٦ (٢٨٣٠)، (تحفة الأشراف: ١١٧٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٢٦) (حسن)

**قوله:** ﴿ عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَسَأَلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ إِنَّ مِنَ الطَّعَامِ طَعَامًا أَتَحَرَّجُ مِنْهُ. فَقَالَ « لاَ يَتَخَلَّجَنَّ فِي صَدْرِكَ شَيْءٌ ضَارَعْتَ فِيهِ النَّصْرَانِيَّةَ » ﴾

## شرح الحديث:

يعنى يو سړي د رسول اللهﷺ نه د يو څيز د خوراک په باره کښې تپوس اوکړو او داسې ئې اوئيل چه بعض خوراکونه داسې دی چه زه د هغې په باره کښې حرج محسوسوم نو په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه د يو حلال خوراک په باره کښې د ستا شک نه وی، بغير د وجې نه شک او تردد، ګينې ستا دا فعل به د نصرانيت او رهبانيت سره مشابه وی کوم چه په اسلام کښې مذموم او ممنوع دی، رهبانيت يعنى عبادت او تقوی کښې غلو او دنيا ترک کول. کوم چه بعض نصارو اختيار کړې وو. ﴿ ورهبانية ابتدعوها ما کتبناها عليهم الاية ﴾ د دې حديث يو مطلب خو دا دې کوم چه مونږ اوليکو او په ظاهر کښې مصنفﷺ هم دې معنى ته په ترجمة الباب سره اشاره کړې ده، او دويمه معنى شارحينو د دې حديث دا ليکلې ده کومه چه د اول معنى ضد دې هغه دا چه په کوم خوراک کښې تاسو ته د نصرانيت مشابهت او بوئی محسوسيږی يعنى په حلال والی کښې اشکال، د هغې په باره کښې شک مه کوئ چه دا اوخورو او که نه بلکه بالجزم د هغې خوړل پکار دی، د مضارعت معنى مشابهت، د ړومبئ معنى حاصل منع عن ترک الاکل ده، او د دويمې معنى حاصل منع عن الاکل، د اول معنى په صورت کښې په ظاهره عبارت داسې دې ﴿ والا ضارعت فيه النصرانية ﴾ او د دويمې معنى مقتضى دا ده چه ﴿ ضارعت فيه النصرانية ﴾ صفت اومنلې شی د ﴿ شئ ﴾ خو داسې هيڅ شارح د دې تصريح نه ده کړې، زما په فهم کښې پس د غور کولو نه هم داسې راځی فليسئل ([1]) روستو په الکوکب الدری کښې د دې تصريح ملاؤ شوه.

والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه وقال الترمذی حسن، قاله المنذری.

---

[1]) حضرت په بذل کښې اول معنى اختيار فرمائيلې ده او ليکلې ئې دی: والجملة الشرطية مستانفة لبيان سبب النهي والمعني لا يدخل في قلبك ضيق وحرج لانك علي الحنيفية السمحة السهلة، فاذا شككت وشددت علي نفسك بمثل هذا شابهت فيه الرهبانية، د دې نه پس ئې د ګنګوهیﷺ د تقرير نه داسې نقل فرمائيلې دی: وکتب مولانا محمد يحيي المرحوم يحتمل أن تکون الجملة صفة لشئ وان تکون جوابا لشرط محذوف، وايا ما کان فالغرض منه النهي عن تحرز الطيبات من الماکل لا لغرض صحيح عند الشرع اهـ د حضرت په دې تقرير کښې د عبارت حل او د هغې د ترکيب خو ښه وضاحت اوشو خو زمونږ په خيال کښې چه د ﴿ وايا ما کان ﴾ نه پس د متکلم کوم غرض ليکلې دې هغه د احتمال اول سره مربوط دې نه د هر دواړو احتمالونو سره احتمال ثاني يعنى چه ﴿ ضارعت فيه النصرانية ﴾ د شرط محذوف جواب اومنلې شی، په دې صورت کښې خو د دې عبارت نه دوه مذکوره معنو کښې معنى ثاني راوځی فتأمل.... دا حديث چونکه په ترمذی کښې هم دې په دې وجه مونږ رجوع اوکړه کوکب دری طرف ته، د هغې نه صفا معلوميږی چه د هر ترکيب معنى جدا جدا ده، په يو صورت کښې به معنى داوی او په دويمه معنى کښې به دويمه. فلله الحمد...... امام ترمذیﷺ دا حديث په کتاب الجهاد کښې د باب طعام المشرکين د لاندې ذکر کړې دې او په آخر کښې فرمائی ﴿ والعمل علي هذا عند اهل العلم من الرخصة في طعام اهل الکتاب ﴾ او هم دا معنى امام ابوداؤدﷺ هم اختيار کړې ده لکه چه پورته مونږ ليکلې ده. او حضرت ګنګوهیﷺ هم په کوکب کښې دې معنى ته ترجيح ورکړې ده او دا معنى ئې استاذانو ته منصوب کړې ده، ﴿ والذي افاده الاساتذة في معناه ان الواجب عليه ان لا يختلج في قلبك طعام مالم تعلم حرمته او تظن فان فعلت ذلک ضارعت فيه النصرانية الي آخره..... الکوکب ١٦٧/٤ ﴾.

# بَابُ النَّهْيِ عَنْ أَكْلِ الْجَلَّالَةِ، وَأَلْبَانِهَا

## د مردار خور څاروي د غوښې او پيو څکلو د ممانعت بيان

[٣٧٨٥]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الْجَلَّالَةِ وَأَلْبَانِهَا".

دابن عمرنه روايت دي فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائيلې ده دمردار خور څاروي دغوښې اوشودو څکلونه.

[٣٧٨٦]([2]) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ لَبَنِ الْجَلَّالَةِ".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه دنبی ﷺ د مردارخورڅاروي د شودو څکلونه منع فرمائيل ده.

جلاله هغه حيوان دې چه د نجاست خوړلو عادت وی د پرانستې ګرځيدو په وجه باندې، او منع په هغه صورت کښې ده چه د هغې په خوراک سره د نجاست اثر د هغې په پيو او غوښه کښې ښکاره شی لهٰذا تر څو چه ښکاره نه وی نو د هغې خوراک جائز دې، او د نجاست د اثر ښکاره کيدو نه پس د هغې د خوراک د جواز شکل دا دې چه هغه دې څو ورځې اوتړلې شی تر دې چه د نجاست اثر ترې نه ختم شی.

[٣٧٨٧]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَهْمٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجَلَّالَةِ فِي الْإِبِلِ أَنْ يُرْكَبَ عَلَيْهَا، أَوْ يُشْرَبَ مِنْ أَلْبَانِهَا".

دابن عمرونه روايت دي فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائيلې ده دمردار خور اوښ دسورلی اودشودو څکلونه.

### د جلاله په حکم کښې مذاهب ائمه:

د جلاله د خوړلو په باره کښې مذاهب په حاشيه د بذل کښې داسې ليکلې دی چه د جمهورو په نزد دا کراهت مکروه تنزيهی دې، او د بعض شوافعو په نزد د تحريم دپاره دې او دا قول د حنابله هم دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد په دې کښې هيڅ کراهت نشته، کمافی شرح الکبير، او د خطابی په معالم السنن کښې مذاهب دا ليکلې شوې دی: كره ذلك أبو حنيفة وأصحابه والشافعي وأحمد بن حنبل وقالوا لا تؤكل حتى تحبس أياماً فإذا طاب لحمها فلا بأس بأكله. وقال إسحاق بن راهويه لا بأس أن يؤكل لحمها بعد أن يغسل غسلاً جيداً. وكان الحسن البصري لا يرى بأساً بأكل لحوم الجلالة، وكذلك قال مالك بن انس» اهـ اول حديث الباب حديث ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه الترمذی وابن ماجه وحديث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[1]: سنن الترمذي/الأطعمة ٢٤ (١٨٢٤)، سنن ابن ماجه/الذبائح ١١ (٣١٨٩)، (تحفة الأشراف: ٧٣٨٧) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الضحايا ٤٣ (٤٤٥٣)، (تحفة الأشراف: ٦١٩١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأطعمة ٢٤ (١٨٢٤)، سنن ابن ماجه/الأشربة ٢٠ (٣٤٢٠)، حم ١/٢٢٦، ٢٤١، ٣٣٩)، وانظر ايضاً رقم: (٣٧١٩) (صحيح)

[3]: انظر حديث رقم: (٢٥٥٨)، (تحفة الأشراف: ٧٥٨٩) (حسن صحيح)

## بَابٌ فِي أَكْلِ لُحُومِ الْخَيْلِ

### داس دغوښې خوړلو بيان

د لحم خيل مسئله اختلافي ده، مصنف رحمه الله هم په دې باب کښې دواړه قسم روايتونه راوړي دی د منع هم او د جواز هم، د امام احمد او د امام شافعي رحمه الله په نزد بغير د کراهت نه جائز دې، او د امام ابوحنيفه او د امام مالک رحمه الله په نزد مکروه دې اوس دا چه دا کراهت د هغوی په نزد تنزيهی دې او که تحريمی؟ په بذل کښې ليکلې دی چه د امام صاحب نه په دې کښې مختلف روايات دی، د حسن بن زياد په روايت کښې د هغوی نه تحريم منقول دې او ظاهر الرواية د امام صاحب نه د کراهت دې نه د تحريم. الى آخر ما بسط فى البذل. او په هدايه کښې دی ﴿ ويكره لحم الفرس عند أبي حنيفة رحمه الله وهو قول مالك وقال أبو يوسف ومحمد والشافعي رحمهم الله لا بأس بأكله، ثم قيل الكراهة عنده كراهة تحريم وقيل كراهة تنزيه والأول أصح وأما لبنه فقد قيل لا بأس به لأنه ليس في شربه تقليل آلة الجهاد اه مختصرا بحذف الدلائل وفى الجوهرة : يكره تحريما عند ابى حنيفة وعندهما لا باس به وفى الكوكب واجتماع روايتى التحريم والحلة يرجح الحرمة ولذلک ذهب الى الحرمة ابوحنيفة ومالک والاوزاعى وغيرهم والله تعالى اعلم ﴾ په ظاهر کښې حضرت چه د امام صاحب رحمه الله نه د حسن بن زياد کوم روايت کړې دې هغه ئې اختيار فرمائيلې دې، خو په ظاهر الرواية کښې نقل د امام صاحب نه مطلق کراهت دې نه تحريم لکه چه مخکښې د بذل نه ذکر شو. وكذا المذكور فى الهداية كراهة تحريم لا الحرمة... د حضرت گنگوهي په تقرير ترمذی او ابوداؤد کښې فرق دا دې چه د اذن روايت لکه چه په روايت کښې د هغې تصريح ده د يوم خيبر دې، او د خالد رضي الله عنه روايت کښې تحريم ذکر دې او په دې کښې شک نشته چه هغه د خيبر نه پس اسلام قبول کړې دې، فلم تكن رواية التحريم الا متاخرة اه من البذل والكوكب.

[٣٧٨٨](1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ، وَأَذِنَ لَنَا فِي لُحُومِ الْخَيْلِ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام مونږ منع کړي وو دخوړلو دغوښې دخرونه او اجازت ئې راکړي وو مونږ ته په غوښو خوړلو داسونو کښې.

[٣٧٨٩](2) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "ذَبَحْنَا يَوْمَ خَيْبَرَ الْخَيْلَ، وَالْبِغَالَ، وَالْحَمِيرَ، فَنَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِغَالِ وَالْحَمِيرِ، وَلَمْ يَنْهَنَا عَنِ الْخَيْلِ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دغزوه خيبرپه ورځ مونږ اسونه اوقچري اوخره ذبح کړل نو نبی عليه السلام مونږ منع کړي وودخوړلودغوښې دخرواردقچرنه او اجازت ئې

(1): صحيح البخاري/المغازي ٣٨ (٤٢١٩)، الصيد ٢٧ (٥٥٢٠)، ٢٨ (٥٥٢٤)، صحيح مسلم/الصيد ٦ (١٩٤١)، سنن النسائي/الصيد ٢٩ (٤٣٣٢)، سنن ابن ماجه/للذبائح ١٢ (٣١٩١)، (تحفة الأشراف: ٢٨١٠، ٢٦٣٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأطعمة ٥ (١٧٩٣)، مسند احمد (٣٢٢/٣، ٣٥٦، ٣٦١، ٣٦٢، ٣٨٥)، دي/الصيد ٦ (٢٠٥٥) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٦٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٦/٣، ٣٦٢) (صحيح)

راکړي وو مونږته په غوښو خوړلو د اسونو کښې.

[٣٧٩٠]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ شَبِيبٍ، وَحَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحِمْصِيُّ، قَالَ حَيْوَةُ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ صَالِحِ بْنِ يَحْيَى بْنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْخَيْلِ، وَالْبِغَالِ، وَالْحَمِيرِ"، زَادَ حَيْوَةُ: وَكُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَا بَأْسَ بِلُحُومِ الْخَيْلِ وَلَيْسَ الْعَمَلُ عَلَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا مَنْسُوخٌ، قَدْ أَكَلَ لُحُومَ الْخَيْلِ جَمَاعَةٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ ابْنُ الزُّبَيْرِ، وَفَضَالَةُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَأَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، وَأَسْمَاءُ بِنْتُ أَبِي بَكْرٍ، وَسُوَيْدُ بْنُ غَفَلَةَ، وَعَلْقَمَةُ، وَكَانَتْ قُرَيْشٌ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَذْبَحُهَا.

دخالد بن ولید رضی الله تعالی عنه نه روایت دی فرمائی چه نبی ﷺ داسونو اودقچرو اودخرو دغوښې دخوړلونه ممانعت فرمائیلې دې، دحیوه په روایت کښې دومره اضافه ده چه نبی ﷺ دهردار و والا ماتونکي ځناور دغوښې دخوړلونه ممانعت فرمائیلې دې، امام ابوداؤد وائی دادامام مالك قول دې، ابوداؤد وائی داسونو دغوښې په خوړلوکښې څه باك نشته او په دې روایت باندې عمل نشته، ابوداؤد وائی دا روایت منسوخ دې یقینا دنبی ﷺ په صحابه کراموکښې یوې ډلې داسونو غوښه خوړلې وه چه یوپه هغوی کښې ابن زبیر، فضاله بن عبید، انس بن مالك، أسماء بنت ابی بكر، سوید بن غفله او علقمه، اوقریشوبه دنبی ﷺ په زمانه کښې اسونه ذبح کول.

﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ وَأَذِنَ لَنَا فِي لُحُومِ الْخَيْلِ﴾

مصنف رحمه الله په دې باب کښې دوه احادیث ذکر فرمائیلې دی اول حدیث د جابر رضی الله عنه په دوه طرقو سره چه د هغې مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ د خیبر د جنګ په موقع باندې د خچر او د خر د غوښې نه منع اوفرمائیله او د اسونو د غوښې اجازت ئې ورکړو.

او بل حدیث د خالد بن الولید رضی الله عنه دې مرفوعا ﴿نَهَى عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْخَيْلِ وَالْبِغَالِ وَالْحَمِيرِ وَكُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ﴾

د دې دواړو روایتونو متعلق کلام مخکښې تیر شوې دې چه په هغې کښې دا تیر شوې دی چه د خالد بن الولید رضی الله عنه روایت موخر دې د حدیث جابر رضی الله عنه نه، بلکه دا ده چه په مبیح او محرم کښې کله تعارض راشی نو محرم ته به ترجیح ورکولې شی، نور کلام دې په دلائلو باندې په بذل کښې اوکتلې شی، د حدیث آخری جزء د ذی ناب سبع سره متعلق دې چه د هغې وړاندې مستقل باب راروان دې،

حدیث جابر رضی الله عنه الاول اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، وحدیثه الثانی اخرجه مسلم بمعناه وحدیث خالد رضی الله عنه اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[1]: سنن النسائي/الصيد ٣٠ (٤٣٣٦)، سنن ابن ماجه/الذبائح ١٤ (٣١٩٨)، (تحفة الأشراف: ٣٥٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٨٩، ٩٠) (ضعيف)

# بَابٌ فِي أَكْلِ الْأَرْنَبِ

## د هوسۍ د غوښې خوړلو بيان

ارنب يعني سويه دا د ائمه اربعه په نزد حلاله ده د بعض سلفو په دې کښې اختلاف نقل دې.

[٣٧٩١](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كُنْتُ غُلَامًا حَزَوَّرًا، فَصِدْتُ أَرْنَبًا فَشَوَيْتُهَا، فَبَعَثَ مَعِي أَبُو طَلْحَةَ بِعَجُزِهَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَقَبِلَهَا".

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زه يو طاقتور هلك وم او يوه هوسۍ مې ښكار كړه اوماهغه غوښه زما په لاس باندې نبي عليه السلام ته وليږله ماچه نبي عليه السلام ته پيش كړه نوقبوله ئې كړه.

**قوله:** ﴿عن أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنْتُ غُلَامًا حَزَوَّرًا فَصِدْتُ أَرْنَبًا فَشَوَيْتُهَا الخ﴾

انس رضي الله عنه فرمائي چه كله زه چست هلك اوم نو يو سويه مې ښكار كړه بيا مې په اور باندې ورته كړه نو زما پلار ابوطلحه رضي الله عنه د هغې پنډۍ د رسول الله ﷺ خدمت ته اوليږله. ما د رسول الله ﷺ په خدمت كښې هغه پيش كړه نو رسول الله ﷺ هغه قبوله اوفرمانيله.

[٣٧٩٢](٢) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي خَالِدَ بْنَ الْحُوَيْرِثِ، يَقُولُ: إِنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو كَانَ بِالصِّفَاحِ، قَالَ مُحَمَّدٌ: مَكَانٌ بِمَكَّةَ، "وَإِنَّ رَجُلًا جَاءَ بِأَرْنَبٍ قَدْ صَادَهَا، فَقَالَ: يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، مَا تَقُولُ؟ قَالَ: قَدْ جِيءَ بِهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا جَالِسٌ، فَلَمْ يَأْكُلْهَا وَلَمْ يَنْهَ عَنْ أَكْلِهَا، وَزَعَمَ أَنَّهَا تَحِيضُ".

محمد بن خالد وائي مادخپل پلار حارث بن حويرث نه بين اوريدلي دي چه عبدالله بن عمرفه په صفاح (دمكې په خواكښې ديوځائې نوم دې) كښې وو هغه ته بن يو كس دهوسۍ غوښه راوړه كومه چه هغه ښكار كړې وه او وئې وئيل اې ابن عمره په دې باره كښې ستاخه راې ده هغه اووئيل نبي عليه السلام ته دهوسۍ غوښه راوړل شوې وه اوزه په هغه وخت كښې هلته موجود وم اونبي عليه السلام ونه خوړله اونه ئې ددې دخوړلونه ممانعت اوكړو دهغه داخيال وو چه په دې بيمارې راځي.

د دې نه د روستو حديث مضمون دا دې چه يو سړې د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په خدمت كښې سويه راوړله چه هغه ښكار كړې وه، او د هغوى نه ئې تپوس اوكړو چه رسول الله ﷺ د دې په باره كښې څه فرمائي؟ نو هغوى اوفرمائيل چه يو كرت د رسول الله ﷺ په خدمت كښې دا راوړلې شوه نو رسول الله ﷺ نه خو دا اوخوړله او نه ئې د دې د خوراک نه منع اوكړه.

په بذل كښې ليكلي دي چه حديث اول د اكل ارنب په جواز باندې دليل دې ځكه چه رسول الله ﷺ هغه قبول اوفرمائيله او حديث ثاني سره د ضعف نه په كراهت باندې دلالت نه كوي، د دې حديث په آخر كښې دا جمله ده ﴿ وزعم انه تحيض ﴾ په دې باندې د حضرت

---

١ ): صحيح البخاري/الهبة ٥ (٢٥٧٢)، الصيد ١٠ (٥٤٨٩)، ٣٢ (٥٥٣٥)، صحيح مسلم/الصيد ٩ (١٩٥٣)، سنن الترمذي/ الأطعمة ٢ (١٧٩٠)، سنن النسائي/الصيد ٢٥ (٤٣١٧)، سنن ابن ماجه/الصيد ١٧ (٣٢٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٦٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/١١٨، ١٧١، ٢٩١)، سنن الدارمي/الصيد ٧ (٢٠٥٦) (صحيح)

٢ ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦٢١) (ضعيف الإسناد)

كنګوهی رحمه الله په تقرير كښې دی چه رسول الله ﷺ د سوېې دا خاصه د تحريم يا د كراهت طرف ته د اشارې كولو دپاره نه دی فرمائيلی ځكه چه د حيض د بدن نه خارج كيدل دا خو د باقی غوښې دپاره سبب د نظافت دې بلكه د رسول الله ﷺ دا ذكر فرمائيل د تعجب د اظهار دپاره دې چه په دې باندې هم د زنانه پشان حيض راځی. اهـ امام ترمذی رحمه الله د حديث د تخريج نه پس فرمائيلي دی ﴿هذا حديث حسن صحيح والعمل على هذا عند اكثر اهل العلم لا يرون باكل الارنب باسا، وقد كره بعض اهل العلم اكل الارنب وقالوا انها تدمی اهـ﴾ د دې عبارت نه دا معلوميږی چه د دې بعض اهل علم په نزد كيدې شی چه وجه د كراهت هم دا وی يعنی په دې باندې حيض راتلل........ اوس دا خبره چه په كومو كومو حيواناتو باندې حيض راځی د دې په باره كښې په حاشيه د بذل كښې دی : ﴿ تحيض من الحيوانات المراة والضبع والخفاش والارنب، ويقال الكلبة ايضا، وقيل الناقة والوزغة ايضا كذا فی القسطلانی، واكتفى صاحب حياة الحيوان على الاربعة الاول ﴾

حديث انس رضي الله عنه اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي أَكْلِ الضَّبِّ

### د خادمې د غوښې خوړلو بيان

[٣٧٩٣] (١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ خَالَتَهُ أَهْدَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمْنًا وَأَضُبًّا وَأَقِطًا، فَأَكَلَ مِنَ السَّمْنِ وَمِنَ الْأَقِطِ، وَتَرَكَ الْأَضُبَّ تَقَذُّرًا، وَأُكِلَ عَلَى مَائِدَتِهِ وَلَوْ كَانَ حَرَامًا مَا أُكِلَ عَلَى مَائِدَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه زما ترور نبی عليه السلام ته غوړي پنير او دخادمی غوښه په هديه كښې وليږله نو نبی عليه السلام پنير او غوړي اوخوړل او خادمی ئې دطبعي كراهت په وجه پريخودله ليكن دخادمی غوښه دنبی عليه السلام په دسترخوان باندې خوړلی شوي ده كه چرې داحرامه وې نو دنبی عليه السلام په دسترخوان باندې به نه خوړل كيده.

[٣٧٩٤] (٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، "أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْتَ مَيْمُونَةَ، فَأُتِيَ بِضَبٍّ مَحْنُوذٍ، فَأَهْوَى إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ، فَقَالَ بَعْضُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي فِي بَيْتِ مَيْمُونَةَ: أَخْبِرُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا يُرِيدُ أَنْ يَأْكُلَ مِنْهُ، فَقَالُوا: هُوَ ضَبٌّ، فَرَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ، قَالَ: فَقُلْتُ: أَحَرَامٌ هُوَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟، قَالَ: لَا، وَلَكِنَّهُ لَمْ يَكُنْ بِأَرْضِ قَوْمِي فَأَجِدُنِي أَعَافُهُ"، قَالَ خَالِدٌ: فَاجْتَرَرْتُهُ فَأَكَلْتُهُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ.

---

[1]: صحيح البخاري/الهبة ٧ (٢٥٧٥)، الأطعمة ٨ (٥٧٨٩)، ١٦ (٥٤٠٢)، الاعتصام ٢٤ (٧٣٥٨)، صحيح مسلم/الذبائح ٧ (١٩٤٧)، سنن النسائي/الصيد ٢٦ (٤٣٢٤)، (تحفة الأشراف: ٥٤٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٥٥، ٢٨٤، ٣٢٢، ٣٢٩، ٣٤٠، ٣٤٧) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الأطعمة ١٠ (٥٣٩١)، ١٤ (٥٤٠٠)، الذبائح ٣٣ (٥٥٣٧)، صحيح مسلم/الذبائح ٧ (١٩٤٦)، سنن النسائي/الصيد ٢٦ (٤٣٢١)، سنن ابن ماجه/الصيد ١٦ (٣٢٤١)، (تحفة الأشراف: ٣٥٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٨٨، ٨٩)، دي/الصيد ٨ (٢٠٦٠) (صحيح)

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دخالد بن ولید رضي الله عنه نه روایت کوی فرمائی چه هغه دنبی ﷺ سره دمیموني کورته داخل شواوپخه کړي شوي خادمی پیش کړي شوه نبی ﷺ اوغوښتل چه خپل لاس وروړاندي کړي لیکن دمیموني دکور یوي زنانه ورته اووئیل چه نبی ﷺ ته اووایه چه داڅه شي دي ځکه چه هغه ددي خوړل غواړي، چنانچه خلقو اووئیل اي دالله رسوله دا خادمئ ده نبی ﷺ چه دا واوریدل نوخپل لاس ئي راوراندي کړو خالد وائی ماعرض اوکړو اي دالله رسوله ایا دا حرامه ده؟ نبی ﷺ اوفرمائیل خرامه نه ده بلکه دا زمونږ په ملك کښي نه وي په دي وجه باندي زه دانه خوښوم خالده وائی چه ماخپل ځان ته رانزدي کړه او خوړله مي اونبی ﷺ راته کتل.

ضب یعني سمساره مشهور صحرائی ځناور دي د ګرګټ په شان وی خو د هغي نه پلن او پیړ په زمکه کښي سوره کولو سره اوسیږی، د راجهستان (انډیا) سندهـ او نجد په صحراء کښي ډیر زیات وی. د دي تیل هم ویستلي شی چه په علاج کښي پکاریږی دا ځناور ډیر قوی او ګرم وی ډیر خلق دا خوری هم، اهل نجد ئي ښه خوری، د احنافو په نزد حلال مع الکراهت دي، ففی الهدایة ٦٧/٤ ﴿ ویکره أکل الضبع والضب والسلحفاة والزنبور والحشرات کلها أماالضبع فلما ذکرنا وأما الضب فلأن النبي علیه الصلاة والسلام نهی عائشة رضي الله عنها حین سألته عن أکله وهي حجة علی الشافعي في إباحته والزنبور من المؤذیات والسلحفاة من خبائث الحشرات ولهذا لا یجب علی المحرم بقتله شيء وإنما تکره الحشرات کلها استدلالا بالضب لأنه (الضب)منها ﴾

مصنف رحمه الله په دي باب کښي د ضب په باره کښي ډیر او مختلف روایتونه ذکر کړي دی چه په هغي کښي بعض دا دی چه د ضب غوښه خپله رسول الله ﷺ خو او نه خوړله خو د رسول الله ﷺ په دسترخوان باندي اوخوړلي شوه، او بله دا چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا حرامه خو نه ده خو زما د دي نه کراهت طبعي دي، او د باب په آخری حدیث کښي دی :

| [٣٧٩٦](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، أَنَّ الْحَكَمَ بْنَ نَافِعٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ ضَمْضَمِ بْنِ زُرْعَةَ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ أَبِي رَاشِدٍ الْحُبْرَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِبْلٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ أَكْلِ لَحْمِ الضَّبِّ". |
|---|

دعبدالرحمن بن شبل نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ دخادمئ دغوښي دخوړلونه منع فرمائیلي ده.

**قوله:** ﴿ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله علیه وسلم- نَهَى عَنْ أَكْلِ لَحْمِ الضَّبِّ ﴾

په بذل کښي د امام نووی رحمه الله نه نقل کړي شوي دي ﴿ اجمع المسلمون علی ان الضب حلال، لیس بمکروه الا ما حکی عن اصحاب ابی حنیفة من کراهته والا ما حکاه القاضی عن قوم انهم قالوا هو حرام- الی آخر ما فی البذل من کلام النووی ونقد الحافظ علیه فی نقل الاجماع- وفی هامش الموطاء للامام محمد : اختلف العلماء فی اکله فمنهم من حرمه- حکاه عیاض عن قوم ومنهم من کرهه- وهو رای ابی حنیفة وابی یوسف ومحمد ونقله ابن المنذر علی رضي الله عنه ومنهم من قال باباحة اکله- وهو قول الجمهور الی آخر ما قال.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٧٠٢) (حسن)

حدیث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، وحدیث خالد بن الولید رضی الله عنه اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه.

د دې نه پس د ثابت بن وديعه رضی الله عنه حدیث کښې دی چه:

[۳۷۹۵](۱) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ وَدِيعَةَ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَيْشٍ فَأَصَبْنَا ضِبَابًا، قَالَ: فَشَوَيْتُ مِنْهَا ضَبًّا، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعْتُهُ بَيْنَ يَدَيْهِ، قَالَ: فَأَخَذَ عُودًا فَعَدَّ بِهِ أَصَابِعَهُ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ أُمَّةً مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ مُسِخَتْ دَوَابَّ فِي الْأَرْضِ، وَإِنِّي لَا أَدْرِي أَيُّ الدَّوَابِّ هِيَ، قَالَ: فَلَمْ يَأْكُلْ وَلَمْ يَنْهَ".

د ثابت بن وديعه نه روايت دې فرمائی چه مونږ په يولښکر کښې دنبی علیه السلام سره موجود وو مونږ يوڅوخادمی ونيولې ماديوې خادمئ نه شورواه جوړه کړه اونبی علیه السلام ته مې پيش کړه او دهغه په وړاندې مې کېخوده نبی علیه السلام په يوه لختـه باندې دهغې ګوتې وشميرلې او بيا ئې اوفرمائيل دبنې اسرائيليوه ډله مسيخ شوه او ځاروي ورنه جوړشول او په زمکه کښې پريخودلې شول ماته معلومه نه ده چه کوم ځاروې دهغوی نه جوړ شو، راوی وائی چه نبی علیه السلام اونه خوړله ليکن ددينه ئې منع هم اونه فرمائيله.

**قوله:** ﴿ إِنَّ أُمَّةً مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ مُسِخَتْ دَوَابَّ فِي الْأَرْضِ وَإِنِّي لَا أَدْرِي أَيُّ الدَّوَابِّ هِيَ ﴾ يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم د سمسارې په باره کښې اظهار د تردد اوفرمائيلو چه دا د بنی اسرائيل د هغه قوم نه دې کوم چه مسخ کړې شوې وو يا بل څه دې. په دې باندې شارحينو ليکلې دی چه کيدې شی هغه حديث چه په هغې کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائيلی دی: ﴿ الممسوخ لا يعيش ثلاثة ايام ولا يعقب ﴾ دا د روستو وی، او حديث الباب د دې نه مقدم وی. والحديث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي أَكْلِ لَحْمِ الْحُبَارَى

### د حباری (مارغه) د خوړلو بیان

[۳۷۹۷](۲) حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ سَهْلٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ ابْنِ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنِي بُرَيْهُ بْنُ عُمَرَ بْنِ سَفِينَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "أَكَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَحْمَ حُبَارَى".

دسفينه نه روايت دې فرمائی چه مادنبی علیه السلام سره دحباری [زانرې مارغه] غوښه اوخوړله.

**قوله:** ﴿أَكَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- لَحْمَ حُبَارَى﴾

سفينه رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د حبارٰی [زانرې] غوښه خوړلې ده.

### حباری څه شې دې؟

حباری د يوې مرغئ نوم دې؟ په دې کښې مختلف اقوال دی بعضو د دې ترجمه تغدری کړې ده، بعض د مرز معنی کړې ده او د بعضو د په نزد سرخاب «زانرې». نور هم د دې ډير

(۱): سنن النسائي/الصيد ٢٦ (٤٣٢٥)، سنن ابن ماجه/الصيد ١٦ (٣٢٣٨)، (تحفة الأشراف: ٢٠٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٢٠)، سنن الدارمي/الصيد ٨ (٢٠٥٩) (صحيح)

(۲): سنن الترمذي/الأطعمة ٢٦ (١٨٢٨)، (تحفة الأشراف: ٤٤٨٢) (ضعيف)

نومونه حضرت شيخ په خصائل نبوی ﷺ کښې ذکر کړې دی. او د ډيرو کتابونو حوالې په
هغې کښې ذکر شوې دی. او ډيرو د لغت کتابونو او د طب کتابونو لره مخې ته کيخودلو
سره ئې ليکلې دی چه اقرب هم دا ده چه سرخاب (زانرې) بل څه مارغه دې او صحيح هم دا
ده چه د دې ترجمه تغذرې ده.

دا يو صحرائی مرغئ ده د اوږد سټ والا د خاورې په شان رنګ، چه ډير تيز الوځی
او د رزق په حصول کښې ډير کوشش کوی تر دې چه ضرب المثل شو، پس وئيلې شی چه:
فلان اطلب من الحبارى.... والحديث اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي أَكْلِ حَشَرَاتِ الْأَرْضِ

### په زمکه کښې د کرخيدونکو ځناورو د خوړلو بيان

يعنی وارهٔ دواب الارض، په زمکه باندې وارهٔ وارهٔ ځناور لکه شکونړ، شمشتئ او مږه،
يربوع او نور حشرات وغيره.

[٣٧٩٨] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا غَالِبُ بْنُ حَجْرَةَ، حَدَّثَنِي مِلْقَامُ بْنُ التَّلِبِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "صَحِبْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ أَسْمَعْ لِحَشَرَةِ الْأَرْضِ تَحْرِيمًا".

ملقام بن التلب دخپل پلار نه روايت کوی فرمائی چه زه دنبی علیه السلام سره پاتې شوې يم اوهغه
دحشرات الارض حرمت نه دې بيان کړې.

**قوله:** ﴿ فلم اسمع لحشرات الارض تحريما ﴾ ملقام بن تلب د خپل پلار نه روايت کوی چه زه د
رسول الله ﷺ سره اوم خو ما د رسول الله ﷺ نه د حشرات الارض په باره کښې تحريم نه دی
اوريدلی.

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه په دې کښې د دې خبرې دليل نشته چه حشرات الارض مباح دی
لجواز ان يكون غيره قد سمعه.

[٣٧٩٩] (٢) حَدَّثَنَا (ابوثور) إِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ الْكَلْبِيُّ أَبُو ثَوْرٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عِيسَى بْنِ نُمَيْلَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عُمَرَ، فَسُئِلَ عَنْ أَكْلِ الْقُنْفُذِ؟ فَتَلَا: قُلْ لَا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا سورة الأنعام آية ١٤٥، قَالَ: قَالَ شَيْخٌ عِنْدَهُ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: خَبِيثَةٌ مِنَ الْخَبَائِثِ، فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: إِنْ كَانَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا، فَهُوَ كَمَا قَالَ مَا لَمْ نَدْرِ".

عيسی بن نميله دخپل پلار نه روايت کوی فرمائی چه زه دابن عمر‌ فه سره موجود وم کله چه
دهغه نه تپوس اوکړې شو دقنفذ (شکونړ) [٣] دخوړلو په باره کښې نوهغه دا ايت کريمه:
(قُلْ لَا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا) تلاوت کړو نو په دې وخت کښې يوبوډا اووئيل

[١]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٠٥١) (ضعيف الإسناد)

[٢]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٤٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨١/٢) (ضعيف)

[٣]) د پيشو برابر يو ځناور دې په فارسئ او اردو کښې ورته سيه او سيهی وائی پشتو کښې ورته
شکونړ يا شيشکې وائی چه د دې وزرې د اوږدو اوږدو ازغو په شکل وی چه دهغې په ذريعه دخان
حفاظت کوی دا اکثر په غرونو کښې اوسيږی.

مادابوهريره ﷺ نه اوريدلي دي چه دنبي ﷺ په وړاندي ددې ذکر وشو نبي ﷺ اوفرمائيل دا يوناپاکه ځاروې دې په لويو ښناوروکښې عبدالله ابن عمر اووئيل که چرې نبي ﷺ داسې وئيلي وي نو يقيناهمداسې ده.

**قوله:** ﴿كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عُمَرَ فَسُئِلَ عَنْ أَكْلِ الْقُنْفُذِ فَتَلاَ (قُلْ لاَ أَجِدُ فِيمَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا) الآية الخ﴾ د نُميله فرازي نه روايت دې چه زه د ابن عمر ﷺ سره اوم چه د هغوی نه د قنفذ (شکونړ) په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی دا آيت ئې تلاوت اوفرمائيلو ﴿قل لا اجد في ما اوحی الی محرما الاية﴾ په دې باندې يو شيخ کوم چه هم هلته ناست وو هغه اووې چه ما د ابوهريره ﷺ نه اوريدلې دی چه د رسول الله ﷺ مخکښې د قنفذ (شکونړ) ذکر راغلو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ خَبِيثَةٌ مِنَ الْخَبَائِثِ ﴾ نو په دې باندې ابن عمر ﷺ اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ دا خبره بيان فرمائيلې ده نو ښکه چه هغوی فرمائيلې ده هم دغه شان ده.

د دې نه پس دلته په روايت کښې دا جمله ده. ﴿ ما لم ندر ﴾ په بذل کښې ليکلې دی چه زيادت په بعض نسخو کښې دې په بعضو کښې نشته او بيا حضرت د دې جملې دا معنی ليکلې ده ﴿ مالم ندر صحته وثبوته بسند قوی ﴾ خو اکثر نسخې د دې زيادت نه خالی دی لکه د منذری نسخه او د معالم السنن نسخه، هم دغه شان په حياة الحيوان کښې د ابوداؤد روايت نقل کړې شوې دې په هغې کښې هم دا لفظ نشته، پس دا لفظ که دلته صحيح دې نو کيدې شی چه د دې معنی دا وی ﴿ وان لم ندر ﴾ يعنی که رسول الله ﷺ دا خبره بيان فرمائيلې وی نو بيا هم هغه صحيح ده که زمونږ په فهم کښې راځی يا نه. والله تعالیٰ اعلم

## د قنفذ مصداق او د هغې شرعی حکم :

قنفذ د دوه امامانو په نزد حلال دې او د دوه په نزد حرام، د شوافعو او مالکيانو په نزد حلال دې، او د احنافو او حنابله په نزد حرام، په حياة الحيوان کښې داسې دی ﴿ قال الشافعي: يحل أكل القنفذ لأن العرب تستطيبه، وقد أفتى ابن عمر بإباحته وقال أبو حنيفة والإمام أحمد: لا يحل لما روى أبو داود وحده أن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما الى اخر الحديث ﴾ بيا هغوی د دې نه پس د شوافعو د طرف نه د دې حديث جواب کړې دې. والجواب أن رواته مجهولون. قال البيهقي: ولم يرو إلا من وجه واحد ضعيف لا يجوز الاحتجاج به..... الى آخر ما ذكر.

ددې نه پس دا پيژندل پکار دی چه د قنفذ ترجمه بعضو شکونړ کړې ده، په عون المعبود او صراح کښې هم داسی دی خو شکونړ ترجمه خو د ﴿ سيهی ﴾ ده لکه چه په فرهنگ آصفيه کښې دې، او په منجد کښې د شکونړ شکل جوړولو (چه د هغه په ملا باندې حقيقت کښې ازغی وی) ئې د هغې نوم دلدل بيان کړې دې [1] او د قنفذ شکل او صورت ئې په منجد کښې د هغه مږې جوړې کړې دې چه په هغې باندې وينښته وی او هم دغه شان په القاموس الجديد کښې د قنفذ ترجمه په ازغيژنه مږې سره کړې ده او هم دا اقرب الی الصواب معلوميږی ښکه

[1] ) يعنی قنفذ نې نه دې ليکلې قلت وجاء ذكر الدلدل في النسائي في باب تزويج الزانية ولفظه قالت يا اهل الخيام هذا الدلدل الخ فليراجع الفيض السمائي)

چه شکونړ لوئې ځناور وی د پیشو برابر چه د هغه په ملا باندې ازغی وی (چه د هغې نه قلمونه هم جوړولې شی) په خلاف د قنفذ چه د هغه په ملا باندې ازغی نه وی بلکه پیړ پیړ ویښته وی کوم چه هغه د ویرې په وخت د خپل حفاظت دپاره اودروی او د بال په شان غونډې شی، لهذا د قنفذ ترجمه په شکونړ سره کولو کښې کلام دې. والله تعالیٰ اعلم

د جاحظ تالیف "کتاب الحیوان ۶/۴۳۲ او صفحه ۴۷۳ نه معلومیږی چه قنفذ یو جنس دې بعض قنافذ لوئې وی چه هغې ته دلدل وائی چه د هغې په شا باندې غټ غټ ازغی وی، هغوی د تولو احوال او خواص بیل بیل لیکلې دی لهذا د شکونړ دا ترجمه د دلدل زیاته مناسب ده، مونږ ته د قنفذ په تحقیق او تتبع کښې د ډیرو کتابونو د مراجعت ضرورت پیښ شو، د حشرات الارض تفصیل او د هغې حکم د احنافو په مذهب کښې هغه په بذل المجهود کښې د بدائع الصنائع نه نقل کړې شوې دې که څوک غواړی په هغې کښې دې اوګوری.

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ النَّبِىَّ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْهِرِّ. قَالَ ابْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ أَكْلِ الْهِرِّ وَأَكْلِ ثَمَنِهَا ﴾

دا حدیث په اکثر نسخو کښې نشته لکه نسخه د عون المعبود او دغه شان نسخه د منذری، خطابی او کیدل هم نه دی پکار ځکه چه ترجمة الباب د حشرات الارض سره متعلق دې، او هرة د حشراتو نه نه ده بلکه د سباع نه ده، د حشرات اطلاق په صغار دواب الارض باندې کیږی. کما تقدم فی اول الباب

## بَابٌ فِي أَكْلِ الضَّبُعِ

**باب د بجو (مُرده خور ځناور) د خوړلو بیان**

دلته دوه بحثونه دی اول د ضبع مصداق او د هغې تحقیق، بل د ضبع په حکم کښې د ائمه کرامو اختلاف سره د دلیل نه اودریم دا چه که محرم د دې ښکار اوکړی نوڅه واجبیږی.

**بحث اول:**

د ضبع په ترجمه کښې اختلاف دې، په عرف الشذی کښې لیکلې دی چه دې ته په اردو کښې هنډار وائی او په فارسئ کښې ورته کفتار او کومه ترجمه چه ئې د مولانا عبدالحئ پلار په شکونړ سره کړې ده هغه سهو ده، او په حاشیه د بذل کښې دی چه صاحب محیط هم د دې ترجمه په هنډار سره کړې ده..الخ، هم دې ته لګړ بګړ هم وائی، په نور اللغات کښې لیکلې دی چه صحیح لګربهګا دی، دې ته په فارسئ کښې چرغ وائی. په غیاث اللغات کښې هم کفتار او هونډار ته یو وئیلې شوې دی، د دې عبارت دا دې:

کفتار بالفتح جانوریست صحرائی درنده که بهندی هونډار گویندازلطائف وغیرآن. آه

بیا بجو[1] ته په عربئ کښې څه وائی د هغې دې تحقیق اوکړې شی، او د بجو په

---

[1] بجو یو مُرده خور ځنګلی ځناور دې چه په جثه کښې د مږې نه غټ او د وروکې پیشو برابر وی دې ته په عربی کښې ضبع، او په فارسی کښې کفتار وائی، په اردو کښې هنډار او بجو وائی چرغ هم ورته وائی پښتو کښې ورته ګورکخ او مرده خور وائی. دا قبرونه کنستلو سره مړی خوری.

باره کښې په فرهنگ آصفیه کښې لیکلي دی چه دا د یو ځناور نوم دې کوم چه اکثر په قبرستان کښې اوسیږی او مړی راوباسی او خوری ئې، داسې سخت او مضبوط وی چه د هاتی د خپې لاندې هم نه مری اهـ او د هنډار په باره کښې مشهوره نه ده چه هغه په قبرستان کښې اوسیږی او مړی راوباسی او خوری ئې لهذا هنډار او بجو دا دواړه بیل بیل ځناور دی، او د ضبع مصداق هنډار دې بجو نه دې، د لغت د ډیرو کتابونو د تتبع نه پس دا لیکلې شوې دی وقد بقی فیه ما بقی.

[٣٨٠١](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْخُزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الضَّبُعِ؟ فَقَالَ: هُوَ صَيْدٌ، وَيُجْعَلُ فِيهِ كَبْشٌ إِذَا صَادَهُ الْمُحْرِمُ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې دباجونکي دخوړلو په باره کښې تپوس وکړونو وئې فرمائیل چه دا یو ښکاردې اوکله چه څوک ددې په حالت داحرام کښې ښکار وکړي نوددې په عوض کښې به یوګډ په حرم کښې ورکوي.

**بحث ثانی :**

**قوله:** ﴿ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الضَّبُعِ فَقَالَ « هُوَ صَيْدٌ وَيُجْعَلُ فِيهِ كَبْشٌ إِذَا صَادَهُ الْمُحْرِمُ » ﴾ د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړې شو د ضبع په باره کښې نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل هغه ښکار دې چه په حالت د احرام کښې ممنوع دې او حضور صلی الله علیه وسلم دا هم اوفرمائیل چه که محرم د هغې ښکار اوکړی نو د هغې جزاء ګډ دې او د ترمذی رحمه الله په روایت کښې داسې الفاظ دی : ﴿عن ابن أبي عمار قال : قلت لجابر الضبع أصيد هي؟ قال نعم قال قلت آكلها؟ قال نعم قال قلت اقاله رسول الله صلى الله عليه و سلم؟ قال نعم. قال ابو عيسى هذا حديث حسن صحيح ﴾ د ابوداؤد رحمه الله روایت خو د حل ضبع په باره کښې صریح نه دې خو روایت د ترمذی په دې باره کښې صریح دې، خو هغه د جابر رضی الله عنه په اجتهاد باندې بناء دې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په کلام کښې د هغې د حلت تصریح نشته، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل هغه ښکار دې، جابر رضی الله عنه د ښکاره کیدو نه دا اوګنړله چه د دې خوراک حلال دې هم په دې بناء باندې هغوی د دې د حلال کیدو نسبت رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوکړو. باقی مونږ دا وایو چه ظاهره دا ده چه ضبع په سباع ذی ناب کښې دی لهذا ضبع د مشهور حدیث ﴿ نهى عن اكل كل ذى ناب من السباع ﴾ کښې د داخلیدو په وجه باندې غیر حلال دې، هسې د دې نه علاوه هم محرم او د مبیح د تعارض په وخت ترجیح محرم ته وی. (بذل)

مسئله مختلف فیه ده د امام شافعی او امام احمد په نزد ضبع حلال دې او د احنافو او جمهورو په نزد حرام دی کذا فی البذل عن الشوکانی، او د خطابی په کلام کښې دی : وکرهه

---

(١): سنن الترمذي/الحج ٢٨ (٨٥١)، الأطعمة ٤ (١٧٩٢)، سنن النسائي/الحج ٨٩ (٢٨٣٩)، الصيد ٢٧ (٤٣٢٨)، سنن ابن ماجه/المناسك ٩٠ (٣٠٨٥)، الصيد ١٥ (٣٢٣٦)، (تحفة الأشراف: ٢٣٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٧/٣، ٣١٨، ٣٢٢)، سنن الدارمي/المناسك ٩٠ (١٩٨٤) (صحيح)

الثوری وابوحنیفة واصحابه، ومالک وروی ذلک عن سعید بن المسیب، واحتجوا بالها سبع الی آخر ما ذکر... او امام ترمذی ﷫ په حدیث د جابر ﷛ کښې کوم چه پورته تیر شوې دې د هغې نه پس فرمائي : ﴿ وقد ذهب بعض اهل العلم الی هذا ولم یروا باسا باکل الضبع، وهو قول احمد واسحاق، وروی عن النبی ﷺ حدیث فی کراهیة اکل الضبع ولیس اسناده بالقوی ﴾ او د دې نه پس امام ترمذی ﷫ بیا دا حدیث د منع ذکر کړې دې: عن خزیمة بن جزء قال : سألت رسول الله صلی الله علیه و سلم عن أکل الضبع فقال أو یأکل الضبع أحد ، وسألت عن الذئب فقال أو یأکل الذئب أحد فیه خیر؟ د دې نه پس امام ترمذی ﷫ د دې په سند باندې چه کوم جرح ده هغه ئې بیان کړې ده خو په حاشیه د کوکب ۴/۲ کښې د التعلیق الممجد نه نقل کړې دی: وقد ورد النهی عن اکله فی روایات عدیدة اخرجها الترمذی وابن ابی شیبة واحمد واسحاق وابو یعلی وغیرهم کما بسط العینی فی البنایه مع الجواب عما استدل به المخالفون اهـ

**بحث ثالث :**

دویمه مسئله په دې حدیث کښې د ضبع په ښکار کولو کښې په محرم باندې د جزاء ده هغه کبش دې د ائمه ثلاثه مذهب خو هم دا دې، د احنافو په نزد جزاء خو واجب ده خو په هغې کښې د قیمت اعتبار دې د کبش تعین نه دې، یعنی د ضبع قیمت چه هر څه وی د هغې په اندازه دې جزاء ورکړې شی، ممکنه ده چه هغه وخت د هغې قیمت د کبش برابر وو، هم په دې وجه هغه ذکر کړې شو.

والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، وقال الترمذی: حسن صحیح، قاله المنذری.

## بَابُ النَّهْيِ عَنْ أَكْلِ السِّبَاعِ

### د درندګانو د غوښې د خوړلو د ممانعت بیان

[۳۸۰۲] [1] حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السَّبُعِ".

دابوثعلبه ﷛ نه روایت دې فرمائي چه نبی کریم ﷺ منع فرمائیلې ده دخوړلو د هر داړور ماتونکې ځناورنه.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- نَهَى عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السَّبُعِ ﴾

**شرح الحدیث :**

یعنی رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده د هر هغه داړور ځناور د خوراک نه کوم چه د درند ګانو نه وی، یعنی هغه ځناور چه په خپلو غاښونو سره ښکار کوی او ښکار لره شلوی. مطلق د ناب [داړې]کیدل مراد نه دی، لکه شیر، زمرې، لیوۀ او سپې وغیره چه په خلقو باندې

[1]: صحیح البخاري/الصید ۲۹ (۵۵۳۰)، الطب ۵۷ (۵۷۸۰)، صحیح مسلم/الصید ۳ (۱۹۳۲)، الأطعمة ۳۳ (۱۹۳۲)، سنن الترمذي/الصید ۱۱ (۱۴۷۷)، سنن النسائي/الصید ۲۸ (۴۳۳۰)، ۳۰ (۴۳۴۸) سنن ابن ماجه/الصید ۱۳ (۳۲۳۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۷۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹۳/۴، ۱۹۴، ۱۹۵)، سنن الدارمي/الأضاحي ۱۸ (۲۰۲۳) (صحیح)

حمله کوی په خپلو غاښونو سره، او د ﴿ من السبع ﴾ قید ئې په دې وجه اولګولو چه اوښ ترې اوځی ځکه چه ددې اګرچه ناب [دارې] وی خو هغه په سباع او وحوش کښې نه دی د کوم چه د انسان سره دشمنی وی، او د دې نه روستو حدیث چه په روایت د ابن عباس رضی الله عنهما دې، په هغې کښې دا هم دی ﴿ وعن کل ذی مخلب من الطیر ﴾ یعنی د هر داسې مارغهٔ د خوراک نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده چه د پنجې والا وی یعنی په پنجه ښکار کوی په الوتلو کښې هم لکه، باز، تېپوس او چوکړ وغیره.

[٣٨٠٣](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ مِهْرَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السَّبُعِ، وَعَنْ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ منع فرمائیلې ده دخوړلودخر دارور ماتونکي ځناور اوهرپنجه لرونکي مرغۍ نه.

حدیث أبی ثعلبه رضی الله عنه اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، وحدیث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه مسلم، قاله المنذری.

او د دې نه روستو حدیث کوم چه د مقدام بن معدیکرب رضی الله عنه نه روایت دې په هغې کښې دا زیادت دې. ﴿ وَلاَ الْحِمَارُ الأَهْلِيُّ وَلاَ اللُّقَطَةُ مِنْ مَالِ مُعَاهِدٍ إِلاَّ أَنْ يَسْتَغْنِيَ عَنْهَا ﴾ د حمر اهلیه وړاندې مستقل باب هم راروان دی، د معاهد نه مراد ذمی دې یعنی د ذمی لقطه اوچتولو سره کیخودل جائز نه دی، چه هر کله د ذمی جائز نه ده نو د مسلم په طریق اولی جائز نه ده، خو د تعریف دپاره اوچتول ئې جائز دی او بیا دې په دې صورت کښې څوک هم دهغې طلب کولو دپاره رانشی نو بیله خبره ده، هم دا مطلب دې د﴿ الا ان یستغنی عنها ﴾.

[٣٨٠٤](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ، عَنِ الزُّبَيْدِيِّ، عَنْ مَرْوَانَ بْنِ رُؤْبَةَ التَّغْلِبِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَوْفٍ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِ كَرِبَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَلاَ لاَ يَحِلُّ ذُو نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ، وَلاَ الْحِمَارُ الأَهْلِيُّ، وَلاَ اللُّقَطَةُ مِنْ مَالِ مُعَاهِدٍ إِلاَّ أَنْ يَسْتَغْنِيَ عَنْهَا، وَأَيُّمَا رَجُلٍ ضَافَ قَوْمًا فَلَمْ يَقْرُوهُ فَإِنَّ لَهُ أَنْ يُعْقِبَهُمْ بِمِثْلِ قِرَاهُ".

دمقدام بن معدي کرب نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی واورئ په ځناورو کښې د دارو والا ماتونکي ځناور غوښه حلاله نه ده اونه دکورني خراونه ددمي کافر مال مګر له چه کافر دغه مال پخپله پریخودلی وي، اوڅوک چه دچامیلمه شي اوهغه ته میلمستیا ورنکړي نودهغه دپاره جائز دي چه دخپلې میلمستیا په اندازه مال په زبردستی سره وصول کړي.

﴿ وَأَيُّمَا رَجُلٍ ضَافَ قَوْمًا الخ ﴾ او کوم سړي چه د یو قوم میلمه شی او هغه خلق د هغه میلمستوب اونکړی نو د دې میلمه دپاره جائز دی چه د خپل میلمستوب په اندازه د هغوی

---

(١): صحيح مسلم/الصيد ٣ (١٩٣٤)، (تحفة الأشراف: ٦٥٠٦)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الصيد ٣٣ (٤٣٥٣)، سنن ابن ماجه/الصيد ١٣ (٣٢٣٤)، مسند احمد (١/٢٤٤، ٢٨٩، ٣٠٢، ٣٢٧، ٣٣٦، ٣٣٩، ٣٧٣)، دي/الأضاحي ١٨ (٢٠٢٥) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٥٧١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/العلم ١٠ (٢٦٦٣)، سنن ابن ماجه/الصيد ٢ (٣٢٣٤)، مسند احمد (٤/١٣٢) (صحيح)

په مال کښې واخلی، د دې آخری جملې تاویلات د کتاب الاطعمه په شروع کښې په باب فی الضیافة کښې تیر شوې دی.

والحدیث ذکره الدارقطنی مختصرا واشار الی غرابته، قاله المنذری.

[٣٨٠٥] (1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، عَنْ ابْنِ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ ابْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحَكَمِ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ مِهْرَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ، وَعَنْ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ".

دعبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه ﷺ دغزوه خیبر په ورځ باندې دخوړلو دغوښې دهر دارور ماتونکی ځناورنه منع فرمائیلې ده

[٣٨٠٦] (2) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ سُلَيْمَانُ بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ يَحْيَى بْنِ الْمِقْدَامِ، عَنْ جَدِّهِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيكَرِبَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، قَالَ: "غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ، فَأَتَتِ الْيَهُودُ فَشَكَوْا أَنَّ النَّاسَ قَدْ أَسْرَعُوا إِلَى حَظَائِرِهِمْ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا لَا تَحِلُّ أَمْوَالُ الْمُعَاهَدِينَ إِلَّا بِحَقِّهَا، وَحَرَامٌ عَلَيْكُمْ حُمُرُ الْأَهْلِيَّةِ، وَخَيْلُهَا، وَبِغَالُهَا، وَكُلُّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ، وَكُلُّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ".

دخالد بن ولید نه روایت دې فرمائی چه په غزوه خیبرکښې درسول الله سره په جهاد کښې شریك وم چه یهودیان راغلل اونبی ﷺ ته ئې شکایت وکړو چه خلقو په جلت سره زمونږه په چراګاه کښې ترلې شوې څاروي لوټ کړې دې، نبی ﷺ اوفرمائیل خبردار ستاسو سره چه کوم کافران معاهده وکړي نوستاسو دپاره ددوی مال لوټ کول جائزنه دې مګر په حق سره او په تاسو باندې کورني خره اسونه قچرې اوهریو دارې لرونکې ځناور اوپنجه لرونکې مرغۍ حرامه ده.

## مضمون الحدیث :

قوله: ﴿ عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- خَيْبَرَ فَأَتَتِ الْيَهُودُ فَشَكَوْا أَنَّ النَّاسَ قَدْ أَسْرَعُوا إِلَى حَظَائِرِهِمْ الخ ﴾

خالد بن الولید رضي الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ سره په غزوه خیبر کښې اوم پس هغوی ته څه یهودیان راغلل یعنی د معاهدې نه پس او هغوی راتلو سره دا شکایت اوکړو چه بعض خلقو زمونږ د څاروو په اخور باندې حمله کړې ده چرته چه زمونږ اوښان او ګډې بیزې ترلې شی او هغه ئې غلا کړې دی، نو په دې باندې رسول الله ﷺ وعید اوفرمائیلو چه د معاهدینو او د ذمیانو د مال نه د خپل مقرر شوی حق نه علاوه نور اخستل جائز نه دی، او رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائیل چه په تاسو باندې کورنی خرهٔ او اسونه او خچر او هر یو سبع ذی ناب او طیر ذی مخلب حرام کړې شوې دې.

د مال معاهدین په باره کښې ناحق تصرف او د هغې په باره کښې د وعید روایات

---

(1): سنن النسائي/ الصيد ٣٣ (٤٣٥٣)، سنن ابن ماجه/ الصيد ١٣ (٣٢٣٤)، (تحفة الأشراف: ٥٦٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٣٩) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: ٣٧٩٠، (تحفة الأشراف: ٣٥٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٨٩) (ضعيف منكر)

په كتاب الخراج "باب فى تعشير اهل الذمة اذا اختلفوا فى التجارة" د لاندې تير شوې دې، دلته خو دا روايت ضمناً راغلې دې، لهذا هغې طرف ته دې رجوع اوكړې شى، ډير سخت وعيدونه دى. والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه، قاله المنذری

[٣٨٠٧](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ زَيْدٍ الصَّنْعَانِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْهِرِّ"، قَالَ ابْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ: عَنْ أَكْلِ الْهِرِّ، وَأَكْلِ ثَمَنِهَا.

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام منع فرمائيل ده دقيت اخستلو دپيشونه اودعبد الملك په روايت كښې دى چه دپيشو دخوړلونه ئې منع فرمائيلې ده اودپيشو دقيمت دخوړلونه.

## بَابٌ فِي أَكْلِ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ

### دكورنو خرونو دخوړلو بيان

حمار اهلى د جمهور علماء ومنهم الائمة الثلاث په نزد حرام دې د احاديث صحيحه صريحه په وجه باندې، په دې كښې د ابن عباس رضي الله عنهما اختلاف روايت كړې شوې دې چه حرام نه دى، اوددامام مالك رحمه الله نه درې روايتونه دى مشهور قول د هغوى دا دې چه مكروه تنزيهى دې، دويم دا چه مباح دې، او دريم قول ئې د جمهورو په شان د حرمت دې. كذا قال النووى ٣٩/٢. دا اختلاف په حمر اهليه كښې دې، او حمروحشيه يعنى زيبرا بالاجماع حلال دې او په حاشيه د بذل كښې دى: ﴿ تكلم عليه فى حياة الحيوان وفيه: قال الجمهور بالحرمة ومالك بالاباحة، قال ابن العربى نسخ لحوم الحمر مرتين اهـ ﴾ په كومو ځيزونو كښې چه تعدد د نسخ راغلې دې هغه مونږ سره په دوه ځايونو كښې تير شو يو په ﴿ باب فى نكاح المتعة ﴾ او په كتاب الطهارة كښې ﴿ باب الوضوء مما مست النار ﴾ د لاندې هم، په دې باب كښې مصنف رحمه الله دواړه قسم روايتونه ذكر كړې دى د حلت هم او د حرمت هم د مخكښې باب په حديث كښې تير شوې دى ﴿ وحرام عليكم حمر الاهلية وخيلها وبغالها ﴾.

### د بغال په حكم كښې اختلاف:

د امام مالك رحمه الله اختلاف چه څنگه په حمار اهلى كښې دې هم دغه شان ئې په بغل كښې هم دې، پس په بداية المجتهد كښې دى چه د هغې مونږ دلته پوره عبارت ذكر كوو د مفيد او جامع كيدو د وجې نه: ﴿ وأما المسألة الثانية: وهي اختلافهم في ذوات الحافر الإنسي: أعني الخيل والبغال والحمير فإن جمهور العلماء على تحريم لحوم الحمر الإنسية إلا ما روي عن ابن عباس وعائشة أنهما كانا يبيحانها وعن مالك أنه كان يكرهها رواية ثانية مثل قول الجمهور وكذلك الجمهور على تحريم البغال وقوم كرهوها ولم يحرموها وهو مروي عن مالك. وأما الخيل فذهب مالك وأبو حنيفة وجماعة إلى انها محرمة وذهب الشافعي وأبو يوسف ومحمد وجماعة إلى إباحتها اهـ ﴾ د ابن

---

1): سنن الترمذي/البيوع ٤٩ (١٢٨٠)، سنن ابن ماجه/الصيد ٢٠ (٣٢٥٠)، (تحفة الأشراف: ٢٨٩٤) (ضعيف)

عباس ﷺ رائې په دې باره کښې خپله په متن کښې راروانه ده د دې نه پس هغوی په دلائلو باندې کلام کړې دې وفي الهداية ص ٤٦٧ج٤: ﴿ولا يجوز أكل الحمر الأهلية والبغال لما روي خالد بن الوليد رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم نهى عن لحوم الخيل والبغال والحمير اهـ وفي هامشه : اخرجه ابن ماجه﴾ خچر چونکه د خيل او د حمار د دوه مختلف جنسونو د اختلاط نه پيدا کيږي او د حمار دوه قسمونه دی يو اهلی چه حرام دې او دويم وحشي کوم چه بالاتفاق حلال دې په دې وجه د بغل د دې دواړو قسمونو په حکم کښې فرق دې پس قسم اول حرام دې او نوع ثاني حلال، پس په حياة الحيوان کښې دی : ﴿يحرم أكل المتولد منها بين الحمار الأهلي والفرس، لانه متولد بين ما يحل وما يحرم فغلب جانب التحريم، فان تولد بين حمار وحشي وفرس حل اهـ﴾ وفي الدر المختار ٢٢٩/٢ ﴿ولا يحل ذوناب يصيد بنا به او مخلب يصيد بمخلبه من سبع بيان لذى مخلب او طير ولا الحشرات﴾ هى صغار دواب الارض واحدها حشرة والحمر الاهلية والبغل الذى امه حمارة فلو امه بقرة اكل اتفاقا، ولو فرسا فكامه.... اهـ مختصرا دا کلام په ترجمة الباب باندې وو اوس احاديث الباب اوګورئ.

[٣٨٠٩](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ عُبَيْدٍ أَبِي الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ غَالِبِ بْنِ أَبْجَرَ، قَالَ: "أَصَابَتْنَا سَنَةٌ فَلَمْ يَكُنْ فِي مَالِي شَيْءٌ أُطْعِمُ أَهْلِي إِلَّا شَيْءٌ مِنْ حُمُرٍ، وَقَدْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّمَ لُحُومَ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ، فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَصَابَتْنَا السَّنَةُ وَلَمْ يَكُنْ فِي مَالِي مَا أُطْعِمُ أَهْلِي إِلَّا سِمَانُ الْحُمُرِ، وَإِنَّكَ حَرَّمْتَ لُحُومَ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ، فَقَالَ: أَطْعِمْ أَهْلَكَ مِنْ سَمِينِ حُمُرِكَ فَإِنَّمَا حَرَّمْتُهَا مِنْ أَجْلِ جَوَّالِ الْقَرْيَةِ يَعْنِي الْجَلَّالَةَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: عَبْدُ الرَّحْمَنِ هَذَا هُوَ ابْنُ مَعْقِلٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عُبَيْدٍ أَبِي الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَعْقِلٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ بِشْرٍ، عَنْ نَاسٍ مِنْ مُزَيْنَةَ: أَنَّ سَيِّدَ مُزَيْنَةَ أَبْجَرَ، أَوِ ابْنَ أَبْجَرَ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دغالب بن ابجرنه روايت دې فرمائي چه په مونږ باندې قحط سالي راغله اوزما په مال کښې داسې څيزنه وو چه خپل بال بچ ته مې دخوراك دپاره ورکړې وې مګريوڅوخره اويقينانبي ﷺ کورني خره حرام کړي وو نوزه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم اوعرض مې وکړو اې دالله رسوله په مونږ باندې قحط سالي راغلې ده اوزما په مال کښې داسې څيزنشته چه زه ئې دخوراك دپاره خپلوبچوته ورکړم مګر يوڅو څاربه خره راسره موجود دي نبی ﷺ اوفرمائيل پخپلوبچودې ددغه څربو خرونه اوخوروه څکه چه ما کورني خره دناپاکی په وجه باندې حرام کړي دي.

## مضمون الحديث:

**قوله:** ﴿عَنْ غَالِبِ بْنِ أَبْجَرَ قَالَ أَصَابَتْنَا سَنَةٌ فَلَمْ يَكُنْ فِي مَالِي شَيْءٌ أُطْعِمُ أَهْلِي إِلَّا شَيْءٌ مِنْ حُمُرٍ الخ﴾ غالب بن ابجر ﷺ فرمائي چه مونږ يو کرت په تنګسيا اولوږه کښې اخته شو اوما سره بل هيڅ څيز په خپلو بچو باندې د خوراک دپاره نه وو سوا د څو خرو نه خو د رسول الله ﷺ د طرف نه د لحوم حمر اهليه تحريم راغلې وو په دې وجه د هغوی په خدمت کښې حاضر شوم او د خپلې لوږې حال مې هغوی ته بيان کړو. او هم دغه پوره خبره کومه چه پورته

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠١٨) (ضعيف الإسناد/مضطرب)

راغله نو هغوی زما په خبره اوریدلو باندې اوفرمائیل ﴿ أَطْعِمْ أَهْلَكَ مِنْ سَمِينِ حُمُرِكَ فَإِنَّمَا حَرَّمْتُهَا مِنْ أَجْلِ جَوَالِّ الْقَرْيَةِ ﴾ د خپل کور په خلقو باندې خپل څرب خر اوخروه څکه چه ما د مطلق حمر تحریم نه وو کړې بلکه د کوڅو د هغه حمر تحریم مې کړې وو کوم چه جلاله دی.

د دې حدیث جواب دا دې چه دا بالاتفاق ضعیف دې. قال الحافظ : اسناده ضعیف والمتن شاذ مخالف للاحادیث الصحیحة فلا اعتماد علیه.... الی اخر ما فی البذل من الکلام علی الحدیث.....

او په حیاة الحیوان کښې دی : ولنا ما روی عن جابر وغیره ان النبی ﷺ نهی عن لحوم الحمر الاهلیة واذن فی لحوم الخیل ﴾ متفق علیه..... وحدیث غالب رواه ابوداؤد، واتفق الحافظ علی تضعیفه ولو بلغ ابن عباس احادیث النهی الصحیحة الصریحة فی تحریمه لم یصر الی غیره اهـ د دې نه پس هغوی فرمائی چه که دا حدیث ثابت اومنلې شی نو بیا به دا په حالت د اضطرار باندې حمل کولې شی. بله دا چه دا واقعه د حال لا عموم لها د قبیل نه ده. اهـ

[٣٨٠٨]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَسَنٍ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، أَخْبَرَنِي رَجُلٌ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ، عَنْ أَنْ نَأْكُلَ لُحُومَ الْحُمُرِ، وَأَمَرَنَا أَنْ نَأْكُلَ لُحُومَ الْخَيْلِ"، قَالَ عَمْرٌو: فَأَخْبَرْتُ هَذَا الْخَبَرَ أَبَا الشَّعْثَاءِ، فَقَالَ: قَدْ كَانَ الْحَكَمُ الْغِفَارِيُّ فِينَا يَقُولُ هَذَا، وَأَبَى ذَلِكَ الْبَحْرُ يُرِيدُ ابْنَ عَبَّاسٍ.

دجابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده دغزوه خیبر په ورځ باندې دخرو دغوښې دخوړلونه او حکم ئې وکړو مونږ ته په خوړلو دغوښې داسونو، ددې حدیث عمرو بن دینار وائی چه داحدیث ما ابو الشعثاء ته بیان کړو هغه اووئیل چه په مونږ کښې به حکم غفاري هم په دې طریقه بیانولو لیکن دې علامه ابن عباس، ددینه انکار وکړو.

**قوله:**﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ أَنْ نَأْكُلَ لُحُومَ الْحُمُرِ وَأَمَرَنَا أَنْ نَأْكُلَ لُحُومَ الْخَيْلِ الخ ﴾

دا حدیث پورته د حیاة الحیوان په حواله تیر شو.

**مسلک د ابن عباس رضی الله عنهما :**

وړاندې دلته په روایت کښې دی ابو الشعثاء فرمائی چه دلته په بصره کښې حکم غفاری هم د دې قائل دی، یعنی د تحریم لحوم حمر.... ﴿ وابی ذلک البحر یرید ابن عباس رضی الله عنهما ﴾ یعنی دا بحر العلم یعنی ابن عباس رضی الله عنهما د تحریم حمر انکار کوی.

والحدیث اخرجه البخاری من حدیث عمرو بن دینار عن ابی الشعثاء ولیس عنده فیه عن رجل، قاله المنذری.

[٣٨١٠]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ عُبَيْدٍ، عَنِ ابْنِ مَعْقِلٍ، عَنْ رَجُلَيْنِ مِنْ مُزَيْنَةَ أَحَدُهُمَا عَنِ الْآخَرِ أَحَدُهُمَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ عُوَيْمٍ، وَالْآخَرُ غَالِبُ بْنُ الْأَبْجَرِ، قَالَ مِسْعَرٌ: أُرَى غَالِبًا

[1]: صحيح البخاري/ الصيد ٢٨ (٥٥٢٩)، انظر حديث رقم : ٣٧٨٨، (تحفة الأشراف: ٣٤٢٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٣/٤) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠١٨) (ضعيف الإسناد)

الَّذِي أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ.

دا روایت دتیرشوي روایت په شان دي-

[۳۸۱۱](1) حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ، "عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ، وَعَنِ الْجَلَّالَةِ عَنْ رُكُوبِهَا وَأَكْلِ لَحْمِهَا".

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ دغزوه خیبرپه ورځ باندې دکورنوخرو دخوړلونه منع فرمائیلې ده اودمردارخورڅاروي دسورلی کولو اوددې دغوښې خوړلونه.

د باب آخری حدیث ﴿ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ ﴾ چه په هغې کښې تحریم لحوم حمر ذکر دي. اخرجه النسائی قاله المنذری.

# بَاب فِي أَكْلِ الْجَرَادِ

## د ملخ د خوړلو بيان

[۳۸۱۲](2) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي أَوْفَى، وَسَأَلْتُهُ "عَنِ الْجَرَادِ؟، فَقَالَ: غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّ أَوْ سَبْعَ غَزَوَاتٍ، فَكُنَّا نَأْكُلُهُ مَعَهُ".

د ابویعفور نه روایت دي فرمائی چه دابن ابی اوفی نه مې اوریدلي دي کله چه ماورنه دملخ دخوړلو په باره کښې تپوس کړې وو هغه راته اوفرمائیل چه دنبی ﷺ سره په شپږو یا اوه غزاګانو کښې شریك شوې یم او مونږ به دا دهغه سره خوړل.

﴿ غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– سِتَّ أَوْ سَبْعَ غَزَوَاتٍ فَكُنَّا نَأْكُلُهُ مَعَهُ ﴾

عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ سره په شپږو یا اووه غزاواتو کښې شریک شوې یم نو مونږ به د رسول الله ﷺ سره دا خوړل یعنی ملخان، حافظ فرمائی چه کیدې شی د معیت تعلق صرف د غزوې سره وی، او دا هم احتمال دې چه د سفر سره د اکل جراد سره هم وی. او د احتمال ثانی تائید د ابونعیم د روایت نه کیږی د کوم نه چه دا زیادت معلومیږی ﴿ ویاکله معنا ﴾ (بذل) خو دلته په کتاب کښې د دې نه پس په روایت کښې راځی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿ لاَ آكُلُهُ وَلاَ أُحَرِّمُهُ ﴾ مګر دا چه داسې اوئیلې شی چه د ﴿ لا اكله ﴾ نه مقصود درغبت نفی مراد ده نه د نفس اکل، او یا دې دا اوئیلې شی کما قال القاری چه دا دویم روایت د سلمان والا د دې په سند کښې اختلاف دې چه بعضو دا مرسلا ذکر کړې دې لکه چه مصنف رحمه الله فرمائی: رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ عَنْ أَبِي الْعَوَّامِ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– لَمْ يَذْكُرْ سَلْمَانَ.

[1]: سنن النسائي/الضحايا ٤٢ (٤٤٥٢)، (تحفة الأشراف: ٨٧٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢١٩) (حسن صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الصيد ١٣ (٥٤٩٥)، صحيح مسلم/الصيد ٨ (١٩٥٢)، سنن الترمذي/الأطعمة ١٠ (١٨٢١)، سنن النسائي/الصيد ٣٧ (٤٣٦١)، (تحفة الأشراف: ٥١٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٥٣، ٣٥٧، ٣٨٠)، سنن الدارمي/الصيد ٥ (٢٠٥٣) (صحيح)

د دې حديث نه د جراد حلال والې ثابتيږي مطلقا ، پس د جمهورو مذهب هم دا دې چه جراد مطلقا حلال دې که د هغه مرګ په ذبح کولو سره اوشي يا ښکار کولو سره يا هغه طبعي مرګ باندې مړ شي. په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دې د هغوی مشهور قول او د امام احمد رحمه الله يو روايت دې چه که د يو عارض او سبب په وجه باندې مړ شي نو بيا خو حلال دې او که طبعي مرګ باندې مړ وی نو بيا حلال نه دې. (بذل عن النووي)

جراد د حلاليدو نه علاوه د سمک په شان بغير د ذبح کولو نه هم حلال دې لکه چه مشهور حديث دې ﴿ احلت لنا الميتتان السمک والجراد ﴾ والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[٣٨١٣](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفَرَجِ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ الزِّبْرِقَانِ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، عَنْ سَلْمَانَ، قَالَ: "سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجَرَادِ؟ فَقَالَ: أَكْثَرُ جُنُودِ اللَّهِ، لَا آكُلُهُ، وَلَا أُحَرِّمُهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْمُعْتَمِرُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمْ يَذْكُرْ سَلْمَانَ.

دسلمان نه روايت دې فرمائي چه درسول الله ﷺ نه دملخ دخوړلو په باره کښې تپوس اوکړې شو. نوويې فرمائيل دالله ډير لښکري دی، نه خوئې زه خورم اونه ئې حرام ګڼړم. امام ابوداؤد فرمائي چه دا روايت ابو المعتمر دخپل پلارنه په واسطه دعثمان سره دنبی علیه السلام نه ذکرکړې دې اودسلمان ذکرئې په کښې نه دې کړې.

قوله:﴿عَنْ سَلْمَانَ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– عَنِ الْجَرَادِ فَقَالَ: أَكْثَرُ جُنُودِ اللَّهِ لاَ آكُلُهُ وَلاَ أُحَرِّمُهُ ﴾

يعنی ملخان د الله پاک د مخلوقاتو په لښکر کښې يو ډير لوئې لښکر دې، يعنی په زمکه باندې اوسيدونکو نه په ظاهر کښې مراد د ﴿ من أكثر جنود الله ﴾ نه دا نه دې چه د ټولو نه زيات هم دا دی. خو دا زه خو خپله نه خورم او د بل دپاره ئې حراموم هم نه.

ذكر انه روی مرسلا... واخرجه ابن ماجه مسندا، قاله المنذری.

[٣٨١٤](٢)حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَعَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَا: حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ يَحْيَى بْنِ عُمَارَةَ، عَنْ أَبِي الْعَوَّامِ الْجَزَّارِ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، عَنْ سَلْمَانَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ، فَقَالَ مِثْلَهُ، فَقَالَ: أَكْثَرُ جُنْدِ اللَّهِ، قَالَ عَلِيٌّ: اسْمُهُ فَائِدٌ يَعْنِي أَبَا الْعَوَّامِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي الْعَوَّامِ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَذْكُرْ سَلْمَانَ.

دسلمان نه روايت دې فرمائي چه درسول الله و نه دملخ دخوړلو په باره کښې تپوس اوکړې شو نوداسې ئې اوفرمائيل، علی بن عبدالله وئيلی دی چه دابوالعوام نوم فائد دې. امام ابوداؤد فرمائي دا روايت حماد په واسطه دابوالعوام سره دسلمان دذکرنه بغير دابوعثمان نه ذکرکړې دې اوهغه دنبی علیه السلام نه بيان کړې دې.

(١): سنن ابن ماجه/الصيد ٩ (٣٢١٩)، (تحفة الأشراف: ٤٤٩٥) (ضعيف)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٤٩٥) (ضعيف)

# بَابٌ فِي أَكْلِ الطَّافِي مِنَ السَّمَكِ

## دهغه کبانو (مهيانو) د خوړلو بيان کوم چه د اوبو په سر مړه روان وی

يعنی هغه مهيان کوم چه په اوبو کښې په طبعی مرګ باندې مړهٔ شی او بيا پورته ګرزی.

[٣٨١٥] () حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ الطَّائِفِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَلْقَى الْبَحْرُ أَوْ جَزَرَ عَنْهُ فَكُلُوهُ، وَمَا مَاتَ فِيهِ وَطَفَا فَلَا تَأْكُلُوهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَأَيُّوبُ، وَحَمَّادٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ أَوْقَفُوهُ عَلَى جَابِرٍ، وَقَدْ أُسْنِدَ هَذَا الْحَدِيثُ أَيْضًا مِنْ وَجْهٍ ضَعِيفٍ عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی کوم مهې چه درياب ئې راوغورځوي يا ددرياب اوبه اودريږي نوداخورئ اوکوم مهې چه دمړکيدونه پس داوبو په سر روان وي نودامه خوری، امام ابوداؤد فرمائی دا روايت سفيان ثوري دايوب نه اوهغه دحماد نه اوهغه دجابرنه موقوف نقل کړې دې، اودا حديث سنداهم دابن ابی زئب نه اوهغه دابن ابی زبير په واسطه بيان کړې دې ليکن داواسطه ضعيفه ده.

**قوله:** ﴿ مَا أَلْقَى الْبَحْرُ أَوْ جَزَرَ عَنْهُ فَكُلُوهُ وَمَا مَاتَ فِيهِ وَطَفَا فَلَا تَأْكُلُوهُ ﴾

يعنی کوم مهې چه د درياب چپه بهر راوغورځوی يا د مهی په درياب کښې د کيدو سره اوبه د هغې نه لرې شی او بيا هغه په خشکئ مړ شی نو داسې قسم مهيان خو خورئ او کوم چه په دې کښې طبعی مرګ سره مړ کيدو باندې پورته ګرزی هغه مه خورئ.

د طافی خوراک د احنافو په نزد مکروه دې او د باقی ائمه ثلاثه او د اهل ظواهر په نزد حلال بغير د کراهت نه دې، امام نووی رحمه الله فرمائی چه دا حديث ضعيف دې، مصنف رحمه الله هم د دې په سند کښې اختلاف بيان کړې دې چه يو جماعت دا حديث د ابوالزبير نه موقوفا علی جابر روايت کړې دې. يعنی د دې حديث موقوفا روايت کيدل زيات صحيح دی په نسبت د مرفوع. او نور کلام د فريقينو په دلائلو باندې په بذل کښې دې چه څوک کتل غواړی او دې ګوری. او په حاشيه د بذل کښې دی ﴿ وروی ذلک ای الکراهة عن جابر وابن عباس رضي الله عنهم، ولا يضر من اوقفه فان الموقوف فی مثل هذا کالمرفوع کما معروف کما فی المرقاة وفی الهداية عن جماعة من الصحابة مثل مذهبنا وذکر الزيلعی الآثار وکذا فی الدر المنثور ولخصها فی "التعليق الممجد" وروی عن ابی بکر رضي الله عنه الطافی حلال علقه البخاری فی صحيحه اهـ ﴾ والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

(): سنن ابن ماجه/الصيد ١٨ (٣٢٤٧)، (تحفة الأشراف: ٢٦٥٧) (ضعيف)

# بَابٌ فِي الْمُضْطَرِّ إِلَى الْمَيْتَةِ[1]

## د مردارې خوړلو ته د مجبوره کیدو بیان

[٣٨١٦] ([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، أَنَّ رَجُلًا نَزَلَ الْحَرَّةَ وَمَعَهُ أَهْلُهُ وَوَلَدُهُ، فَقَالَ رَجُلٌ: إِنَّ نَاقَةً لِي ضَلَّتْ فَإِنْ وَجَدْتَهَا فَأَمْسِكْهَا، فَوَجَدَهَا فَلَمْ يَجِدْ صَاحِبَهَا، فَمَرِضَتْ، فَقَالَتِ امْرَأَتُهُ: انْحَرْهَا، فَأَبَى، فَنَفَقَتْ، فَقَالَتْ: اسْلُخْهَا حَتَّى نُقَدِّدَ شَحْمَهَا وَلَحْمَهَا وَنَأْكُلَهُ، فَقَالَ: حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَاهُ، فَسَأَلَهُ، فَقَالَ: "هَلْ عِنْدَكَ غِنًى يُغْنِيكَ؟"، قَالَ: لَا، قَالَ: فَكُلُوهَا، قَالَ: فَجَاءَ صَاحِبُهَا فَأَخْبَرَهُ الْخَبَرَ، فَقَالَ: هَلَّا كُنْتَ نَحَرْتَهَا، قَالَ: اسْتَحْيَيْتُ مِنْكَ".

دجابر بن سمره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوکس دمدینې سره نزدې حره مقام ته راغې اودده سره دده بال بچ هم وو یوکس ورته اووئیل زما اوښه ورکه شوې ده که چرې تا اوموندله نوونې نیسه نودې کس ته دغه اوښه ملاو شوه لیکن داوښې مالك ملاو نه شو بیاهغه اوښه بیماره شوه نوددې کس ښځې اووئیل چه دا ذبح کړه لیکن ده دښځې خبره ونه منله او اوښه مرداره شوه په دې وخت کښې ددې کس ښځې اووئیل چه ددې اوښې نه څرمن اوباسه ددې دپاره چه مونږ ددې وازده استعمال کړو اوغوښه ئې وچه کړو دې کس اووئیل زه به دنبی علیه السلام نه تپوس اوکړم، هغه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضرشو اودمسئلې تپوس ئې وکړو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل ایاستا سره دومره څه شته چه ته پرې ددینه بچ شې نوده ورته اووئیل چه نشته نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل بیادغه اوښه اوخوره، راوی وائی چه په دې دوران کښې داوښې مالك راورسیدو او دغه ښځې خاوند ورته ټوله واقعه بیان کړه مالك ورته اووئیل تاسوولې نه ده ذبح کړې؟ ده اووئیل چه ماته ستانه حیاء راغله.

### مضمون الحدیث :

قوله: ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ أَنَّ رَجُلاً نَزَلَ الْحَرَّةَ وَمَعَهُ أَهْلُهُ وَوَلَدُهُ فَقَالَ رَجُلٌ إِنَّ نَاقَةً لِى ضَلَّتْ فَإِنْ وَجَدْتَهَا فَأَمْسِكْهَا الخ ﴾

جابر بن سمره رضي الله عنه فرمائی چه یو مسافر سړې مدینې طیبې ته راتلو سره په مقام حره کښې دیره شو. د هغه سره د هغه اهل وعیال هم وو نو یو مقامی سړی هغه ته اووې چه زما یاو اوښه ورکه شوې ده که تاته ملاؤ شی نو هغه اونیسه، پس هغه ته یو اوښه ملاؤ شوه هغه اونیوله

---

[1]) په مسئله د مضطر کښې مباحث سبعه: په حاشیه د بذل کښې دلته اووه بحثونه او مسائل ذکر دی کوم چه بعینه دلته نقل کولې شی...... فیه سبعة ابحاث في الاوجز: الاول في حقیقته وهي عند الجمهور ان یصل به الجوع الي الهلاك او الي مرض یفضي الي الهلاك وفي حکمه الاکراه.... الثاني في مقدار الاکل وهو سد الرمق عندنا وهو المشهور عند الشافعي واحمد وروایة مرجوحة عن مالك، والراجح المعتمد عند مالك هو غیر المشهور عنهما یجوز له الشبع.... والثالث هل یجب الاکل او یباح؟ ارجح روایتي احمد واصح وجهي الشافعي الوجوب، وبه قال مالك والحنفیة الا ابایوسف فقال بالاباحة وهو احد روایتي الشافعي واحمد.... والرابع السفر والحضر سواء عند الجمهور وروایة عن احمد تختص بالسفر...... والخامس لا یجوز للعاص في السفر عند الثلاثة خلافا للحنفیة (فعندهم الرخصة عامة)...... والسادس یجوز له التزدد منه في اصح روایتي احمد وبه قال الشافعي ومالك والاخري لاحمد لا یجوز.... والسابع الخمر کالمیتة عندنا في هذه المسئلة ولا یجوز عند الشافعي ومالك اهـ

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢١٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٧/٥، ٨٨، ٨٩، ٩٧، ١٠٤) (حسن الإسناد)

خو هغه مالک ئې ملاؤ نه شو، اتفاقی هغه اوښه بیماره شوه نو د دې پردی مسافر سړې ښځې اووې دا ذبح کړه، هغه او نه منله تر دې چه هغه اوښه مړه شوه، بیا د هغه ښځې اووې چه اوس د دې څرمن اوباسه چه مونږ د دې غوښه او وازګه پرې کړو او اوئې خورو (چه هغوی سره د خوراک دپاره هیڅ نه وو) هغه سړی اووې چه تر څو پورې زه د رسول الله ﷺ نه معلومه نه کړم داسې نه شم کولې. پس هغه د رسول الله ﷺ نه دې باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی ترې نه تپوس اوفرمائیلو چه تاسره د دې نه علاوه بل څیز د خوراک شته کوم چه تا د دې مردارې نه مستغنی کړی؟ هغه عرض اوکړو نه جی داسې هیڅ څیز نشته، په دې اوریدو باندې رسول الله ﷺ هغه ته د خوراک اجازت ورکړو، د دې نه پس چه کله د هغې اوښې مالک راورسیدلو او دې سړی ورته د اوښې حال بیان کړو، په دې باندې د هغې مالک اووې چه تا د مرګ نه مخکښې هغه ذبح ولې نه کړه؟ هغه اووې زه ستانه شرمیدم.....

[٣٨١٧](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ وَهْبِ بْنِ عُقْبَةَ الْعَامِرِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ، عَنِ الْفُجَيْعِ الْعَامِرِيِّ، أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مَا يَحِلُّ لَنَا مِنَ الْمَيْتَةِ؟ قَالَ: مَا طَعَامُكُمْ؟ قُلْنَا: نَغْتَبِقُ وَنَصْطَبِحُ، قَالَ أَبُو نُعَيْمٍ: فَسَّرَهُ لِي عُقْبَةُ قَدَحٌ غُدْوَةً، وَقَدَحٌ عَشِيَّةً، قَالَ: ذَاكَ وَأَبِي الْجُوعُ، فَأَحَلَّ لَهُمُ الْمَيْتَةَ عَلَى هَذِهِ الْحَالِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: الْغَبُوقُ مِنْ آخِرِ النَّهَارِ، وَالصَّبُوحُ مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ.

د فجیع العامري نه روایت دې فرمائی چه زه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم اوعرض مې وکړو اې دالله رسوله زمونږ دپاره په کوم حال کښې مرداره خوړل جائزدي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل ستاسو خوراك څه شي دې؟ ده ورته اووئیل دماښام په وخت کښې دشودو یوه پیاله اودسحر په وخت کښې دشودویوه پیاله، ابونعیم وائی عقبه ماته ددې حدیث داسې تشریح کړې ده چه ددینه مراد دشودو یوه پیاله سحر اویوه ماښام څکل په دې خبره دې زماپه خپل پلارقسم وي چه زه وګه کرځم نوپه دې بناباندې نبی ﷺ ددغه کس دپاره مرداره جائز اوګرځوله.

## شرح الحدیث:

**قوله:**﴿ عَنِ الْفُجَيْعِ الْعَامِرِيِّ أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ مَا يَحِلُّ لَنَا مِنَ الْمَيْتَةِ؟ الخ ﴾ تحل مجرد او مزید دواړه کیدې شی، دا استفهام دې یعنی ﴿ اما تحل لنا المیتة؟ ﴾ او د مزید په صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه آیا تاسو میتة زمونږ دپاره نه جائز کوئ، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو خوراک څه دې، او تاسو ته د خوراک دپاره څه ملاویږی، ﴿ قُلْنَا نَغْتَبِقُ وَنَصْطَبِحُ ﴾ هغه اووې چه زمونږ خوراک د سحر او ماښام یو یو پیاله ده. صبوح وائی د سحر خوراک ته غبوق د ماښام خوراک ته. قال ذلک وابی الجوع... رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زما دې په پلار قسم وی دا خو تږوله لوږه ده او رسول الله ﷺ د هغوی دپاره د مردارې خوړل جائز کړل.

د اضطرار په وخت د مضطر دپاره د اکل میتة اجازت د احنافو په نزد (او هم دا قول راجح د حنابله او د شوافعو دې) په اندازه د سدرمق دې، په دې کښې د امام مالک رحمه الله

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٢١) (ضعيف الإسناد)

اختلاف دې ﴿ فانه اجاز للمضطر الشبع وهو رواية عن الشافعي واحمد ﴾
د دې حديث نه په ظاهر كښې د مالكيانو تائيد كيږي، په بذل كښې د ګنګوهی د تقرير نه نقل كړې دی چه كيدې شی مصنف رحمه الله دا دواړه احاديث د خپل مذهب د ثبوت دپاره راوړې وی چه اضطرار د هلاكت په ويره باندې موقوف نه دې ځكه چه د رومبی روايت نه د مطلق اكل اجازت ثابتيږی او هم دغه شان د دويم روايت نه ثابتيږی چه د حل ميتة بنياد د هلاكت په ويره باندې نه دې ځكه چه يو پياله سحر او يو پياله ماښام سړی ته ملاويږی نو په دې صورت كښې د هلاكت ويره چرته وی؟ خو د اول روايت جواب دا دې په كوم كښې چه مطلق اكل ذكر دې. چه دا مطلق به د آيت په ذريعه مقيد كولې شی چه په هغې كښې د مضطر دپاره اباحت د ميتة ذكر دې ځكه چه سړې په اندازه د رسد رمق د خوراك نه پس مضطر چرته پاتې كيږی چه د هغه دپاره اكل ميتة حلال شی، او د روايت ثانيه جواب دا دې ﴿ قدح غدوة وقدح عشية ﴾ مطلب به دا اخستلې شی چه هر پياله د هر سړی دپاره مراد نه ده بلكه د پوره كور والو دپاره، ځكه چه يو يو پياله سحر او ماښام هر سړی ته ملاؤ شی نو په دې صورت كښې خوراک ته حاجت نه پاتې كيږی پاتې لا حالت اضطرار.

**قوله:** په دې حديث كښې دا دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿ ذلک وابی الجوع ﴾ يعنی رسول الله ﷺ د خپل پلار قسم اوخوړلو، دغه شان د حضور ﷺ قسم د كتاب الصلوة په اول كښې تير شوې دې. ﴿ افلح وابيه .ان صدق ﴾ د دې جواب هم هلته ذكر شوې دې، او كوم چه د كتاب الايمان والنذور په يو حديث كښې د حضور ﷺ دا قسم تير شوې دې. ﴿لعمر الهک ﴾ په هغې كښې خو هيڅ اشكال نشته ځكه چه د عمر اضافت په دې كښې د اله طرف ته شوې دې.

## بَاب فِي الْجَمْعِ بَيْنَ لَوْنَيْنِ مِنَ الطَّعَامِ[1]

### باب: په يو وخت كښې د مختلف قسمه خوراكونو خوړلو بيان

[٣٨١٨][2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ، أَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَدِدْتُ أَنَّ عِنْدِي خُبْزَةً بَيْضَاءَ مِنْ بُرَّةٍ سَمْرَاءَ مُلَبَّقَةً بِسَمْنٍ وَلَبَنٍ، فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ، فَاتَّخَذَهُ فَجَاءَ بِهِ، فَقَالَ: فِي أَيِّ شَيْءٍ كَانَ هَذَا؟ قَالَ: فِي عُكَّةِ ضَبٍّ، قَالَ: ارْفَعْهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَأَيُّوبُ لَيْسَ هُوَ السَّخْتِيَانِيَّ.

د عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ ﷺ فرمائيلی دی د غنمو

[1]) په حاشيه د بذل كښې دی : هم دغه شان ترجمه امام بخاری هم قائم كړې ده، په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه شايد مصنف اشاره كړې ده د حضرت انس رضی الله عنه هغه ضعيف حديث طرف ته چه په هغې كښې دا دی چه يوځل د نبی كريم ﷺ په خدمت كښې يو پليټ راوړلې شو چه په هغې كښې پی او شهد وو، نو په دې باندې نبی كريم ﷺ اوفرمائيل: (دمان فی اناء، لا آكله ولا احرمه) چه په يو لوخی كښې دوه قسمه سالن (اينكولې)، زه دا نه خورم او بل چا دپاره ئې حرام كوم هم نه. اخرجه الطبراني وفيه راو مجهول.

[2]): سنن ابن ماجه/الأطعمة ٤٧ (٣٣٤١)، (تحفة الأشراف: ٧٥٥١) (ضعيف)

دوړو سپینه ډوډئ په غوړو کښې پخه کړې شوې زما دیره خوښه وې، په دې وخت کښې یوکس پاڅیدو اودا ډوډئ ئې دنبی ﷺ دپاره تیاره کړه او پیش ئې کړه نبی کریم ﷺ ورنه تپوس وکړوچه غوړې په څنګه لوښې کښې پراته وو؟ عرض وکړې شو دخادمئ دڅرمنې په مشکیزه کښې، نبی ﷺ اوفرمائیل دا ډوډئ پورته کړه.

امام بخاری رحمه الله هم قائم کړې ده په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه کیدې شی مصنف رحمه الله اشاره کړې ده د انس رضی الله عنه د حدیث ضعف ته چه په هغې کښې دی چه یو کرت د رسول الله ﷺ په خدمت کښې یو کاسه حاضره کړې شوه چه په هغې کښې پئ او شهد وو نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ادمان فی اناء لا آکله ولا احرمه.... په یو لوښی کښې دوه قسم خوراک دا زه نه خورم او د بل دپاره ئې نه حراموم. اخرجه الطبرانی وفیه راو مجهول. یعنی په یو وخت باندې دوه قسمه خوراک کول، یعنی د دې جواز، لکه چه د حدیث الباب نه معلومیږی.

**مضمون الحدیث:**

قوله: ﴿ وَدِدْتُ أَنَّ عِنْدِى خُبْزَةً بَيْضَاءَ مِنْ بُرَّةٍ سَمْرَاءَ مُلَبَّقَةً بِسَمْنٍ وَلَبَنٍ ﴾

سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ یو ورځ دا خواهش ښکاره کړو چه که ما سره د سپینو اوربشو ډوډئ وې په پیواو غوړو کښې ګډه شوې (نو څومره به ښه وې) په دې باندې یو صحابی رضی الله عنه اودریدلو او هم د دې قسم یو ډوډئ ئې راوړله. رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا کوم غوړی چه په دې پورې دی دا په څه کښې وو؟ ﴿ قال فی عکة ضب ﴾ هغه جواب ورکړو چه د ضب په څرمن کښې..... رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا ډوډئ زما د مخې نه اوچته کړئ او هغه ئې نه او نه خوړله.

په بذل کښې د حضرت ګنګوهی رحمه الله د تقریر نه نقل کړې دی چه د دې حدیث نه د ضب عدم جواز په فهم کښې راځی ځکه چه که هغه حلال وې نو رسول الله ﷺ به د هغه خوراک د خوړلو نه انکار نه کولو. او که څوک داسې اوائی د شوافعو د طرف نه چه هغوی داسې د طبعی تنفر د وجې نه اوکړل نه د عدم حل د ضب د وجې نه... نو د هغه جواب دا دې چه دا توجیه صحیح نه ده ځکه چه د ضب د څرمنې هیڅ اثر په غوړو کښې نه وو. (والحدیث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری)

## بَابٌ فِي أَكْلِ الْجُبْنِ

### د پنیر خوړلو بیان

په دې کښې دوه لغته دی یو بضم الجیم و سکون الباء، او دویم بضم الجیم والباء وتشدید النون، په وزن د عتل (بضمتین وتشدید مع التنوین) د خوراک معروف څیز دې چه هغې ته پنیر وائی.

[٣٨١٩]([1])حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَنْصُورٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجُبْنَةٍ فِي تَبُوكَ، فَدَعَا بِسِكِّينٍ فَسَمَّى وَقَطَعَ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه په غزوه تبوك کښې نبی عليه السلام ته د پنيريوه توته پيش کړې شوه نوچاړه ئې را اوغوښتله اوبسم الله ئې ووئيله او دائې پرې کړه.

په حديث الباب کښې دی چه کله رسول الله ﷺ په غزوه تبوک کښې وو نو د پنير يوه ټکړه راوړلې شوه. رسول الله ﷺ چاړه را اوغوښتله اوهغه ئې بسم الله لوستلو سره کټ کړه.

## بَابٌ فِي الْخَلِّ

### د سرکې خوړلو بيان

[٣٨٢٠]([2])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ".

**ترجمه:** دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی کريم ﷺ فرمائيلي دي: چه سرکه ډيره ښه ترکاري ده.

**قوله:** ﴿ نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ ﴾ رسول الله ﷺ د سرکې تعريف اوفرمائيلو چه هغه ښومره ښه ترکاری ده په دې اعتبار سره چه ددې په جوړولو کښې او حاصلولو کښې زيات مشقت نشته او نه پکښې زيات خرچ لهذا قناعت ته ډير نزدې دې. (بذل)

### په شرح د حديث کښې د شارحينو اختلاف:

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه په دې کښې مدح ده په خوراک څکاک کښې د اقتصاد اختيارولو او نفس لره د خوندور خوراکونو نه د منع کولو په دې باندې امام نووی رحمه الله فرمائيلي دی چه د اقتصاد فی المآکل والمشارب ترغيب خو په نورو روايتونو او قواعدو سره ثابت دې، دلته خومقصود د رسول الله ﷺ فی حد ذاته د سرکې تعريف کول دی، او حضرت په بذل کښې دا فرمائيلي دی چه د خطابی غرض د مدح خل نفی نه ده بلکه دا ده چه د اقتصاد د مدح په ضمن کښې د سرکې هم تعريف کړې شوې دې اهـ..... خو ظاهر د کلام د خطابی نه هم دا ده چه د هغوی په نزد په دې حديث سره مقصود مدح د خل نه ده بلکه د اقتصاد ترغيب دې هم په دې وجه امام نووی رحمه الله د هغې په سختئ سره انکار کړې دې. زما په نزد په دې کښې د امام نووی رحمه الله رائې ډيره غوره ده د خطابی د رائې نه. ځکه چه دا حديث مختصر دې او پوره حديث هغه دې کوم چه په مسلم شريف کښې راغلې دې: ﴿ يَقُولُ جابر رضى الله تعالى عنه أَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِيَدِى ذَاتَ يَوْمٍ إِلَى مَنْزِلِهِ فَأَخْرَجَ إِلَيْهِ فِلَقًا مِنْ خُبْزٍ فَقَالَ « مَا مِنْ أُدُمٍ ». فَقَالُوا لاَ إِلاَّ شَىْءٌ مِنْ خَلٍّ. قَالَ « فَإِنَّ الْخَلَّ نِعْمَ الأُدُمُ ». قَالَ جَابِرٌ فَمَا زِلْتُ أُحِبُّ الْخَلَّ مُنْذُ سَمِعْتُهَا مِنْ نَبِىِّ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم-. وَقَالَ طَلْحَةُ مَا زِلْتُ

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧١١٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الأشربة ٤٠ (٣٠٥٢)، ٢٠ (٣٨٢٧) (حسن الإسناد)

[2]: سنن الترمذي/الأطعمة ٣٥ (١٨٤٢)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٣٣ (٣٣١٧)، (تحفة الأشراف: ٢٥٧٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الأشربة ٤٠ (٣٠٥٢)، سنن النسائي/الأيمان ٢٠ (٣٨٢٧) مسند احمد (٣/٣٠٤، ٣٧١، ٣٨٩، ٣٩٠)، سنن الدارمي/الأطعمة ١٨ (٢٠٩٢) (صحيح)

أَحِبُّ الْخَلَّ مُنْذُ سَمِعْتُهَا مِنْ جَابِرٍ﴾ د دې حدیث نه هم دا معلومیږي چه د رسول الله ﷺ اصل مقصود مدح د خل ده اگر چه د دې په ضمن کښې اقتصاد هم موندلې شي. والحديث اخرجه مسلم والنسائي، قاله المنذري.

[۳۸۲۱](1) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْمُثَنَّى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ".

دجابر ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي: چه سرکه ښه ترکاري ده.

## بَابٌ فِي أَكْلِ الثُّومِ

### داوږې خوړلو بیان

[۳۸۲۲](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، حَدَّثَنِي عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ، أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَكَلَ ثُومًا أَوْ بَصَلًا، فَلْيَعْتَزِلْنَا أَوْ لِيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا، وَلْيَقْعُدْ فِي بَيْتِهِ، وَإِنَّهُ أُتِيَ بِبَدْرٍ فِيهِ خَضِرَاتٌ مِنَ الْبُقُولِ، فَوَجَدَ لَهَا رِيحًا، فَسَأَلَ فَأُخْبِرَ بِمَا فِيهَا مِنَ الْبُقُولِ، فَقَالَ: قَرِّبُوهَا إِلَى بَعْضِ أَصْحَابِهِ كَانَ مَعَهُ، فَلَمَّا رَآهُ كَرِهَ أَكْلَهَا، قَالَ: كُلْ فَإِنِّي أُنَاجِي مَنْ لَا تُنَاجِي"، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ بِبَدْرٍ: فَسَّرَهُ ابْنُ وَهْبٍ طَبَقٌ.

دجابر بن عبد الله ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي: چاچه اوګه یا پیاز خوړلي وي هغه دې مونږ ته نه رانزدې کیږي، یاداچه زمونږ مسجد ته دې نه راځي، یاداچه په کورکښې دې کیني، یوځل نبی کریم ﷺ ته یولوښي راوړي شوچه سبزي ساګ وغیره پکښې پراته وونو نبی ﷺ دهغې نه څه بوي محسوس کړونوتپوس ئې وکړو بیا ورته ددې تفصیل بیان کړي شونبی ﷺ اوفرمائیل دا فلانی صحابي ته ورنزدې کړئ نوهغه هم خوښ نکړل نونبی ﷺ اوفرمائیل خوره زه دهغه ذات سره جرګه کوم دکوم سره چه تاسونه کوئ، احمد بن صالح وائي چه ابن وهب دبدر تشریح په لوښي سره کړي ده.

**قوله:** ﴿ مَنْ أَكَلَ ثُومًا أَوْ بَصَلًا فَلْيَعْتَزِلْنَا – أَوْ لِيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا – الخ﴾

د جابر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړي اوګه یا پیاز خوړلي وی، یعنی کچه چه پخ شوي نه وی. نو هغه دې زمونږ مجلس ته نه راځي، یعنی د دې دواړو ځیزونو د خوراک نه پس، او یا ئې دا اوفرمائیل چه زمونږ مسجد ته دې نه راځي او هغه له پکاردی چه په خپل کور کښې کیني. یعنی تر څو چه د هغې بدبوئی ختم شوې نه وی لکه چه په بل حدیث کښې دی: ﴿ حتى يذهب منه ريحه ﴾.

وړاندې په دې روایت کښې دی چه یو کرت رسول الله ﷺ ته یو طبق راوړلې شو چه په هغې کښې مختلف قسم سبزیانې وې، په رسول الله ﷺ باندې چه کله د هغې بوئی اولګیدو نو هغوی تپوس اوکړو چه دا څه دی؟ چه کله هغوی ته اوئیلې شو چه په دې کښې مختلف

(1): صحيح مسلم/الأطعمة ٣٠ (٢٠٥٢)، سنن النسائي/الأيمان ٢٠ (٣٨٢٧)، (تحفة الأشراف: ٢٣٣٨) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/الأذان ١٦٠ (٨٥٤)، الأطعمة ٤٩ (ز٥٤٥)، الاعتصام ٢٤ (٧٣٥٩)، صحيح مسلم/المساجد ١٧ (٥٦٤)، (تحفة الأشراف: ٢٤٨٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأطعمة ١٣ (١٨٠٦)، سنن النسائي/المساجد ١٦ (٧٠٨)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٥٩ (٣٣٦٣)، مسند احمد (٣/ ٣٧٤، ٣٨٧، ٤٠٠) (صحيح)

سبزیاني دی نو هغوی بعضو حاضرینو ته اوفرمائیل چه دا فلانی صحابی ته اولیږئ کوم چه هغوی سره وو (خو هغه صحابی د هغې په خوراک کښې تامل اوکړو د رسول اللهﷺ د نه خوراک په وجه باندې) پس چه کله رسول اللهﷺ اولیدل چه هغه صحابی ددې خوراک نه خوښوی نو رسول اللهﷺ ورته اوفرمائیل ته ئې اوخوره. او رسول اللهﷺ خپله د نه خوراک وجه دا بیان اوفرمائیله: ﴿ فاني اناجي من لا تناجي ﴾ یعنی زما د نه خوراک وجه خو دا ده چه ما سره ملائک خبرې کوی او هغوی د لطافت د انتهاء د وجې نه ادنی بوئی هم نه برداشت کوی. په دې حدیث کښې د بعض اصحاب نه مراد ابوایوب انصاریؓ دې لکه چه د صحیح مسلم او ترمذی په روایت کښې په تفصیل سره راغلې دی د هجرت په ابتداء کښې چه دچا کور کښې حضورﷺ قیام اوفرمائیلو. (کذا قال الحافظ فی الفتح، وهکذا فی البذل)

## د صحابی حدیث لره روایت بالمعنی کول:

د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چه ډیر کرته به صحابه کرامونؓ د رسول اللهﷺ د کلام روایت بالمعنی هم کولو. په دې وجه د رسول اللهﷺ الفاظ دا خو نه شی کیدې: ﴿قربوا الی بعض اصحابه ﴾ ښکاره خبره ده چه رسول اللهﷺ به فرمائیلی وی چه ﴿ قربوها الی فلان ﴾ د هغه صحابی نوم اخستلو سره، خو دلته راوی په روایت کښې داسې نقل اوکړو ﴿ الی بعض اصحابه ﴾ دا تعبیر د راوی خپل دې. (افاده الکرمانی ونقله فی العون)

وړاندې په روایت کښې دی چه راوی د "بدر" تفسیر په "طبق" سره اوکړو په ظاهر کښې طبق لره د بدر سره په استدارة کښې تشبیه ورکولو سره بدر ونیلې شی، په حاشیه د بذل کښې حضرت شیخ یو بله خبره لیکلې ده هغه دا چه ﴿ فلیعتزل مسجدنا ﴾ دا مستقل حدیث دې دا واقعه په غزوه خیبر کښې پیښه شوې وه. او د حدیث په جزء ثانی کښې یعنی ﴿ وانه اتی ببدر فیه خضرات ﴾ الی اخره... دا د هجرت د ابتداء واقعه ده چه کله رسول اللهﷺ د ابو ایوب انصاریؓ په کور کښې دیره وو.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری....

[۳۸۲۳](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، أَنَّ بَكْرَ بْنَ سَوَادَةَ حَدَّثَهُ، أَنَّ أَبَا النَّجِيبِ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعْدٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ ذُكِرَ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الثُّومُ وَالْبَصَلُ، وَقِيلَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَأَشَدُّ ذَلِكَ كُلِّهِ الثُّومُ أَفَتُحَرِّمُهُ؟، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُوهُ، وَمَنْ أَكَلَهُ مِنْكُمْ فَلَا يَقْرَبْ هَذَا الْمَسْجِدَ حَتَّى يَذْهَبَ رِيحُهُ مِنْهُ".

د ابوسعید خدری ؓ نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ په وړاندې یوځل دپیازو او اوګې تذکره اوکړې شوه، عرض اوکړې شو چه اې دالله رسوله په دې ټولو کښې داوږې بوی ډیر تیزوی ایا حراموې ئې ؟نبی اوفرمائیل خورئ ئې لیکن چاچه وخوړله نوچه ترڅوئې بوی ختم شوې نه وې مسجدته دې نه راځی.

د دې نه پس په حدیث د ابوسعیدؓ کښې دی ﴿ قیل یا رسول اللهﷺ واشد ذلک کله

۱): (تحفة الأشراف: ۴۴۳۸)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/المساجد ۱۷ (۵۶۶)، مسند احمد (۴/۲۵۲) (صحیح)

الثوم اتحرمه؟ ﴾ په دې باندې په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی قال النووی : اختلف اصحابنا هل كانت هذه الاشياء محرمة عليه ﷺ، الاصح من انه مكروه تنزيها اهـ ﴾ او علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د ابن حزم نه علاوه د بعض اهل ظاهر په نزد دا څیزونه حرام دی ﴿ لافضائها الى ترك الجماعة وهى عندهم فرض الخ ﴾

## د جماعت د مانځه په نه فرض کیدو باندې استدلال :

او په فتح الباری ص ۳۹۹ ج ۲ کښې دلته داسې لیکلې دی چه د احادیث الباب نه په دې خبره استدلال کړې شوې دې چه د جماعت مونځ فرض عین نه دې ځکه چه د دې څیزونو خوراک جائز دې او د دې د لوازمو نه ترک د جماعت دې او د جائز لازم جائز وی.

[٣٨٢٤](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ أَظُنُّهُ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ تَفَلَ تُجَاهَ الْقِبْلَةِ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تَفْلُهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ، وَمَنْ أَكَلَ مِنْ هَذِهِ الْبَقْلَةِ الْخَبِيثَةِ فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا ثَلَاثًا".

زر بن حبیش دحذیفه نه روایت کوی فرمائی چه زما خیال دې چه حذیفه دا روایت دنبی ﷺ نه بیان کړې وو چه فرمائیلې ئې وو:څوك چه قبلې ته مخامخ لاړې (توکانړې توکړې نودقیامت په ورځ به په داسې حال کښې راشې چه دده دغه لاړې به دده ددواړه سترګو په مینځ پورې انختلې وې، اوڅوك چه دا بدبوداره سبزې (یعنی اومه اوږه) اوخورې نو زمونږ مسجدته دې نه راځی، نبی ﷺ داجمله درې ځله تکرارکړه.

قوله:﴿ عَنْ حُذَيْفَةَ أَظُنُّهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « مَنْ تَفَلَ تِجَاهَ الْقِبْلَةِ .....الخ﴾ کوم سړې چه د قبلې طرف ته تهوکې نو هغه سړې به راشی د قیامت په ورځ باندې چه هغه لاړې به د هغه د دواړو سترګو ترمینځه یعنی په تندی باندې وی، او رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې دا خبیثه سبزی اوخوری نو زمونږ مسجد ته دې نزدې نه راځی مراد ترې نه مساجد المسلمين دی چه په هغې کښې ټول مسجدونه شامل شو لکه چه په بل روایت کښې دی: ﴿ فلا يقربن المساجد ﴾ او د ﴿ ثلا ثا ﴾ مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ دا خبره درې کرته اوفرمائیله او په فتح الباری کښې نقل کړې دی چه محدث ابن خزیمه په دې حدیث باندې دا باب تړلې دې : ﴿ توقيف النهى عن اتيان الجماعة لآكلى الثوم ﴾ چه د هغې تقاضا دا ده چه هغوی د ﴿ ثلاثا ﴾ معنی ﴿ ثلاث ليال ﴾ اخستلې ده. خو دا صحیح نه ده بلکه ظاهره دا ده چه د ثلاثا تعلق د قول سره دې ﴿ اى قال ذلك ثلاثا ﴾ ځکه چه علت د منع وجود د رائحه دې او ښکاره خبره ده چه د دې سبزیانو بوئی تر درې ورځو پورې باقی نه وی، او په بذل کښې د حضرت ګنګوهی رحمه الله د تقریر نه نقل کړې دی چه د دې حدیث نه معلومه شوه چه د خبیث اطلاق همیشه په حرام او نجس باندې نه کیږی بلکه د دې اطلاق کله په غیر نظیف او مکروه طبعی باندې هم کیږی، ﴿ وبذلك ينحل كثير من الاشكالات كقوله : ثمن الكلب خبيث وكسب الحجام خبيث ﴾ حديث حذيفه ﷺ اخرجه ابن خزيمه كما تقدم عن الفتح قريباً.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٣٢٦) (صحيح)

[٣٨٢٥]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَكَلَ مِنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ فَلَا يَقْرَبَنَّ الْمَسَاجِدَ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی څوک چه دا بدبوداره سبزي (يعنی اومه اوره) اوخوري نو زمونږ مسجد ته دي نه راځي.

[٣٨٢٦]()بُرْدَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: "أَكَلْتُ ثُومًا، فَأَتَيْتُ مُصَلَّى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ سُبِقْتُ بِرَكْعَةٍ، فَلَمَّا دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ وَجَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِيحَ الثُّومِ، فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاتَهُ، قَالَ: مَنْ أَكَلَ مِنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ فَلَا يَقْرَبَنَّا حَتَّى يَذْهَبَ رِيحُهَا أَوْ رِيحُهُ، فَلَمَّا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ جِئْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَاللَّهِ لَتُعْطِيَنِّي يَدَكَ، قَالَ: فَأَدْخَلْتُ يَدَهُ فِي كُمِّ قَمِيصِي إِلَى صَدْرِي، فَإِذَا أَنَا مَعْصُوبُ الصَّدْرِ، قَالَ: إِنَّ لَكَ عُذْرًا".

دمغيره بن شعبة رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه ما اوره خوړلي وه اودنبی عليه السلام دمونځ ځائې ته ورغلم او يورکعت رانه فوت شوي وو، هرکله چه مسجدته داخل شوم اونبی عليه السلام بوي محسوس کړو، نوچه کله ئې مونځ پوره کړونو اوئې فرمائيل څوك چه ددې بوټي نه اوخوري نوهغه دي زمونږ خواته نه راځي ترڅوچه ددې بوي ورنه ختم شوي نه وي،نوچه کله مې خپل مونځ پوره کړونونبی عليه السلام ته ورغلم اوعرض مې وکړوچه اې دالله رسوله ستادي په الله قسم وي ماته به خپل لاس. خامخاراکوي مغيره وائی چه مادنبی عليه السلام لاس مبارك په خپل نستونړي کښې دننه کړواوپه خپله سينه می کرخودر نوزما زړه بندشوي وو، نبی عليه السلام اوفرمائيل ته معذورئې.

## شرح الحديث:

**قوله:** ﴿عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ أَكَلْتُ ثُومًا فَأَتَيْتُ مُصَلَّى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَقَدْ سُبِقْتُ بِرَكْعَةٍ الخ﴾ مغيره بن شعبه رضي الله عنه فرمائی چه زه يو ورځ د اوګې د خوړلو نه پس مسجد ته راغلم هغه وخت مونځ کيدلو. زه د يو رکعت نه مسبوق شوې اوم، په رسول الله ﷺ باندې د اوږې بوئی اولګيدو چه کله هغوی د مانځه نه فارغ شو نو وې فرمائيل چه څوک په تاسو کښې دا سبزی اوخوری نو مونږ ته دې نه رانزدې کيږی تر څو چه ترې بوئی زائل شوې نه وی، ما چه کله خپل مونځ پوره کړو نو د هغوی په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې اوکړو يا رسول الله ﷺ والله تاسو ماته خپل لاس مبارك راکړئ، پس ما د هغوی لاس مبارك په لستونړی کښې خپلې سينې ته يوړو ﴿فَإِذَا أَنَا مَعْصُوبُ الصَّدْرِ قَالَ « إِنَّ لَكَ عُذْرًا »﴾ يعنی تاسو اوکتل چه زما سينه ترلې شوې ده په څه پټئ وغيره سره، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل بيشکه ستا دپاره عذر دې.

د حضرت ګنګوهی په تقرير کښې دی چه هغوی په سينه باندې څۀ پټئ يا کپړه وغيره ترلې وه د سينې د تکليف د وجې نه چه د هغې په ليدلو باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل بيشکه

[1]): صحيح البخاري/الأذان ١٦٠ (٨٥٣)، صحيح مسلم/المساجد ١٧ (٥٦١)، (تحفة الأشراف: ٨١٤٣)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٥٨ (١٠١٦)، مسند احمد (٢٠/٢)، سنن الدارمي/الأطعمة ٢١ (٢٠٩٧) (صحيح)

[2]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٥٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤٩/٤، ٢٥٢) (صحيح)

ستاد پاره عذر دي...... يعنی د اوربي خوراک معقول دي تا د علاج په طور خوړلي ده. بس رسول الله ﷺ دومره اوفرمائيل او د هغوی مقصد دي دا اونه ګنړلي شي چه که څوک د عذر د وجي نه اوره اوخوری نو د هغه دپاره مسجد ته راتلل جائز دی، هغه نهی په خپل ځائي باندي قائم ده، او د حضرت په تقرير کښې دا هم دی چه بعض شارحينو چه دا وئيلي دی چه د سينې ترل د لوربي د غلبې د وجي نه وو نو دا خبره په فهم کښې نه راځی، ځکه چه په دې صورت کښې خو مناسب دا وه چه خيټه ترلي شوي وه نه سينه.

د دې نه پس په حديث د معاويه بن قرة عن ابيه کښې دی : ﴿ فَأَمِيتُوهُمَا طَبْخًا ﴾ چه که يو سړې ثوم او بصل خوری نو هغه له پکار دی چه د هغې بوئی ختم کړی او بيا ئې اوخوری، يعنی په تيلو وغيره کښې دې پاخه کړی، پس د باب په آخری حديث کښې راځی د عائشې ﷺ نه چا د پيازو په باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائيل چه آخری خوراک کوم چه رسول الله ﷺ خوړلي دې

[٣٨٢٧](١)حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَيْسَرَةَ يَعْنِي الْعَطَّارَ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ، عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ، وَقَالَ: "مَنْ أَكَلَهُمَا فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا، وَقَالَ: إِنْ كُنْتُمْ لَا بُدَّ آكِلِيهِمَا، فَأَمِيتُوهُمَا طَبْخًا"، قَالَ: يَعْنِي الْبَصَلَ وَالثُّومَ.

معاويه بن قره دخپل پلارنه روايت کوی چه نبی ﷺ ددې دوه بوټودخوړلونه منع فرمائيلې ده، اودائې فرمائيلی دی څوك چه داوخوري نو مسجدته دي نه راځی اوبيا ئې اوفرمائيل که چرې ددې خوړلوته ستاسو ضرورت پيښ شي نوپه پخولوسره ددې بوفي ختم کړئ او بيا ئې خوري اوددې دوه بوټونه مراد پياز او اوګه ده.

[٣٨٢٨](٢)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْجَرَّاحُ أَبُو وَكِيعٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "نُهِيَ عَنْ أَكْلِ الثُّومِ إِلَّا مَطْبُوخًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: شَرِيكُ بْنُ حَنْبَلٍ.

د علی ﷺ نه روايت دې فرمائی چه داوګي دخوړلونه منع راغلې ده مګر کله چه پخه کړې شی، امام ابوداؤد وائی دشريك دپلارنوم حنبل وو.

[٣٨٢٩](٣)حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا. ح حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ بَحِيرٍ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي زِيَادٍ خِيَارِ بْنِ سَلَمَةَ، أَنَّهُ "سَأَلَ عَائِشَةَ عَنِ الْبَصَلِ؟ فَقَالَتْ: إِنَّ آخِرَ طَعَامٍ أَكَلَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامٌ فِيهِ بَصَلٌ".

د ابو زياد خيار بن سلمه نه روايت دې فرمائی چه دام المومنين عائشة ﷺ نه مې د پياز په باره - کښې تپوس اوکړو هغې اوفرمائيل دنبی ﷺ په اخرني خوراك کښې پاخه پياز موجود وو.

حديث عائشة ﷺ اخرجه النسائی، قاله المنذری

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٨٠)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري (٦٦٨١)، مسند احمد (١٩/٤) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الأطعمة ١٤ (١٨٠٩)، (تحفة الأشراف: ١٠١٢٧) (صحيح)

(٣): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٠٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٩/٦) (ضعيف)

# بَابٌ فِي التَّمْرِ

## د کجورو خوړلو بیان

[٣٨٣٠](¹)حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي يَحْيَى، عَنْ يَزِيدَ الْأَعْوَرِ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ كِسْرَةً مِنْ خُبْزِ شَعِيرٍ فَوَضَعَ عَلَيْهَا تَمْرَةً، وَقَالَ: هَذِهِ إِدَامُ هَذِهِ".

دیوسف بن عبدالله بن سلام نه روایت دې فرمائی چه مانبی ﷺ اولیدو چه د وربشو ډوډۍ یوه قطره ئې راخستلې وه اوکجورې ئې ورباندې ایخودلې وې اوفرمائیل ئې داکجوری ددې ډوډۍ ترکاري ده.

**قوله:** ﴿ عَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- أَخَذَ كِسْرَةً مِنْ خُبْزِ شَعِيرٍ فَوَضَعَ عَلَيْهَا تَمْرَةً وَقَالَ « هَذِهِ إِدَامُ هَذِهِ » ﴾

دا حدیث په کتاب الایمان والنذور ﴿ باب الرجل یحلف ان لا یاتدم ﴾ کښې تیر شوې دې. د دې حدیث نه دا هم معلومیږی چه د یوسف بن عبدالله بن سلام رضی الله عنهما دپاره صحبت ثابت دې. د امام بخاری رحمه الله رائې خو هم دا ده، خو ابوحاتم رازی دا فرمائی چه د هغوی دپاره صحبت نه صرف رؤیت ثابت دې. والحدیث اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

[٣٨٣١](²)حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ عُتْبَةَ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، حَدَّثَنِي هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَيْتٌ لَا تَمْرَ فِيهِ جِيَاعٌ أَهْلُهُ".

دام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی په کوم کورکښې چه کجورې نه وي نو ددغه کور اوسیدونکي اوګی دی.

**قوله:** ﴿عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم- « بَيْتٌ لاَ تَمْرَ فِيهِ جِيَاعٌ أَهْلُهُ ﴾

په کوم کور کښې چه کهجورې نه وی نو د هغه کور خلق اوږی دی. په بذل المجهود کښې دی چه د رسول الله ﷺ دا فرمان د مدینې په شان ښهرونو اعتبار سره دې چرته چه کهجورې ډیرې زیاتې وی او هغه بالاستقلال خوړلې هم شی، د هر ښهر په اعتبار سره نه دې، او په کوکب دری کښې دا دی چه مقصد دا دې چه په کوم کور کښې کهجوره وی او بو څیز د خوراک یعنی غله وغیره پکښې نه وی نو دا د کور خلق اوږی نه دی، یعنی د حدیث لازمی معنی مراد ده او دا مطلب نه دې چه په کور کښې هر قسم څیزونه شته او په هغې کښې صرف کهجورې نه وی نو د هغه کور خلق اوږی دی.

دا دواړه فائدې جدا جدا دی، په دې کښې خپل مینځ کښې هیڅ تدافع نشته، د کوکب والا خبره هم د مدینې طیبی په شان ښهرونو په اعتبار سره ده چه که په هغه کور کښې صرف کهجور وی نو هغه سړې دې ځان غریب او اوږې نه ګڼړی بلکه د الله پاک شکر

¹): انظرحدیث رقم: (٣٢٥٩)، (تحفة الأشراف: ١١٨٥٤) (ضعيف)

²): صحيح مسلم/الأشربة ٢٦ (٢٠٤٦)، سنن الترمذي/الأطعمة ١٧ (١٨١٥)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٣٨ (٣٣٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٩٤٢)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الأطعمة ٢٦ (٢١٠٥) (صحيح)

ورله ادا کول پکار دي، چه هر کله په کور کښې کجهورې شته نو هرڅه شته. والحديث اخرجه مسلم والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي تَفْتِيشِ التَّمْرِ الْمُسَوَّسِ عِنْدَ الْأَكْلِ

### د کجورو خوړلو په وخت ددې د پاکولو بيان

او په بعض نسخو کښې د التمر صفت هم ذکر شوې دې ﴿ التمر المسوس ﴾ يعنی هغه کهجورې چه په هغې کښې چينجې پيدا شی په حديث الباب کښې دی، انس رضي الله عنه فرمائی چه يو کرت رسول الله ﷺ ته زړې کهجورې راوړلې شوې نو رسول الله ﷺ به د هغې د خوراک نه مخکښې د هغې چينجی لټولو سره راويستل.

[٣٨٣٢]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ جَبَلَةَ، حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ أَبُو قُتَيْبَةَ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرٍ عَتِيقٍ، فَجَعَلَ يُفَتِّشُهُ يُخْرِجُ السُّوسَ مِنْهُ".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم ﷺ ته زړې کجورې راوړې شوې نبی عليه السلام ورته په غور سره کتل او چينې به يې ورنه غورځول.

د دې حديث نه معلومه شوه که په زړو کهجورو کښې سُرسُری وغيره راشی نو هغه ضائع کول نه دی پکار بلکه خوړل ئې پکار دی خو ورسره دا هم دی چه د هغې چينجې لټولو سره غورځول پکار دی، سره د هغې دې او نه خوړلې شی د هغې وجه دا ده چه چينجې د خبائثو نه دی، وقال تعالی ﴿ ويحرم عليهم الخبائث ﴾([2])

### د دوه متعارض احاديثو جواب:

خو د طبرانی په يو روايت کښې مرفوعا راغلی: ﴿ نهی ان يفتش التمر عما فيه ﴾ د دې حديث محمل د تازه کهجورو دې چه په هغې کښې دې فضول لټون اونکړې شی، په دې سره مقصود دفعه د وسوسې ده (او په رومبی سره مقصود دفع د سوس ده) او په حاشيه د بذل کښې دعلامه دميری نه د حياة الحيوان په ٣٣/٢ کښې په دې مسئله باندې مختلف اقوال او مذاهب جمع کړې شوې دی فارجع لو شئت.... والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری

[٣٨٣٣]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُؤْتَى بِالتَّمْرِ فِيهِ دُودٌ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

داسحق بن عبدالله بن ابی طلحه رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام ته به چينجنې کجورې پيش کولې شوې او باقی حديث ئې دتير شوې په شان بيان کړو.

[1]: سنن ابن ماجه/الأطعمة ٤٢ (٣٣٣٣)، (تحفة الأشراف: ٢١٥) (صحيح)

[2]: وفي هامش البذل: ويشكل عليه ما في تفسير البقرة من تفسير العزيزي انه يجوز اكل الديدان في التمر تبعا ولا يجوز بعد الخروج اصالة ١هـ او په بذل کښې حضرت ليکلې دی چه که په کهجوره کښې ظن غالب وی چه په د بکښې چينجې دې نو بيا خو بغير د تفتيش نه د هغې خوړل جائز نه دی او دعدم غلبه ظن په صورت کښې چه صرف وهم وی د تفتيش حاجت نشته.

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢١٥) (صحيح)

# بَابُ الإِقْرَانِ فِي التَّمْرِ عِنْدَ الأَكْلِ

### دوه دوه او درې درې کجورې په يو ځای خوړل

[٣٨٣٤]([1]) حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ جَبَلَةَ بْنِ سُحَيْمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الإِقْرَانِ، إِلاَّ أَنْ تَسْتَأْذِنَ أَصْحَابَكَ".

ابن عمرونه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ د دوه دوه کجورو په يوځائي خوړلونه منع فرمائيلې ده مګر کله چه دخپل ملګري نه اجازت واخلئ.

﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الإِقْرَانِ إِلاَّ أَنْ تَسْتَأْذِنَ أَصْحَابَكَ ﴾ يعنی چه کله څو ملګری په يو ځائې باندې ناست کهجورې خوری نو ادب دا دې چه يو کهجوره دې اوچتولو سره اوخوړلې شی يو سرې دې په يو ځائې دوه نه خوری، مګر دا چه د خپلو ملګرو نه اجازت واخلی.

شارحينو ليکلې دی چه په ملګرو کښې د يو کس دوه دوه اوچتول دا د حرص او بې صبرئ عادت دې او د کونکی په حق کښې معيوب څيز دې وغيره وغيره مصالح، که صرف ذکر کړې شوې مصلحت مخې ته کيخودلې شی نو وئيلې شی چه د استيذان قيد په اصل کښې د دې حرکت د منع کولو دپاره دې، ځکه چه په استيذان کښې خپله د بد خصلت ښکاره کول دی چه سړې ئې چرته خوښوی. په دې حديث باندې شارحينو ډير څه ليکلې دی خو مونږ هغې ته حاجت او نه ګنړلو.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

# بَابٌ فِي الْجَمْعِ بَيْنَ لَوْنَيْنِ فِي الأَكْلِ

### په يو ځائ دوه قسمه خوراکونه خوړل

داسې ترجمه اوس نزدې تيره هم شوه، خو د مخکښې تعلق د ترکارو د قسمونو سره وو او د دې باب تعلق د فواکه سره دې.

[٣٨٣٥]([2]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَأْكُلُ الْقِثَّاءَ بِالرُّطَبِ".

د عبد الله بن جعفر نه روايت دې فرمائي چه نبی ﷺ به تري د کجورو سره خوړلې.

﴿ كَانَ يَأْكُلُ الْقِثَّاءَ بِالرُّطَبِ ﴾ چه رسول الله ﷺ به د رطب سره ختکې يو ځائې خوړلو، او د دې نه روستو روايت کښې دی ﴿ يَأْكُلُ الْبِطِّيخَ بِالرُّطَبِ فَيَقُولُ « يَكْسِرُ حَرَّ هَذَا بِبَرْدِ هَذَا وَبَرْدَ هَذَا بِحَرِّ هَذَا » ﴾

[1]: صحيح البخاري/الشركة ٤ (٢٤٩٠)، صحيح مسلم/الأشربة ٢٥ (٢٠٤٥)، سنن الترمذي/الأطعمة ١٦ (١٨١٤)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٤١ (٣٣٣١)، (تحفة الأشراف: ٦٦٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧/٢، ٤٤، ٤٦، ٦٠، ٧٤، ٨١، ١٠٣، ١٣١)، سنن الدارمي/الأطعمة ٢٥ (٢١٠٣) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الأطعمة ٣٩ (٥٤٤٠)، صحيح مسلم/الأشربة ٢٣ (٢٠٤٣)، سنن الترمذي/الأطعمة ٣٧ (١٨٤٤)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٣٧ (٣٣٢٥)، (تحفة الأشراف: ٥٢١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٠٣/١)، سنن الدارمي/الأطعمة ٢٤ (٢١٠٢) (صحيح)

[٣٨٣٦](١)حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ نُصَيْرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَأْكُلُ الْبِطِّيخَ بِالرُّطَبِ، فَيَقُولُ: نَكْسِرُ حَرَّ هَذَا بِبَرْدِ هَذَا وَبَرْدَ هَذَا بِحَرِّ هَذَا".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائی چه رسول الله به هندوانه دكجوروسره خوړله اوفرمائيل به ئې چه ددې خوالې دكجوروپه ګرموالي سره اودكجورو ګرموالې ددې په يخوالي باندې ماتوو.

### شرح الحديث :

د شارحينو په دې كښې اختلاف دې چه د بطيخ نه څه مراد دې؟آيا بطيخ اخضر يعنی تربوز [هندوانه] ، يا بطيخ اصفر يعنی خربوزه، كه احضر مراد وی لكه چه هم دا مشهوره ده نو بيا خو هيڅ اشكال نشته، او كه د دې نه مراد خربوزه ده نو بيا به دا اشكال وی چه ﴿ يكسر هذا ببرد هذا ﴾ څنګه دې، ځكه چه خربوزه هم حار (بتشديد الراء) وی، بيا د دې مختلف توجيهات كړې شوې دی د حضرت ګنګوهی په تقرير كښې دی چه د برودت نه مراد برودت حسی دې يعنی په لاس لګولو كښې يخ، كه خربوزه د پرې كولو نه پس لږ ساعت پرانستلې پريخودلې شی نو هغه يخه شی، او بعض شارحينو لكه صاحب د مجمع البحار او شارحينو د شمائل دا توجيه كړې ده چه د دې نه كچه خربوزه مراد ده هغه په خاصيت كښې يخه وی، خو د پخيدو نه پس ئې خاصيت بدل شی او ګرمه شی (لكه چه د آم په باره كښې مشهوره ده چه هغه شين خو يخ وی او د پخيدو نه پس ګرم) او د حافظ رائې دا ده چه برودت د امور اضافيه نه دې، د بطيخ برودت د رطب په اعتبار سره دې ځكه چه رطب شديد الحرارة دې. د دې نه پس حضرت شيخ ليكی چه دا ټول اشكالات او جوابات د معروف قول مطابق دې ګڼې صاحب د محيط اعظم د شيخ بو علی سينا نه نقل كړې دې چه خربوزه هم يخه وی. اهـ (من هامش البذل)او د شمائل په روايت كښې دی ﴿ كان يجمع بين الخربز والرطب ﴾ خربز خو اصفر يعنی خربوزې ته وائی، او دلته په مدينه طيبه كښې د اخضر او اصفر دواړو پيداوار كيږی.

حديث عبدالله بن جعفر رضي الله عنهما اخرجه البخاري ومسلم والترمذي وابن ماجه، وحديث عائشة رضي الله عنها اخرجه الترمذي والنسائي، مختصرا، وقال الترمذي حسن غريب وذكر انه روى مرسلا وذكره النسائي ايضا مرسلا، قاله المنذري.

او د باب په آخری حديث كښې دی ﴿ دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَدَّمْنَا زُبْدًا وَتَمْرًا وَكَانَ يُحِبُّ الزُّبْدَ وَالتَّمْرَ ﴾ چه رسول الله ﷺ مونږ ته تشريف راوړلو نو مونږ د هغوی مخې ته كچ او كهجورې پيش كړې كومې چه د هغوی خوښې وې.

[٣٨٣٧](٢)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَزِيرِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مَزْيَدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ جَابِرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي سُلَيْمُ بْنُ عَامِرٍ، عَنِ ابْنَيْ بُسْرٍ السُّلَمِيَّيْنِ، قَالَا: "دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَدَّمْنَا زُبْدًا وَتَمْرًا، وَكَانَ يُحِبُّ الزُّبْدَ وَالتَّمْرَ".

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٨٥٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأطعمة ٣٦ (١٨٤٣) (حسن)

(٢): سنن ابن ماجه/الأطعمة ٤٣ (٣٣٣٤)، (تحفة الأشراف: ٥١٩٢) (صحيح)

د بسر د دوه ځامنونه روایت دې فرمائي چه نبي ﷺ زمونږ خواته تشریف راوړو مونږ ورته کوچ اوکجورې پیش کړې اونبي ﷺ به کرچ اوکجورې ډیرې خوښولې.

والحدیث اخرجه ابن ماجه، وذکرعن محمد بن عوف انهما (ابنی بسر) عبدالله وعطیة رضی الله عنهما، قاله المنذری.

# باب الأكل في آنية أهل الكتاب

## د اهل کتابو په لوښو کښې د خوراک کولو بیان

[۳۸۳۸] (¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، وَإِسْمَاعِيلُ، عَنْ بُرْدِ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كُنَّا نَغْزُو مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنُصِيبُ مِنْ آنِيَةِ الْمُشْرِكِينَ وَأَسْقِيَتِهِمْ فَنَسْتَمْتِعُ بِهَا، فَلَا يَعِيبُ ذَلِكَ عَلَيْهِمْ".

**ترجمه:** د جابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه مونږ دنبي ﷺ په ملګرتیا کښې جهاد ته تلي وو او مونږ ته د اهل کتابو لوښي ملاو شول او مونږ به د هغې نه فائده اخستله اونبي ﷺ به بدنه ګڼړل.

**تشریح:** د باب په ړومبی حدیث کښې دی : سیدنا جابر رضی الله عنه فرمائي چه مونږ به د رسول الله ﷺ سره په غزواتو کښې شریکیدلو چه په هغې کښې به مونږ ته د مشرکینو لوښي او مشکونه حاصلیدل په مال غنیمت کښې، نو مونږ به هغه استعمالولو سره د هغې نه فائده اوچتوله، په استعمالونکو باندې به چا هیڅ عیب نه لګولو یعنی انکار به پرې نه کیدلو.

امام خطابی رحمه الله فرمائي چه دا اباحت د مشرکینو د لوښو په دې شرط سره مقید دې کوم چه د دې نه روستو حدیث کښې دې او د راتلونکی حدیث مضمون دا دې: ابو ثعلبه الخشنی رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه مونږ خلق په سفر کښې د اهل کتابو په آبادو باندې تیریږو چه په خپلو کټوو کښې خنزیر پخوی او په خپلو لوښو کښې شراب څکی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل که د دغې لوښو نه علاوه تاسو نور بیا مومئ نو په هغې کښې خوراک څکاک کوئ، او که د هغې نه علاوه نور لوښی نه وی نو بیا د مشرکینو لوښی وینځئ او هغه استعمالوئ.

[۳۸۳۹] (²) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْعَلَاءِ بْنِ زَبْرٍ، عَنْ أَبِي عُبَيْدِ اللَّهِ مُسْلِمِ بْنِ مِشْكَمٍ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ، أَنَّهُ سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّا نُجَاوِرُ أَهْلَ الْكِتَابِ، وَهُمْ يَطْبُخُونَ فِي قُدُورِهِمُ الْخِنْزِيرَ، وَيَشْرَبُونَ فِي آنِيَتِهِمُ الْخَمْرَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَهَا فَكُلُوا فِيهَا وَاشْرَبُوا، وَإِنْ لَمْ تَجِدُوا غَيْرَهَا فَارْحَضُوهَا بِالْمَاءِ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا".

دابو ثعلبه الخشني نه روایت دې فرمائي چه دنبي ﷺ نه مې تپوس اوکړو اوعرض مې وکړو چه مونږ په اهل کتابو تیریږو اوهغوی پخپلو دیګونو کښې خنزیران پخوي او پخپلو لوښو کښې شراب څي، رسول الله اوفرمائیل که چرې ددوی دلوښونه علاوه نور لوښي موندلې شئ نو خوراک څښاک په کښې وکړئ اوکه چرې ددینه علاوه نور لوښي نه

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٤٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٧/٣، ٣٤٣، ٣٧٩، ٣٨٩) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٨٧٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصيد ٤ (٥٤٧٨)، ١٠ (٥٤٨٨)، ١٤ (٥٤٩٦)، صحيح مسلم/الصيد ١ (١٩٣٠)، سنن الترمذي/الصيد ١ (١٤٦٤)، سنن ابن ماجه/الصيد ٣ (٣٢٠٧) (صحيح)

شئ موندلې نو په اوبوئې ووينځئ او بيا په کښې خوراك او څښاك وکړئ.
په بذل کښې دی ﴿ ای اذا غلب الظن بنجاستها ﴾ يعنی د وينځلو حکم د نجاست د غلبه ظن په وخت دې، امام خطابی رحمه الله فرمائی : ﴿ فاما مياههم وثيابهم فانها علی الطهارة کمياه المسلمين وثيابهم ﴾ يعنی د مشرکينو اوبه او جامې د مسلمانانو د اوبو او جامو په شان پاکې دی. مگر دا چه هغه مشرکين داسې خلق وی چه د هغوی په باره کښې معلومه وی چه هغوی د نجاستونو نه پرهيز نه کوی يا د هغوی عادت د بولو وغيره د استعمال وی (لکه چه بعض مشرکين کوی)، نو په داسې صورت کښې به د هغوی جامې استعمالول جائز نه وی بغير د پاکولو نه مگر دا چه يقينی طور معلومه شی چه په دې کښې نجاست نشته.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم فی صحيحيهما، مطولا واخرجه ايضاً الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری (بتغير)

## بَابٌ فِي دَوَابِّ الْبَحْرِ
### د سمندر د ځناورو بيان

[٣٨٤٠] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَّرَ عَلَيْنَا أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ نَتَلَقَّى عِيرًا لِقُرَيْشٍ، وَزَوَّدَنَا جِرَابًا مِنْ تَمْرٍ لَمْ نَجِدْ لَهُ غَيْرَهُ، فَكَانَ أَبُو عُبَيْدَةَ يُعْطِينَا تَمْرَةً تَمْرَةً كُنَّا نَمُصُّهَا كَمَا يَمُصُّ الصَّبِيُّ، ثُمَّ نَشْرَبُ عَلَيْهَا مِنَ الْمَاءِ، فَتَكْفِينَا يَوْمَنَا إِلَى اللَّيْلِ، وَكُنَّا نَضْرِبُ بِعِصِيِّنَا الْخَبَطَ، ثُمَّ نَبُلُّهُ بِالْمَاءِ، فَنَأْكُلُهُ، وَانْطَلَقْنَا عَلَى سَاحِلِ الْبَحْرِ، فَرُفِعَ لَنَا كَهَيْئَةِ الْكَثِيبِ الضَّخْمِ، فَأَتَيْنَاهُ فَإِذَا هُوَ دَابَّةٌ تُدْعَى الْعَنْبَرَ، فَقَالَ أَبُو عُبَيْدَةَ: مَيْتَةٌ وَلَا تَحِلُّ لَنَا، ثُمَّ قَالَ: لَا، بَلْ نَحْنُ رُسُلُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ، وَقَدِ اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ فَكُلُوا، فَأَقَمْنَا عَلَيْهِ شَهْرًا، وَنَحْنُ ثَلَاثُ مِائَةٍ حَتَّى سَمِنَّا، فَلَمَّا قَدِمْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرْنَا ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ: هُوَ رِزْقٌ أَخْرَجَهُ اللَّهُ لَكُمْ، فَهَلْ مَعَكُمْ مِنْ لَحْمِهِ شَيْءٌ فَتُطْعِمُونَا مِنْهُ؟ فَأَرْسَلْنَا مِنْهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكَلَ".

دجابر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه مونږ نبی عليه السلام د ابوعبيده : په مشرئ کښې دقريشو ديوې قافلې دنيولو دپاره اوليږلو اودلارې دخوراك دپاره ئې يوه بوجگئ کجورې هم راکړې اوددينه علاوه زمونږ سره نورهيڅ نه وو، ابوعبيده به مونږ ته ددې کجورونه يوه يوه دانه راکوله مونږ به دا يوه کجوره داسې چوپله لکه ديوماشوم دچوپلوپه شان اوددينه پس به مونږ اوبه څکلې دغه يوه کجوره او اوبه به زمونږ دتولې ورځې دپاره کافې وې مونږ به پخپلو لختربانډې دونونه پاڼې راڅنډلې او په اوبو کښې به مو خوشتولې اوبيابه موخوړلې تردې چه مونږ دسمندرکنارې ته اورسيدو مونږته دلرې نه دشږويوه ډيرکئ ښکاره شوه کله چه ورته مونږ ورنزدې شونو هغه يوځناوروو اونوم ئې عنبر وو (دايوداسې معې دې چه دځرمنې نه ئې ډال جوړيږي) ابوعبيده اووئيل داخو مردارشوې دې اوزمونږ دپاره حلال نه دې بيا ئې اووئيل نه، مونږ دنبی عليه السلام استاذې يو اودالله په لاره کښې وتلې يو اوسخت مجبوره شوې يوخوړئ يې، دجابر بيان دې چه مونږ هلته يوه مياشت تيره کړه او مونږ درې سوه کسان وو همدابه موخوړله تردې چه مونږ څاربه شو کله چه مونږه دنبی

(١): صحيح مسلم/الصيد ٤ (١٩٣٥)، (تحفة الأشراف: ٢٧٢٤، ٥٠٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١١/٣، ٣٧٨) (صحيح)

ﷺ په خدمت کښې واپس حاضرشو نوموږ نبي ﷺ ته ددې ذکر اوکړو نبي کريم اوفرمائيل دغه ستاسو رزق وو کوم چه الله تعالی ستاسو دپاره رااليږلې وو ايا اوس ستاسو سره دهغه څه غوښه باقي شته چه په مائې وخوروئ موږه دهغه مهي غوښه نبي ﷺ ته پيش کړه او وېې خوړله.

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرٍ قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم وَأَمَّرَ عَلَيْنَا أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ نَتَلَقَّى عِيرًا لِقُرَيْشٍ وَزَوَّدَنَا جِرَابًا مِنْ تَمْرٍ لَمْ نَجِدْ لَهُ غَيْرَهُ الخ ﴾

## د غزوه سيف البحر تذکرة :

د دې سريه نوم کوم چه په دې حديث کښې ذکر ده سريه ابوعبيده رضي الله عنه دې ځکه چه هم هغه د دې سريه امير وو او دې ته غزوه سيف البحر هم وائي ځکه چه د هغوی دا سفر د سمندر په غاړه باندې وو، پس په صحيح البخاری کښې هم داسې دی ﴿ باب غزوة سيف البحر ﴾ او بيا ئې په هغې کښې دا روايت مطولا ذکر کړې دې.

سيدنا جابر رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ موږ ليږلې وو د قريش قافلې د کتلو دپاره کومه چه د شام نه راروانه وه، او د تلو په وخت رسول الله ﷺ موږ ته يو تهيلئ د کهجورو راکړه موږ سره د دې نه علاوه هيڅ توښه نه وه، پس زموږ امير ابوعبيده رضي الله عنه به موږ ته د سفر دوران کښې يوه کهجوره راکوله او هغه به موږ داسې چوپله لکه څنګه چه ئې ورو کې ماشوم چوپي، او بيا به مو په هغې دپاسه اوبه څکلې پس دا يو کهجوره به زموږ دپاره تر د شپې پورې کافي وه (دلته په روايت کښې اختصار دې لکه څنګه چه د بخاری د روايت نه معلوميږي، صرف په يو کهجوره باندې د اکتفاء کولو ضرورت روستو راغلې وو) او موږ به په خپلو هسماګانو او ډنډو باندې د اونو پاڼې راڅنډلې او بيا به مو هغه په اوبه کښې نرمولې او بيا به مو خوړلې. هغوی فرمائي چه موږ د درياب په غاړه باندې روان وو پس د درياب په غاړه موږ ته د کمر په شان يو لوئې وجود ښکاره شو. چه موږ هغې ته نزدې راغلو نو هغه يو دريابي ځناور وو چه هغې ته عنبره وائي. دا عنبره د يو لوئې مهی قسم دې چه د هغې اوږدوالې پنځوس ذراعو ته رسيږي، بعض وائي چه دا کوم عنبر چه مشهور خوشبوئي ده، دا هم د دغه ځناور د خولې رجيع [اچوئيلې لاړې] وی او د بخاری په يو روايت کښې دی ﴿ فاذا حوت مثل الظرب ﴾ بيا چه کله ورته موږ نزدې راغلو نو معلومه شوه چه دا عنبره دې، نو ابوعبيده رضي الله عنه اوفرمائيل دا خو مرداره ده چه حلال نه ده بيا ئې اووې چه نه بلکه موږ د رسول الله ﷺ رااليږلې شوې يو او د الله پاک لاره کښې يو او د اضطرار کيفيت دې لهذا دا خورئ ﴿ فَأَقَمْنَا عَلَيْهِ شَهْرًا وَنَحْنُ ثَلَاثُمِائَةٍ حَتَّى سَمِنَّا ﴾ نو موږ هلته تر يوې مياشتې پورې پاتې شو او حال دا چه زموږ د درې سوو کسانو لښکر وو موږ د هغې په خوراک باندې څاربهٔ شو. د بخاری په يو روايت کښې دی ﴿ نصف شهر ﴾ او په يو روايت کښې ﴿ ثمان عشرة ليلة ﴾ دې، او د هغه په يو روايت کښې ﴿ شهرا ﴾ هم دې. حافظ ابن حجر رحمه الله ﴿ ثمان عشرة ليلة ﴾ والا روايت ته ترجيح ورکړې ده او نصف شهر او د شهر روايت ئې په الغاء د کسر او په جبر دکسر باندې محمول کړې دی. او د بخاری په روايت

کښې دا زیادت هم دې ﴿ثم امر ابوعبیدة بضلعین من اضلاعه فنصبا ثم امر براحلة فرحلت ثم مرت تحتهما﴾ چه د دې مهی دوه پښتۍ اودرولې شوې او په یو اوښ باندې یو لوړ سړې سور د هغې نه لاندې تیر کړې شو چه بغیر د تکلف نه تیر شو چه په دې سره د هغه پښتۍ د اوږدوالی حال معلوم شو، حافظ دا هم لیکلې دی چه دا واقعه د رجب ۸ هجری ده او نقل ئې د ابن سعد نه کړې دې. د دې نه پس حافظ خپل تحقیق اولیکلو چه دا واقعه د شپږمې هجرئ ده یادهغې نه مخکښې دصلح حدیبیه نه هم مخکښې واقعه ده. کذاقال فی المغازی وکتب بعده فی کتاب الذبائح والصید: باب احل لکم صید البحر چه دا واقعه د دویمې هجرئ ده په کومه زمانه کښې چه غزوه بواط پیښه شوې وه او هغه په دویمه هجرئ کښې وه.

**قوله:** ﴿فَلَمَّا قَدِمْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- ذَكَرْنَا ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ « هُوَ رِزْقٌ أَخْرَجَهُ اللَّهُ لَكُمْ ﴾ یعنی چه کله مونږ د دې سفر نه واپس کیدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د دې مهی ذکر مو هغوی ته اوکړو نو په دې اوریدو باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا د الله پاک د طرف نه ستاسو دپاره رزق وو، که تاسو سره د هغې غوښه باقی وی نو په مونږ باندې هم د هغې نه اوخروئ. پس مونږ رسول الله ﷺ ته د هغې غوښه اولیږله او هغوی اوخوړله.

د دې نه پس دا پیژندل پکار دی چه دا عنبره میتة البحر ده، او په میتة البحر کښې چه د ائمه کوم اختلاف دې هغه په کتاب الطهارة کښې د ﴿هو الطهور ماؤه والحل میته﴾ د لاندې تیر شوې دې.

**تنبیه:** کتب الشیخ فی هامش البذل : ولا یذهب علیک ان لجابر رضی الله عنه حدیثا اخر فی هذا المعنی ونبه الزیلعی فی نصب الرایه ٢٠٤/٤ علی انهما قصتان اهـ قلت لم یرض به الحافظ فی الفتح ومال الی واحدة القصة وقال الاصل عدم التعدد، قال فی کتاب الذبائح والصید فی باب قول الله تعالی ﴿احل لکم صید البحر﴾ فارجع الیه لو شئت التفصیل... والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْفَأْرَةِ تَقَعُ فِي السَّمْنِ

### بابه مږه چه په غوړو کښې پریوځی نو ددې څه حکم دې؟

[٣٨٤١] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ، أَنَّ فَأْرَةً وَقَعَتْ فِي سَمْنٍ، فَأُخْبِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "أَلْقُوا مَا حَوْلَهَا وَكُلُوا".

دام المومنین میمونة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه یوځل یوه مږه په غوړو کښې پریوتله اونبی علیه السلام ته اطلاع ورکړې شوه نبی علیه السلام اوفرمائیل دمږې ګیر چاپیره غوړي اوغورځوئ اوباقی خوړلي شئ.

**قوله:** ﴿عَنْ مَيْمُونَةَ أَنَّ فَأْرَةً وَقَعَتْ فِي سَمْنٍ فَأَخْبِرَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ «أَلْقُوا مَا حَوْلَهَا وَكُلُوا»﴾

---

(١): صحیح البخاري/الوضوء ٦٧ (٢٣٥)، والذبائح ٣٤ (٥٥٣٨)، سنن الترمذي/الأطعمة ٨ (١٧٩٨)، سنن النسائي/الفرع والعتیرة ٩ (٤٢٦٣)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٦٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاستئذان ٧ (٢٠)، مسند احمد (٣٢٩/٦، ٣٣٠، ٣٣٥)، سنن الدارمي/الطهارة ٦٠ (٧٦٥) (صحیح)

يعنى د رسول الله ﷺ نه د هغه غوړو په باره کښې تپوس اوکړې شو چه په هغې کښې مږه پريوتلو سره مړه شوې وى نو هغوى اوفرمائيل چه د غوړو هغه حصه کومه چه د مږې نه چاپيره وه هغه راوباسئ او وې غورځوئ او باقى اوخورئ.

دا غوړى جامد وو لکه چه د نسائى په روايت کښې دى او دا مسئله په هغه صورت کښې ده چه کله غوړى جامد وى پس د دې نه روستو روايت کښې راځى ﴿ فَإِنْ كَانَ جَامِدًا فَأَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَإِنْ كَانَ مَائِعًا فَلاَ تَقْرَبُوهُ ﴾

والحديث اخرجه البخارى والترمذى والنسائي، قاله المنذرى.

[٣٨٤٢](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَاللَّفْظُ لِلْحَسَنِ، قَالاَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا وَقَعَتِ الْفَارَةُ فِي السَّمْنِ فَإِنْ كَانَ جَامِدًا فَأَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا، وَإِنْ كَانَ مَائِعًا فَلاَ تَقْرَبُوهُ"، قَالَ الْحَسَنُ: قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: وَرُبَّمَا حَدَّثَ بِهِ مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى کله چه مږه په غوړو کښې پريوځي نوکه چرې جامد وي نو دا اوددې ګير چاپيره غوړي اوغورځوئ اوباقى غوړي پاك دي اوکه چرې غوړي اوبه وي نوبيا ورته مه ورنزدې کيږئ اوحسن دعبد الرزاق نه نقل کړي دي چه داحديث به معمردزهري نه اوهغه به دعبد الله بن عبد الله اوهغه به دابن عباس نيمه نه اوهغه به ميمونې نه اوهغې به دنبى عليه السلام نه نقل کولو.

[٣٨٤٣](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ بُوذَوَيْهِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِ حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ.

ترجمه: ميمونة رضی الله عنها دنبى کريم ﷺ نه دزهري وسعيد بن المسيب د حديث په شان حديث بيان کړي دي.

## بَابٌ فِي الذُّبَابِ يَقَعُ فِي الطَّعَامِ

### باب: کله چه په ترکارئ کښې مچ پريوځى نو څه حکم دې؟

[٣٨٤٤](٣)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، عَنِ ابْنِ عَجْلاَنَ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَامْقُلُوهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ دَاءً وَفِي الآخَرِ شِفَاءً وَإِنَّهُ يَتَّقِي بِجَنَاحِهِ الَّذِي فِيهِ الدَّاءُ فَلْيَغْمِسْهُ كُلَّهُ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى کله چه مچ دچا په لوښي کښې پريوځي نوپکښې ئې غوپه کړئ يقيناًدده په يووزرکښې بيماري او په بل

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٣٠٣، ١٨٠٦٥) (شاذ)

(٢): تفرد به أبو داود، أي بهذا السياق، (تحفة الأشراف: ١٨٠٦٥) (شاذ)

(٣): تفر دبه أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٠٤٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/بدء الخلق ١٧ (٣٣٢٠)، الطب ٥٨ (٥٧٨٢)، سنن ابن ماجه/الطب ٣١ (٣٥٠٥)، سنن الدارمي/الأطعمة ١٢ (٢٠٨١) (صحيح)

کښې شفاده اودي هغه وزر مخکښې کوي په کوم کښې چه بیماري وي نو تاسوټول غوپه کړئ.

**قوله:** ﴿ إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَامْقُلُوهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ دَاءً وَفِي الْآخَرِ شِفَاءً الخ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه کله ستاسو نه د یو تن په خوراک کښې مچ اوغورځیږی نو هغه په ښه طریقه باندې ډوب کړئ او بیا ئې راوباسئ. ځکه چه د هغې په وزرو کښې په یو کښې بیماری وی او په بله کښې شفا، او د مچ عادت دا دې چه هغه د پریوتلو په وخت خپل ځان بچ کوی په هغه وزر باندې چه په هغې کښې بیماری ده پس پکار دی چه هغه پوره طریقې سره ډوب کړې شی چه هغه دویم وزر هم په کوم چه شفاء ده د هغې په یو ځائې کیدو باندې تلافی اوشی.

دا حدیث چه په هغې کښې د طب یو مسئله ذکر ده د طب النبی ﷺ د قبیل نه شو. کتاب الطب اوس نزدې راروان دې چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ د طرف نه د ډیرو علاجونو او دوایانو بیان راروان دې.

حضرت شیخ نور الله مرقده د مازیګر نه پس کیدونکې مجلس کښې په کوم کښې چه به چائې هم څکلې شوه چه په هغې کښې به کله کله مچ هم پریوتلو، یو کرت چه کله په دې موقع باندې حضرت جی انعام الحسن رحمه الله هم په دې مجلس کښې موجود وو، هغوی اوفرمائیل چه په فیض الباری کښې دشاه صاحب رائې دا لیکلې شوې ده چه هغه خوراک چه په هغې کښې مچ پریوځی که هغه ګرم وی نو هغه په دې حکم کښې داخل نه دې ﴿ فان الغمس حینئذ لا یزیده الا شرا ﴾ په دې باندې شیخ رحمه الله اوفرمائیل چه په حدیث کښې خو مطلقا راغلی دی. والحدیث اخرجه البخاری وابن ماجه بنحوه من حدیث عبید بن حنین عن ابی هریرة رضی الله عنه واخرجه النسائی وابن ماجه من حدیث ابی سعید الخدری رضی الله عنه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي اللُّقْمَةِ تَسْقُطُ

### باب د خوراک په وخت چه کله نوړئ پریوځی نو څه پکاردی؟

[٣٨٤٥] () حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا أَكَلَ طَعَامًا لَعِقَ أَصَابِعَهُ الثَّلَاثَ، وَقَالَ: إِذَا سَقَطَتْ لُقْمَةُ أَحَدِكُمْ فَلْيُمِطْ عَنْهَا الْأَذَى وَلْيَأْكُلْهَا وَلَا يَدَعْهَا لِلشَّيْطَانِ، وَأَمَرَنَا أَنْ نَسْلُتَ الصَّحْفَةَ، وَقَالَ: إِنَّ أَحَدَكُمْ لَا يَدْرِي فِي أَيِّ طَعَامِهِ يُبَارَكُ لَهُ".

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی کله چه به نبی علیه السلام دخوراک نه فارغ شو نوخپلې درې ګوتې به ئې څټلې اوفرمائیل به ئې کله چه په تاسو کښې دیوکس نه نوړئ پریوځي نوپکاردې چه ددینه ګردغبار لرې کړې او ویسې خورې اودادې شیطان ته نه پریږدی اودابه ئې هم فرمائیل په تاسوکښې چاته معلومه نه ده چه دده دپاره دخوراک په کومه یوه حصه کښې برکت اچولې کیږي.

(): صحیح مسلم الأشربة ١٨ (٢٠٣٤)، سنن الترمذي الأطعمة ١١ (١٨٠٢)، (تحفة الأشراف: ٣١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/١٧٧، ٢٩٠)، سنن الدارمي الأطعمة ٨ (٧٠٧١) (صحيح)

(د روټۍ خوړلو يو څو اداب)

**قوله:**﴿ كَانَ إِذَا أَكَلَ طَعَامًا لَعِقَ أَصَابِعَهُ الثَّلَاثَ ﴾

چه کله به رسول اللهﷺ خوراک کولو نو په آخر کښې به ئې خپلې درې ګوتې مبارکې اوڅټلې، ابهام، مسبحه او وسطى څکه چه رسول اللهﷺ به په درې ګوتو باندې خوراک فرمائيلو لکه چه وړاندې په باب المنديل کښې راروان دی. ﴿ كَانَ يَأْكُلُ بِثَلَاثِ أَصَابِعَ وَلَا يَمْسَحُ يَدَهُ حَتَّى يَلْعَقَهَا ﴾ دويم ادب په دې حديث کښې دا ذکر شوې دې چه د يو سړی نه د خوراک کولو په وخت نمړئ اوغورځيږی يا د خوراک څه ذره نو هغه له پکار دی چه د هغې نه ګردو غبار وغيره لرې کړې او بيا هغه اوخوری او هغه دې پرېږدی نه څکه چه د هغه دا پريخودل علامت دې د تکبر او تکبر د شيطان عمل دې. وړاندې دريم ادب په حديث کښې ذکر دې چه د خوراک نه په فارغيدلو باندې کاسه په ګوتو سره پاکول پکار دی.

د ترمذیؒ په يو روايت کښې دی چه کوم انسان په کاسه کښې د خوراک کولو نه پس هغه په ګوتو باندې صفا کړی نو هغه کاسه د هغه د پاره استغفار کوی.

**قوله:**﴿ من اكل قصعة ثم لحسها استغفرت له القصعة ﴾

او دا ئې هم اوفرمائيل چه بيشکه په تاسو کښې څوک نه پوهيږی چه د هغه د پاره د خوراک په کومه حصه کښې برکت دې.

والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْخَادِمِ يَأْكُلُ مَعَ الْمَوْلَى

### خادم د خان سره دوډئ ته د کينولو بيان

[٣٨٤٦]([1])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ قَيْسٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا صَنَعَ لِأَحَدِكُمْ خَادِمُهُ طَعَامًا ثُمَّ جَاءَهُ بِهِ وَقَدْ وَلِيَ حَرَّهُ وَدُخَانَهُ، فَلْيُقْعِدْهُ مَعَهُ لِيَأْكُلَ، فَإِنْ كَانَ الطَّعَامُ مَشْفُوهًا قَلِيلًا فَلْيَضَعْ فِي يَدِهِ مِنْهُ أُكْلَةً أَوْ أُكْلَتَيْنِ".

دابوهريرهؓ نه روايت دې فرمائی چه رسول الله خت فرمائيلی دی کله چه دچا د پاره دهغه خادم خوراک تيارکړي او دخوړلو د پاره ئې ورته راوړي او په دغه خادم باندې کړي او لوګې تيرشوې وي نوده لره پکاردي چه دغه خادم هم دخان سره کينوي او درباندې وخوروي، اوکچرې خوراک کم وي نوده ته دي په لاس کښې يوه يا دوه نوړئ ورکړی.

په حديث الباب کښې دی چه کله په تاسو کښې دچا خادم د هغه د پاره خوراک تيار کړی او بيا هغه راوړی او هغه د هغې ګرمی او سختی برداشت کړې ده نو هغه لره پکار دی چه هغه خادم د خان سره خوراک ته کينوی، او که خوراک لږ وی نو بيا دې يوه يا دوه نمړئ د هغه په لاس کښې ورکړی.

او په يو روايت کښې دا دی ﴿ فان ابى فلياخذ لقمة فليطعمه اياها ﴾ يعنى که د مولى نه دا نه شی کيدې په څه وجه باندې چه هغه د خان سره کينوی نو هغه ته دې يو دوه نمړئ ورکړی،

[1]: صحيح مسلم الأيمان ١٠ (١٦٦٣)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٢٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي الأطعمة ٤٤ (١٨٥٣)، مسند احمد (٢/٢٧٧، ٢٨٣) (صحيح)

او یا مطلب دا چه خادم د یو ځائې کیناستلو نه انکار اوکړی نو بیا دې داسې اوکړي.
والحدیث اخرجه مسلم، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْمِنْدِيلِ
### په رومال باندې د لاسونو وچولو بیان

[٣٨٤٧](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَمْسَحَنَّ يَدَهُ بِالْمِنْدِيلِ حَتَّى يَلْعَقَهَا أَوْ يُلْعِقَهَا".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه رسول الله و فرمائیلی دی کله چه په تاسو کښې یوکس خوراك اوکړي نوپه رومال دې لاس نه وچوي ترڅوچه څټلي ئې نه وي. اویا ورله څټلي شوي نه وي.
په حدیث الباب کښې دی چه سړی لره پکار دی چه د خوراک کولو نه پس خپل لاس په رومال وغیره باندې نه پاکوی تر څو چه ئې هغه څټلې نه وی یا ئې په بل باندې اونه څټی. په خپل یو خادم یا شاګرد یا خپلوان وغیره باندې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه، لیس فی حدیثهم ذکر المندیل، واخرجه مسلم من حدیث ابی الزبیر عن جابر رضي الله عنه: «ولا یمسح یده بالمندیل حتی یلعق اصابعه» قاله المنذری.

[٣٨٤٨](٢) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَأْكُلُ بِثَلَاثِ أَصَابِعَ، وَلَا يَمْسَحُ يَدَهُ حَتَّى يَلْعَقَهَا".

دکعب بن مالك رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم به په درې ګوتو خوراک کولو اولاسونه به ئې ترهغه وخته پورې نه وچول ترڅوچه به ئې څټلي نه وو.

## بَابُ مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا طَعِمَ
### د خوراک نه پس د دعا کولو بیان

[٣٨٤٩](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ثَوْرٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا رُفِعَتِ الْمَائِدَةُ، قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ غَيْرَ مَكْفِيٍّ وَلَا مُوَدَّعٍ وَلَا مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا".

دابو امامه باهلي رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله به د دسترخوان داوچتیدو وخت راغي نونبی عليه السلام به دا دعا فرمائیله: «الحمد لله کثیرا طیبا مبارکا فیه غیر مکفي ولا مودع ولا مستغنی عنه ربنا» یعنی دالله شکردې ډیر پاك اوزیات شکر نه داسې شکر کوم یوځل وي

[1]: صحیح مسلم/الأشربة ١٨ (٢٠٣١)، (تحفة الأشراف: ٥٩١٦)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الأطعمة ٥٢ (٥٤٥٦)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٩ (٣٢٦٩)، مسند احمد (٢٩٣/١، ٣٤٦، ٣٧٠، ٣/١٠٣)، سنن الدارمي/الأطعمة ٦ (٢٠٦٩) (صحیح)

[2]: صحیح مسلم/الأشربة ١٨ (٢٠٣٢)، سنن الترمذي/الشمائل (١٣٧، ١٤١)، (تحفة الأشراف: ١١١٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٥٤/٣، ٣٨٦/٦)، دي/الأطعمة ١٠ (٢٠٧٦) (صحیح)

[3]: صحیح البخاري/الأطعمة ٥٤ (٥٤٥٨)، سنن الترمذي/الدعوات ٥٦ (٣٤٥٦)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ١٦ (٣٢٨٤)، (تحفة الأشراف: ٤٨٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٢/٥، ٢٥٦، ٢٦١، ٢٦٧) سنن الدارمي/الأطعمة ٣ (٢٠٦٦) (صحیح)

او بیا پریخودلې شي او دهغې څه ضرورت باقي پاتې نشي، اې زمونږ پروردګاره ته د تعریف لائق ئې.
په حدیث الباب کښې دی چه د رسول اللهﷺ عادت شریفه دا وو چه کله به دسترخوان اوچت کړې شو نو رسول اللهﷺ به دا وئیل ﴿ الحمد لله کثیرا وفی نسخة حمدا کثیرا) طیبا مبارکا فیه غیر مکفی ولا مودع ولا مستغنی عنه ربنا ﴾

(د ربنا اعراب)

بالنصب د منادی کیدو د وجې نه یا بالجر د لفظ الله نه د بدل کیدو د وجې نه... ﴿ غیر مکفی ولا مودع ولا مستغنی عنه ﴾ په دې کښې دوه احتماله دی چه دا درې واړه د طیبا په شان د حمد صفت وی، یعنی د بنده حمد که هر څومره وی ناکافی او لږ دې او د هغې باوجود قابل ترک هم نه دې چه د هغې نه بې پرواهی اوکړې شی بلکه د ناکافی کیدو باوجود کول پکار دی، او دویم احتمال دا دې چه دا صفتونه د الله پاک دی، یعنی د الله پاک کفایت نه شی کولې بلکه هغه د نورو دپاره کفایت کوی او کافی دې ﴿ کما قال تعالی وهو یطعم ولا یطعم ﴾ او نه الله پاک داسې دې چه په څه حال کښې د هغه نه رغبت او طلب ترک کړې شی) او نه هغه داسې دې چه یو وخت د هغه نه بې پرواهی اوکړې شی، بلکه هر وخت بنده هغه ته محتاج دې. والاحتمال الاول اختاره العلامه السندی فی فتح
الودود. والاحتمال الثانی اختاره الخطابی وکلاهما مذکوران فی البذل.

والحدیث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجه. قاله المنذری.

او د دې نه په روستو روایت کښې دا دعا ذکر ده ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ ﴾ او په دریم حدیث کښې دا دعاء ذکر ده ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَطْعَمَ وَسَقَى وَسَوَّغَهُ وَجَعَلَ لَهُ مَخْرَجًا ﴾

[٣٨٥٠](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي هَاشِمٍ الْوَاسِطِيِّ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ رِيَاحٍ، عَنْ أَبِيهِ أَوْ غَيْرِهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا فَرَغَ مِنْ طَعَامِهِ، قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ".

دابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی کله چه به نبی ﷺ دخوراك نه فارغ شو نو دا دعابه ئې وئیله: «الحمد لله الذي أطعمنا وسقانا وجعلنا مسلمين». دهغه الله شکردې چاچه مونږ ته خوراك څښاك راکړو او مونږ ئې اطاعت ګزار جوړ کړو.

[٣٨٥١](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي عَقِيلٍ الْقُرَشِيِّ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَكَلَ أَوْ شَرِبَ، قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَطْعَمَ وَسَقَى، وَسَوَّغَهُ، وَجَعَلَ لَهُ مَخْرَجًا".

---

[1]: سنن الترمذي/الشمائل (١٩١)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (٢٨٩، ٢٩٠) (تحفة الأشراف: ٤٠٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥/٣، ٣٢، ٩٨) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٤٦٧)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري (٦٨٩٤)، اليوم والليلة (٢٨٥) (صحيح)

د ابو ايوب انصاري نه روايت دې فرمائي کله چه به نبي ﷺ خوراك وکړو نودا دعابه ئې وئيله «الحمد لله الذي أطعم وسقى، وسوغه، وجعل له مخرجا» يعنى دالله تعالى دپاره ټول تعريفونه دي چاچه مونږ ته خوراك څښاك راکړو او دا ئې زمونږ دخلق نه تيرکړو اوددې دپاره ئې دو تلوار جوړه کړې.

حديث ابى سعيد الخدرى رضي الله عنه اخرجه الترمذى والنسائى وذكره البخارى فى تاريخه الكبير وساق اختلاف الرواة فيه (وحديث ابى سعيد ضعيف) وحديث ابى ايوب الانصارى اخرجه النسائى، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي غَسْلِ الْيَدِ مِنَ الطَّعَامِ

### د خوراك نه پس د لاسونو وينځلو بيان

[٣٨٥٢] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ نَامَ وَفِي يَدِهِ غَمَرٌ وَلَمْ يَغْسِلْهُ فَأَصَابَهُ شَيْءٌ فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي څوك چه په داسې حال کښې اوده شي چه دخوراك په وجه ئې لاسونه ځليبنت کوي او وينځلي ئې نه وي که چرې په دې وخت کښې ده ته نقصان ورسيږي نوددې به صرف دې پخپله ذمه وار وي.

﴿ مَنْ نَامَ وَفِي يَدِهِ غَمَرٌ وَلَمْ يَغْسِلْهُ فَأَصَابَهُ شَيْءٌ فَلَا يَلُومَنَّ إِلاَّ نَفْسَهُ ﴾ کوم سړې چه د خوراك کولو نه پس بغير د لاس وينځلو نه اوده شو او حال دا چه د هغه په لاس کښې د خوراك بوئې او غوړوالې وي او بيا يو څيز هغه ته ضرر ورکړي مثلا مږه د هغه نه ګوته اوخوري نو دې سړي له پکار دی چه صرف خپل ځان ملامته کړي. دا حديث په ترمذی کښې هم شته، د هغې په شروع کښې دا زيادت دې ﴿ قال رسول الله ﷺ ان الشيطان حساس لحاس فاحذروه على انفسكم ﴾ يعنى د شيطان حس او ادراک ډير زيات دې او هغه ډير ضررى دې د هغه نه ځان بچ کړئ. والحديث اخرجه ابن ماجه، واخرجه الترمذى معلقا واخرجه ايضا من حديث ابى هريرة من طريقين قاله المنذرى (مختصرا)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الدُّعَاءِ لِرَبِّ الطَّعَامِ إِذَا أُكِلَ عِنْدَهُ

### د خوراك نه پس د خوراك مالك ته د دعا کولو بيان

[٣٨٥٣] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَزِيدَ أَبِي خَالِدٍ الدَّالَانِيِّ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "صَنَعَ أَبُو الْهَيْثَمِ بْنُ التَّيِّهَانِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا، فَدَعَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ، فَلَمَّا فَرَغُوا، قَالَ: أَثِيبُوا أَخَاكُمْ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَا إِثَابَتُهُ؟ قَالَ: إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا دُخِلَ بَيْتُهُ، فَأُكِلَ طَعَامُهُ وَشُرِبَ شَرَابُهُ، فَدَعَوْا لَهُ فَذَلِكَ إِثَابَتُهُ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه ابوالهيثم بن تيهان دنبي ﷺ دپاره خوراك تيارکړو هغه نبي ﷺ او م. حابه کرامرته دعوت ورکړو کله چه ټول خلق دخوراك نه فارغ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٥٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأطعمة ٤٨ (١٨٦٠)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ٢٢ (٣٢٩٦)، مسند احمد (٢/٢٦٣، ٥٣٧)، سنن الدارمي/الأطعمة ٢٧ (٢١٠٧) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣١٧٠) (ضعيف)

شول نونبی ﷺ اوفرمائیل تاسودي خپل وروړ ته ددې عوض ورکړئ عرض اوکړې شو دعوض نه مراد څه دې؟ نبی ﷺ اوفرمائیل کله چه څوک دچاکورته داخل شي اوخوراک اوکړي او اوبه وڅکي نوبیادي دهغه دپاره دعا وغواړي نوهمدا ددې معاوضه ده.

قوله: ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ صَنَعَ أَبُو الْهَيْثَمِ بْنُ التَّيِّهَانِ لِلنَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم طَعَامًا الخ﴾

په دې حدیث کښې دا دی چه رسول اللهﷺ خپلو ملګرو ته اوفرمائیل چه خپل رور ته د دې خوراک بدله ورکړئ، هغوی عرض اوکړو چه هغه څه بدله ده؟ رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه د کوم کور نه خوراک اوکړې شي د هغه دپاره دعا کول د هغه اثابت او بدله ده.

[٣٨٥٤]() حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "جَاءَ إِلَى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، فَجَاءَ بِخُبْزٍ وَزَيْتٍ فَأَكَلَ، ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفْطَرَ عِنْدَكُمُ الصَّائِمُونَ وَأَكَلَ طَعَامَكُمُ الْأَبْرَارُ وَصَلَّتْ عَلَيْكُمُ الْمَلَائِكَةُ".

د انس ﷛ نه روایت دې فرمائی چه یوځل نبی ﷺ دسعد بن عباده خواته تشریف یوړو نوهغه ورته ډوډئ اودزیتون تیل پیش کړل نبی ﷺ اوخوړل اوبیا ئې اوفرمائیل ستا سره دې روژه دار روژه ماته کړي اوستاخوراک دې نیکان خلق اوخوري او په تادې فرښتې رحمتونه نازل کړي.

د باب په آخري روایت کښې دی چه رسول اللهﷺ سعد بن عباده ﷛ ته تشریف یوړو هغوی د رسول اللهﷺ دپاره ډوډئ او د زیتون تیل راوړل هغه رسول اللهﷺ اوخوړل او د هغوی دپاره ئې دعا اوفرمائیله ﴿ أَفْطَرَ عِنْدَكُمُ الصَّائِمُونَ وَأَكَلَ طَعَامَكُمُ الْأَبْرَارُ وَصَلَّتْ عَلَيْكُمُ الْمَلَائِكَةُ ﴾ د دعاء مضمون دا دې چه الله پاک دې تاسو ته د صائمینو د افطار توفیق درکړي، او همیشه دې ستاسو خوراک نیکان خلق اوخوري او ملائک دې ستاسو دپاره د مغفرت او استغفار دعاګانې اوکړي، په دې کښې ضمنا د رزق حلال دعا هم راغلې ځکه چه په نیکانو خلقو باندې الله پاک حلاله روزي خوري. پس په یو روایت کښې دی چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ لا یاکل طعامک الی تقی ﴾ چه سړی له پکار دی چه هغه خپل خوراک په متقیانو باندې اوخوري. په دې دعاء کښې هم دې طرف ته اشاره ده.

## بَابٌ فِي تَمْرَةِ الْعَجْوَةِ

### باب د عجوه کجورو بیان

[٣٨٧٤]() عَيَّاشٍ، عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ الدَّاءَ وَالدَّوَاءَ وَجَعَلَ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءً فَتَدَاوَوْا وَلَا تَدَاوَوْا بِحَرَامٍ".

دوائل بن حجر ﷛ نه روایت دې فرمائی چه طارق بن سوید یا سوید بن طارق دنبی ﷺ نه دشرابو څکلو متعلق تپوس وکړونو نبی ﷺ ده لره منع کړو بیا ئې تپوس وکړو نوبیائې

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٨/٣، ١٣٨، ٢٠١)، سنن الدارمي/الصوم ٥١ (١٨١٣) (صحیح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٠٧) (ضعیف)

منع کړو نوعرض ئي وکړوچه زما غرض دعلاج دپاره څکل دي نبي ﷺ ورته وفرمائيل شراب دوا نه ده دا پخپله يوه بيماري ده.

داترجمه اوحديث په کتاب الطب کښې راروان دی اودلته په اکثر نسخوکښې نشته. (بذل)

## بَابُ مَا لَمْ يُذْكَرْ تَحْرِيمُهُ

### دداسې څيزونو بيان چه دهغې حرمت مذکور نه دې

[٣٨٠٠] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ صَبِيحٍ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ شَرِيكٍ الْمَكِّيَّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَأْكُلُونَ أَشْيَاءَ وَيَتْرُكُونَ أَشْيَاءَ تَقَذُّرًا، فَبَعَثَ اللَّهُ تَعَالَى نَبِيَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَنْزَلَ كِتَابَهُ، وَأَحَلَّ حَلَالَهُ، وَحَرَّمَ حَرَامَهُ، فَمَا أَحَلَّ فَهُوَ حَلَالٌ، وَمَا حَرَّمَ فَهُوَ حَرَامٌ، وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ عَفْوٌ، وَتَلَا: قُلْ لَا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا سورة الأنعام آية ١٤٥ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ".

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وائي چه په زمانه د جاهليت کښې به خلقو بعضې څيزونه خوړل او بعضې څيزونه به ئي ناخوښه ګڼړل نه به ئي خوړل، نو الله تعالی خپل نبي کريم ﷺ راوليږلو، خپل کتاب ئي نازل کړو او حلال اوحرام ئي بيان کړل، نوکوم څيز چه الله تعالی حلال کړې هغه حلال دې او کوم څيز ئي چه حرام کړې هغه حرام دې، او دکوم څيز نه ئي چه سکوت کړې (د حلت او حرمت ذکر ئي نه دې کړې) هغه معاف دې، بيان ابن عباس رضي الله عنهما آيت کريمه «قل لا أجد فيما أوحي إلى محرما» تاسو اووايئ: زه خپل طرف ته نازل کړې شوې وحی کښې حرام نه بيا مومم" تر آخره پورې.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَأْكُلُونَ أَشْيَاءَ وَيَتْرُكُونَ أَشْيَاءَ ...الخ ﴾

يعنی مشرکينو به د جاهليت په زمانه کښې په خپله رائې او اختيار سره څيزونه خوړل او دير څيزونه به ئې د کراهت طبعی د وجې نه پريخودل، يعنی د حلت او حرمت هيڅ معيار د هغوی په نزد نه وو سوا د خپلې خوښې او کراهت طبعی نه، پس الله پاک خپلو بندګانو ته په خپل رحمت سره توجه اوکړه او رسول الله ﷺ ئي راوليږلو په چا ئې چه قرآن کريم نازل کړو او بعض څيزونه ئي حلال او بعض ئي حرام کړل. پس اوس چه کوم څيز الله پاک حلال کړې دې هغه به حلال وی او کوم چه الله پاک حرام کړې دې هغه به حرام وی، يعنی د تحليل او تحريم بنياد په قرآن او وحی باندې وی. ﴿ وما سكت عنه فهو عفو ﴾ او د کوم څيز نه چه الله پاک سکوت فرمائيلې دې نو هغه حلال او معاف اوګڼړئ.

د دې حديث حواله مونږ سره د کتاب البيوع په شروع کښې د ﴿ باب في اجتناب الشبهات ﴾ د لاندې تيره شوې ده، او هلته دا حديث هم تير شوې دې، ﴿ الحلال بين والحرام بين، وبينهما امور مشتبهات، فمن اتقى الشبهات استبرأ لديه وعرضه ﴾ او هلته دا هم تير شوې دی چه په دوارو احاديثو کښې صورة او ظاهرا تعارض معلوميږی، او بيا د هغې جواب هم.

د دې نه پس زمونږ په نسخه د ابوداؤد کښې دعمر رضي الله عنه د خارجه حديث راځی چه په

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٣٨٦) (صحيح الإسناد)

هغې کښې په يو ليونی باندې د سورة الفاتحه د دم کولو ذکر دې او د هغه په ښه کيدو باندې په طور د انعام د سلو ګډو بيزو د ورکړې....

[٣٨٩٦](١)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ زَكَرِيَّا، قَالَ: حَدَّثَنِي عَامِرٌ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ الصَّلْتِ التَّمِيمِيِّ، عَنْ عَمِّهِ، "أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمَ، ثُمَّ أَقْبَلَ رَاجِعًا مِنْ عِنْدِهِ فَمَرَّ عَلَى قَوْمٍ عِنْدَهُمْ رَجُلٌ مَجْنُونٌ مُوثَقٌ بِالْحَدِيدِ، فَقَالَ أَهْلُهُ: إِنَّا حُدِّثْنَا أَنَّ صَاحِبَكُمْ هَذَا قَدْ جَاءَ بِخَيْرٍ فَهَلْ عِنْدَكَ شَيْءٌ تُدَاوِيهِ، فَرَقَيْتُهُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، فَبَرَأَ فَأَعْطَوْنِي مِائَةَ شَاةٍ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ: هَلْ إِلَّا هَذَا"، وَقَالَ مُسَدَّدٌ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: هَلْ قُلْتَ غَيْرَ هَذَا؟، قُلْتُ: لَا، قَالَ: خُذْهَا فَلَعَمْرِي لَمَنْ أَكَلَ بِرُقْيَةِ بَاطِلٍ، لَقَدْ أَكَلْتَ بِرُقْيَةِ حَقٍّ.

خارجه بن صلب دخپل تره نه روايت کوی فرمائی چه هغه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اواسلام ئې قبول کړو کله چه هغه دنبی ﷺ نه واپس روانيدو نوپه لارکښې د يو قوم سره مخامخ شو چه دهغوی سره يوکس په زنځيرونوتړلې شوې پروت وو ددې ليونی وارثانو اووئيل چه مونږته دا معلومه شوې ده چه ستاسو مشر (نبی ﷺ) يولوئې خير راوړې دې اناستاسو سره داسې څه شې شته چه په هغې باندې داليونې روغ شي دې وائی ماسورة فاتحه اولوستله اوچوپ مې وربانديې اوکړوهغه مريض روغ شو ددغه ليونی وارثانو ماته سل چيلی راکړې زه چه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نوددې واقعې ذکرې ورته اوکړو نبی ﷺ اوفرمائيل ايا دسورة فاتحې نه دې علاوه بل دم نه وو وئيلې،

[٣٨٩٧](٢)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ، عَنْ الشَّعْبِيِّ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ الصَّلْتِ، عَنْ عَمِّهِ أَنَّهُ مَرَّ قَالَ فَرَقَاهُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً كُلَّمَا خَتَمَهَا جَمَعَ بُزَاقَهُ، ثُمَّ تَفَلَ فَكَأَنَّمَا أُنْشِطَ مِنْ عِقَالٍ فَأَعْطَوْهُ شَيْئًا، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ ذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ مُسَدَّدٍ.

خارجه بن صلت دخپل تره نه روايت کوی فرمائی چه هغه ده درې ورځو پورې سحر اوماښام الحمدلله وئيله او په دې ليونی باندې به ئې چپ کولو کله چه به دالحمدو دوئيلونه فارغ شونولاړې به ئې په خوله کښې جمع کړې او په ده باندې به ئې ونوکل ليونې داسې روغ شو چه دپړونه پرانيستل شو نودغه خلقو په عوض کښې چيلئ ورکړې دې چه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، باقی حديث کې ذمسدد دحديث په شان بيان کړو.

دا حديث په کتاب البيوع کښې په ﴿ باب کسب الاطباء ﴾ کښې تير شوې دې او وړاندې په کتاب الطب کښې په ﴿ باب کيف الرقی ﴾ کښې هم راوان دې.

## د بذل المجهود شريف د جلد رابع اختتام:

او بيا د دې نه روستو په بعض نسخو کښې آخر کتاب الاطعمه ذکر دې او هم په دې باندې د بذل المجهود څلورم جلد پوره شوې دې اودکتاب الطب نه دهغې پنځم جلد شروع کيږي.

(١): انظر حديث رقم :(٣٤٢٠)، (تحفة الأشراف: ١١٠١١) (صحيح)

(٢): انظر حديث رقم :(٣٤٢٠)، (تحفة الأشراف: ١١٠١١) (صحيح)

بسم الله الرحمن الرحيم

# كِتَابُ الطِّبِّ

## د طب متعلق بیان

د دې کتاب د ماقبل سره مناسبت ښکاره دې. مخکښې اطعمه او اشربه تیر شو او مرضونه ډیر کرته په خوراک څکاک کښې د بې احتیاطۍ او د ترک حمیه د وجې نه وی په دې وجه ضرورت پیښ شو د طب او د علاج د بیانولو.

## د طب تعریف او د هغې تقسیم او انواع :

طب یو مسستقل علم دې چه د هغې تعریف دا دې: ﴿ هو علم يعرف به احوال بدن الانسان من المرض والصحة ﴾ طب لغة په اضدادو کښې دې د دې معنی علاج او تداوی هم ده او په معنی د بیمارئ هم دې، هم دغه شان په معنی د سحر هم دې، مطبوب یعنی مسحور.
بیا په دې باندې هم ځان پوهه کول پکار دی چه د طب دوه قسمونه دی یو طب القلوب او بل طب الابدان (ځکه چه د مرضونو دوه قسمونه دی یو روحانی او بل بدنی) طب القلوب خو د رسول اللهﷺ راوړی تعلیمات دی یعنی د شریعت اتباع کول، او د طب الابدان بیا دوه قسمونه دی یو هغه چه کومه د رسول اللهﷺ نه نقل ده، پس په بعض احادیثو کښې بعض بیماریانې او د هغې علاج ذکر شوې دې او د هغې نوم الطب النبوی دې. د بعض محدثینو په باندې مستقل تصنیفات او کتابونه دی لکه د علامه سیوطیؒ ﴿ المنهج السوی فی الطب النبوی﴾ او د امام ذهبیؒ ﴿ الطب النبوی ﴾ او هم دغه شان د ابونعیم کتاب ﴿ الطب النبوی ﷺ ﴾ وغیره.
او قسم ثانی کوم چه منقول دې د حکماء او اصحاب تجارب نه مثلا دحکیمانو د یونان نه چه کوم منقول دې هغې ته طب نبوی وائی، د دې نه علاوه د نور طبیبانو نه مثلا هغه چه د هند د حکماء نه منقول دې هغې ته آیورویدک وائی او کوم چه د حکماء عرب نه منقول دې هغې ته طب عربی وائی لکه حارث ابن کلده مشهور طبیب کوم چه د رسول اللهﷺ په زمانه کښې وو د چا ذکر چه وړاندې په یو حدیث کښې هم راروان دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَتَدَاوَى

### باب دهغه کس بیان چه هغه علاج کول غواړی

[٣٨٥٥](١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ كَأَنَّمَا عَلَى رُءُوسِهِمُ الطَّيْرُ، فَسَلَّمْتُ ثُمَّ قَعَدْتُ، فَجَاءَ الْأَعْرَابُ مِنْ هَاهُنَا وَهَاهُنَا، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَتَدَاوَى؟، فَقَالَ: تَدَاوَوْا، فَإِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ لَمْ يَضَعْ دَاءً إِلَّا وَضَعَ لَهُ دَوَاءً غَيْرَ دَاءٍ وَاحِدٍ الْهَرَمُ".

د اسامه بن شریک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم په

---

(١): ❁ تخريج: سنن النسائي/الكبري الطب، ٤٣ (٧٥٥٣)، سنن الترمذي/الطب ٢ (٢٠٣٨)، سنن ابن ماجه/الطب ١ (٣٤٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٨/٤) (صحيح)

دي وخت کښې صحابه کرام په داسې طريقه ناست وو ګوياکښې ددوی په سرونوباندې مرغی ناستي دي يعنی په خاموشی سره ئې سرونه ښکته کړی وو، ما سلام اوکړو او کښيناستم په دې وخت کښې باند چيان داخوا ديخوانه راورسيدل اووئې وئيل اې دالله رسوله اياموږه علاج وکړو؟ نبی ﷺ اوفرمائيل علاج کوئ يقينا الله تعالی داسې مرض نه دې پيداکړې دکوم دپاره چه علاج نه وي علاو ديوی بيماری نه اوهغه بوډاوالې دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- وَأَصْحَابُهُ كَأَنَّمَا عَلَى رُءُوسِهِمُ الطَّيْرُ ﴾ دا صحابی ﷜ فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم په داسې حال کښې چه د رسول الله ﷺ صحابه کرام د هغوی په مجلس کښې په داسې سکون او وقار سره ناست وو صامت او ساکت لکه چه د هغوی په سرونو باندې مرغۍ ناسته وی. دا د تشبيه په طور ده، که د يو سړی په سر باندې مرغۍ کينی او هغه غواړی چه هغه دې هم دغه شان ناسته وی او پاسی دې نه، نو ښکاره خبره ده چه هغه وخت به دا سړې ډير په سکون سره کينی سر ته به حرکت هم نه ورکوی او نه به ئې پورته اوچتوی. دا صحابی فرمائی چه ما سلام اوکړو او د هغوی په مجلس کښې کيناستم نو زما په موجودګۍ کښې د مختلفو طرفونو نه اعراب د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د هغوی نه ئې تپوس اوکړو ﴿ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَتَدَاوَى فَقَالَ: تَدَاوَوْا ﴾ يعنی آيا موږ خپل علاج او دوائی کولې شو؟ (دا د توکل خلاف خو نه ده؟) نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل او اجازت دې کوئ. ځکه چه الله پاک داسې يو بيماری هم نه ده پيدا کړې چه د هغې دپاره ئې دوائی نه وی پيدا کړې سوا د يوې بيمارئ يعنی بوډا والی نه.

## د علاج او تداوی حکم:

په دې کښې اختلاف دې چه د بيمارئ دوائی او علاج کول مستحب دی يا صرف مباح، د اکثرو رائې په دې کښې د اباحت ده او يو قول د استحباب هم دې، اکثر علماء هم دا ليکی چه د رسول الله ﷺ د تداوی بيان د جواز دپاره وو اوس که هم په دې کښې څوک د اتباع نيت اوکړی نو د اجر او ثواب اميد ئې شته. امام خطابی ﷫ فرمائی: فيه ان الطب مباح لا کما قال بعضهم انه مکروه.... او علامه عينی ﷫ فرمائی چه په دې کښې رد دې په هغه بعضو صوفياء باندې کوم چه وائی چه د يو ولی ولايت هغه وخته پورې نه شی کامل کيدې، چه تر څو پورې په نازليدونکی هر مصيبت او بلا باندې راضی نه شی، او دا چه د هغه دپاره علاج جائز نه دې، هغوی فرمائی چه دا خبره د دې حديث خلاف ده.

## د توکل مراتب ثلاثه:

او د کوکب دری نه معلوميږی چه بعض قسمونه خو ئې تول حرام دی، يعنی کوم چه د نص په مقابله کښې وی لکه د زهرو څکل په الله پاک باندې د توکل د وجې نه او بعض قسمونه د دې اعلی دی، ترک تداوی هم په هغې کښې ده.......... او بعض مراتب د دې بالکل ادنی دی لکه ترک د رقيه چه دا په قسم ثالث کښې دې. د دې نه کم درجه د توکل بالکل نشته، لهذا تعويذونه کول دا د توکل خلاف دی، کذا فی هامش المذل.....او په دې کښې

دا هم دی چه حافظ په فتح الباری کښې په دې باندې تفصیلاً کلام کړې دې چه آیا رقیه اختیارول د توکل منافی دی یا نه، د رقیه متعلق څو ابواب وړاندې راروان دی.
والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، وقال الترمذی، حسن صحیح، قاله المنذری.

## باب فِي الْحِمْيَةِ

### د پرهیز کولو بیان

په سنن ترمذی کښې هم د ابواب الطب د ټولو نه مخکښې باب هم دا دې، ﴿ باب ما جاء في الحمية ﴾ یعنی د ضرری څیزونو نه پرهیز کول چه د هغې ثبوت د قرآن کریم او د حدیث الباب نه کیږی، حدیث الباب خو په دې کښې صریح دې او په قرآن کریم کښې آیت د اودس کښې دی ﴿ وان كنتم مرضى او على سفر ﴾ یعنی د عذر د وجې نه الله پاک د اوبو د استعمال نه داحتیاط حکم او دتیمم جواز فرمائیلې دې. مشهوره مقوله ده چه﴿الحمية راس كل دواء﴾.

[٣٨٥٦](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، وَأَبُو عَامِرٍ، وَهَذَا لَفْظُ أَبِي عَامِرٍ، عَنْ فُلَيْحِ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ صَعْصَعَةَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ أَبِي يَعْقُوبَ، عَنْ أُمِّ الْمُنْذِرِ بِنْتِ قَيْسٍ الْأَنْصَارِيَّةِ، قَالَتْ: "دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ عَلِيٌّ رضي الله عنه، وَعَلِيٌّ نَاقِهٌ وَلَنَا دَوَالِي مُعَلَّقَةٌ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ مِنْهَا، وَقَامَ عَلِيٌّ لِيَأْكُلَ، فَطَفِقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِعَلِيٍّ: مَهْ إِنَّكَ نَاقِهٌ، حَتَّى كَفَّ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَتْ: وَصَنَعْتُ شَعِيرًا وَسِلْقًا، فَجِئْتُ بِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا عَلِيُّ أَصِبْ مِنْ هَذَا فَهُوَ أَنْفَعُ لَكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ هَارُونُ الْعَدَوِيَّةُ.

دام المنذر بنت قیس الانصاریه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ زما خواته تشریف راوړو او علی کرم الله وجهه ورسره موجود وو کوم چه دبیمارئ په وجه باندې کمزورې شوې وو اوزمونږ کره دکجورو غونچکونه زوړند کړې شوي پراته وو نبی ﷺ ددې دراخستو دپاره ورپاڅیدو او علی ع دخوړلو دپاره ورپاڅیدونبی ﷺ ورته اووئیل ته مه خوره اوس ته تیک نه یې، تردې پورې چه علی دخوړلونه منع کړې شو، ام المنذر وائی چه مادوربشو دوډئ اودچقندرو شورواه پخه کړې وه دامې راواخستل اونبی ﷺ ته مې پیش کړل نبی ﷺ اوفرمائیل اې علی ددینه اوخوره دا ستادپاره فائده مند دې. امام ابوداؤد فرمائی چه دهارون نه هغه هارون مراد دې کوم چه عدوی دې.

قوله:﴿ عَنْ أُمِّ الْمُنْذِرِ بِنْتِ قَيْسٍ الْأَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَمَعَهُ عَلِيٌّ رضى الله عنه وَعَلِيٌّ نَاقِهٌ وَلَنَا دَوَالٍ مُعَلَّقَةٌ الخ ﴾

### مضمون الحديث:

ام المنذر رضی الله عنها چه د هغې نوم سلمی بنت قیس دې د رسول الله ﷺ د تروریانو نه ده، هغه فرمائی چه یو ځل رسول الله ﷺ زمونږ کور ته تشریف راوړو، علی رضی الله عنه هم د هغوی سره وو چه هغه وخت ناقه وو، یعنی د بیمارئ نه د پاسیدو د وجې نه پکښې نقاهت وو، زمونږ په

(١): سنن الترمذي/ الطب ١ (٢٠٣٧)، سنن ابن ماجه/الطب ٣ (٣٤٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٦٣، ٣٦٤) (حسن)

کور کښې د کهجورو غونچې زوړندې وې، رسول الله ﷺ اودریدلو، د هغې د خوراک دپاره، علی رضی الله عنه هم په دې غرض باندې اودریدلو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په تا کښې نقاهت او کمزوری ده تر دې چه هغه منع شو. هغه فرمائی چه ما د اوربشو او د چقندر سبزی هم پخ کړې وه کومه چه ما هغوی ته راوړله. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿يَا عَلِيُّ أَصِبْ مِنْ هَذَا فَهُوَ أَنْفَعُ لَكَ﴾ دا اوخوره ستا دپاره مفید دې.

کهجورې ګرمې وې چه دهغې نه رسول الله ﷺ هغه منع کړو او سبزی یخه وې کومه چه د هغوی په حق کښې فائده منده وه، په دې حدیث کښې د خوراک څکاک په څیزونو کښې د احتیاط او پرهیز کولو ثبوت دې لکه چه مصنف رحمه الله ترجمه قائم کړې ده، په بذل کښې دی چه د دې حدیث نه د علم طب فضیلت او دا چه د طبیب خبره منل پکار دی ثابت شو. والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْحِجَامَةِ

### د ښکر لګولو بیان

[۳۸۵۷] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنْ كَانَ فِي شَيْءٍ مِمَّا تَدَاوَيْتُمْ بِهِ خَيْرٌ فَالْحِجَامَةُ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی که چرې ستاسو په ټولو دوا ګانو کښې خیروې کوم چه تاسو کوئ نو هغه حجامت یعنی ښکرلګول دي.

**قوله:** ﴿إِنْ كَانَ فِي شَيْءٍ مِمَّا تَدَاوَيْتُمْ بِهِ خَيْرٌ فَالْحِجَامَةُ﴾

کوم علاج او دارو وغیره چه تاسو کوئ په هغې کښې که په څهٔ کښې خیر شته نو هغه په حجامت کښې دې یعنی ښکر لګول.

بعض شارحینو (سفاقسی) په دې حدیث باندې لیکلي دی چه ممکن ده رسول الله ﷺ دا خبره هغه وخت فرمائیلې وی چه کله هغوی ته دا علم نه وو چه الله پاک د هرې بیمارئ دپاره دوائی هم پیدا کړې دې. اهـ دې شارح دا حدیث حمل کړې دی په نفی د افادې باندې په نورو څیزونو او دوایانو کښې او د دې نه غوره خبره هغه ده کومه چه علامه سندی رحمه الله لیکلې ده چه په دې سره مقصود د رسول الله ﷺ د غیر حجامت نه د فائدې اوچتولو نفی نه ده مراد بلکه د مبالغې او تحقیق په طریقه باندې د حجامت فائدې لره بیانول مقصود دی. والحدیث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

[۳۸۵۸] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَزِيرِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الْمَوَالِي، حَدَّثَنَا فَائِدٌ مَوْلَى عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ مَوْلَاهُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ جَدَّتِهِ سَلْمَى خَادِمِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "مَا كَانَ أَحَدٌ يَشْتَكِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

[1]: سنن الترمذي/الطب ١ (٢٠٣٧)، سنن ابن ماجه/الطب ٢٠ (٣٤٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٠١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٤٢، ٤٢٣) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الطب ١٣ (٢٠٥٤)، سنن ابن ماجه/الطب ٢٩ (٣٥٠٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٦٢) (حسن)

وَسَلَّمَ وَجَعًا فِي رَأْسِهِ إِلَّا قَالَ: احْتَجِمْ، وَلَا وَجَعًا فِي رِجْلَيْهِ إِلَّا قَالَ: اخْضِبْهُمَا".

د نبی ﷺ دخادمي سلمي رضي الله عنها نه روايت دی فرمائی چه داسې هيڅ يو کس نه وو چه د درد د وجې نه به ئې نبی ﷺ ته شکايت وکړو مګرنبی ﷺ به ورته اوفرمائيل چه ښکر اولګوه اوچاچه به نبی ﷺ ته دخپو دردشکايت وکړونونبی ﷺ به ورته فرمائيل چه نکريزې ورباندې اولګوه.

**قوله:**﴿عَنْ جَدَّتِهِ سَلْمَى خَادِمِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم ﴾

د خادم اطلاق په غلام او جاريه دواړو باندې کيږی، او په دې کښې د تا استعمال يعنی خادمة قليل دې، سلمی رضي الله عنها چه د رسول الله ﷺ وينځه او خادمه ده فرمائی چه کوم سړی به هم رسول الله ﷺ ته د سر د درد شکايت کولو نو رسول الله ﷺ به هغه ته د حجامت حکم فرمائيلو او چا چه به رسول الله ﷺ ته د خپو تکليف بيانولو نو رسول الله ﷺ به هغه ته د خضاب بالحناء مشوره ورکوله، يعنی د خپو په تلو باندې د نکريزو لګولو.

شارحينو ليکلې دی چه په دهغه زمانه کښې زيات تر د سر درد او تکليف د وينې د غلبې او دهغې دجوش (بلډ پريشر) د وجې نه وو او حجامت هم د هغه بيمارريانو علاج دې کوم چه دغلبه دم په وجه باندې وی. (والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه مختصر فی الحناء، قاله المنذری)

## بَابٌ فِي مَوْضِعِ الْحِجَامَةِ
### باب د ښکر لګولو د ځای بيان

[٣٨٥٩](١)حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدِّمَشْقِيُّ، وَكَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ ابْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ، قَالَ كَثِيرٌ إِنَّهُ حَدَّثَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَحْتَجِمُ عَلَى هَامَتِهِ وَبَيْنَ كَتِفَيْهِ، وَهُوَ يَقُولُ: مَنْ أَهْرَاقَ مِنْ هَذِهِ الدِّمَاءِ فَلَا يَضُرُّهُ أَنْ لَا يَتَدَاوَى بِشَيْءٍ لِشَيْءٍ".

دابوکبشة الانماري نه روايت دی چه نبی ﷺ به په خپله کوپړئ کښې ښکر لګولو اودا وکوپه مينځ کښې به يې هم لګولو اوفرمائيل به ئې: څوک چه ددې دوه ځايونونه وينه اوباسي نوکچري داسې کس دڅه مرض دپاره دوا استعمال نکړي نو نقصان ورته نشي رسيدې.

**قوله:**﴿أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَحْتَجِمُ عَلَى هَامَتِهِ وَبَيْنَ كَتِفَيْهِ وَهُوَ يَقُولُ « مَنْ أَهْرَاقَ مِنْ هَذِهِ الدِّمَاءِ فَلاَ يَضُرُّهُ أَنْ لاَ يَتَدَاوَى بِشَيْءٍ لِشَيْءٍ ﴾

يعنی د رسول الله ﷺ عادت مبارک د احتجام په باره کښې دا وو چه اکثر به ئې د خپل سر په تالو باندې او د خپلو اوږو په مينځ کښې لګولو او فرمائيل به ئې چه کوم سړې دا وينه اوبهيوی، يعنی د حجامت په ذريعه، او د ﴿ هذه الدماء ﴾ اشاره هم هغې وينې ته ده کومه چه د ښکر لګولو په ذريعه اوخی نو بيا د هغه د بيمارئ دپاره د بل څه علاج ضرورت نشته.

### د احاديثو نه د حجامت د اهميت ثبوت:

په احاديثو کښې د حجامت ډير تعريف راغلې دې تر دې چه په حديث المعراج کښې راغی

(١): سنن ابن ماجه الطب ٢١ (٣٤٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٢١٤٣) (ضعيف) (الضعيفة: ١٨٦٧، وتراجع الألباني: ١٩٤)

چه رسول الله ﷺ به په کوم آسمان باندې هم تیر شو نو د هغه ځائې ملائکو به رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو ﴿ مرامتک بالحجامة ﴾........ ما د خپل وړوکوالی په زمانه کښې څلویښت پنځوس کاله مخکښې اوکتل چه د ګرمۍ په زمانه کښې د غرمې په وخت داسې خنګلیان قسم سړی په لاس کښې تهیلۍ وغیره نیولې په سړکونو او کلو کوڅو کښې آواز لګولو او په خپله خاص لهجه کښې به ئې وئیل ښکر اولګوئ........ چه د هغوی د آواز نه به ماشومان ویریدل هم چه کله به هغوی راتلل. خو اوس خو د هغوی راتلل تقریبا بند شو، کله کله څوک راشی، او اوریدلي مې دی چه دلته په حجاز کښې یعنی په مکه مدینه «زادهما الله شرفا» کښې اوس هم د دې رواج او معمول دې او معلومه شوه چه مخکښې خو به دا خلق د حرم په خوا کښې چرته د سړک په غاړه باندې ناست وو د خپلو آلاتو سره. خو اوس د دې ځائې حکومت د هغوی داسې د سړکونو په غاړو باندې د کیناستلو په ځائې د هغوی دپاره معقول ځائې او د صفائی لازم کړې ده. چه کله په حدیث کښې دومره تاکید کړې شوې دې نو بیا د دې اهتمام کیدل پکار دی، خو اوس په دنیا کښې نوې علاجونه شروع شو، انګریزی قسم خلق هغه کوی. والحدیث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری

[٣٨٦٠](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ يَعْنِي ابْنَ حَازِمٍ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "احْتَجَمَ ثَلَاثًا فِي الْأَخْدَعَيْنِ وَالْكَاهِلِ"، قَالَ مَعْمَرٌ: احْتَجَمْتُ فَذَهَبَ عَقْلِي حَتَّى كُنْتُ أُلَقَّنُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ فِي صَلَاتِي وَكَانَ احْتَجَمَ عَلَى هَامَتِهِ.

**ترجمه:** د انس بن مالک ﷺ نه روایت دې فرمائی چه رسول الله و دمرئ په رګونو اوددواړو اوګو په مینځ کښې درې پیرې ښکرلګولو، معمروئیلي دي مادخپل سر په مینځ کښې ښکر ولګولو نوعقل مې ختم شوتردې پورې چه مابه دخلقو په وینا باندې په مونځ کښې سورة فاتحه لوستله.

**قوله:** ﴿عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– احْتَجَمَ ثَلَاثًا فِي الْأَخْدَعَيْنِ وَالْكَاهِلِ ﴾

یعنی رسول الله ﷺ د بدن په درې ځایونو کښې ښکر اولګولو دواړه أخدغینو کښې کوم چه د سټ طرف ته د دوه رګونو نوم دی. او په کاهل یعنی مابین الکتفین کښ. یعنی په یو موقعه باندې رسول الله ﷺ داسې اوکړل، او د دې دریو نه علاوه د بدن په نورو حصو باندې لګول هم ثابت دی لکه چه په کتاب الحج کښې د دې سلسلې ډیر روایتونه تیر شوې دی ﴿ احتجم وهو محرم فی راسه من داء کان به ﴾، ﴿ احتجم وهو محرم علی ظهر القدم من وجع کان به ﴾ او یو روایت دلته په راروان باب کښې راځی، ﴿ احتجم علی ورکه من ولی کان به ﴾ ښکر په مجامع العروق باندې عام طور سره لګولې شی د بدن په کومه حصه کښې چه هم وی چرته چه رګونه جمع شوې وی هغه ځائې اول په غشی باندې زخمی کولې شی او بیا ښکر لګولو سره حجام د ساه په ذریعه باندې وینه راکاږی.

(١): سنن الترمذي/الطب ١٢ (٢٠٥١)، سنن ابن ماجه/الطب ٢١ (٣٤٨٣)، (تحفة الأشراف: ١١٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٩/٣، ١٩٢) (صحيح)

وړاندې حديث کښې معمر فرمائي چه ما يو کرت ښکر اولګولو نو زما عقل خراب شو، په سورة الفاتحه لوستلو کښې هم اينختمه، په هغې کښې هم لقمه راکولو ته حاجت راغلو، يو راوی وائی چه هغوی د خپل سره په تالو باندې ښکر لګولې وو، نو يا خو ترې نه په محل د تعين کښې غلطی اوشوه، يا د مرض په تشخيص کښې چه د هغې په وجه باندې نقصان پيدا شو، دا هم کيدې شی چه هغوی د هامه په ځائې په يافوخ باندې لګولې وی دا دواړه ځايونه نزدې نزدې دی، هامه لږ مقدم الراس طرف ته وی او يافوخ لږ شاته. والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

## باب مَتَى تُسْتَحَبُّ الْحِجَامَةُ

### باب: ښکر لګول کله مستحب دی؟

[٣٨٦١](١) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجُمَحِيُّ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ احْتَجَمَ لِسَبْعَ عَشْرَةَ، وَتِسْعَ عَشْرَةَ، وَإِحْدَى وَعِشْرِينَ، كَانَ شِفَاءً مِنْ كُلِّ دَاءٍ".

دابوهريره ﷺ نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چاچه په ولسم او نولسم او يويشتم تاريخونو (دمياشتې) باندې ښکرولګوو نو داسې کس ته به دهر مرض نه شفا حاصل شي.

يعنی په کومو تاريخونو کښې ښکر لګول پکار دی، په حديث الباب کښې دی چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه کوم سړی د مياشتې په اولسم او نولسم او يويشتم باندې ښکر اولګولو نو په هغې کښې د هرې بيمارئ نه شفاء ده. علماء کرامو ليکلې دی چه حکمت په دې کښې دا دې چه د مياشتې په شروع حصه کښې د انسان وينه جوش کوی او په آخير کښې ډير سپکه شی، لهذا د مينځ وخت د دې دپاره ډير مناسب دې. امام بخاری ﷺ هم په کتاب الطب کښې د حجامت متعلق ډير ابواب قائم کړې دی، يو ترجمه دا هم ده ﴿ ای ساعة يحتجم ﴾ او په هغې کښې ئې دا حديث مرفوع ذکر کړې ﴿ احتجم النبی ﷺ وهو صائم ﴾ او په يو روايت کښې تعليقا داسې دی ﴿ احتجم ابو موسی ليلا ﴾ ذکرکړې دې. په بخاری کښې د تعين اوقات هيڅ روايت نشته خو په سنن ابوداؤد او ابن ماجه کښې داسې روايات شته، او په فيض الباری کښې دی ﴿ لعل البخاری يشير الی حديث عند ابی داؤد فيه تفصيل الايام للاحتجام ﴾ اهـ الابواب والتراجم.

## بَابٌ فِي قَطْعِ الْعِرْقِ وَمَوْضِعِ الْحَجْمِ

### باب: د رګ کټ کولو او د ښکر لګولو د ځای بيان

په دې ترجمه کښې دوه اجزاء دی يو موضع الحجامة، خو د هغې باب پورته تير شوې دې په دې وجه په بعض نسخو کښې د ترجمې دا جزء نشته، او دويم جزء يعنی قطع العرق يعنی د يو خاص رګ خوله پرانستل يعنی فصد.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٥٨) (حسن)

[٣٨٦٤] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أُبَيٍّ طَبِيبًا فَقَطَعَ مِنْهُ عِرْقًا".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ ابی بن کعب رضی الله عنه ته یو طبیب ور ولیګلو اردو رګ ئې ورله پریکړو.

قوله: ﴿عَنْ جَابِرٍ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِلَى أُبَيٍّ طَبِيبًا فَقَطَعَ مِنْهُ عِرْقًا ن﴾

یعنی رسول الله ﷺ ابی بن کعب رضی الله عنه ته یو طبیب اولیږلو چا چه د هغوی فصد اوکړو. او د مسلم په روایت کښې دا هم دی ﴿ ثم بعد ذلک کواه لیرقا الدم ﴾ یعنی د فصد کولو نه پس ئې هغه زخم اوداغلو چه وینه راتلل بند شی.

والحديث اخرجه مسلم، وابن ماجه بنحوه، قاله المنذری

[٣٨٦٢] (٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرَةَ بَكَّارُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، أَخْبَرَتْنِي عَمَّتِي كَبْشَةُ بِنْتُ أَبِي بَكْرَةَ، وَقَالَ غَيْرُ مُوسَى: كَيِّسَةُ بِنْتُ أَبِي بَكْرَةَ، أَنَّ أَبَاهَا كَانَ "يَنْهَى أَهْلَهُ عَنِ الْحِجَامَةِ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ، وَيَزْعُمُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ يَوْمُ الدَّمِ وَفِيهِ سَاعَةٌ لَا يَرْقَأُ".

دکبشه بنت ابوبکره نه روایت دې اودموسی نه علاوه نورو راویانو وئیلی دی چه دکیسه بنت ابی بکره نه روایت دې فرمائی چه زما پلار به دخپل خاندان خلق دسه شنبی په ورځ دښکرلګولو نه منع کول او داګمان به ئې کولو چه نبی ﷺ په دې ورځ دښکر لګرلو نه منع کړې ده اردا چه ده شنبی ورځ دوینو ویستلو ورځ ده او په دې ورځ کښې یوداسې ساعت دې چه په دې کښې په وینو ویستلوسره سرې نه روغیږي.

﴿أَخْبَرَتْنِي عَمَّتِي كَبْشَةُ بِنْتُ أَبِي بَكْرَةَ﴾ زمونږ په نسخه کښې هم دغه شان دی، کبشة..... او په بعض نسخو کښې ﴿ کیسة ﴾ دې او هم دا صحیح دې. په دې حدیث کښې دا دی چه په یوم الثلثاء کښې ښکر نه دی لګول پکار، دا ورځ یوم الدم ده یعنی دا ورځې د وینې د غلبې دی په بدن کښې دننه، او په دې ورځ کښې یو ساعت داسې دې چه که په هغې کښې حجامت یا فصد اوکړې شی نو بیا وینه اودریږی نه.

دا حدیث ابن الجوزی رحمه الله په موضوغاتو کښې شمار کړې دې او بیا سیوطی رحمه الله په دې باندې د هغوی تعاقب کړې دې

[٣٨٦٣] (٣) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "احْتَجَمَ عَلَى وَرِكِهِ مِنْ وَثْءٍ كَانَ بِهِ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ د پخوانی درد په بناباندې په خپل کوناتی باندې ښکرلګولې وو.

[1]: صحيح مسلم/السلام ٢٦ (٢٢٠٧)، سنن ابن ماجه/الطب ٢٤ (٣٤٩٣)، (تحفة الأشراف: ٢٢٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٣/٣، ٣٠٤، ٣١٥، ٣٧١) (حسن)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٧٠٧) (ضعيف)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٩٧٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطب ٢١ (٣٤٨٥)، مسند احمد (٣٠٥٣، ٣٥٧، ٣٨٢) (صحيح)

قوله: ("اختجم على وركه من وثئ كان به") يعنى په خپل ورک (د پتون نه لږ بره خائې) باندې ئې ښکر اولګولو او د زخمي کيدو د وجې نه د وثئ دادې چه په هډوکی باندې زخم اولګی خو هغه زخمي نه شی، کيدې شی چه دا مختصر وی هم د حديث نه په کوم کښې چه د رسول اللهﷺ د سقوط عن الفرس مشهور واقعه ذکر شوې ده، حضرت په بذل کښې د هغې طرف ته اشاره کړې ده. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

## باب في الكي

### بابه د داغ لګولو بيان

**(د کیّ تعريف):**

کئ د علاج يو خاص طريقه ده چه په هغې کښې اوسپنې لره ګرمولو سره د بدن په کومه حصه کښې چه تکليف وی هلته په هغې باندې داغ ورکولې شی،

**(تطبيق بين الروايتين)**

د دې په باره کښې دواړه قسم روايتونه راغلی دی د منع هم او د جواز هم لکه چه خپله هم د دې باب په دواړو احاديثو کښې دی، په رومبی روايت کښې منع او دويم روايت کښې د هغې ثبوت دې چه رسول اللهﷺ د سعد بن معاذ رضی الله عنه علاج بالکئ اوکړو کله چه هغوی د غشی د لګيدو په وجه باندې زخمي شوې وو. جمع د روايتينو بعضو خو داسې کړې ده چه په اصل کښې دا علاج سخت قسم دې، دا اوګنړئ چه دا آخری علاج دې چه په هغې کښې تعذيب بالنار دې. نو که د دی نه علاوه په معمولی يا سپک شان علاج باندې کار کيدلې شی نو دا نه دی اختيارول پکار، او چرته چه يو بله دوائی مفيد ثابته نه شی هلته بيا دا کول پکار دی. او بعضو شارحينو داسې ليکلې دی چه که دا علاج صرف د بيماريانو نه د بچ کيدلو دپاره او د تحفظ دپاره وی نو بيا خو منع دې او که حقيقت کښې دې ضرروت راشی نو بيا داسې کول جائز دی، دا دويمه توجيه په حاشيه کښې د عزالدين ابن عبد السلام نه نقل کړې ده.

[٣٨٦٥]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: "نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْكَيِّ، فَاكْتَوَيْنَا فَمَا أَفْلَحْنَ وَلَا أَنْجَحْنَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَانَ يَسْمَعُ تَسْلِيمَ الْمَلَائِكَةِ، فَلَمَّا اكْتَوَى انْقَطَعَ عَنْهُ، فَلَمَّا تَرَكَ رَجَعَ إِلَيْهِ.

د عمران بن حصين رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم ﷺ منع فرمائيلې ده د داغ لګولونه مونږ به داغونه لګول خوم ونړنه څه فائده حاصله کړه اونه څه کاميابي. امام ابو داؤد فرمائی چه دفرشتو سلام به ئې اوريدو خوچه کله ئې داغونه شروع کړل بيا به ئې نه اوريدو خوچه کله ئې داغ لګول پريښودل نو بيا به ئې اوريدو.

د باب په رومبی حديث کښې دی چه عمران بن حصين رضی الله عنه فرمائی چه رسول اللهﷺ مونږ د

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٨٤٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطب ١٠ (٢٠٩٤)، سنن ابن ماجه/الطب ٢٣ (٣٤٩١)، مسند احمد (٤/٤٤٤، ٤٤٦) (صحيح)

علاج بالکل نه منع کړي وو، خو مونږ دا علاج اوکړو نو په دې کښې کامیابي حاصله نه شوه. ﴿ فَمَا أَفْلَحْنَ وَلاَ أَنْجَحْنَ ﴾ او په بعض نسخو کښې داسې دی ﴿ فَمَا أَفْلَحْنَا وَلاَ أَنْجَحْنَا ﴾ د جمع متکلم په صیغې سره په ړومبی صورت کښې به ضمیر راجع وی کیات طرف ته چه زمونږ دپاره دا علاجونه فائده مند ثابت نه شو، او په دویم صورت کښې به مطلب دا وی چه مونږ په دې علاج کښې ناکام شو.

په بعض نسخو کښې د اول حدیث نه پس دی: امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه دې صحابی عمران بن حصین رضی الله عنهما به د دې علاج نه مخکښې تسلیم ملائکه اوریدله. چه کله هغوی دا علاج اوکړو نو دا اوریدل منقطع شو، بیا چه کله هغوی دا علاج ترک کړو نو بیا ئې اوریدل شروع کړل.

[٣٨٦٦]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَوَى سَعْدَ بْنَ مُعَاذٍ مِنْ رَمِيَّتِهِ".

**ترجمه:** د جابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په سعد بن معاذ رضی الله عنه باندې د زخم په بناء باندې داغ لګولو.

حدیث عمران رضی الله عنه اخرجه الترمذی وابن ماجه، وحدیث جابر رضی الله عنه اخرجه مسلم وابن ماجه قاله المنذری.

## بَابٌ فِي السَّعُوطِ

### په پوزه کښې د دوائی اچولو بیان

سعوط په فتح د سین سره او هم دغه شان لدود په فتح د لام سره او هم دغه شان وجور په فتح د واؤ سره د علاجونو نومونه دی، سعوط په پوزه کښې دوائی اچول (په پوزه کښې د دوایئ اچولو طریقه هم شارحینو لیکلې ده (٢))، او لدود د خولې په یو طرف کښې دوائی اچول او وجور په حلق کښې اچول.

[٣٨٦٧](٣)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعَطَ".

**ترجمه:** د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په پوزه کښې دوائي اچولي وه.

د لدود ذکر دلته د ابوداؤد په روایت کښې نشته، د صحاح په نورو کتابونو (بخاری او ترمذی) وغیره کښې شته.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٦٩٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/السلام ٢٦ (٢٢٠٨)، سنن ابن ماجه/الطب ٢٤ (٣٤٩٤)، مسند احمد (٣/٣٦٣) (صحيح)

[2]: ففي هامش الكوكب عن الحافظ: بان يستلقي الرجل علي ظهره ويجعل بين كتفيه ما يرفعهما لينحدر رأسه ويقطر في انفه ماء او دهن فيه دواء مفرد او مركب ليتمكن بذلك من الوصول الي دماغه لاستخراج ما فيه من الداء بالعطاس اهـ)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٧٢٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/السلام ٢٦ (١٢٠٢)، سنن الترمذي/الطب ٩ (٢٠٤٧) (صحيح)

**قوله:** ﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- اسْتَعَطَ﴾

معلومه شوه چه د رسول اللهﷺ نه سعوط ثابت دې، خپله دا کړې دې.

**د رسول اللهﷺ په مرض کښې د لدود واقعه:**

او د لدود په باره کښې دا راځی د ترمذی په روایت کښې دی:

﴿إن خير ما تداويتم به السعوط واللدود والحجامة والمشي فلما اشتكى رسول الله صلى الله عليه و سلم لده أصحابه فلما فرغوا قال لدوهم قال فلدوا كلهم غير العباس رضي الله عنه﴾ يعنی د رسول اللهﷺ د کور خلقو هغوی سره لدود اوکړو حال دا چه رسول اللهﷺ د دې نه منع فرمائیلې وه خو د کور خلقو په دې سوچ چه مریض خو دوائی ضرور ناخوښه ګڼړی داسې ځکه اوکړل... ﴿ففی حديث عائشة رضی الله تعالى عنها عند الشخين لَدَدْنَا رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي مَرَضِهِ فَأَشَارَ أَنْ لاَ تَلُدُّونِي. فَقُلْنَا كَرَاهِيَةُ الْمَرِيضِ لِلدَّوَاءِ. الحديث﴾ او د طبرانی په یو روایت کښې دی ﴿انهم اذا بوا قسطا... ای بزیت فلدوه به﴾ یعنی په قسط هندی لره ګرمولو سره ئې د زیتونو په تیلو کښې خوټکولو سره په هغې باندې د هغوی لدود اوکړو یعنی د حضورﷺ په حلق کښې ئې واچولو، په بعض روایاتو کښې دی چه خلقو دا ګڼړله چه رسول اللهﷺ ته د ذات الجنب تکلیف دې هم په دې وجه هغوی دا علاج کړې وو. بیا روستو دا اوشوه چه رسول اللهﷺ د سزا په طور په ټولو باندې لدود اوکړو بغیر د عباس رضي الله عنه نه چه د هغوی په باره کښې رسول اللهﷺ داسې اوفرمائیل چه ﴿انه لم یشهدکم﴾ چه هغوی د لدود په وخت موجود نه وو. (اګر چه د لدود مشوره ورکونکې هم هغوی وو)

(**اشکال**): دلته دا سوال واردیږی چه د رسول اللهﷺ عادت مبارک د خپل ځان دپاره د انتقام اخستلو نه وو....... بیا رسول اللهﷺ انتقام ولې واخستلو؟

(**جواب**): د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه د رسول اللهﷺ د امر د مخالفت د وجې نه، او د رسول اللهﷺ امر د وحی په ذریعه وو، ګویا هغوی د وحی مخالفت اوکړو،

(**په جواب باندې اشکال**): بیا دا سوال واردیږی چه اهل بیت خو دا خطاء اجتهادی کړې وه او په هغې باندې سزا نه ملاویږی،

(**جواب**): د دې جواب حضرت ګنګوهی دا ورکړې دې چه د هغوی دپاره دا اجتهاد جائز کله وو، د نص د کیدو په وخت کښې اجتهاد جائز نه دې، هم دغه شان د رسول اللهﷺ په موجودګئ کښې هم اجتهاد جائز نه دې، دا سوال او جواب د حضرت سهارنپوری او د حضرت ګنګوهی ترمینځه د خط او کتابت په ذریعه شوې وو کوم چه په تذکرة الخلیل کښې نقل کړې شوې دی. په کوکب دری کښې هم تقریبا هم دغه شان راغلې دی.

د ترمذی په پورته ذکر شوې روایت کښې د مشئ ذکر هم راغلې دې یعنی دواء مسهل سنامکی وغیره.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم اتم منه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي النُّشْرَةِ

### دشيطانانو په نوم باندې ديو قسم دم کولو بيان

[٣٨٦٨](¹)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا عَقِيلُ بْنُ مَعْقِلٍ، قَالَ: سَمِعْتُ وَهْبَ بْنَ مُنَبِّهٍ يُحَدِّثُ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النُّشْرَةِ؟ فَقَالَ: هُوَ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی کريم ﷺ نه دشيطانانو په نوم باندې ددم کولو په باره کښې تپوس وکړې شو، نبی علیه السلام اوفرمائيل دايو شيطاني عمل دې.

**تشريح:** په حديث الباب کښې دی چه د رسول الله ﷺ نه د نشره په باره کښې تپوس اوشو ﴿فَقَالَ « هُوَ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ »﴾ په بذل کښې دی چه دا د رقيه يو قسم دې او دا هم وئيلې شوې دی چه سحر دې. رسول الله ﷺ دې ته د شيطان عمل اوفرمائيلو کيدې شی چه دا په نومونو د شيطانانو باندې مشتمل وی چه د هغې په وجه ئې منع فرمائيلې وی.

## بَابٌ فِي التِّرْيَاقِ

### بابه د ترياق د استعمال بيان

د زهرو دوائی ته ترياق وائی، بعض ترياقونه مرکب وی چه په هغې کښې لحوم افاعی يعنی د مار د بدن درميانی حصه د سر او وينې نه علاوه بيلولو سره اچولې شی، نور ځيزونه به هم وی، دا حرام دې د نجس کيدو د وجې نه، او که ترياق د پاکو ځيزونو نه جوړ کړې شی نو د هغې په څکلو کښې هيڅ باک نشته (کذا فی المنهل) وفيه وممن اباح فيما فيه شئ من لحوم الافاعی مالک لانه يری اباحة لحوم الحياة ويقتضيه مذهب الشافعی لاباحة التداوی ببعض المحرمات، قاله ابن رسلان... (بذل)

[٣٨٦٩](²)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا شُرَحْبِيلُ بْنُ يَزِيدَ الْمُعَافِرِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ رَافِعٍ التَّنُوخِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَا أُبَالِي مَا أَتَيْتُ إِنْ أَنَا شَرِبْتُ تِرْيَاقًا أَوْ تَعَلَّقْتُ تَمِيمَةً أَوْ قُلْتُ الشِّعْرَ مِنْ قِبَلِ نَفْسِي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً وَقَدْ رَخَّصَ فِيهِ قَوْمٌ يَعْنِي التِّرْيَاقَ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوريدلی دی چه فرمائيل ئې: زه هيڅ قسم خوف اواندېښنه نه کوم که چرې زه ترياق اوخورم ياتعويذ اويزان کړم ياد خواهش نفساني اشعار ووايم. امام ابوداؤد فرمائی چه داد نبی علیه السلام خصوصيت وو اويو قوم د ترياق خوړلو اجازت ورکړې دې.

﴿سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « مَا أُبَالِى مَا أَتَيْتُ إِنْ أَنَا شَرِبْتُ تِرْيَاقًا أَوْ تَعَلَّقْتُ تَمِيمَةً أَوْ قُلْتُ الشِّعْرَ مِنْ قِبَلِ نَفْسِى »﴾

¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣١٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٤/٣) (صحيح)

²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٨٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٧/٢، ٢٢٣) (ضعيف)

## شرح الحديث :

﴿ ما ابالی ما اتيت ﴾ جزاء مقدم ده وړاندې د دې شرط راروان دې، رسول الله ﷺ فرمائی چه که زه ترياق استعمال کړم يا تعليق تميمه يا د خپل طرف نه شعر اوائم نو د دې مطلب به دا وی چه زه څه غواړم هغه کوم او پرواه نه کوم، يعنی د جائز کيدو او د ناجائز کيدو.

حاصل دا چه دا کار زما دپاره قطعا جائز نه دې.

قوله:﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا كَانَ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- خَاصَّةً ﴾

مصنف رحمه الله فرمائی چه د ترياق حراميدل خاص د رسول الله ﷺ دپاره دی ګينې بعض علماء کرامو ترياق ته جائز وئيلې دی، او دا هم احتمال دې چه د مصنف په کلام کښې په هذا سره اشاره د ﴿ او قلت الشعر من قبل نفسی ﴾ طرف ته وی او ﴿ وقد رخص قوم ﴾ دا جمله د ماقبل سره متعلق نه وی، بلکه مستقل د ترياق سره متعلق وی.

په دې حديث کښې د تعليق تميمه هم ذکر دې، د تعليق التمائم وړاندې مستقل باب راروان دې.

# بَابٌ فِي الأَدْوِيَةِ الْمَكْرُوهَةِ

### باب د هغه دوايانو بيان کوم چه استعمالول مکروه دی

[٣٨٧٤](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَادَةَ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الأَنْصَارِيِّ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ الدَّاءَ وَالدَّوَاءَ وَجَعَلَ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءً فَتَدَاوَوْا وَلاَ تَدَاوَوْا بِحَرَامٍ".

د وائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه طارق بن سويد يا سويد بن طارق د نبی عليه السلام نه د شرابو څکلو متعلق تپوس وکړونو نبی عليه السلام ده لره منع کړو بيا ئې تپوس وکړو نو بيائې منع کړو نو عرض ئې وکړو چه زما غرض د علاج دپاره څکل دې نبی عليه السلام ورته وفرمائيل شراب دوا نه ده دا پخپله يوه بيماري ده.

﴿ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إِنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ الدَّاءَ وَالدَّوَاءَ وَجَعَلَ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءً فَتَدَاوَوْا وَلاَ تَدَاوَوْا بِحَرَامٍ ﴾

د دې حديث مضمون د کتاب الطب په شروع کښې تير شوې دې چه بيماری هم د الله پاک پيدا کړې ده او د هغې دپاره دوائی هم الله پاک پيدا کړې ده او بيا وړاندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دوائی کوئ خو په حرام او نجس څيز باندې نه.

د دې حديث د سياق نه د علاج او تداوی ترغيب معلوميږی چه دوائی خو د الله پاک يو نعمت دې او د دې نه فائده اوچتول پکاردی، او څوک چه وائی دوائی د توکل خلاف ده هغه به د لويو خلقو په حق کښې وی کوم چه د رضا او تسليم اعلی مقام ته رسيدلې وی.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٠٧) (ضعيف)

[٣٨٧٠]()حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدَّوَاءِ الْخَبِيثِ".

دابو الدرداء ﷺ نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه الله تعالی بیماري اوعلاج دواړه نازل کړي دي اودهر مرض دپاره ئې علاج پیدا کړي دي دمرضونو دپاره علاجونه کوئ خوپه حرام څیز باندې علاج مه کوئ.

[٣٨٧١]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ، "أَنَّ طَبِيبًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ضِفْدَعٍ يَجْعَلُهَا فِي دَوَاءٍ، فَنَهَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِهَا".

دعبدالرحمن بن عثمان نه روایت دې فرمائی چه یوطبیب دنبی کریم ﷺ نه تپوس وکړودچندبش په باره کښې چه په دوا کښې واچولې شي نونبی ﷺ ددې دوژلو نه منع اوفرمائیله.

**قوله:**﴿ أَنَّ طَبِيبًا سَأَلَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ ضِفْدَعٍ يَجْعَلُهَا فِي دَوَاءٍ فَنَهَاهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ قَتْلِهَا ﴾

هر کله چه د (چیندخ) قتل منع شو نو تداوی بالضفدع هم منع شوه ځکه چه تداوی د هغه په قتل باندې موقوف ده یا خو په دې وجه منع دې چه هغه نجس دې یا کم از کم مستقذر (یعنی کرک ژن څیز) کذافی البذل عن فتح الودود...

د دې حدیث نه شوافعو استدلال کړې دې چه په میتة البحر کښې صرف ضفدع حرام دې، لکه دا اختلاف مخکښې په کتاب الطهارة کښې تیر شوې دې. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[٣٨٧٢]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَسَا سُمًّا فَسُمُّهُ فِي يَدِهِ يَتَحَسَّاهُ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا".

د ابوهریره ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ دحرامې اونجسې دوا استعمال نه منع فرمائیلې ده.

**قوله:**﴿ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم مَنْ حَسَا سُمًّا فَسُمُّهُ فِي يَدِهِ يَتَحَسَّاهُ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا ﴾

[1]): سنن الترمذي/الطب ٧ (٢٠٤٥)، سنن ابن ماجه/الطب ١١ (٣٤٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٠٥، ٤٤٦، ٤٧٨) (صحيح)

[2]): سنن النسائي/الصيد ٣٦ (٤٣٦٠)، (تحفة الأشراف: ٩٧٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٥٣، ٤٩٩)، سنن الدارمي/الأضاحي ٢٦ (٢٠٤١)، ويأتي هذا الحديث في الأدب (٥٢٦٩) (صحيح)

[3]): سنن الترمذي/الطب ٧ (٢٠٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٢٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الطب ٥٦ (٥٧٧٨)، صحيح مسلم/الإيمان ٤٧ (١٧٥)، سنن النسائي/الجنائز ٦٨ (١٩٦٧)، سنن ابن ماجه/الطب ١١ (٣٤٦٠)، مسند احمد (٢/٢٥٤، ٤٧٨، ٤٨٨)، سنن الدارمي/الديات ١٠ (٢٤٠٧) (صحيح)

**شرح الحديث :**

يعنى كوم سړي چه په دنيا كښې د زهرو په خوړلو سره مړ شو نو په آخرت كښې به د هغه سره دا معامله كيږى چه هغه زهر به د هغه په لاس كښې وى كوم چه به هغه هم هغه شان څكى په جهنم كښې هميشه هميشه دپاره، كه حديث په خلود په ظاهرياندې كيخودلې شى نو بيا خودا حديث په مستحل باندې محمول دې اويا خود خلودنه مراد مكث طويل دې.

او يو جواب هغه دې كوم چه امام ترمذى رحمه الله فرمائيلي دې : هغوى دا حديث په مختلفو طرقو سره ذكر كړې دې چه په هغې كښې بعض طرق داسې هم دى چه په هغې كښې د ﴿ خالدا مخلدا ﴾ لفظ نشته بلكه صرف دا دې ﴿ علذب فى نار جهنم ﴾ امام ترمذى رحمه الله هم دې طريق ته ترجيح وركړې ده او فرمائى : ﴿ وهذا أصح لأن الروايات إنما تجيء بأن أهل التوحيد يعذبون في النار ثم يخرجون منها ولا يذكر انهم يخلدون فيها الخ ﴾

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه اتم منه، قاله المنذري.....

[٣٨٧٣]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، ذَكَرَ طَارِقُ بْنُ سُوَيْدٍ أَوْ سُوَيْدُ بْنُ طَارِقٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَمْرِ؟ فَنَهَاهُ، ثُمَّ سَأَلَهُ؟ فَنَهَاهُ، فَقَالَ لَهُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّهَا دَوَاءٌ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا وَلَكِنَّهَا دَاءٌ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام فرمائيلي دي: څوك چه زهر اوڅكي نودقيامت په ورځ به دغه زهر ورسره وي او دجهنم په اوركښې به ناست وي اودابه څكي او په دې كښې به هميشه وى.

**قوله:**﴿عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ عَنْ أَبِيهِ ذَكَرَ طَارِقَ بْنَ سُوَيْدٍ أَوْ سُوَيْدَ بْنَ طَارِقٍ ﴾

**شرح السند :**

دا حديث علقمه د خپل پلار وائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت كوى او وائل ئې د طارق په سويد صحابى نه، شعبه وائى چه زما استاد سماک د ﴿ عن ابيه ﴾ نه پس طارق بن سويد هم ذكر كړې دې. لهذا د دې حديث راوى طارق بن سويد شو. ﴿فهذا رواية الصحابى عن الصحابى﴾ چرته چه راوى ته د استاد الفاظ په ښه طريقه ياد نه وى نو هلته هم دغه شان تعبير كولې شى، دلته شعبه ته خو دا ياد وو چه د وائل نه پس په سند كښې طارق دې خو دا ورته ياد نه دى چه د هغوى نه روايت په صيغه د تحديث دې يا اخبار يا عنعنه.... هم په دې وجه ئې دغه شان اووې، بله دا چه دلته يو راوى ته دا شک هم دې چه صحيح نوم طارق بن سويد دې يا ددې عكس سويد بن طارق، خو صحيح طارق بن سويد دې لكه چه د كتب الرجال نه معلومه ده. خو په كتبو د حديث كښې دا سند مختلف دې د ابن ماجه په سند كښې ﴿ عن علقمه بن وائل عن طارق بن سويد ﴾ دې. په مينځ كښې ئې د ﴿ عن ابيه ﴾ واسطه نشته، خو په مسلم او ترمذى كښې د ابوداؤد په شان د ﴿ عن ابيه ﴾ واسطه ذكر كړې شوې ده.

---

١): سنن ابن ماجه/الطب ٢٧ (٣٥٠٠)، (تحفة الأشراف: ٤٩٨٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الأشربة ٣ (١٩٨٤)، سنن الترمذي/الطب ٨ (٢٠٤٦)، مسند احمد (٣١١/٤، ٢٩٣/٥)، سنن الدارمي/الأشربة ٦ (٢١٤٠) (صحيح)

د حديث مضمون دا دې چه سويد د رسول اللهﷺ نه د خمر د جوړولو په باره کښې اجازت طلب کړو، رسول اللهﷺ ترې نه منع کړو، هغوی بيا سوال اوکړو چه دا خو زه د دوايئ دپاره جوړول غواړم، د مسلم په روايت کښې هم داسې دی.... ﴿ انما اصنعها للدواء ﴾ رسول اللهﷺ اوفرمائيل هغه دوائي نه ده بلکه بيماری ده.

بعض خلق شراب دوائي ګڼړی او ذريعه د شفاء..... رسول اللهﷺ د هغې نفی اوکړه، پس په يو روايت کښې دی ﴿ ان الله لم يجعل شفاء امتی فيما حرم عليها ﴾ والحديث اخرجه ابن ماجه عن طارق بن سويد من غير شك....

واخرجه مسلم والترمذی من حديث وائل بن حجر، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي تَمْرَةِ الْعَجْوَةِ

### بابـ د عجوه کجورو د فضيلت بيان

[۳۸۷۵]()حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ سَعْدٍ، قَالَ: "مَرِضْتُ مَرَضًا أَتَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُنِي فَوَضَعَ يَدَهُ بَيْنَ ثَدْيَيَّ حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَهَا عَلَى فُؤَادِي، فَقَالَ: إِنَّكَ رَجُلٌ مَفْئُودٌ، ائْتِ الْحَارِثَ بْنَ كَلَدَةَ أَخَا ثَقِيفٍ فَإِنَّهُ رَجُلٌ يَتَطَبَّبُ، فَلْيَأْخُذْ سَبْعَ تَمَرَاتٍ مِنْ عَجْوَةِ الْمَدِينَةِ، فَلْيَجَأْهُنَّ بِنَوَاهُنَّ، ثُمَّ لِيَلُدَّكَ بِهِنَّ".

دسعد رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زه بيمارشوم اونبی عليه السلام زما بيمار پرسئ وخپل دواړه مبارك لاسونه ئې زما په تشو کيخودل تردې چه دهغه د لاسونو يخوالې زما زړه ته ورسيد و اوبيا ئې اوفرمائيل ته د زړه مريض ئې، ته دقبيله ثقيف والا حارث بن کلده ته لاړ شه هغه ددې علاج کوي دمديني دعجوه کجورونه دې اوه کجورې واخلي اوهغه دې دزړوسره وتکوي او ددينه دې مالده جوړه کړي اوبيادې ستا په خوله کښې واچوي.

﴿ عَنْ سَعْدٍ قَالَ مَرِضْتُ مَرَضًا أَتَانِي رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم الخ ﴾

### شرح الحديث:

سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی چه زه يو کرت بيمار شوم، رسول اللهﷺ زما د بيمارپرسئ دپاره تشريف راوړلو، هغوی خپل لاس مبارک زما په سينه باندې کيخودلو چه د هغې يخ والې ما په خپل زړه کښې محسوس کړو، رسول اللهﷺ اوفرمائيل ﴿ انک رجل مفوؤد ﴾ ستا په فواد يعنی زړه کښې تکليف دې.... ﴿ ائْتِ الْحَارِثَ بْنَ كَلَدَةَ أَخَا ثَقِيفٍ فَإِنَّهُ رَجُلٌ يَتَطَبَّبُ فَلْيَأْخُذْ سَبْعَ تَمَرَاتٍ مِنْ عَجْوَةِ الْمَدِينَةِ فَلْيَجَأْهُنَّ بِنَوَاهُنَّ ثُمَّ لِيَلُدَّكَ بِهِنَّ ﴾ رسول اللهﷺ مشوره ورکړه حارث بن کلده ثقفی ته د ورتلو، او وې فرمائيل چه هغه طبيب دې علاج کوی، بيا د رسول اللهﷺ په ذهن کښې خپله د هغې علاج راغلو او هغوی حضورﷺ په خپله دوائی تجويز کړه چه حارث بن کلده له پکار دی چه د مدينې منورې اووهٔ عجوه کهجورې واخلی او بيا د هډوکو سره هغه ميده کړی [2] يعنی دهډوکو سره به ئې ميده کړی او بيا به ورسره

[1]: تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف: ۳۹۱۶) (ضعيف)

[2] د حديث لفظ ﴿ فليجاهن ﴾ دې چه د هغې معنی د ميده کولو ده پس په بذل کښې دی..........ـلـه

اوبه یوځائ کړی چه نرمې شی نو پکار دی چه په خوله کښې ئې ورته اوڅسوی.
ددې حدیث هم دا معنی په ډیرو شروحاتو کښې لیکلې ده چه عجوه کهجورې سره د هډوکو میده کړی، اوبه ورسره یوځائ کړی اوپه حلق کښې به ئې ورته اوڅسوی، د څکلو په ځائ د لدود مشوره یا خو حضور ﷺ ځکه ورکړه چه د مریض حالت دڅکلو نه وو، د کمزورئ یا بل څه په وجه، او یا داچه ددې دوائی د استعمال طریقه هم دغه ده.

[۳۸۷۶]( ) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ تَصَبَّحَ سَبْعَ تَمَرَاتٍ عَجْوَةٍ لَمْ يَضُرَّهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ سَمٌّ وَلَا سِحْرٌ".

**ترجمه:** د سعد بن ابی وقاص نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی څوك چه هرسحر دمدینې اوه عجوه کجورې خورې نودغه کس ته په دې ورځ باندې جادو اوزهر نقصان نشي رسولې.

**قوله:** ﴿ مَنْ تَصَبَّحَ سَبْعَ تَمَرَاتِ عَجْوَةٍ لَمْ يَضُرَّهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ سَمٌّ وَلاَ سِحْرٌ ﴾

کوم سړې چه سحر په نهره اووهٔ دانې عجوه کهجورې اوخوری نو رسول الله ﷺ فرمائی چه دې سړی ته به په هغه ورځ زهر یا جادو نقصان او نه رسوی. یا خو د عجوه د خاصیت د وجې نه، یا د رسول الله ﷺ د برکت د وجې نه، وقال الخطابی ﴿ ذلک ببرکة دعائه لا بخاصیته فی التمر ﴾ (بذل) والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْعِلَاقِ

### باب د علاق یعنی د ژبئ (جَبئ) متعلق بیان

عذره یو بیماری ده (په پښتو کښې ورته ژبئ وائی خلق وائی په ماشوم ژبئ راغلې ده) چه د ورو ماشومانو په تالو کښې درد پیداشی، د دې حل ا وعلاج به د هغې زمانې زنانو د علاق په ذریعه کولو، چه د هغې معنی د لاندې کولو ده چه ګوته به ئې د ماشوم په خوله کښې داخله کړه او دا ځائې به ئې اوزورلو هغه په حلق کښې د غوښې یو ټکړه شان زورنده وی څه ته چه د تالو جبئ وائی (عربئ کښې ورته لهاة وائی) ممکنه ده چه دا تکلیف هم په هغې کښې وی، د دې زورلو نام علاق دې څه ته چه اعلاق او غمز او دغر سره هم تعبیر کولې شی، او دا ټول هر څه په معنی واحده دی، او د کومې بیمارئ چه دا علاج دې یعنی ورم د هغې نه په حدیث کښې په عذره سره تعبیر کړې شوې دې، په داسې کولو سره ماشوم

---

۶۰... ﴿ای یرضهن ﴾ او په عون المعبود کښې دی: قال فی النهایه فلیجامعن ای فلیلقهن.. او په کتاب النکاح کښې تیر شوی دی چه ﴿ فان الصوم له وجاء ﴾ د دې معنی رض الخصیتین ده دغه شان دلته هم مراد ده چه دا هډوکی دې میده کړې شی چه د هغې لدود (ختنه) تیا رکړې شی او په لاس باندې مرل نه دی مراد د دې دپاره بل لفظ راغې ﴿ مرس ﴾ لکه چه د نبیذ په بیان کښې تیر شوې دې. كُنْتُ آخُذُ قَبْضَةً مِنْ تَمْرٍ وَقَبْضَةً مِنْ زَبِيبٍ فَأُلْقِيهِ فِي إِنَاءٍ فَأَمْرُسُهُ)

[۱]: صحیح البخاری الأطعمة ۴۳ (۵۴۴۵)، الطب ۵۲ (۵۷۹۹)، صحیح مسلم الأشربة ۲۷ (۲۴۰۶)، (تحفة الأشراف: ۳۸۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۱/۱) (صحیح)

ته تکلیف وی هغه ژاړی هم په دې وجه په حدیث کښې ددې علاج نه منع کړې شوې ده.

[۳۸۷۷]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَحَامِدُ بْنُ يَحْيَى، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ، قَالَتْ: "دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِابْنٍ لِي قَدْ أَعْلَقْتُ عَلَيْهِ مِنَ الْعُذْرَةِ، فَقَالَ: عَلَامَ تَدْغَرْنَ أَوْلَادَكُنَّ بِهَذَا الْعِلَاقِ، عَلَيْكُنَّ بِهَذَا الْعُودِ الْهِنْدِيِّ، فَإِنَّ فِيهِ سَبْعَةَ أَشْفِيَةٍ، مِنْهَا ذَاتُ الْجَنْبِ، يُسْعَطُ مِنَ الْعُذْرَةِ، وَيُلَدُّ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: يَعْنِي بِالْعُودِ الْقُسْطَ.

دام قیس بنت محصن نه روایت دې فرمائی چه ماخپل بچې دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو اودهغه حلق مې په ګوته دباو کړې وود غدره (دادماشومانویوه بیماري ده چه اکثر دګرمۍ په موسم کښې مرئ درد کوي او پړسیږي) په وجه باندې، نبی ﷺ اوفرمائیل ته په دې بیمارئ کښې دخپل ماشوم حلق ولې دباو کوي؟ بلکه ته دخپل ماشوم دپاره عود هندي پیداکړه په دې کښې داره مرضونودپاره شفاده اوذات الجنب (یومرض دې) هم ددې په وجه باندې ختمیږي، په غدره مرض کښې په پوزه کښې اچولې شي او په ذات الجنب مرض کښې به ددینه لدود (کپه) جوړ کړې شي او دخوراك په ذریعه دې استعمال کړې شي.
امام ابوداؤد فرمائی دعود نه مراد قسط دې.

## تشریح الحدیث:

سبحان الله! اوګورئ رسول الله ﷺ د ماشومانو په حق کښې دهغوی د میاندو نه هم زیات شفیق ثابت شو.... صلی الله علیه وسلم شرف وکرم........ او هغه زنانو ته ئې خطاب کولو سره اوفرمائیل ﴿ عَلَامَ تَدْغَرْنَ أَوْلَادَكُنَّ بِهَذَا الْعِلَاقِ عَلَيْكُنَّ بِهَذَا الْعُودِ الْهِنْدِيِّ ﴾ یعنی د خپل اولاد سره دا عمل یعنی دغر او علاق ولې کوئ، عود هندی لازم اونیسئ کوم ته چه قسط هندی وائی، ځکه چه په دې کښې د اووه سوو بیمارو نه شفاء ده، خو طریقه د استعمال ئې بیله بیله ده، که عذره بیماری وی نو د هغې طریقه علاج او استعمال سعوط دې، او که د ذات الجنب بیماری وی نو د هغې طریقه استعمال لدود دې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم وابن ماجه، قاله المنذری.

# بَابٌ فِي الْأَمْرِ بِالْكُحْلِ

## دانجود استعمال بیان

[۳۸۷۸]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْبَسُوا مِنْ ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضَ، فَإِنَّهَا مِنْ خَيْرِ ثِيَابِكُمْ، وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ، وَإِنَّ خَيْرَ أَكْحَالِكُمُ الْإِثْمِدُ يَجْلُو الْبَصَرَ، وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی تاسولره پکار دي چه سپین لباس استعمال کړئ ځکه چه دا ستاسوپه لباسونو کښې

[1]: صحیح البخاري/الطب ۲۱ (۵۷۱۳)، صحیح مسلم/السلام ۲۸ (۲۲۱٤)، سنن ابن ماجه/الطب ۱۷ (۳٤٦۲)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳٤۳) (صحیح)
[2]: سنن الترمذي/الجنائز ۱۸ (۹۹٤)، سنن ابن ماجه/الجنائز ۱۲ (۱٤۷۲)، الطب ۲۵ (۳٤۹۷)، اللباس ۵ (۳۵٦٦)، (تحفة الأشراف: ۵۵۳٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳۱/۱، ۲٤۷، ۲۷٤، ۳۲۸، ۳۵۵، ۳٦۳) (صحیح)

بهترين لباس دي اوتاسوپه دي سپين لباس کښې خپل مړي هم دفن کوئ، او ستاسو دپاره اثمد بهترين رانجه دي کوم چه دسترګو نظر تيزوي اود وروزو او بڼړو ويخته رازرغونوي.
﴿إِنَّ خَيْرَ أَكْحَالِكُمُ الإِثْمِدُ يَجْلُو الْبَصَرَ، وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ﴾ غوره رانجهٔ اثمد دی يعنی د اصفهان رانجهٔ... (هم دا رانجهٔ کوم چه زمونږ په علاقو کښې ملاويږی) کوم چه سترګې پاکوی او بانړهٔ غټوی. والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه مختصراليس فيه ذکرالکحل، قاله المنذری.

## بَابُ مَا جَآءَ فِي الْعَيْنِ

### باب: دبد نظر بيان

[۳۸۷۹]( )حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، قَالَ: هَذَا مَا حَدَّثَنَا أَبُوهُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْعَيْنُ حَقٌّ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی بدنظر لګيدل حق دي.

### شرح الحديث:

﴿ العين حق ﴾ يعنی د نظر لګيدل حق دی، او دا خلقو کښې مشهوره ده، دا حق خبره ده غلطه نه ده، امام نووی رحمه الله فرمائی چه يو جماعت د عين انکار کړې دي او د دې نه چه د هغې هيڅ اثر نشته او په هغې سره هيڅ نه کيږی. خو دا قول فاسد دې ځکه چه اول خو عقلا دا خبره ممکن ده، دويم په دې وجه چه مخبر صادق ﷺ د دې د وقوع خبر ورکړې دي چه د هغې تکذيب جائز نه دې، ورانديې ليکی چه د عين دوه قسمونه دی عين انسی او عين جنی يعنی انسانی او جناتی....... لکه چه د سهل رضي الله عنه په حديث کښې به راشی بله دا چه څنګه نظر په کتلو سره لګی او نقصان رسوی هم دغه شان بغير د کتلو نه په وصف يعنی حال اوريدلو سره هم لګيږی، ﴿ قال الله تعالی وان کادوا ليزلقونک بابصارهم لما سمعوا الذکر ﴾ يعنی من غير رؤيت....... اوس پاتې شوه ده چه نظر څنګه لګيږی د دې په باره کښې بعض علماء کرامو وئيلې دی چه د عاين د سترګو نه يو قوت سميه اوچتيږی چه د معين سره لګی چه په هغې سره هغه ته نقصان رسيږی لکه چه بعض قسم ماران وی چه د هغې خاصيت په حديث کښې راځی ﴿ يلتمسان البصر ويسقطان الحبل ﴾ او مسلک د اهل سنت دا دې چه دا تاثير ضرور د سترګو دپاره ذاتی نه دي بلکه جريا علی العادة دي يعنی د الله پاک عادت هم دغه شان جاری دې چه هغه دا د تقابل په وخت ضرور پيدا کوی، يعنی اصل خو په دې کښې دا دې يعنی د عادة الله جاری کيدل، او هغه د بعضو نه نقل دې چه د عاين د سترګو نه د قوت سميه اوچتيدل او د معين سره د هغې لګيدل دا هم امر ممکن دې. (بذل عن ابن رسلان) يو وجه د دې دا هم په فهم کښې راځی چه عاين د معين څه خوبئ لره د هغه کمال ذاتی اوګنړی په ځائې د صحيح تصور کولو ځکه چه بعض وخت د هغې هغه وصف سلب کړې شی هم دا وجه ده چه د ماشاء الله وئيلو په صورت کښې ضرر نه وی. والله اعلم

( ): صحيح البخاري/الطب ٣٦(٥٧٤٠)، صحيح مسلم/السلام ١٦ (٢١٨٧)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٩٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطب ٣٢(٣٥٠٦)، مسند احمد (٣١٩/٢) (صحيح متواتر)

[۳۸۸۰] (¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَ يُؤْمَرُ الْعَائِنُ فَيَتَوَضَّأُ ثُمَّ يَغْتَسِلُ مِنْهُ الْمَعِينُ".

د ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه دنبي ﷺ په زمانه کښې به داسې کسانو ته حکم کولې شو دچاچه نظر لګي چه اودس اوکړي بياچه به په چاباندې ددې نظر لګيدلې وي هغه دې په دې اوبو باندې غسل اوکړي.

**د بد نظر علاج:**

په حديث کښې د بد نظر د اثر زائله کولو طريقه هم ښودلې شوې ده پس د ابن ماجه په بل حديث کښې دي: ﴿ كان يومر العائن فيتوضاء ثم يغتسل من المعين ﴾ د چا چه پرې نظر لګی هغه ته عاين او په چا چه لګی هغه ته معين وائي، او په يو روايت کښې دی (كما مر فى الترمذى ومسلم) ﴿ واذا استغلستم فاغسلوا ﴾ يعنى چه کله د عاين چه د چا نظر لګيدلې دې غساله طلب کړې شی يا غسل طلب کړې شی نو هغه دې دا کار اوکړي. عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائی چه عاين ته به وئيلې شو چه اودس اوکړه (او دا ماء مستعمل په يو لوښی کښې جمع کړه) بيا به د دې اودس په اوبو باندې يعنی په غساله سره به معين غسل کولو. يعنی په داسې کولو باندې به بد نظر ختم شو. په بذل کښې د غسل يو خاص طريقه نقل کړې ده د يوې واقعې نه کومه چه په مسند احمد کښې ده د سهل بن حنيف رضي الله عنه د سفر يوه قصه.... چه هغوی چرته غسل اوکړو او هغوی ډير زيات حسن والا او ښکلې وو يو سړی چه د هغه نوم عامر بن ربيعه وو د هغوی نظر په هغوی باندې دې وخت کښې پريوتلو ﴿ فقال ما رايت كاليوم ولا جلد مخباة ﴾ الحديث.....

پوره قصه په بذل کښې ذکر ده، هغوی په عامر بن ربيعه باندې ناراض شو او دا ئې اوفرمائيل چه د هغې حاصل دا دې چه سړی له پکار دی چه کله داسې يو څيز اووينی کوم چه د هغه خوښ شی نو هغه له پکار دی چه دا دعا اولولی ﴿ اللهم بارک عليه ﴾ او هم دغه شان ﴿ ماشاء الله لا قوة الا بالله ﴾ نو بيا به انشاء الله د نظر نقصان نه وی او په دې مفصل روايت کښې د اودس د اندامونو سره سره د لنګ د وينځلو ذکر هم شته چه د هغې نه مراد وئيلې شوې دې چه شرمګاه ده او وئيلې شوې دی چه د لنګ هغه متصل حصه چه په بدن پورې متصل وی. (²)

حديث ابی هريرة رضي الله عنه اخرجه البخاری ومسلم من حديث عبدالله بن عباس رضي الله عنهما عن النبی ﷺ اتم منه، قاله المنذری...

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۹٦۵) (صحيح الإسناد)

²) (پورته قصه په مشکوة کښې د شرح السنة په حوالې سره ذکر شوې ده ﴿ وفيه فغسل عامر وجهه ويديه ومرفقيه وركبتيه واطراف رجليه وداخلة ازاره في قدح ثم صب عليه الخ ﴾ (التعليق الصبيح ۴۱/۵) ﴿ اختلفوا في داخلة الازار فذهب بعضهم الي المذاكير وبعضهم الي الافخاذ، وقال ابوعبيد اراد به ازاره الذي يلي جسده مما يلي الجانب الايمن فهو الذي ليغسل اهـ مختصرا... او په مظاهر حق کښې دی او په اعضاء د ازار کښې دننه يعنی د پنډۍ ستر او کوناتې اهـ)

# بَابٌ فِي الْغَيْلِ

## باب: د تی ورکونکې ښځې سره د جماع نه کولو بیان

چه هغې ته غیله هم وائی د دې تفسیر وړاندې راځی ﴿ قَالَ مَالِكٌ الْغَيْلَةُ أَنْ يَمَسَّ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ وَهِيَ تُرْضِعُ ﴾ یعنی د هغه زنانه سره صحبت کول په کومې پورې چه پئ خوړونکې بچې وی، ځکه چه د وطی نه پس که هغه زنانه حامله شوه نو په حمل سره به پئ فاسد شی نو که هم هغه پئ دا زنانه په دې ماشوم باندې ځکی نو دا به د هغه په حق کښې ضرر وی او که نه ئې پرې ځکی نو بیا به اوږې وی.

[۳۸۸۱] (¹) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُهَاجِرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ بْنِ السَّكَنِ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ سِرًّا فَإِنَّ الْغَيْلَ يُدْرِكُ الْفَارِسَ فَيُدَعْثِرُهُ عَنْ فَرَسِهِ".

د اسماء بنت یزید بن السکن رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه د رسول پاک ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې خپل اولاد په پټه مه وژنې ځکه چه جماع کول د رضاع په موده کښې شهسوار د اس نه راغورځوی (یعنی په دې سره ماشوم کمزوری کیږي).

﴿ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ بْنِ السَّكَنِ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « لاَ تَقْتُلُوا أَوْلاَدَكُمْ سِرًّا فَإِنَّ الْغَيْلَ يُدْرِكُ الْفَارِسَ فَيُدَعْثِرُهُ عَنْ فَرَسِهِ » ﴾

دا د اسماء بنت یزید رضی الله عنها حدیث دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه خپل اولاد مه هلاکوئ د فعل مخفی په ذریعه، د دې نه مراد هم غیل دې، پس وړاندې فرمائی چه غیل داسې ضرری څیز دې چه هغه په اس باندې سور انسان د خپل اس نه راغورځوی. یعنی په ماشوم کښې دننه د غیل اثر د هغه د غټیدو نه پس هم موندلې شی، د هغې په اثر سره ناڅاپه څۀ خاص کمزوری پیدا شی چه د هغې په وجه باندې هغه ناڅاپه د سورلئ نه راپریوځی. لکه چه د مرګی مریض چه ناڅاپه بیهوشه کیدو سره راپریوځی.

د دې نه پس چه کوم حدیث راروان دې هغه حدیث د جدامه رضی الله عنها دې ﴿ عَنْ جُدَامَةَ الأَسَدِيَّةِ أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَنْهَى عَنِ الْغِيلَةِ حَتَّى ذُكِرْتُ أَنَّ الرُّومَ وَفَارِسَ يَفْعَلُونَ ذَلِكَ فَلاَ يَضُرُّ أَوْلاَدَهُمْ » ﴾ د دې مضمون د هغه حدیث اسماء خلاف دې.

[۳۸۸۲] (²) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ نَوْفَلٍ، أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ جُدَامَةَ الْأَسَدِيَّةِ، أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَنْهَى عَنِ الْغِيلَةِ حَتَّى ذُكِرْتُ أَنَّ الرُّومَ، وَفَارِسَ يَفْعَلُونَ ذَلِكَ فَلَا يَضُرُّ أَوْلَادَهُمْ"، قَالَ مَالِكٌ: الْغِيلَةُ أَنْ يَمَسَّ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ وَهِيَ تُرْضِعُ.

---

¹): سنن ابن ماجه/النكاح ٦١ (٢٠١٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد ٦/٤٥٣، ٤٥٧، ٤٥٨) (حسن) (تراجع الألباني ٣٩٧، وصحيح ابن ماجه: ١٦٤٨)

²): صحيح مسلم/النكاح ٢٤ (١٤٤٢)، سنن الترمذي/الطب ٢٧ (٢٠٧٦)، سنن النسائي/النكاح ٥٤ (٣٣٢٨)، سنن ابن ماجه/النكاح ٦١ (٢٠١١)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٨٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الرضاع ٣ (١٦)، مسند احمد (٦/٣٦١، ٤٣٤)، سنن الدارمي/النكاح ٣٣ (٢٢٦٣) (صحيح)

دجدامه اسدیه رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه دنبی عليه السلام نه ئې آوریدلی دی چه فرمائیل ئې زما دا اراده وه چه زه خلق دغلیه نه منع کړم خوبیا راته رایادشول چه دروم اودفارس خلق داسې داسې کوي اوددوی أولاد ته څه نقصان نه رسیږي. امام ابوداؤد فرمائی چه دغلیه معنی درضاع (تي ورکولو په موده کښې جماع کولوته وئیل شي).

ځکه چه د دې مضمون دا دې: رسول الله ﷺ فرمائی چه ما اراده کړې وه د غیل د ممانعت خو بیا زما په ذهن کښې دا راغلل چه اهل روم او اهل فارس خو داسې کوی او د هغوی اولاد ته هیڅ ضرر نه رسیږی. (په دې وجه مې د نهی اراده ملتوی کړه)

## په حدیث د اسماء او حدیث د جدامه کښې تعارض او د هغې توجیه

دلته دوه احادیث دی یو حدیث د اسماء او بل حدیث د جدامه، په دې دواړو کښې په دوه حیثیتونو سره اختلاف او تعارض دې، اول دا چه حدیث د اسماء نه معلومیږی د غیل مضر کیدل د اولاد دپاره، او د حدیث د جدامه نه معلومیږی د هغې غیر مضر کیدل، دویم په دې حیثیت سره چه په حدیث د اسماء کښې نهی عن الغیل موجود ده، او د حدیث جدامه نه د نهی منتفی کیدل معلومیږی. (یعنی دا چه رسول الله ﷺ د منع صرف اراده فرمائیلې وه چه هغې ته ضرورت رانغلو) او په دواړو کښې تطبیق داسې کړې شوې دې چه حدیث د جدامه مقدم دې، هغه د شروع زمانې دې چه په هغې کښې رسول الله ﷺ عرب مخې ته راوستلو کښې دا سوچ اوکړو چه غیل مضر دې، بیا چه کله هغوی په روم او فارس باندې نظر واچولو نو هغوی دا اندازه اولګوله چه مضر نه دې بیا روستو د الله پاک د طرف نه هغوی خبر کړې شو چه داسې نه ده بلکه دا مضر دې خو په بعض وختونو کښې په اعتبار د مزاجونو او طبیعتونو....... په دې وجه رسول الله ﷺ روستو د دې نه منع اوفرمائیله تنزیها... د دې تقریر په وجه باندې د دې دواړو احادیثو ترمینځه تطبیق پیدا کیږی. (بذل عن ابن رسلان) حدیث اسماء اخرجه ابن ماجه، وحدیث جدامه اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه قاله المنذری.

# بَابٌ فِي تَعْلِيقِ التَّمَائِمِ

## باب په غاړه کښې د تعویذ اچولو بیان

[۳۸۸۳] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ الْجَزَّارِ، عَنِ ابْنِ أَخِي زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ الرُّقَى وَالتَّمَائِمَ وَالتِّوَلَةَ شِرْكٌ"، قَالَتْ: قُلْتُ: لِمَ تَقُولُ هَذَا، وَاللَّهِ لَقَدْ كَانَتْ عَيْنِي تَقْذِفُ، وَكُنْتُ أَخْتَلِفُ إِلَى فُلَانٍ الْيَهُودِيِّ يَرْقِينِي، فَإِذَا رَقَانِي سَكَنَتْ، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ: إِنَّمَا ذَاكَ عَمَلُ الشَّيْطَانِ كَانَ يَنْخُسُهَا بِيَدِهِ فَإِذَا رَقَاهَا كَفَّ عَنْهَا، إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكِ أَنْ تَقُولِي كَمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: أَذْهِبِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ، اشْفِ أَنْتَ الشَّافِي، لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ، شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا".

(۱): سنن ابن ماجه/الطب ۳۹ (۳۵۳۰)، (تحفة الأشراف: ۹۶۴۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۸۱/۱) (ضعيف) (الصحيحة: ۲۹۷۲، وتراجع الألباني: ۱۴۲)

دعبدالله بن مسعود نه روایت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې (غیر شرعي) دمونه اچول، اوتعویز زوړندول اوپه تار کښې غوټې اچول (بند) جوړول (داسې اکثر په جادوکښې کیږي) شرک دي زینب وائی ما اووئیل ته داسې ولي وائې په الله مې دې قسم وي دډیر درد په وجه زماسترګي وتلې اوزه به فلانی یهودي ته د دم دپاره تلمه کله چه به هغه په ما باندې دم واچولو نودرد به ختم شو عبدالله له ورته اووئیل دا خودشیطان کار رو شیطان به پخپل لاس باندې ستاسترګه ښوګوله نوچه کله به تادم کړه نوده به بیانه ښوګوله اوستاد ئې لاري کولو دپاره داکافي وه لکه څنګه چه به نبی ﷺ فرمائیل : اې دانسانانو پروردګاره مرضونه ختم کړې اوشفانازل کړې اوصرف ته شفا ورکونکې يې ته داسې شفا راکړې چه هیڅ مرض باقی پاتې نشي.

تمائم د تمیمة جمع ده کما قیل ﴿ واذا المنية انشبت اظفارها :: الفيت كل تميمة لا تنفع ﴾

شرح الحدیث :

قوله:﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « إِنَّ الرُّقَى وَالتَّمَائِمَ وَالتِّوَلَةَ شِرْكٌ »﴾ رقی د رقیة جمع ده.... په فیض الباری کښې لیکلې دی او د هغه ځائې نه په الابواب والتراجم کښې نقل کړې شوې دی چه کومه رقیه د شریعت مطابق وی د هغې په باره کښې وئیلې شی دم کول او کوم چه د شریعت خلاف وی هغې ته وئیلې شی منتر کول.
او تمیمة هغه د کاغذ ټکړې ته وائی چه په هغې باندې څه لیکلې شوې وی او په مرئ کښې اچولې شی څه ته چه زمونږ خلق تعویذ وائی..... او تولة دا یو خاص قسم سحر یا منتر دې په زوجینو کښې د محبت پیدا کولو دپاره، عمل الحب، په حدیث کښې دې ټولو ته شرک وئیلې شوې دې، یعنی د مشرکانو افعال دی، ځکه چه د هغوی په معاشره کښې ددې څیزونو ډیر زور وو، یا دا دې په حقیقت باندې محمول کړې شی کله چه په دې څیزونو کښې د تاثیر اعتقاد اولرلې شی، او یو قول دا دې چه د شرک نه مراد شرک خفی دې او ترک توکل.......

وړاندې په روایت کښې دی چه د حدیث راویه د عبدالله بن مسعود ﷺ زوجه محترمه زینب ﷺ چا چه دا حدیث د هغوی نه روایت کړې دې هغه فرمائی چه کله هغوی ماته دا حدیث واورولو نو ما هغوی ته اووې چه تاسو دا خبره ولې کوئ یعنی دې څیزونو ته ناجائز او شرک ولې وایئ، قسم په الله یو کرت زما سترګه خوږیدله چه د هغې نه به اوبه تللې د تکلیف د وجې نه نو زه به فلانی یهودی ته تلم چا چه به دا سترګه دموله چه کله به زه هغه دم کړم نو سترګو کښې به مې سکون پیدا شو په دې باندې عبدالله بن مسعود ﷺ اوفرمائیل دا ټول د شیطان حرکت وو. شیطان به ستا په سترګو کښې خپلې ګوتې وهلې، بیا چه به کله هغه یهودی ته دم کړې نو (شیطان به ستا د عقیدې د خرابولو دپاره) خپلې ګوتې اودرولې او بیا هغوی اوفرمائیل چه که ته په دې دعاء باندې دم اچوې نو کافی به شی کومه چه د رسول الله ﷺ نه نقل ده :

﴿ اذهب الباس رب الناس، اشف انت الشافی لا شفاء الی شفاؤک لا یغادر سقما ﴾

## د رقی او تمائم سره متعلق د روایاتو تجزیه او د هغې تشریح

مصنف رحمه الله یو باب د تمائم او دوه بابونه د رقی قائم کړې دی، دا باب خو د تمائم په باره کښې دې د کوم په حدیث کښې چه تمائم او رقی دواړه ذکر شوې دی، د دې نه روستو باب راروان دې ﴿باب ما جاء فی الرقی﴾ او د هغې نه پس بیا یو بل باب راروان دې ﴿باب کیف الرقی﴾ په ړومبی باب کښې مصنف رحمه الله دواړه قسم روایات ذکر اوفرمائیل د منع هم او د جواز هم، منع خو پورته ذکر شوه او د باب په دویم حدیث کښې دی. ﴿عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنَّا نَرْقِي فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ تَرَى فِي ذَٰلِكَ فَقَالَ «اعْرِضُوا عَلَيَّ رُقَاكُمْ لَا بَأْسَ بِالرُّقَى مَا لَمْ تَكُنْ شِرْكًا»﴾

یعنی عوف بن مالک اشجعی رضی الله عنه فرمائی چه مونږ خلقو به د جاهلیت په زمانه کښې په کثرت سره منترې لوستلې نو په اسلام کښې د داخلیدو نه پس مونږ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه تاسو د دې منترو (دمونو) په باره کښې څه فتوی راکوئ... (یعنی د جواز او که د عدم جواز؟) نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه خپل دمونه په ما باندې پیش کړئ، یعنی پس د کتلو نه به فیصله کولې شی چه کوم جائز دې او کوم ناجائز، او هم هغه وخت رسول الله ﷺ د قاعدې په طور دا خبره ارشاد اوفرمائیله چه په دمونو کښې هیڅ باک نشته چه په هغې کښې د شرک څه خبره نه وی، د دې حدیث نه معلومیږی، او علماء کرامو هم لیکلې دی چه دمونه په دوه قسمه دی، د جاهلیت دمونه او اسلامی دمونه، اول قسم ممنوع دې او دویم قسم جائز، په کومو دمونو کښې چه استعانت د شیاطینو په نومونو وغیره یا د ځاروو نوکونه او هډوکی وغیره اچولې شی د تاثیر په عقیده باندې د هغې شرک کیدل ښکاره دی. هم د داسې دمونو په حدیث کښې بدی او ممانعت راغلې دې او په کومو دمونو کښې چه استعانت بالاسماء الحسنی او آیات قرانیه وغیره وی هغه اسلامی دمونه دی د هغې خو په حدیث کښې ترغیب راغلې دې، هم دغه شان عم خارجه او د ابوسعید خدری رضی الله عنه په احادیثو کښې د رقیه تقسیم حق او باطل ته په صراحت سره شوې دې.... ﴿فلعمری لمن اکل بظقیة باطل لقد اکلت برقیة حق﴾ پس دویم باب کوم چه مصنف رحمه الله قائم کړې دې ﴿باب کیف الرقی﴾ د هغې مقصد هم دا دې چه هر کله د تیر باب نه دا خبره معلومه شوه چه دمونه په دوه قسمه وی ممنوع او غیر ممنوع، جائز او ناجائز نو بیا هغه رقی چه کومه جائز ده اختیارول پکار دی هغه څه دی، په دې دویم باب کښې هم د هغې بیان دې چه په هغې کښې مصنف رحمه الله د دې سلسلې اذکار مسنونه او ادعیه ماثوره بیان فرمائیلې دی.

### د تعلیق تمائم حیثیت:

هم دغه شان اسماء حسنی او ادعیه ماثوره او هم دغه شان د قرآن کریم آیاتونه چه ماده ده د اسلامی دمونو، په دې کښې هم اصل ذکر او قرأت دې یعنی په ژبې سره وئیل، ادا کول، زوړندول نه، یعنی لیکلو سره په غاړه کښې اچول، قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه تعلیق سنت نه دې، اصل څیز ذکر او قرأت دې. مګر دا چه یو سړې په لوستلو باندې قادر نه وی

يا ماشومان نو د هغوى په حق کښې تعليق هم ثابت دې پس په ﴿ باب كيفى الرقى ﴾ کښې په دريم حديث کښې دى چه د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دې ﴿ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم- كَانَ يُعَلِّمُهُمْ مِنَ الْفَزَعِ كَلِمَاتٍ « أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ غَضَبِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَنْ يَحْضُرُونِ ». وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو يُعَلِّمُهُنَّ مَنْ عَقَلَ مِنْ بَنِيهِ وَمَنْ لَمْ يَعْقِلْ كَتَبَهُ فَأَعْلَقَهُ عَلَيْهِ ﴾ يعنى رسول الله ﷺ به د ويرې نه د بچ کيدلو دپاره دا دعا تعليم فرمائيله کومه چه پورته ذکر شوه په دې باره کښې به دې صحابى عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما داسې کول چه خپلو مشرانو بچو ته خو به ئې دا دعا يادوله او کوم چه به واړه وو د هغوى په غاړه کښې به ئې اچوله..... په دې سلسله کښې زمونږ مشائخ او اکابر هم دا فرمائى چه اصل کښې خو دا دعا ګانې دى کومې چه په قرآن او حديث کښې راغلې دى، د هغې لوستل اصل دې، د تعويذ وغيره د هغې مخکښې هيڅ حيثيت نشته خو د ضرورت د وجې نه لهذا د دې اذکار او ادعيه ماثوره د لوستلو اهتمام کول پکار دى، رسول الله ﷺ د هر مصيبت نه د بچ کيدلو دپاره، او د هرې موقعې او محل په اعتبار سره مناسب دعاګانې تعليم فرمائيلې دى چه د هغې په اهتمام کولو کښې د انسان خپله فائده ده.

د مولانا تهانوى رحمه الله په ملفوظات کښې دى د تعويذاتو په باره کښې چه کله څوک طلب اوکړى نو زه خو ئې اوليکم خو داسې معلوميږى چه ليکل کوم او قلم رانه روستو روستو کيږى، دا ده د ايمان او اعتقاد د مضبوطوالى انتهاء خو د اعتدال سره...... يعنى ليکى ئې هم په نه ليکلو باندې اصرار هم نه کوى خو دتنه ئې زړه نه منى، اصل څيز دا دې چه اتباع سنت په اعتدال سره وى، تشدد د سنت طريقه نه ده لکه چه بعض خلق په دې تعويذاتو باندې مطلق د کفر اوشرک حکم لګوى..... والله المستعان...

والحديث اخرجه ابن ماجه عن ابن اخت زينب عنها، قاله المنذرى.

[٣٨٨٤]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ مِغْوَلٍ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ".

د عمران بن حصين نه روايت دې فرمائى چه نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى دم اچول نشته مګر د نظر لګيدو په وجه او يا د زهريله څيز د چيچلو په وجه.

**قوله:** ﴿عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ « لاَ رُقْيَةَ إِلاَّ مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ »﴾

يعنى دم نه شى اچولې مګر د بد نظر نه يا د يو زهريله ځناور د چيچلو د وجې نه، مطلب دا دې چه په دې څيزونو کښې ډير موثر په ځائې د علاج او دوايئ دم اچول دى.

والحديث اخرجه الترمذى، قاله المنذرى.

...............

[1]): سنن الترمذي/الطب ١٥ (٢٠٥٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٣٦، ٤٣٨، ٤٤٦)، صحيح البخاري/الطب ١٧ (٥٧٠٥)، موقوفًا (صحيح)

# بَاب مَا جَاءَ فِي الرُّقَى

## بابـ د دم چف کولو بیان

[۳۸۸۵]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَابْنُ السَّرْحِ، قَالَ أَحْمَدُ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، وَقَالَ ابْنُ السَّرْحِ: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مُحَمَّدٍ، وَقَالَ ابْنُ صَالِحٍ، مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ بْنِ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ أَحْمَدُ: وَهُوَ مَرِيضٌ، فَقَالَ: اكْشِفِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ ثُمَّ أَخَذَ تُرَابًا مِنْ بَطْحَانَ فَجَعَلَهُ فِي قَدَحٍ، ثُمَّ نَفَثَ عَلَيْهِ بِمَاءٍ وَصَبَّهُ عَلَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ ابْنُ السَّرْحِ يُوسُفُ بْنُ مُحَمَّدٍ: وَهُوَ الصَّوَابُ.

یوسف بن محمد دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی کریم ﷺ دثابت بن قیس خواته تشریف یورو، امام احمد وئیلی دی کله چه هغه مریض وو، نبی ﷺ اوفرمائیل: اي دټولو انسانانو پرورش کونکیه دامرض دثابت بن قیس نه لرې کړي، اوبیائي دبطحان مقام نه خاوره راواخستله په یولوښي کښې ئې واچوله اوبیائي پرې اوبه وربوکړلي اوبیائې هغه اوبه په ثابت بن قیس باندې وشیندلي. امام ابوداؤد فرمائی چه ابن سرح یوسف بن محمد وئیلی دی اوهمدا صحیح قول دې.

**قوله:** ﴿عَنْ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ الخ﴾

یعنی رسول الله ﷺ ثابت بن قیس رضی الله عنه ته تشریف یوړو چه کله هغه مریض وو نو رسول الله ﷺ دا دعا اوفرمائیله ﴿ اكْشِفِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ عَنْ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بن شماس ﴾ د دې نه پس په دې حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ د بطحان د میدان نه لږه شان خاوره واخستله چه هغه ئې په یو پیاله کښې واچوله، او بیا رسول الله ﷺ په هغه خاوره کښې اوبه اچولو سره څه دم واچولو ([2])او د دې نه پس ئې دا اوبه او خاوره په مریض باندې چړکاؤ کړه.

والحديث اخرجه النسائي مسندا ومرسلا، قاله المنذري.

د دې نه پس هم هغه د عوف بن مالک الشجعي رضی الله عنه حدیث دې ﴿ اعرضوا على رقاكم ﴾ د کوم حواله چه مخکښې تیره شوه ده. اخرجه مسلم قاله المنذري.

[۳۸۸۶]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مُعَاوِيَةُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كُنَّا نَرْقِي فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَقُلْنَا: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ تَرَى فِي ذَلِكَ؟ فَقَالَ: اعْرِضُوا عَلَيَّ رُقَاكُمْ لَا بَأْسَ بِالرُّقَى مَا لَمْ تَكُنْ شِرْكًا".

دعوف بن مالك رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ به دجاهلیت په زمانه کښې دمونه اچول مونږ اووئیل اې دالله رسوله ددې په باره کښې ستاڅه خیال دې نبی ﷺ اوفرمائیل خپل دمونه ماته پیش کړی په دم اچولو کښې څه باك نشته ترڅوچه شرك په کښې نه وي.

---

[1]): سنن النسائي/اليوم والليلة، (۱۰۱۷، ۱۰۴۰) (تحفة الأشراف: ۲۰۶۶) (ضعيف الإسناد)

[2]) وفي هامش البذل: اختلفوا في جواز النفث كما في العيني ۱۵۸/۲ والفتح ۱۶۳/۱۰،

[3]): صحيح مسلم/السلام ۲۲ (۲۲۰۰)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۰۳) (صحيح)

[۳۸۸۷]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَهْدِيٍّ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ عَنِ الشِّفَاءِ بِنْتِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَتْ: "دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا عِنْدَ حَفْصَةَ، فَقَالَ لِي: "أَلَا تُعَلِّمِينَ هَذِهِ رُقْيَةَ النَّمْلَةِ كَمَا عَلَّمْتِيهَا الْكِتَابَةَ".

د شفاء بنت عبدالله رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه زماخواته نبی کریم ﷺ راغې اوزه د حفصه رضي الله عنها سره وم نبی عليه السلام ماته اوفرمائيل تا دنمله بيمارى علاج حفصي ته ولى نه دې ښودلې لکه څنګه چه تا ورته ليکل ښودلي دي.

**قوله:** ﴿عَنِ الشِّفَاءِ بِنْتِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَنَا عِنْدَ حَفْصَةَ فَقَالَ لِي « أَلاَ تُعَلِّمِينَ هَذِهِ رُقْيَةَ النَّمْلَةِ كَمَا عَلَّمْتِيهَا الْكِتَابَةَ » ﴾

شفاء بنت عبدالله رضي الله عنها فرمائی د چا نوم چه ليلي ليکلي شوې دې، هغه فرمائی چه يوه ورځ زه د حفصه رضي الله عنها سره اوم چه د بهر نه رسول الله ﷺ تشريف راوړلو، رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل چه دې ته يعنی حفصه رضي الله عنها ته رقية النمله ولې نه ور زده کوې. څنګه چه تا ديته ليکل اوښودل.

نمله يو بيمارى ده چه د سړی په اړخونو کښې نرئ نرئ دانې وی، د دې په هغه زمانه کښې خاص علاج په دم کولو سره وو چه هغې ته به ئې رقية النملة وئيلو. د هغې الفاظ ئې په بذل کښې دا ليکلي دی ﴿ العروس تحتفل وتختضب وتكتحل وكل شئ تفتعل غير ان لا تعصى الرجل ﴾

## د زنانه دپاره ليکل زده کول څنګه دي؟

ددې حديث نه معلوميږی چه زنانو ته کتابت ښودل جائز دی او دا حديث د ﴿ لا تعلموهن الکتابة ﴾ په هغه صورت کښې دې چه کله په تعليم د کتابت کښې د څۀ فساد ويره وی (بذل)او په حاشيه د بذل کښې دی چه په فتاوی حديثيه کښې ابن حجر هيثمي رحمه الله په دې مسئله باندې تفصيل سره کلام کړې يعنی تعليم الکتابة للنساء او ترجيح هغوی عدم اولويت ورکړې ده.

[۳۸۸۸]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ حَكِيمٍ، حَدَّثَتْنِي جَدَّتِي، قَالَتْ: سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ، يَقُولُ: مَرَرْنَا بِسَيْلٍ فَدَخَلْتُ فَاغْتَسَلْتُ فِيهِ فَخَرَجْتُ مَحْمُومًا فَنُمِيَ ذَلِكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مُرُوا أَبَا ثَابِتٍ يَتَعَوَّذُ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا سَيِّدِي، وَالرُّقَى صَالِحَةٌ؟ فَقَالَ: لَا رُقْيَةَ إِلَّا فِي نَفْسٍ أَوْ حُمَةٍ أَوْ لَدْغَةٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْحُمَةُ مِنَ الْحَيَّاتِ وَمَا يَلْسَعُ.

دسهل بن حنيف رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زه ديوخوړ په غاړه تيريدم زه ورکوز شوم اوغسل مې وکړو کله چه دغسل نه فارغ شوم نوتبه راباندې راغله بيانبی کريم ددينه خبرشو او وئې فرمائيل ده ته دشيطان نه د پناه غوښتلو حکم وکړئ ماعرض اوکړو ايا دم کول هم فائده لري؟ نبی عليه السلام اوفرمائيل دم اچول خود درې افتونودپاره وي يو دبدنظرنه دحفاظت دپاره اودويم دتې دپاره او دريم د مارلړم چيچلي دپاره.

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٩٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٢/٦) (صحيح)
(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٦٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٨٦/٣) (ضعيف الإسناد)

**قوله:**﴿ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ يَقُولُ مَرَرْنَا بِسَيْلٍ فَدَخَلْتُ فَاغْتَسَلْتُ فِيهِ فَخَرَجْتُ مَحْمُومًا الخ ﴾
سهل بن حنیف ﷛ فرمائی چه یو کرت زه په یو سیلاب باندې راتیر شوم چه په هغې کښې داخلیدو سره ما غسل اوکړو، چه کله زه د هغې نه بهر راووتلم نو تبه مې شوه. دا خبره رسول الله ﷺ ته اوسیدله، رسول الله ﷺ اوفرمائیل سهل بن حنیف ته اووایه چه هغه د دې دپاره دم وغیره او کړی.

**قوله:**﴿ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا سَيِّدِي وَالرُّقَى صَالِحَةٌ فَقَالَ « لاَ رُقْيَةَ إِلاَّ فِي نَفْسٍ أَوْ حُمَةٍ أَوْ لَدْغَةٍ » ﴾
رباب وائی چه ما اووې یعنی سهل ته یا سیدی آیا دم وغیره جائز دې؟ نو سهل بن حنیف اوفرمائیل چه د هغې حاصل دا دې چه او جائز دې څکه چه دم خو زیات تر په بد نظر یا ازهریله ځیز د وچې نه اچولې کیږی.

## اختلاف دنسخو او د نسخه صحیحه تحقیق :

د سنن ابو داوٗد په ټولو نسخو کښې دا عبارت هم دغه شان دې چه د هغې هم هغه مطلب دې کوم چه لیکلې شوې دې، چه د هغې تقاضا دا ده چه د یا سیدی مصداق سهل بن حنیف وی، او په متن د حدیث کښې ﴿ لا رقية الا فى نفس او حمة ﴾ دا د سهل بن حنیف قول دې په دې صورت کښې به دا حدیث موقوف شی، حال دا چه داسې نه ده بلکه دا حدیث مرفوع دې، مونږ د مسند احمد طرف ته رجوع اوکړه په دې کښې لفظ د فقالت نه دې بلکه داسې دی: ﴿ فقال مروا ابا ثابت يتعوذ فقلت يا سيدى والرقى صالحة قال لا رقية الا فى حمة... الحديث ﴾ په دې صورت کښې د ﴿ فقلت ﴾ قائل سهل بن حنیف ﷛ دې، او د سیدی مصداق به رسول الله ﷺ وی، او په دې صورت کښې به دا حدیث مرفوع وی او کیدل هم داسې پکار دی، لهذا د ابوداوٗد په نسخه کښې لفظ د قالت صحیح نه دې یا خو به بالکل دا وی نه، او که وی نو قال کیدل پکار دی.
(من البذل) شیخ محمد عوامه په خپل تعلیق کښې د حضرت د رائې تصویب کړې دې او د نسائی د روایت ئې هم حواله ورکړې ده په هغې کښې هم لفظ د قالت نشته، او صاحب د عون المعبود د قلت قائل خو سهل حساب کړې دې، او د یا سیدی مصداق ئې رسول الله ﷺ خو هغوی د ابوداوٗد په روایت کښې چه کوم لفظ د قالت دې هغه هم باقی ساتلې دې او د فقلت نه مخکښې ئې قال مقدر منلې دې (۱) چه د فقلت،، قائل سهل ﷛ پاتې شی، ګینې د ظاهر عبارت تقاضه دا ده چه د فقلت قائل رباب وی، خو په څائې د دې تاویل غوره دا ده چه داسې اوئیلې شی چه د ابوداوٗد په روایت کښې لفظ قالت من غلط الناسخین دې چه د هغې قرینه دا ده چه د مسند احمد او نسائی په روایت کښې لفظ د قالت نشته.

(۱) او په دې تاویل باندې په ظاهر کښې په دې وجه مجبور شو چه د هغوی په ذهن کښې دا ده چه لفظ د قالت څنګه چه په ټولو نسخو د ابوداوٗد کښې دې هم دغه شان د مسند احمد په روایت کښې هم دې. حال دا چه داسې نه ده، حضرت په بذل کښې فرمائی چه زمونږ مخې ته د مسند احمد نسخه موجود ده په دې کښې لفظ د قالت بالکل نشته او پرې دپاسه شیخ محمد عوامه لیکلې دی په خپل تعلیق کښې چه د نسائی په روایت کښې هم د قالت لفظ نشته، لهذا په څائې د دې چه د صاحب عون تاویل اوکړې شی داسې دې اوئیلې شی چه په دې روایت کښې لفظ د قالت بالکل شته نه)

## د رسول الله ﷺ په حق کښې د لفظ سیدنا ثبوت:

ډیر حضرات د رسول الله ﷺ د نوم مبارک سره لفظ سید زیاتی کولو سره تامل کوی او وائی چه د صحابه کرامو ﷺ نه د رسول الله ﷺ په حق کښې د سید استعمال نه دې منقول اوګورئ په دې حدیث کښې د رسول الله ﷺ په حق کښې د سهل بن حنیف ؓ په کلام کښې یا سیدی موجود دی [1] والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[۳۸۸۹](۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ. ح وحَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ ذَرِيحٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ الْعَبَّاسُ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ أَوْ دَمٍ يَرْقَأُ"، لَمْ يَذْكُرِ الْعَبَّاسُ الْعَيْنَ وَهَذَا لَفْظُ سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ.

دانس بن مالك ؓ نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیل دي دبدنظرنه علاوه دبل څه دپاره دم اچول نشته پادزهرو چیچلي دپاره اویا دویني بهیدلیو دپاره اودا الفاظ دسلیمان بن داود د روایت دي.

د باب په آخری حدیث کښې دی چه ﴿ لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ أَوْ دَمٍ يَرْقَأُ ﴾ د دم نه مراد رعاف دې، نكسير يعنى د نكسير دپاره چه كله رقيه كولې شی نو هغه وينه اودريږی.

## بَابُ كَيْفَ الرُّقَى

### بابـ د دمونو بیان

### د حصول صحت او مرضونو د لرې کولو دپاره څه مخصوص دعا ګانې

په دې باندې کلام په شروع کښې شوې دې په دې باب کښې مصنف ؒ بعضې منتخب احادیث چه په هغې کښې ډیرې مفید او جامع دعاګانې دی او د دردونو او مرضونو دپاره ئې جمع کړې دی. دا تولې یادول پکاردی موږ دلته صرف هغه دعاګانې رانقل کوو.

[۳۸۹۰](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، قَالَ: قَالَ أَنَسٌ يَعْنِي لِثَابِتٍ: "أَلَا أَرْقِيكَ بِرُقْيَةِ رَسُولِ اللَّهِ؟ قَالَ: بَلَى، قَالَ: فَقَالَ: اللَّهُمَّ رَبَّ النَّاسِ، مُذْهِبَ الْبَاسِ، اشْفِ أَنْتَ الشَّافِي، لَا شَافِيَ إِلَّا أَنْتَ اشْفِهِ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا".

دعبدالعزیز بن صهیب نه روایت دې فرمائی چه انس که ثابت ته اووئیل ایا هغه دم درباندې وانه چرم کوم چه به نبی ﷺ اچولو؟ ثابت اووئیل ولی نه انس اووئیل: «اللّهمّ رب الناس مذهب الباس اشف أنت الشافي لا شافي إلا أنت اشفه شفاء لا يغادر سقما» يعنى اې الله دټولوخلقو پالونکیه دمرض لرې کونکیه شفا ورکونکیه هم ته شفا ورکونکې یې ستانه علاوه څوك صحت نه شي ورکولې، دې داسې صحت مند جوړ کړې چه هیڅ قسم مرض په

[1] په دې مسئله باندې د خلیل احمد سهانپوری ؒ په مدینه طیبه کښې د قاضی القضاة عبد الله بن بلیهد سره د ملك عبدالعزیز په موجودګئ کښې په حرم شریف کښې مباحثه شوې وه، حضرت په روایاتو سره ثابته کړې وه کوم چه بادشاه هم تسلیم کړې وه دا واقعه په تذکرة الخليل کښې ذکر ده.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۳۹) (ضعیف)

(۲): صحیح البخاري/الطب ۳۸ (۵۷٤۲)، سنن الترمذي/الجنائز ٤ (۹۷۳)سنن النسائي/اليوم والليلة (۱۰۲۲)، (تحفة الأشراف: ۱۰۳٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵۱/۳) (صحیح)

کښې باقي پاتې نه شي.

﴿ اللَّهُمَّ رَبَّ النَّاسِ مُذْهِبَ الْبَاسِ اشْفِ أَنْتَ الشَّافِي لاَ شَافِيَ إِلاَّ أَنْتَ اشْفِهِ شِفَاءً لاَ يُغَادِرُ سَقَمًا ﴾

[٣٨٩١](١)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ خُصَيْفَةَ، أَنَّ عَمْرَو بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ السَّلَمِيَّ أَخْبَرَهُ، أَنَّ نَافِعَ بْنَ جُبَيْرٍ، أَخْبَرَهُ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ، أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ عُثْمَانُ: "وَبِي وَجَعٌ قَدْ كَادَ يُهْلِكُنِي، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: امْسَحْهُ بِيَمِينِكَ سَبْعَ مَرَّاتٍ، وَقُلْ أَعُوذُ بِعِزَّةِ اللَّهِ وَقُدْرَتِهِ مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ، قَالَ: فَفَعَلْتُ ذَلِكَ فَأَذْهَبَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ مَا كَانَ بِي فَلَمْ أَزَلْ آمُرُ بِهِ أَهْلِي وَغَيْرَهُمْ".

دعثمان بن ابی العاص رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه زه دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم او په ما باندې داسې درد وو نزدې وه چه زه ئې ملاك کړې وې عثمان وائي چه نبی عليه السلام اوفرمائيل په متاثره ځائي باندې خپل ښی لاس او پرې راکاږه اودا دعاء: «أعوذ بعزة الله وقدرته من شر ما أجد» ووايه. دې وائي ماچه دا دعا اولوستله نوالله تعالی رانه هغه درد ختم کړو، اوهميشه به مې خپل اهل ته اوهر دردمند کس ته ددې دعا دوئيلوحکم کولو.

**قوله:** ﴿ أَعُوذُ بِعِزَّةِ اللَّهِ وَقُدْرَتِهِ مِنْ شَرِّ مَا أَجِد ﴾ او د ترمذی په روايت کښې ﴿ وسلطانه ﴾ هم دي.

﴿ من شر ما اجد ﴾ د دې دعاء په باره کښې په حديث کښې دا دی چه د بدن په کومه حصه کښې درد او بيماری وی په هغې باندې دې ښی لاس راکاږی او اووۀ کرته دې دا دعا اولولی.

[٣٨٩٢](٢)حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ زِيَادَةَ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ، عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنِ اشْتَكَى مِنْكُمْ شَيْئًا أَوِ اشْتَكَاهُ أَخٌ لَهُ، فَلْيَقُلْ: رَبَّنَا اللَّهُ الَّذِي فِي السَّمَاءِ تَقَدَّسَ اسْمُكَ أَمْرُكَ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ كَمَا رَحْمَتُكَ فِي السَّمَاءِ فَاجْعَلْ رَحْمَتَكَ فِي الْأَرْضِ اغْفِرْ لَنَا حُوبَنَا وَخَطَايَانَا أَنْتَ رَبُّ الطَّيِّبِينَ أَنْزِلْ رَحْمَةً مِنْ رَحْمَتِكَ وَشِفَاءً مِنْ شِفَائِكَ عَلَى هَذَا الْوَجَعِ فَيَبْرَأَ".

دابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه دنبی کريم صلى الله عليه وسلم نه ئې اوريدلی دی چه فرمائيل في: په تاسو کښې چه څوك مريض وي يادده بل يو مسلمان ورور ورته خپل مرض بيان کړي نو دادعاء دي وائي. «ربنا الله الذي في السماء تقدس اسمك أمرك في السماء والأرض كما رحمتك في السماء فاجعل رحمتك في الأرض اغفر لنا حوبنا وخطايانا أنت رب الطيبين أنزل رحمة من رحمتك وشفاء من شفائك على هذا الوجع» اې زمونږه هغه ربه چه په اسمان کښې ئې اونوم دي پاك دي، اې الله ستا اختيار دي په زمکه او اسمان کښې لکه څنګه چه په اسمان کښې ستا رحمت دي نو په زمکه باندې هم خپل رحمت نازل کړي اوزمونږ ګناهونه معاف کړې، اې الله ته پاك ئې دخلقو پروردګاري دخپل رحمت نه په مونږ نازل کړې، اودخپلې شفاء به شفاء راکړې ددې تکليف نه نوکه دالله خوښه وي مريض به جوړ شي.

(١): صحيح مسلم/السلام ٢٤ (٢٢٠٢)، سنن الترمذي/الطب ٢٩ (٢٠٨٠)، سنن ابن ماجه/الطب ٣٦ (٣٥٢٢)، (تحفة الأشراف: ٩٧٧٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العين ٤ (٩)، مسند احمد (٤/٢١، ٢١٧) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٩٥٧) (ضعيف)

**قوله:** ﴿ رَبُّنَا اللَّهُ الَّذِى فِى السَّمَاءِ تَقَدَّسَ اسْمُكَ أَمْرُكَ فِى السَّمَاءِ وَالأَرْضِ كَمَا رَحْمَتُكَ فِى السَّمَاءِ فَاجْعَلْ رَحْمَتَكَ فِى الأَرْضِ اغْفِرْ لَنَا حُوبَنَا وَخَطَايَانَا أَنْتَ رَبُّ الطَّيِّبِينَ أَنْزِلْ رَحْمَةً مِنْ رَحْمَتِكَ وَشِفَاءً مِنْ شِفَائِكَ عَلَى هَذَا الْوَجَعِ ﴾

د بدن په کومه حصه کښې درد وی په هغې باندې دې لاس کیخودلو سره دا دعا اووئیلې شی، ﴿ فیبرا ﴾ انشاء الله هغه به جوړ شی.

[۳۸۹۳](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُعَلِّمُهُمْ مِنَ الْفَزَعِ كَلِمَاتٍ: أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ غَضَبِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَنْ يَحْضُرُونِ" وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو يُعَلِّمُهُنَّ مَنْ عَقَلَ مِنْ بَنِيهِ وَمَنْ لَمْ يَعْقِلْ كَتَبَهُ فَأَعْلَقَهُ عَلَيْهِ.

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ به دویرې په وخت کښې خلقوته داکلمات خودل: «أعوذ بكلمات الله التامة من غضبه وشر عباده ومن همزات الشياطين وأن يحضرون» یعنی زه دالله تعالی په تولو کلماتوسره پناه غواړم دهغه دغضب اودهغه د بندګانو د شرنه اودوسوسو دشیطان نه اوددې نه چه شیطان زماخواته راشي، دعبدالله بن عمر رضي الله عنه په اولاد کښې چه به څوک دهوښیارید وحد ته ورسیدو نودادعاء به ئې ورته زده کوله اوچه څوک چه دهوښیارید و حدته نه وو رسیدلي نودا دعاء به ئې اولیکله او په غاړه کښې به ئې ورته واچوله.

**قوله:** ﴿ أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ غَضَبِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَنْ يَحْضُرُونِ ﴾

د دې دعاء په باره کښې دا دی چه د ویرې په وخت کښې دا لوستل پکار دی، لکه چه بعض وخت ماشومان یا لوئې هم د شپې په څه وخت کښې اویریږی نو دا دې اولوستلې شی. او که ماشوم وی نو د هغه په غاړه کښې دې دا دعا لیکلو سره په طور د تعویذ واچولې شی، دا مضمون په شروع د حدیث کښې هم تیر شوې دې.

[۳۸۹۴](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ أَثَرَ ضَرْبَةٍ فِي سَاقِ سَلَمَةَ، فَقُلْتُ: مَا هَذِهِ؟ قَالَتْ: أَصَابَتْنِي يَوْمَ خَيْبَرَ، فَقَالَ النَّاسُ: أُصِيبَ سَلَمَةُ فَأُتِيَ بِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَفَثَ فِيَّ ثَلَاثَ نَفَثَاتٍ فَمَا اشْتَكَيْتُهَا حَتَّى السَّاعَةِ".

د یزید بن ابی عبید نه روایت دې فرمائی چه ما دسلمه په پندئ کښې دګذار نشان ولیدو ماورنه تپوس اوکړو چه داڅه دې؟ هغه اووئیل دغزوه خیبر په ورځ باندې زه زخمي شوې دم خلقو وئیل شروع کړل چه سلمه زخمي شوې دې بیازه نبی ﷺ ته بوتلې شوم هغه په ما باندې درې چپه اوکړل بیا دهغې ورځې نه ترننه ورځې پورې زما پندئ درد نه دې کړې.

(۱): سنن الترمذي/الدعوات ۹۳ (۸۷۸۱)، (تحفة الأشراف: ۸۷۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۱/۲) (حسن)

(۲): صحيح البخاري/المغازي ۳۸ (۴۲۰۶)، (تحفة الأشراف: ۴۵۴۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۸/۴) (صحيح)

[۳۸۹۵](1) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لِلْإِنْسَانِ إِذَا اشْتَكَى يَقُولُ بِرِيقِهِ، ثُمَّ قَالَ بِهِ فِي التُّرَابِ تُرْبَةُ أَرْضِنَا بِرِيقَةِ بَعْضِنَا يُشْفَى سَقِيمُنَا بِإِذْنِ رَبِّنَا".

ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي كريم ته به كله يو مريض شكايت وكړو نونبي عليه السلام به په خاوره باندې لاړې توكړې اوفرمائيل به ئي : «تربة أرضنا بريقة بعضنا يشفى سقيمنا بإذن ربنا»

## شرح الحيث :

قوله: ﴿عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ لِلْإِنْسَانِ إِذَا اشْتَكَى يَقُولُ بِرِيقِهِ ثُمَّ قَالَ بِهِ فِي التُّرَابِ « تُرْبَةُ أَرْضِنَا بِرِيقَةِ بَعْضِنَا يُشْفَى سَقِيمُنَا بِإِذْنِ رَبِّنَا »﴾ عائشه رضي الله عنها فرمائي چه كله به يو انسان ته څه شكايت يا تكليف وو د يو مرض يا زخم وغيره په وجه، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به هغوى دا طريقه ښودله چه د خپل شهادت په ګوته باندې دې د خپلې خولې لاړې اولګوى او هغه دې په خاوره باندې كيږدى. چه كله په هغې باندې خاوره پريوځى نو بيا دې هغه د تكليف په ځائې باندې راكاږى او دا دعا دې اولوستلې شى، كومه چه پورته ذكر شوه. او د بخارى په روايت كښې د دې دعا په شروع كښې بسم الله هم ده.

امام نووى رحمه الله د دې حديث هم دا شرح كړې ده كومه چه مونږ ليكلې ده او په ګوته باندې خاوره لګول غالبا دې خبرې ته اشاره ده چه يا الله ستا قدرت خو ډير لوئې دې چه تا لوئې انسان د دې خاورې نه جوړ كړو، بيا ستا دپاره شفاء وركول څه ګران دى.

## تخريج الاحاديث :

الحديث الاول اخرجه البخارى، والترمذى والنسائى، والثانى اخرجه مسلم والترمذى والنسائى وابن ماجه بنحوه والثالث اخرجه النسائى، والرابع اخرجه الترمذى والنسائى، وقال الترمذى حسن غريب، والخامس اخرجه البخارى ومسلم والنسائى، وابن ماجه، قاله المنذرى.

[۳۸۹۶](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ زَكَرِيَّا، قَالَ: حَدَّثَنِي عَامِرٌ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ الصَّلْتِ التَّمِيمِيِّ، عَنْ عَمِّهِ، "أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمَ، ثُمَّ أَقْبَلَ رَاجِعًا مِنْ عِنْدِهِ فَمَرَّ عَلَى قَوْمٍ عِنْدَهُمْ رَجُلٌ مَجْنُونٌ مُوثَقٌ بِالْحَدِيدِ، فَقَالَ أَهْلُهُ: إِنَّا حُدِّثْنَا أَنَّ صَاحِبَكُمْ هَذَا قَدْ جَاءَ بِخَيْرٍ فَهَلْ عِنْدَكَ شَيْءٌ تُدَاوِيهِ، فَرَقَيْتُهُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، فَبَرَأَ فَأَعْطَوْنِي مِائَةَ شَاةٍ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ: هَلْ إِلَّا هَذَا"، وَقَالَ مُسَدَّدٌ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: هَلْ قُلْتَ غَيْرَ هَذَا؟، قُلْتُ: لَا، قَالَ: خُذْهَا فَلَعَمْرِي لَمَنْ أَكَلَ بِرُقْيَةِ بَاطِلٍ، لَقَدْ أَكَلْتَ بِرُقْيَةِ حَقٍّ.

خارجه بن صلب دخپل تره نه روايت كوى فرمائى چه هغه دنبى عليه السلام په خدمت كښې حاضرشو اواسلام ئې قبول كړوكله چه هغه دنبى عليه السلام نه واپس روانيدو نوپه لاركښې ديو قوم سره مخامخ شو چه دهغوى سره يوكس په زنځيرونوتړلې شوې پروت وو ددې ليونى

---

(1): صحيح البخاري/الطب ۳۸ (۵۷۴۵)، صحيح مسلم/السلام ۲۱ (۲۱۹٤)، سنن ابن ماجه/الطب ۳۶ (۳۵۲۱)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۰۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹۳/۶) (صحيح)

(2): انظر حديث رقم :(۳۴۲۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۱۱) (صحيح)

وارثانو اووئیل چه مونږ ته دا معلومه شوي ده چه ستاسو مشر (نبی ﷺ) یولوئي خیر راوړي دي انا ستاسو سره داسې څه شي شته چه په هغې باندې دالیونې روغ شي دې وائې ماسورة فاتحه اولوستله او چوپ مې وربانديې اوکړو هغه مریض روغ شو ددغه لیونی وارثانو ماته سل چیلی راکړي زه چه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نوددې واقعې ذکري ورته اوکړو نبی ﷺ اوفرمائیل ایا دسورة فاتحې نه دې علاوه بل دم نه وو وئیلې،

د دې نه پس په کتاب کښې د عم خارجه حدیث او بیا د هغې نه پس د ابوسعیدخدری رضی الله عنه حدیث ذکر دې، د ړومبی حدیث تعلق د رجل مجنون موثق بالحدید سره دې او د دویم تعلق د لدیغ سره دې چه په هغې کښې په سورة الفاتحه دمول ذکر دی، او بیا د هغې دواړو صحت یاب کیدل او بیا د دې دواړو صحابه کرامو رضی الله عنهم په هغه دم باندې دهغوی نه معاوضه اخستل، او بیا د حضور ﷺ ددغه معاوضې داخستلو اجازت ورکول ذکر دی، دا دواړه احادیث په کتاب الاجاره کښې په باب اجرة الطبیب کښې تیر شوې دی. په دې حدیث کښې دی ﴿ فَلَعَمْرِی لَمَنْ أَكَلَ بِرُقْيَةِ بَاطِلٍ لَقَدْ أَكَلْتَ بِرُقْيَةِ حَقٍّ ﴾ په دې باندې ابن رسلان شارح د ابوداؤد لیکی چه په دې حدیث کښې دلیل دې په دې خبره باندې چه رقیه په دوه قسمه ده حق او باطله، حق هغه ده کومه چه په کتاب او سنت او ذکر الله باندې وی، او کومه چه د دې نه علاوه د بل څه څیز نه وی یا د یو داسې څیز نه وی چه د هغې معنی معلومه نه وی نو هغه جائز نه دې ځکه چه په هغې کښې د کفر احتمال وی. (بذل)

**په دم اچولو باندې د اجرت اخستلو جواز :**

﴿ وقال ایضا : وفی الحدیث اعظم دلیل علی انه یجوز الاجرة علی الرقی والطب کما قاله الشافعی ومالک وابوحنیفة واحمد، واما الاجرة علی تعلیم القرآن فاجازها الجمهور بهذا الحدیث وبروایة البخاری ان احق ما اخذتم علیه اجرا کتاب الله، وحرمه ابوحنیفة. ا هـ. قلت ولکن اجازه متاخروا الحنفیة للضرورة (بذل) قلت وقد تقدم دلیل ابی حنیفة رحمه الله فی کتاب الاجارة من حدیث عبادة بن صامت رضی الله عنه وفیه : ان کنت تحب ان تطوق طوقا من نار فاقبلها وترجم علیه المصنف... باب اجر المعلم... فتذکر. وحدیث عم جاریه رضی الله عنه اخرجه النسائی وحدیث ابی سعید الخدری رضی الله عنه اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[۳۸۹۷](۱)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ،حَدَّثَنَا أَبِي. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِاللَّهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ، عَنْ الشَّعْبِيِّ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ الصَّلْتِ، عَنْ عَمِّهِ أَنَّهُ مَرَّ قَالَ فَرَقَاهُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً كُلَّمَا خَتَمَهَا جَمَعَ بُزَاقَهُ، ثُمَّ تَفَلَ فَكَأَنَّمَا أُنْشِطَ مِنْ عِقَالٍ فَأَعْطَوْهُ شَيْئًا، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ ذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ مُسَدَّدٍ.

خارجه بن صلت دخپل تره نه روایت کوی فرمائی چه هغه ده درې ورځو پورې سحر اوماښام الحمدلله وئیله او په دې لیونی باندې به ئې چپ کولو کله چه به دالحمدو دوئیلو نه فارغ شونولاړې به ئې په خوله کښې جمع کړې او په ده باندې به ئې ونوکل لیونې داسې روغ شو

(۱): انظر حدیث رقم : (۳۴۲۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۱۱) (صحیح)

چه دپرونه پرانیستل شو نودغه خلقو په عوض کښې چیلئ ورکړي دي چه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، باقي حدیث کې ذمسدد دحدیث په شان بیان کړو.

[۳۸۹۸] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَجُلًا مِنْ أَسْلَمَ، قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لُدِغْتُ اللَّيْلَةَ فَلَمْ أَنَمْ حَتَّى أَصْبَحْتُ، قَالَ: "مَاذَا؟" قَالَ: عَقْرَبٌ، قَالَ: "أَمَا إِنَّكَ لَوْ قُلْتَ حِينَ أَمْسَيْتَ أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ، لَمْ تَضُرَّكَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ".

مسدد په یوبل خائې کښې وئیلی دی چه نبی ﷺ اوفرمائیل ایاددینه دي علاوه نور څه ورته وئیلي وو ماعرض اوکړو نه، نبی ﷺ اوفرمائیل ته داچیلئ واخله زما دې په خپل عمرقسم وي خلق په باطل جادو باندې عوض اخلي تاخو په حق دم باندې عوض اخستلې دې.

﴿عن سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ رَجُلاً مِنْ أَسْلَمَ الخ﴾

ابوصالح فرمائي چه ما د قبیلهٔ اسلم د یو سړي نه واوریدل چه زه د رسول الله ﷺ په مجلس کښې ناست اوم، یو صحابی ﷺ راغلو او هغه عرض اوکړو چه د شپې زه یو زهریله ښناور چیچلې یم چه د هغې د وجې نه ماله تر سحره پورې خوب رانغلو، رسول الله ﷺ ترې نه تپوس اوکړو څه ښناور وو، هغوی عرض اوکړو لړم وو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل: خبردار که تا د ماښام په وخت دا دعاء وئیلې وې ﴿أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ﴾ نو تاته هیڅ څیز ضرر نه شو درکولې.......

[۳۸۹۹] (۲) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنِي الزُّبَيْدِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ طَارِقٍ يَعْنِي ابْنَ مُخَاشِنٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَدِيغٍ لَدَغَتْهُ عَقْرَبٌ، قَالَ: فَقَالَ: "لَوْ قَالَ أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ لَمْ يُلْدَغْ أَوْ لَمْ يَضُرَّهُ".

دابوهریره رضی الله تعالی عنه نه روایت دي فرمائي چه یولړم چیچلي نبی ﷺ ته راوستلې شو، ابوهریره والي چه نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې ده دا دعا وئیلي وې: «أعوذ بكلمات الله التامة من شر ما خلق» نولړم به نه وو چیچلې.

او هم د دې حدیث په دویم طریق کښې دی ﴿لم يلدغ او لم يضره﴾ د راوی په شک سره چه رسول الله ﷺ یا خو داسې اوفرمائیل چه هغه زهریله ښنارو بیا چک هم نه لګوی او یا ئې دا اوفرمائیل چه ضرر نه رسوی. په دې دواړو کښې احتمال دې یو خو دا چه هغه تک نه ورکوی او که ورکوی نه ضرر نه رسیږی.

الطريق الاول من هذا الحديث اخرجه مسلم، والنسائى مسندا ومرسلا، وابن ماجه، قاله المنذرى والطريق الثانى اخرجه النسائى من طرق، قاله المنذرى (مختصرا)

---

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۵٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۴۴۸، ۵/۴۳۰) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۱٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطب ۳۵ (۳۵۱۸)، مسند احمد (۲/۳۷۵) (ضعيف الإسناد)

[٣٩٠٠] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، "أَنَّ رَهْطًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْطَلَقُوا فِي سَفْرَةٍ سَافَرُوهَا، فَنَزَلُوا بِحَيٍّ مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّ سَيِّدَنَا لُدِغَ فَهَلْ عِنْدَ أَحَدٍ مِنْكُمْ شَيْءٌ يَنْفَعُ صَاحِبَنَا؟، فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: نَعَمْ وَاللَّهِ إِنِّي لَأَرْقِي وَلَكِنِ اسْتَضَفْنَاكُمْ فَأَبَيْتُمْ أَنْ تُضَيِّفُونَا مَا أَنَا بِرَاقٍ حَتَّى تَجْعَلُوا لِي جُعْلًا فَجَعَلُوا لَهُ قَطِيعًا مِنَ الشَّاءِ، فَأَتَاهُ فَقَرَأَ عَلَيْهِ أُمَّ الْكِتَابِ وَيَتْفُلُ حَتَّى بَرَأَ كَأَنَّمَا أُنْشِطَ مِنْ عِقَالٍ، قَالَ: فَأَوْفَاهُمْ جُعْلَهُمُ الَّذِي صَالَحُوهُمْ عَلَيْهِ، فَقَالُوا: اقْتَسِمُوا، فَقَالَ: الَّذِي رَقَى لَا تَفْعَلُوا حَتَّى نَأْتِيَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَسْتَأْمِرَهُ فَغَدَوْا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا لَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِنْ أَيْنَ عَلِمْتُمْ أَنَّهَا رُقْيَةٌ أَحْسَنْتُمُ اقْتَسِمُوا وَاضْرِبُوا لِي مَعَكُمْ بِسَهْمٍ".

دابوسعید خدری ﷺ نه روایت دي فرمائی چه دصحابه کرامویوه ډله په سفر روانه شوه اودعربو بوي قبیل ته ورسیدل اودهغوی نه ئې دمیلمستیا مطالبه وکړه لیکن هغوی د میلمنو قبلولونه انکار وکړو بیا ددغه قبیلې سردار مار یالهم وچیچل دهغه دعلاج دپاره خلقو هرقسم کوشش اوکړولیکن هغه نه جوړیدو په دوی کښې یوکس اووئیل کوم کسان چه په میلمستیاراغلې دي هغوی ته ځوك ولیږې کیدې شی چه دهغوی سره د زهرو دپاره څه علاج ري، په کومه باندې چه به ده ته فائده ورسیږی بیا په دوی کښې یوځوکسان صحابه کراموته ورغلل او ورته ئې اووئیل چه زمونږ سردار ماریالړم چیچلې دي ایا په تاسوکښې څوك دم ګري شته؟ یوکس اووئیل هو، زه به وربادې دم واچوم، لیکن مونږه ستاسونه دمیلمستیا مطالبه اوکړه اوتاسوانکار وکړو اوس زه دم نه اچوم ترڅوچه تاسوماته ددې اجرت رانکړئ، نوددغه علاقې خلقو ددرې دپاره دچیلویوه رمه مقررکړه بیادغه کس ورغې او سورة فاتحه ئې ولوستله او توکانړي پرې توکړې تردې چه هغه جوړ شو اوداسې روغ شولکه غوټه چه کولاو کړې شي، بیاچه هغوی کومه معاوضه مقررکړي وه هغه ئې ورکړه صحابه کرامو عرض اوکړو رانې ورئ چه مونږ ئې تقسیم کړو مګرچاچه دم اچولې وو هغه اووئیل نه تاسوصبر وکړئ چه دنبی ﷺ نه تپوس اوکړو بیادنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شول او واقعه ئې ورته بیان کړه ئې علیه السلام اوفرمائیل داخبره تاسو دکوم ځائې نه معلومه کړې ده چه سورة فاتحه دم دې ډیر ښه کارموکړې دې اوزمادپاره دخپلو ځانونو سره حصه مقررکړئ.

[٣٩٠١] (٢) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ الصَّلْتِ التَّمِيمِيِّ، عَنْ عَمِّهِ، قَالَ: "أَقْبَلْنَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَيْنَا عَلَى حَيٍّ مِنَ الْعَرَبِ، فَقَالُوا: إِنَّا أُنْبِئْنَا أَنَّكُمْ جِئْتُمْ مِنْ عِنْدِ هَذَا الرَّجُلِ بِخَيْرٍ، فَهَلْ عِنْدَكُمْ مِنْ دَوَاءٍ أَوْ رُقْيَةٍ فَإِنَّ عِنْدَنَا مَعْتُوهًا فِي الْقُيُودِ؟، قَالَ: فَقُلْنَا: نَعَمْ، قَالَ: فَجَاءُوا بِمَعْتُوهٍ فِي

(١): صحيح البخاري/الإجارة ١٦ (٢٢٧٦)، الطب ٣٣ (٥٧٣٦)، صحيح مسلم/السلام ٢٣ (٢٢٠١)، سنن الترمذي/الطب ٢٠ (٢٠٦٣)، سنن ابن ماجه/التجارات ٧ (٢١٥٦)، (تحفة الأشراف: ٤٢٤٩، ٤٣٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٤) (صحيح)

(٢): انظر حديث رقم: (٣٤٢٠)، (تحفة الأشراف: ١١٠١١) (صحيح)

الْقُيُودِ، قَالَ: فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً كُلَّمَا خَتَمْتُهَا أَجْمَعُ بُزَاقِي، ثُمَّ أَتْفُلُ فَكَأَنَّمَا نَشِطَ مِنْ عِقَالٍ، قَالَ: فَأَعْطُونِي جُعْلًا، فَقُلْتُ: لَا حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: كُلْ فَلَعَمْرِي مَنْ أَكَلَ بِرُقْيَةِ بَاطِلٍ لَقَدْ أَكَلْتَ بِرُقْيَةِ حَقٍّ".

خارجه بن الصلت دخپل تره نه روایت کوی فرمائی چه مونږ دنبی ﷺ دخوانه روان شواویه عربو کښې په یوقوم باندې تیریدو هغوی ووئیل چه مونږ ته خبر رارسیدلي دي چه تاسوددغه کس یعنی نبی ﷺ نه خیر راوړي دي اناستاسو سره کومه دوا یا کوم عمل شته؟خکه چه په مونږ کښې یوکس لیونې شوي دي او په زنځیرونوتړلي شوي دي مونږ ورته ووئیل هو نوهغوی هغه لیونې راوستو، راوی وائی چه مادرې ورځې په سورت فاتحه دم کړواوپه خپله خوله کښې به مې لاړې جمع کړې او په ده باندې مې توکړې، راوی وائی چه هغه کس بیا داسې جوړ شو لکه چه دقید نه خلاص شي هغوی اوغوښتل چه ماته مزدوري راکړي ماورته ووئیل چه زه ترهغه وخته پورې معاوضه نشم اخستلي ترڅوچه مې دنبی ﷺ نه تپوس نه وي کړي کله چه ماد نبی ﷺ نه تپوس وکړو نوراته ئې اوف: مائیل: داچیلی واخله زما دې پخپل عمر قسم وي خلق خو په دروغو دمونوباندې رزق خوري تاخو په صحیح دم باندې خوراک کړې دې.

[۳۹۰۲](١)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا اشْتَكَى: يَقْرَأُ فِي نَفْسِهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ، وَيَنْفُثُ، فَلَمَّا اشْتَدَّ وَجَعُهُ كُنْتُ أَقْرَأُ عَلَيْهِ وَأَمْسَحُ عَلَيْهِ بِيَدِهِ رَجَاءَ بَرَكَتِهَا".

دعائشه رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی کله چه نبی ﷺ بیمارشو نو په خپل زړه کښې به ئې معوذتین وئیل اوخپل ځان به ئې ورباندې دمولو، کله چه دهغه په مرض کښې شدت راغې نومابه معوذتین وئیل دنبی ﷺ په جسم باندې به ئې دهغه لاس مبارک راخکلودهغه دبرکت په امید باندې.

د باب په آخری حدیث کښې دی: سیده عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی چه د رسول الله ﷺ طبیعت چه کله ناسازه شو نو هغوی به معوذتین پټ پټ وئیلو او وئیلو سره به ئې دم کولو په خپل ځان باندې (او په یو بل روایت کښې دی چه په خپلو لاسونو مبارکو باندې به ئې دم کولو سره په بدن مبارک باندې راښکل) هغوی فرمائی چه کله رسول الله ﷺ ته په آخری وخت کښې تکلیف سخت شو نو ما به داسې کول چه معوذات به مې لوستل او د هغوی په لاس مبارک باندې به مې دمول او هغه به مې په هغوی باندې راښکل، په ځائې د خپل لاس راښکلو د رسول الله ﷺ د لاس مبارک د برکت دپاره. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

............

١): صحیح البخاري/فضائل القرآن ١٤ (٥٠١٦)، صحیح مسلم/السلام ٢٠ (٢١٩٢)، سنن ابن ماجه/الطب ٣٨ (٣٥٢٩)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٨٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العين ٤ (١٠)، مسند احمد (٦/١٠٤، ١٨١، ٢٥٦، ٢٦٣) (صحيح)

## بَابٌ فِي السُّمْنَةِ

### باب د څرب کیدو بیان

[۳۹۰۳](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ يَزِيدَ بْنِ سَيَّارٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "أَرَادَتْ أُمِّي أَنْ تُسَمِّنَنِي لِدُخُولِي عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ أُقْبِلْ عَلَيْهَا بِشَيْءٍ مِمَّا تُرِيدُ حَتَّى أَطْعَمَتْنِي الْقِثَّاءَ بِالرُّطَبِ فَسَمِنْتُ عَلَيْهِ كَأَحْسَنِ السِّمَنِ".

دعائشه رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه زما مورغوښتل چه زه څربه شم ځکه چه زما واده دنبی علیه السلام سره کیدو والا ووهغې هر ممکن کوشش وکړولیکن زه څربه نشوم تردې چه هغې په ماباندې تري دتازه کجورو سره خوړول شروع کړل نوزه په بهتره طریقي سره غټه شوم.

سمنة يعنى څرب کونکې دوائی یا خوراک.... د حدیث مضمون دا دي : عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی چه زما د رخصتئ نه مخکښې زما مور زما د صحت مند کیدلو ښه کوششونه او تدبیرونه اوکړل خو زما طبیعت هیڅ تدبیر قبول نه کړو، بیا په آخر کښې هغې په ما باندې بادرنګ او رطب (کهجورې) اوخوړلې، دا علاج زما طبیعت قبول کړو چه په هغې سره زه ښه غټه شوم.

جینئ که د نکاح نه پس د رخصتئ نه مخکښې کمزورې وی او نرئ وی نو د هغې مور فکرمنده وی او د هغې دپاره داسې تدبیرونه کوی چه په هغې سره په هغې کښې څرب والې راشی، زمونږ په طرفونو کښې دا خبره مشهوره ده چه د دې دپاره پرې پئ او څلوبئ خوړلې شی. والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه،قاله المنذري (مختصرا)

# كِتَابُ الْكَهَانَةِ وَالتَّطَيُّرِ

### کهانت اور بدفالئ سره متعلق احکام او مسائل

## بَابٌ فِي الْكَاهِنِ

### باب د فال کتلو بیان

په بعض نسخو کښې د دې نه مخکښې ﴿ كتاب الكهانة والتطير ﴾ دي.

[۳۹۰۴](٢)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ حَكِيمٍ الْأَثْرَمِ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَتَى كَاهِنًا"، قَالَ مُوسَى فِي حَدِيثِهِ: فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ ثُمَّ اتَّفَقَا أَوْ أَتَى امْرَأَةً، قَالَ مُسَدَّدٌ: امْرَأَتَهُ حَائِضًا أَوْ أَتَى امْرَأَةً، قَالَ مُسَدَّدٌ: امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا فَقَدْ بَرِئَ مِمَّا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ.

د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي څوك چه کاهن ته لاړ

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧١٨٢)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الاطعمة ٣٧ (٣٣٢٤)، سنن النسائي/الكبرى (٦٧٢٥) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الطهارة ١٠٢ (١٣٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢٢ (٦٣٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٣٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٨٦، ٢/٤٠٨، ٤٧٦، ٦/٣٠٥)، سنن الدارمي/الطهارة ١١٣ (٢٥٩) (صحيح)

شي، موسى پخپل روايت كښې اضافه كړې ده چه نبى ﷺ اوفرمائيل اوبيا دهغه خبرې رېښتونې وګڼي يا دكومې ښځې سره صحبت وكړي، مسدد پخپل روايت كښې وئيلى دى چه په بيمارئ په حالت كښې اومسددپه خپل روايت كښې وئيلى دى چه باخپلې ښځې ته دشادطرف نه راتلل وكړي نودغه كس دهغه دين نه خارج شو كوم چه په محمد باندې نازل شوې دې.

**قوله:** ﴿ مَنْ أَتَى كَاهِنًا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ أَوْ أَتَى امْرَأَةً حَائِضًا أَوْ أَتَى امْرَأَةً فِي دُبُرِهَا فَقَدْ بَرِئَ مِمَّا أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى مُحَمَّدٍ ﷺ ﴾

د دې حديث درې اجزاء دى كاهن ته تلو سره د هغه تصديق كول، او خپلې ښځې سره په حالت د حيض كښې وطى كول او دريم وطى فى الدبر او د دې درې وارو په باره كښې رسول الله ﷺ ډير سخت وعيد اوفرمائيلو چه دې سرى د قرآن او وحى انكار اوكړو په بذل كښې دى ﴿ وهذا محمول على المستحل او التغليظ ﴾...... وطى په حالت د حيض كښې دا مسئله په كتاب الطهارة كښې او د وطى فى الدبر مسئله په كتاب النكاح كښې تيره شوې ده، په كوكب الدرى ۸۳/۱ كښې ليكلې دى : قوله من اتى كاهنا الى آخره... كاهن ته د تلو نه مراد هغه دې كوم چه د غيب خبرونه بيانوى د هغه تصديق كول دى، صرف هغه ته ورتلل مراد نه دى، مثلاً يو سړې د څه ضرورت په بناء هغه ته لاړ شي يا د هغه د تكذيب يا تبكيت دپاره، يا په هغه پورې د ټوقو كولو دپاره نو دا په دې كښې داخل نه دې، بلكه كه په دې اعتقاد لاړ شى چه جنات دې كاهنانو ته خبر وركوى، او بعض خبرونه د هغوى رښتيا وى او بعض دروغ، نو بيا به هم په دې وعيد كښې داخل نه وى. والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وابن ماجه، قاله المنذرى....

## بَابٌ فِي النُّجُومِ

### د علم نجوم د احكامو بيان

[۳۹۰۵]() حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُسَدَّدٌ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَخْنَسِ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اقْتَبَسَ عِلْمًا مِنَ النُّجُومِ، اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ زَادَ مَا زَادَ".

دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائى چه رسول پاک فرمائيلى دى چاچه كوم قسم علم نجوم زده كړو نوده دجادويوه لاره ازده كړله بياچه په دې كښې چاڅومره اضافه وكړه نوهغه هومره ئې په جادوكښې اضافه وكړه.

**قوله:** ﴿ مَنِ اقْتَبَسَ عِلْمًا مِنَ النُّجُومِ اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ زَادَ مَا زَادَ ﴾

كوم انسان چه د علم نجوم څه حصه حاصل كړه نو هغه د سحر يو حصه حاصله كړه. اوس چه هغه انسان د علم نجوم په حصول كښې څومره زيادت كوى ګويا په علم سحر كښې زيادت كوى. او دا ښكاره خبره ده چه تعلم د سحر او عمل بالسحر دواړه حرام دى. بس دغه شان

[1]: سنن ابن ماجه/الأدب ۲۸ (۳۷۲۶)، (تحفة الأشراف: ۶۵۵۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۲۷، ۳۱۱) (حسن)

تعلم د علم نجوم هم حرام دي. د دې علم نجوم نه په کوم چه وعيد دې هغه علم مراد دې چه د هغې په وجه باندې انسان د حوادثو د علم دعوی کوی چه لا واقع شوې نه وی او بيا دپاره کيدونکی دی، د هواګانو چليدل يا د باران خبر ورکول او د څيزونو په نرخ کښې کمې زيادت وغيره وغيره او څنګه چه دا اهل نجوم دعوی کوی چه هغوی دا څيزونه د کواکب په سير سره پيژنی، حال دا چه د راتلونکی کارونو علم د الله پاک نه سوا چا سره هم نشته، او داسې علم نجوم چه په هغې سره د اوقاتو علم راشی، يعنی د زوال او يا د جهت قبله نو هغه په دې کښې داخل نه دي. (بذل عن ابن رسلان) والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

[۳۹۰٦] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: "صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الصُّبْحِ بِالْحُدَيْبِيَةِ فِي إِثْرِ سَمَاءٍ كَانَتْ مِنَ اللَّيْلِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، فَقَالَ: "هَلْ تَدْرُونَ مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ؟، قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: قَالَ: أَصْبَحَ مِنْ عِبَادِي مُؤْمِنٌ بِي وَكَافِرٌ، فَأَمَّا مَنْ قَالَ: مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِ، فَذَلِكَ مُؤْمِنٌ بِي كَافِرٌ بِالْكَوْكَبِ، وَأَمَّا مَنْ قَالَ: مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا، فَذَلِكَ كَافِرٌ بِي مُؤْمِنٌ بِالْكَوْكَبِ".

دزيد بن خالد الجهنی نه روايت دې فرمائی چه رسول الله مونږ ته دسحر مونځ په سنديبيه مقام کښې په سخت باران کښې راکړو کوم چه دشپې شوې وو، نبی کريم و دسحر دمونځ نه دفارغيدونه پس خلقوطرف ته مخ راواروو اود متوجه کيدونه بس ئې اوفرمائيل اياتاسوته معلومه ده چه ستاسو پروردګار څه فرمائيلي دي؟ خلقو عرض اوکړو الله اودهغه رسول ښه پوهيږي نونبی ﷺ اوفرمائيل الله تعالی فرمائيلي دي زما بعضې بندګان دسحر په وخت کښې ايماندارشول اوبعضې کافرشول پس هرهغه چاچه اووئيل دالله په فضل سره اودهغه په رحمت سره په مونږ باندې باران وشو نوهغه کسان به ايمانداران اور دستورونه انکارکونکي وشميرل شي، او هرهغه چاچه اووئيل چه په مونږ باندې دفلاني فلانی ستوري په وجه باران وشونوده زمانه انکار وکړو اوبه ستورو ئې يقين وکړو.

قوله: ﴿عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ أَنَّهُ قَالَ صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- صَلَاةَ الصُّبْحِ بِالْحُدَيْبِيَةِ فِي إِثْرِ سَمَاءٍ كَانَتْ مِنَ اللَّيْلِ الخ ﴾

### مضمون الحديث :

رسول الله ﷺ د حديبيه په موقع باندې د سحر مونځ ورکړو او د شپې باران هم شوې وو د مانځه نه چه فارغ شو نو خلقو ته متوجه شو او وې فرمائيل : تاسو ته معلومه د چه الله پاک څۀ اوفرمائيل، بيا حضور ﷺ پخپله اوفرمائيل چه الله پاک فرمائی ﴿ أَصْبَحَ مِنْ عِبَادِي مُؤْمِنٌ بِي وَكَافِرٌ ﴾ چه زما په بندګانو کښې بعضو په کفر سره صبا کړو او بعضو په ايمان سره، کومو خلقو چه د باران په وريدلو باندې داسې اووې چه ﴿ مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللهِ وَبِرَحْمَتِهِ ﴾ نو دا سرې په ما باندې ايمان لرونکې دي او د کوکب انکار کونکې دي او کوم سړی چه داسې

---

(۱): صحيح البخاري/الأذان ١٥٦ (٨٤٦)، الاستسقاء ٢٨ (١٠٣٨)، المغازي ٣٥ (٤١٤٧)، التوحيد ٣٥ (٧٥٠٣)، صحيح مسلم/الإيمان ٣٢ (١٢٥)، سنن النسائي/الاستسقاء ١٦ (١٥٢٦)، عمل اليوم والليلة ٢٦٧ (٩٢٤)، (تحفة الأشراف: ٣٧٥٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاستسقاء ٣ (٤)، مسند احمد (١١٥/٤، ١١٦، ١١٧) (صحيح)

اووي چه ﴿ مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا ﴾ چه په مونږ باندې باران اوشو د فلانی ستوری په غروب او طلوع سره، نو دا سړې په ما کافر دې او په کوکب مومن. دا وعید په هغه صورت کښې دې چه د کوکب په باره کښې هم دا اعتقاد لرونکې وی چه د باران هم د هغې په وجه باندې شوې دې. لکه چه بعض جاهل منجمین داسې ګڼړی، او که په دې اعتقاد سره نه وی بلکه خالق د باران صرف الله پاک ګڼړی او د دې باوجود ئې دا خبره د نورو نه په اوریدلو سره د هغوی په شان اوکړه نو بیا به کافر نه وی دا به صرف خطا وی.

د دې حدیث شرح امام نووی رحمه الله په دې تفصیل سره کړې ده ﴿ مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا ﴾ د نوء جمع انواء راځی د دې اطلاق په نجم (ستوری) باندې هم کیږی خو د اصل لغت په اعتبار سره دا نوء مصدر دې د ناء ینوء نواء نه... چه د هغې معنی غروب او طلوع دواړه راځی دا اتویشت ستوری دی چه د هغې اتویشت مطالع دی چه د هغې نه هغه ټول کال طلوع کیږی.

علماء د هیئت وائی چه په دې ستورو کښې هر یو ستورې په هره دیارلسمه شپه باندې د نمر د راختلو په وخت مغرب طرف ته ډوبیږی او هم دغه شان فورا د هغې بالمقابل په مشرق کښې دویم ستورې راخیژی او بل په مغرب کښې غروب شی، غروب کیدونکو ته انواء وائی او طلوع کیدونکو ته بوارج وائی، نو په کوم وخت چه دا ستورې په دیارلسمه شپه کښې طلوع کیږی نو که په اتفاق سره هغه وخت باران اوشی نو هغې لره هم هغه ستوری ته منسوب کولې شی بعض نسبت د طلوع کیدونکی طرف ته کوی او بعض د غروب کیدونکی طرف ته. والله تعالی اعلم قاله النووی فی شرح مسلم. (تحفة الاحوذی ۱۳۵)

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی نحوه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الْخَطِّ وَزَجْرِ الطَّيْرِ

### د رمل په خبرو یقین کول او د مرغو په آوازو نو باندې د بد فالئ کولو د ممانعت بیان

[۳۹۰۷] (1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا عَوْفٌ، حَدَّثَنَا حَيَّانُ، قَالَ غَيْرُ مُسَدَّدٍ، حَيَّانُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا قَطَنُ بْنُ قَبِيصَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الْعِيَافَةُ وَالطِّيَرَةُ وَالطَّرْقُ مِنَ الْجِبْتِ"، الطَّرْقُ: الزَّجْرُ، وَالْعِيَافَةُ: الْخَطُّ.

قطن بن قبیصه دخپل پلارنه روایت کوی فرامائي چه رسول الله نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې عیافت اوبدفالي نیول اوطرق دبت پرست قسمونه دي، طرق، مرغئ الوزولوته ونیلې شي او عیافت په زمکه باندې دکرخو راښکلوته ونیلې شي.

[۳۹۰۸] حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، قَالَ: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، قَالَ عَوْفٌ: "الْعِيَافَةُ زَجْرُ الطَّيْرِ وَالطَّرْقُ الْخَطُّ يُخَطُّ فِي الْأَرْضِ".

ابن بشار دمحمدبن جعفرنه نقل کوي چه دعیافت نه مراد دمرغوشړل دي اودطرق نه مراد هغه کرخي دي کوي چه په زمکه باندې راښکلې شي.

**قوله:** ﴿سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « الْعِيَافَةُ وَالطِّيَرَةُ وَالطَّرْقُ مِنَ الْجِبْتِ »﴾.

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۶۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۷۷/۳، ۶۰/۵) (ضعیف)

الطَّرْقُ الزَّجْرُ وَالْعِيَافَةُ الْخَطُّ ﴾ دا تفسير د امام ابوداؤد رحمه الله د طرف نه دې چه د طرق نه مراد زجر يعنى زجر الطير دې، ناستې مرغۍ پاسول د فال اخستلو دپاره، او د عيافه نه مراد خط يعنى علم رمل، او د دې نه روستو روايت كښې دا تفسير د دې برعكس راروان دې.
والحديث اخرجه النسائى، قاله المنذرى

## بَابٌ فِي الطِّيَرَةِ وَالْخَطِّ

### باب د بد فالۍ نيولو بيان

[۳۹۱۰] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ عِيسَى بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الطِّيَرَةُ شِرْكٌ الطِّيَرَةُ شِرْكٌ ثَلَاثًا، وَمَا مِنَّا إِلَّا وَلَكِنَّ اللَّهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ".

د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى: بدفالي نيول شرك دي بدفالي نيول شرك دي درې پيرې او په مونږ كښې هريوكس ته خامخا څه حادثه پيښيږي ليكن الله تعالى هغه د توكل كولو په وجه رفعه كوي.

**قوله:** ﴿ الطِّيَرَةُ شِرْكٌ الطِّيَرَةُ شِرْكٌ ﴾. ثَلَاثًا ﴿ وَمَا مِنَّا إِلاَّ وَلَكِنَّ اللَّهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ ﴾

يعنى رسول الله ﷺ درې كرته ارشاد اوفرمائيلو ﴿ الطيرة شرك ﴾ چه بدفالى شرک دې. او بيا ئې وړاندې اوفرمائيل چه په مونږ كښې څوک هم داسې نشته چه هغه ته څه اندازه د بدفالۍ خيال نه راځى، لږ لږ خيال په شروع كښې راځى يعنى قبل التامل، خو كوم چه مومن وى د هغه چونكه په الله پاک باندې توكل وى په دې وجه د هغه توكل هغه لره د هغه د خيال نه لرې كړى، يعنى هغه په خپل فال باندې نه چليږى، ﴿ وما منا ﴾ د دې عبارت خبر مقدر دې اى وما منا احد الا ويعتريه شئ منه، اعتراء يعنى پيښيدل.

والحديث اخرجه الترمذى وابن ماجه، قاله المنذرى

[۳۹۰۹] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ الْحَجَّاجِ الصَّوَّافِ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ السُّلَمِيِّ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّونَ؟، قَالَ: كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ يَخُطُّ فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ فَذَاكَ".

د معاويه بن حكم السلمي رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه ما عرض وكړو اې د الله رسوله په مونږ كښې بعضې داسې خلق دي چه كرښې اوكاږي پيغمبر پاک ﷺ اوفرمائيل په انبياؤ كښې هم يو د الله يو نبى داسې ووچه كرښې به ئې راښكلى نو د چا كرښې چه د هغه د كرښو سره مطابق شي نو باک نشته.

**قوله:** ﴿عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ السُّلَمِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّونَ الخ ﴾ دا حديث په كتاب الصلوة كښې تير شوې دې، والحديث اخرجه مسلم والنسائى بطوله، قاله المنذرى.

---

(١): سنن الترمذي/السير ٤٧ (١٦١٤)، سنن ابن ماجه/الطب ٤٣ (٣٥٣٨)، (تحفة الأشراف: ٩٢٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٨٩، ٤٣٨، ٤٤٠) (صحيح)

(٢): انظر حديث رقم: (٩٣٠)، (تحفة الأشراف: ١١٣٧٨) (صحيح)

[۳۹۱۱]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَلَا صَفَرَ وَلَا هَامَةَ". فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ: مَا بَالُ الْإِبِلِ تَكُونُ فِي الرَّمْلِ كَأَنَّهَا الظِّبَاءُ، فَيُخَالِطُهَا الْبَعِيرُ الْأَجْرَبُ، فَيُجْرِبُهَا، قَالَ: فَمَنْ أَعْدَى الْأَوَّلَ، قَالَ مَعْمَرٌ: قَالَ الزُّهْرِيُّ: فَحَدَّثَنِي رَجُلٌ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يُورِدَنَّ مُمْرِضٌ عَلَى مُصِحٍّ"، قَالَ: فَرَاجَعَهُ الرَّجُلُ، فَقَالَ: أَلَيْسَ قَدْ حَدَّثَنَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا عَدْوَى وَلَا صَفَرَ وَلَا هَامَةَ؟" قَالَ: لَمْ أُحَدِّثْكُمُوهُ؟ قَالَ الزُّهْرِيُّ: قَالَ أَبُو سَلَمَةَ: قَدْ حَدَّثَ بِهِ وَمَا سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ نَسِيَ حَدِيثًا قَطُّ غَيْرَهُ.

د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي نه ديوكس نه بل كس ته مرض لګي اونه دسفرې مياشت سپيره ده اونه دكوم مرې دكوپړئ نه هامة مرغى سپيره ده چه دچاپه كور راپريوځي، په دې وخت كښې يوباند چې عرض وكړو رهې وئيل چه اې دالله رسوله بيابة ددې اوښانوڅه حال وي كوم چه دهوسيوپه شان حاربه اوصحت مند. وي په صحرا كښې ګرځي كله چه په دوى كښې بويمن اوښ ننوځي نوپه نوروهم خارښ لګي نبي ﷺ دي كس ته اوفرمائيل اولني اوښ چا پمن كړې دې؟ زهرې وئيلى دى چه ماته يوكس دابوهريره په واسطې سره روايت بيان كړې دې چه نبي ﷺ اوفرمائيل چه مريض اوښ دې د اوبو څكلو دپاره هغه ځائې ته نشې بوتلې چرته چه روغ څاروې اوبه څې بيادغه كس دابوهريره په خدمت كښې حاضر شو اوعرض ئې وكړو ابانبي ﷺ دانه دې فرمائيلي چه نه خوديوبيمارې بل ته لګي اونه دسفرې مياشت سپيره ده، ابوهريره اوفرمائيل ما دا روايت نه دې بيان كړې ابوسلمه وائي ابوهريره پخپله دا روايت بيان كړې وو او مادانه دې اوريدلي چه ددې حديث نه علاوه دابوهريره رضی الله عنه نه بل حديث هيرشوې دې.

**مضمون الحديث:**

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لاَ عَدْوَى وَلاَ طِيَرَةَ وَلاَ صَفَرَ وَلاَ هَامَةَ ». فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ مَا بَالُ الإِبِلِ تَكُونُ فِي الرَّمْلِ كَأَنَّهَا الظِّبَاءُ فَيُخَالِطُهَا الْبَعِيرُ الأَجْرَبُ فَيُجْرِبُهَا قَالَ « فَمَنْ أَعْدَى الأَوَّلَ »﴾ د عدوى معنى د يوې بيمارئ بل ته لګيدل، لكه چه د بعض مرضونو په باره كښې خلق ګنړي چه دا مرض متعدى دې د يو نه بل ته لګيږي. مثلاً خارښ..... نو رسول الله ﷺ فرمائي چه دا خبره غلطه ده داسې نه ده په دې باندې يو اعرابى د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه مونږ خو ګورو چه ډير اوښان كوم چه په صحراګانو كښې ګرځي د صفا ستهره هو سو په شان ښكلي، نو كه په هغې كښې يو خارښتى اوښ حاضر شي نو په ټولو باندې خارښ لګوى، رسول الله ﷺ د دې سائل په جواب كښې اوفرمائيل هغه اوښ د چا د اختلاط د وجې نه چه په نورو خارښ لګيدلې دې هغه ته د چا نه خارښ لګيدلې وو؟ هغه ته خو د چا نه هم نه وو لګيدلې، د خارښ ابتداء خو د هغه نه شوې وه، په دې باندې هغه سائل خاموش شو.

(): صحيح البخاري/الطب ۲۵ (۵۷۱۷)، ۴۵ (۵۷۵۷)، ۵۳ (۵۷۷۰)، ۵۴ (۵۷۷۲)، (تحفة الأشراف: ۱۵۲۷۳، ۱۵۵۰۲)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/السلام ۳۳ (۲۲۲۳)، مسند احمد (۲/۲۶۷، ۳۲۷، ۳۹۷) (صحيح)

**قوله:**﴿ قَالَ مَعْمَرٌ قَالَ الزُّهْرِيُّ فَحَدَّثَنِي رَجُلٌ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « لاَ يُورِدَنَّ مُمْرِضٌ عَلَى مُصِحٍّ ». قَالَ فَرَاجَعَهُ الرَّجُلُ الخ ﴾

**هغه حدیث کوم چه ابوهریره رضی الله عنه نه د بیانولو نه پس هیر شو**

امام زهری رحمه الله فرمائی چه یو سړی ماته بیان اوکړو چا چه د ابوهریره رضی الله عنه نه حدیث اوریدلې وو. ﴿ لا یوردن ﴾ الخ چه د هغې مطلب دا دې چه د کوم سړی اوښ بیمار وی نو هغه له پکار دی چه خپل اوښان د هغه سړی په اوښانو کښې نه ګډوی د چا اوښان چه صحت مند دی، هغه سړی د ابوهریره رضی الله عنه نه د دې حدیث د اوریدلو نه پس تپوس اوکړو په طور د اشکال چه تاسو خو ماته دا حدیث مخکښې بیان کړې وو . ﴿ لا عدوی ولا صفر ولا هامة ﴾ مطلب دا دې چه تاسو چه ماته اوس کوم حدیث بیانوئ دا ستاسو د بیان کړې مخکښې حدیث خلاف دې، نو په دې باندې ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل چه دا حدیث ما تاسو ته نه دې بیان کړې، یعنی د ﴿ لا عدوی ولا صفر ﴾ حال دا چه واقعه دا ده چه دا حدیث هم د هغوی بیان کړې شوې دې لکه چه پورته په متن کښې تیر شوې دی، هم په دې وجه وړاندې امام زهری رحمه الله د ابوسلمه نه نقل کوی : ﴿ وَمَا سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ نَسِيَ حَدِيثًا قَطُّ غَيْرَهُ ﴾ یعنی د ابوهریره رضی الله عنه نه یو حدیث هم نه دې هیر شوې سوا د دې حدیث نه ﴿ لا عدوی ولا صفر ﴾....

په دې حدیث کښې درې اجزاء دی اول لاعدوی کوم چه مونږ پورته بیان کړې دی، دویم ﴿ لا صفرا ﴾ او دریم ﴿ لا هامة ﴾ د دې دویم او دریم جزء تفسیر په وړاندې روایت کښې راوران دې. والحدیث اخرجه البخاری، ومسلم مطولا ومختصرا، قاله المنذری.

**په دوه متعارض احادیثو کښې تطبیق :**

د ﴿ لا عدوی ﴾ په باره کښې مشهور اشکال دا دې چه دا د هغه دویم حدیث خلاف دې چه په هغې کښې دی ﴿ فر من المجذوم فرارک من الاسد ﴾ چه د هغې نه معلومیږی چه د جذام مرض د امراض متعدیه نه دې، د یو نه بل ته لګیږی لهذا د دې نه ځان بچ کول پکار دی، د دې دوه جوابونه دی اول دا چه د﴿ لا عدوی ﴾ نه مقصود د مطلق اعداء نفی نه ده بلکه د تاثیر نفی مقصود ده، یعنی د یو سړی مرض بل سړی ته پخپله نه لګیږی بلکه د الله پاک په اذن باندې لګیږی، هغه چه کله غواړی هله لګیږی، او د بعضو مرضونو په باره کښې د الله پاک عادت دا جاری دې چه هغه ئې لګوی او جذام هم په هغې کښې یو دی لهذا د الله پاک د تقدیر نه ویره کولو سره د هغې نه بچ کیدل پکار دی، او دویمه توجیه دا کړې شوې ده چه د ﴿ لا عدوی ﴾ والا حدیث خو په خپل عموم باندې دې مطلقا یو بیماری بل ته نه لګی، او دا دویم حدیث د جذام والا په سد ذرائع باندې حمل دې یعنی د مجذوم نه د تختیدلو حکم په دې وجه نه شی ورکولې چه د جذام بیماری بل ته لګیږی بلکه د عقیدې دفساد نه د بچ کیدلو دپاره وئیلې شی چه هغه ته نزدې مه ورځئ، هسې نه چه څوک په تقدیر الهی سره په جذام کښې اخته شی او هغه دا اوګڼړی چه زه چونکه د مجذوم خواله تلې اوم په دې وجه ما ته دا بیماری اولګیده.

دا تعارض او د جواب بحث تاسو په شرح نخبة الفكر كښې هم لوستلې دې او يو جواب د دې تعارض دا هم وركړې شوې دې، كما ذكره المنذرى فى المختصر : چه د احتياط او د احتراز روايت ﴿ لا يوردن ﴾ او ﴿ فر من المجذوم ﴾ وغيره منسوخ دى، او د ﴿ لا عدوى ﴾ والا حديث ئې ناسخ دې.

[۳۹۱۲](١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا عَدْوَى وَلَا هَامَةَ وَلَا نَوْءَ وَلَا صَفَرَ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى نه ديو كس نه بل كس ته مرض لګي اونه دخاروي په شكل كښې دمړي روح دنياته راځي، اونه دصفري مياشت سپيره ده.

[۳۹۱۳](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ بْنِ الْبَرْقِيِّ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْحَكَمِ، حَدَّثَهُمْ، قَالَ: أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي ابْنُ عَجْلَانَ، حَدَّثَنِي الْقَعْقَاعُ بْنُ حَكِيمٍ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مِقْسَمٍ، وَزَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا غُولَ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى : بت چاته دنقصان رسولو اختيار نه لري.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « لاَ غُولَ » ﴾

غول چه د هغې معنى غيلان راځى د جناتو يو قسم دې چه د هغوى په باره كښې به اهل جاهليت اعتقاد ساتلو چه د هغه دپاره په اضلال او اهلاک كښې تاثير دې يعنى په ځنګل كښې ځانله سړې د لارې نه لرې كول او ورک كول او دا چه هغه په مختلف صورتونو كښې متشكل كيږى په هندوستان كښې خو دا اوس هم د غول بيابانى په نوم باندې مشهور دې او د دې نه خلق ويريږى. خو مقصود په حديث كښې د هغوى د وجود نفى نه ده بلكه د تاثير نفى ده پس په بعضو رواياتو كښې دى چه هغوى د اذان نه تختى، او د هغه نه د بچ كيدلو دپاره آذان كولې شى.

[۳۹۱٤](٣) قَالَ أَبُو دَاوُد: قُرِئَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ وَأَنَا شَاهِدٌ، أَخْبَرَكُمْ أَشْهَبُ، قَالَ: سُئِلَ مَالِكٌ: عَنْ قَوْلِهِ: لَا صَفَرَ، قَالَ: إِنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوا يُحِلُّونَ صَفَرَ يُحِلُّونَهُ عَامًا، وَيُحَرِّمُونَهُ عَامًا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا صَفَرَ.

امام ابوداؤد فرمائى چه دا حديث حارث بن مسكين ته واورولې شو اوزه هلته موجود وم چه اشهب خبر وركړو او وې فرمائيل چه دامام مالك نه د لا صفرپه باره كښې تپوس وكړې شو هغه اوفرمائيل چه دجاهليت په زمانه كښې به كله كله دصفر مياشت حلاله ګڼرلې شوه اوكله كله به ئې دصفري مياشت حرامه اوګرځوله او محرم به ئې حلال ګڼرلو، نوددې درد دپاره نبى ﷺ اوفرمائيل چه دصفري په مياشت كښې هيڅ تاثيرنشته.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٠٦٨)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الطب ٣٣ (٢٢٢٠)، مسند احمد (٢/٣٩٧) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٣٢٢، ١٢٨٢٩، ١٢٨٦٨) (حسن صحيح)

(٣): تفرد به أبو داود (صحيح)

**قوله**: ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قُرِئَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ وَأَنَا شَاهِدٌ أَخْبَرَكُمْ أَشْهَبُ قَالَ سُئِلَ مَالِكٌ عَنْ قَوْلِهِ « لاَ صَفَرَ » الخ ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله د خپل استاد حارث بن مسکين نه په خپل سند سره نقل کوی چه د امام مالک رحمه الله مشهور شاګرد اشهب فرمائی : د امام مالک رحمه الله نه تپوس اوکړې شو د ﴿ لا صفر ﴾ په باره کښې نو هغوی اوفرمائيل چه اهل جاهليت به محرم نه د صفر مياشت وئيله او دا به ئې حلالوله يعنی هم هغه د کوم نه چه په نسئ سره تعبير کولې شي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې نفی فرمائی چه دا غلطه ده او نسئ ناجائز ده.

**قوله**: ﴿ قُرِئَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ ﴾ په کتاب الخراج کښې هم په بعض ځايونو کښې راغلې دې دا هم هغه حارث بن مسکين دې د چا نه چه امام نسائی رحمه الله په کثرت سره روايت کوی، او په يو خاص طريقې سره روايت کوی، يعنی د اخبار او تحديث نه علاوه په داسې طريقه چه د حارث بن مسکين مخکښې دا حديث اولوستلې شو کوم وخت چه په مجلس کښې زه هم موجود اوم. د هغوی په باره کښې دا واقعه هم مشهوره ده چه دې د امام نسائی رحمه الله نه خفه وو هغوی سره ئې خفګان وو په دې وجه به ئې امام نسائی رحمه الله په مجلس کښې مخامخ نه راتلو، په يو ګوټ کښې به ئې د هغوی نه اوريدل کول زما دلته دا خيال راځی چه د امام ابوداؤد رحمه الله سره هم د هغوی هم دغه شان خفګان وو او هم په دې وجه به قرأت کونکې بل څوک وو او امام ابوداؤد رحمه الله به صرف اوريدونکې وو. والله تعالی اعلم

[٣٩١٥](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لاَ عَدْوَى وَلاَ طِيَرَةَ، وَيُعْجِبُنِي الْفَأْلُ الصَّالِحُ وَالْفَأْلُ الصَّالِحُ الْكَلِمَةُ الْحَسَنَةُ".

دانس رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل ديو کس نه بل کس ته مرض نه لګي اوبدفالي نيول ئې بنياده خبره ده اوزمانيك فال خوښ وي اونيك فال مطلب يوه ښه خبره ده (يعنی ديوار په کولوکښې دچادخولې نه ښه خبره اوريدل او په هغې باندې قياس کول چه انشاء الله زما شروع کړې شوې کار به انجام ته ورسيږي نوداجائزدي).

**قوله**: ﴿ وَالْفَأْلُ الصَّالِحُ الْكَلِمَةُ الْحَسَنَةُ ﴾ يعنی په اسلام کښې بدفالی خو نشته خو نيک فالی پکښې شته، لکه چه يو انسان د کور نه اوځی او څوک داسې سړې ئې مخې له راشی چه د هغه نوم سهيل دې نو د هغه نه د سهولت فال نيول چه د کوم کار دپاره د کور نه وتلې دې په هغې کښې به انشاء الله سهولت وی. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

[٣٩١٦](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ قَالَ: قُلْتُ لِمُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ رَاشِدٍ، قَوْلُهُ هَامَ، قَالَ: كَانَتِ الْجَاهِلِيَّةُ تَقُولُ: لَيْسَ أَحَدٌ يَمُوتُ، فَيُدْفَنُ، إِلاَّ خَرَجَ مِنْ قَبْرِهِ هَامَةٌ، قُلْتُ: فَقَوْلُهُ "صَفَرَ" قَالَ: سَمِعْتُ أَنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ يَسْتَشْئِمُونَ بِصَفَرَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ صَفَرَ"، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَقَدْ سَمِعْنَا مَنْ يَقُولُ هُوَ وَجَعٌ يَأْخُذُ فِي الْبَطْنِ، فَكَانُوا يَقُولُونَ هُوَ يُعْدِي، فَقَالَ: "لاَ صَفَرَ".

---

(١): صحيح البخاري/الطب ٤٤ (٥٧٥٦)، ٥٤ (٥٧٧٦)، سنن الترمذي/السير ٤٧ (١٦١٥)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٨)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/السلام ٣٤ (٢٢٢٤)، مسند احمد (١١٨/٣، ١٥٤، ١٧٨) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود (صحيح)

د بقيه نه روايت دې فرمائى چه د محمد ابن راشد نه مې تپوس اوکړو چه دنبى ﷺ ددې قول وهام، نشته څه مطلب دې؟ هغه اوفرمائيل د جاهليت په زمانه کښې به خلقووئيل هريوکس چه وفات کيږي اوبياهغه په قبرکښې دفن کولې شي نودهغه کوپړى دقبرنه بهر راوځي او راځى. مابيا تپوس اوکړو چه د لاصفر څه معنى ده هغه اووئيل دجاهليت په زمانه کښې به خلقو دصفر مياشت سپيره ګڼله نوپه دې وجه باندې نبى ﷺ اوفرمائيل د صفري دمياشتي څه تاثيرنشته، محمد بن راشد اووئيل چه ما دبعضو کسانو نه اوريدلى دى چه وئيل ئې چه صفر په خيټه کښې ديودرد نوم دې اهل عربو به وئيل چه دا درد ديوکس نه بل کس ته لګي نوپه دې مناسبت باندې نبى ﷺ اوفرمائيل صفر نشته.

## شرح الحديث :

قوله: ﴿ قُلْتُ لِمُحَمَّدٍ - ابْنَ رَاشِدٍ - قَوْلُهُ « هَامَةَ ». قَالَ كَانَتِ الْجَاهِلِيَّةُ تَقُولُ لَيْسَ أَحَدٌ يَمُوتُ فَيُدْفَنُ إِلاَّ خَرَجَ مِنْ قَبْرِهِ هَامَةً ﴾ هامة په لغت کښې هغه مارغۀ ته وائى د کوم نوم چه ګونګې دې، او د هامة معنى په لغت کښې د کهوپړئ هم راځى، د جاهليت په زمانه کښې د خلقو دا خيال وو چه د کوم مقتول قصاص او خون بها نه شى اخستلې نو د هغه د دفن کيدو نه پس د هغه په سر کښې ګونګې راوځى (قبر څيرلو سره) او بهر ته په راتلو سره د يو اوچت کور په چهت باندې کينى او چغې وهى، او ګويا هغه په خپله ژبه کښې دا وائى چه ﴿ اسقونى اسقونى ﴾ په ما باندې د قاتل وينه اوڅکئ، ګويا تر څو چه د هغه قصاص نه وى اخستلې شوى زه به د دې ځائې نه واپس نه شم، دې ځناور ته صدى هم وائى په مصباح اللغات کښې ليکلې دى چه د ګونګى يو قسم دې چه د هغه سر لوئې وى او هغه په خوشو ځايونو کښې اوسيږى، د هغې نوم هامه هم دې ځنګه چه هامه په معنى د کهوپړئ راځى د صدى ئې هم يو لغوى معنى د دماغ ليکلې ده د دې نه په روستو روايت کښې راځى چه ابن جريج د خپل استاد عطاء نه تپوس اوکړو : ﴿ قُلْتُ فَمَا الْهَامَةُ ؟ قَالَ يَقُولُ النَّاسُ الْهَامَةُ الَّتِى تَصْرُخُ هَامَةُ النَّاسِ وَلَيْسَتْ بِهَامَةِ الإِنْسَانِ إِنَّمَا هِىَ دَابَّةٌ ﴾ يعنى دا خلق چه وائى چه دا ګونګې چغې وهى د کوم نوم چه هامة دې دا هامة الناس دې يعنى د سړى کهوپړئ. ﴿الهامة التى تصرخ﴾ موصوف سره د صفت نه مبتدا او ﴿ هامة الناس ﴾ ئې خبر..... حال دا چه دا د انسان کهوپړئ نه ده دا خو يو ځناور او يو مارغۀ دې.

بيا وړاندې په دې روايت کښې د هغه صفر په باره کښې سوال دې نو هغوى يعنى محمد بن راشد جواب ورکړو چه مونږ دا اوريدلې دى چه بعض اهل جاهليت به د صفر د مياشتې نه بدفالى نيوله او دا به ئې نامبارکه ګڼرله په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ لا صفر ﴾ چه په اسلام کښې داسې نشته، دا مياشت نامبارکه نه ده، بيا محمد بن راشد د دې يو بل تفسير نقل کړو چه بعض خلق د صفر په باره کښې دا وائى چه دا د خيټې د يو تکليف نوم دې چه د هغې په باره کښې د خلقو دا خيال وو چه دا تکليف نورو ته لګى نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ﴿ لا صفر ﴾

[٣٩١٧](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ كَلِمَةً فَأَعْجَبَتْهُ، فَقَالَ: أَخَذْنَا فَأْلَكَ مِنْ فِيكَ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ يوه خبره واوريده کومه چه هغه ښه وګڼله نووئې فرمائيل ماستاسوفال ستاسو دخولې نه واوريدو (يعنى ددې انجام به بهتروي).

[٣٩١٨](٢) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: يَقُولُ: "وَجَعٌ يَأْخُذُ فِي الْبَطْنِ، النَّاسُ الصَّفَرُ، قُلْتُ: فَمَا الْهَامَةُ؟، قَالَ: يَقُولُ النَّاسُ: الْهَامَةُ الَّتِي تَصْرُخُ هَامَةُ النَّاسِ وَلَيْسَتْ بِهَامَةِ الْإِنْسَانِ إِنَّمَا هِيَ دَابَّةٌ".

دعطاء نه روايت دې فرمائي چه خلقوبه وئيل صفر ديودرد نوم دې کوم چه په خيټه کښې وي، ابن جريج وئيلى دى بياما دهامه تپوس اوکړو چه هامه څه شې دې عطاء اووئيل هامه يوځاروې دې او څوک چه دا وائي چه دا دانسان کوپړى وي حالانکه هغه دانسان کوپړۍ نه وي بلکه هغه يوځاروې وي.

[٣٩١٩](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ شَيْبَةَ الْمَعْنَى، قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ أَحْمَدُ، الْقُرَشِيُّ قَالَ: "ذُكِرَتِ الطِّيَرَةُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَحْسَنُهَا الْفَأْلُ وَلَا تَرُدُّ مُسْلِمًا فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يَكْرَهُ، فَلْيَقُلِ اللَّهُمَّ لَا يَأْتِي بِالْحَسَنَاتِ إِلَّا أَنْتَ، وَلَا يَدْفَعُ السَّيِّئَاتِ إِلَّا أَنْتَ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِكَ".

د احمد قرشي نه روايت دې فرمائي چه دنبي ﷺ په وړاندې دبدفالي نيولو ذکر وشو نووئې فرمائيل ددې په بهترينو اقساموکښې فال دې اوبدفالي نيول دکوم مسلمان دپاره دکار نه منع کوي او په تاسوکښې چه کله څوک ګوم داسې شې اووينې کوم چه بد ګڼرې نو دا کلمات دې اووائي: «اللّهمّ لا يأتي بالحسنات إلا أنت ولا يدفع السيئات إلا أنت ولاحول ولا قوة إلا بك». يعنى اې الله ستانه علاوه څوک خير نشي رسولې اوستانه علاوه څوک ضرر نشي لرې کولې اود بدئ نه دمنع کيدو طاقت اودنيکۍ کولو طاقت صرف ستاپه توفيق سره حاصليږي.؟؟

قوله: ﴿ أَحْسَنُهَا الْفَأْلُ وَلَا تَرُدُّ مُسْلِمًا ﴾ طيرة د جنس درجه ده مطلق فال راويستلو ته وائي که ښه وي او که بد وي، او د فال استعمال د نوع په طور په ښه فال کښې هم کيږي په دې وجه چه کله د رسول الله ﷺ په مخکښې د طيره ذکر راغلو نو رسول الله ﷺ د فال حسن تحسين اوفرمائيلو چه هغه ښه څيز دې اسلام هغې لره خوښوى په خلاف د بد فال، او بيا فرمائي ﴿ولا ترد مسلما ﴾ چه انسان دې په خپل بد فال باندې نه چليږى، او يو مسلمان لره د بد فال په وجه باندې د خپل کار نه منع کيدل نه دى پکار، يعنى اول خو بد فال نيول نه دى پکار او که د هغې خيال په زړه کښې راشى بې اختياره نو بيا هغه د هغه کار نه مانع کيدل نه دى

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٨٨) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود (صحيح)

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٩) (ضعيف)

پکار کوم چه کول دی لکه چه مخکښې تير شو: ﴿ وَمَا مِنَّا إِلاَّ وَلَكِنَّ اللَّهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ ﴾ بیا وړاندې په حدیث کښې دی چه که د یو سړی مخکښې څه ناخوښه څیز راشی (نو د هغې د ضرر نه د بچ کیدو دپاره) دا لوستل پکار دی:

﴿ اللَّهُمَّ لاَ يَأْتِي بِالْحَسَنَاتِ إِلاَّ أَنْتَ وَلاَ يَدْفَعُ السَّيِّئَاتِ إِلاَّ أَنْتَ وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِكَ ﴾

[۳۹۲۰](1) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ لَا يَتَطَيَّرُ مِنْ شَيْءٍ، وَكَانَ إِذَا بَعَثَ عَامِلًا سَأَلَ عَنِ اسْمِهِ، فَإِذَا أَعْجَبَهُ اسْمُهُ فَرِحَ بِهِ وَرُئِيَ بِشْرُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ، وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهُ رُئِيَ كَرَاهِيَةُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ، وَإِذَا دَخَلَ قَرْيَةً سَأَلَ عَنِ اسْمِهَا، فَإِنْ أَعْجَبَهُ اسْمُهَا فَرِحَ وَرُئِيَ بِشْرُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ، وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهَا رُئِيَ كَرَاهِيَةُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ".

عبد الله بن بریده د خپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ به په کوم څیز باندې بدفالي نه نیوله او چه کله به ئې څوک کوي عهدې ته دانجام ورکولو دپاره لیږلو نو نبی ﷺ به د هغه د نوم معلومات وکړو که چرې د هغه نوم به ئې خوښ شو نو نبی ﷺ به ورته خوشحاله شو او د غه خوشحالي به د هغه په مخ باندې سرګنده شوه او که چرې د هغه نوم به ئې خوښ نه شو نو د ناخوښې اثار به ئې په مخ مبارك باندې سترګند شول او کله چه به نبی ﷺ یو کلي ته داخلیدو نو د دغه کلی د نوم تپوس به ئې وکړو که چرې د دغه کلی نوم به ئې خوښ شو نو نبی ﷺ به خوشحاله شو او دغه خوشحالي به د هغه په مخ باندې سرګنده شوه او که چرې د هغه کلی نوم به ئې خوښ نه شو نو د ناخوښئ آثار به ئې په مخ مبارك باندې سرګند شول.

قوله: ﴿ وَكَانَ إِذَا بَعَثَ عَامِلاً سَأَلَ عَنِ اسْمِهِ فَإِذَا أَعْجَبَهُ اسْمُهُ فَرِحَ بِهِ ورؤى بِشْرُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهُ رُؤِىَ كَرَاهِيَةُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ ﴾ يعنی کله چه به رسول الله ﷺ یو عامل چرته لیږلو نو د هغه د لیږلو نه مخکښې به ئې د هغه نوم تپوسلو، که د هغه نوم به ښه وو نو په دې باندې به رسول الله ﷺ خوشحالیدو او هغه خوشحالی به د هغوی د مخ مبارک نه ښکاره کیده (دا خو نیک فالی شوه) او که د رسول الله ﷺ به د هغوی نوم خوښ نه شو نو دا ناخوښی به د هغوی په مخ مبارك باندې ښکاره کیده، دا په ظاهره بدفالی ده) خو شارحینو د دې مطلب دا لیکلې دې چه دا اثر د بدفالئ د وجې نه نه وو بلکه د نیک فالئ د حاصلیدو دا اثر وو.

وړاندې په حدیث کښې هم دغه شان د هغه کلی په باره کښې راغلې دی چه په هغې کښې به هغوی د سفر دوران کښې داخلیدل، په دې باندې بعض علماء کرامو لیکلې دی چه سړی له پکار دی چه د خپل اولاد او خادمانو دپاره ښه نوم تجویز کړی چه نیک فالی حاصل شی. والحديث اخرجه النسائي، قاله النووی

[۳۹۲۱](2) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنِي يَحْيَى، أَنَّ الْحَضْرَمِيَّ بْنَ لَاحِقٍ، حَدَّثَهُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: "لَا هَامَةَ وَلَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ، وَإِنْ تَكُنِ الطِّيَرَةُ فِي شَيْءٍ، فَفِي الْفَرَسِ وَالْمَرْأَةِ وَالدَّارِ".

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۷/۵) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۸۶۱)، وقد أخرجه: حم (۱۸۰/۱، ۱۸۶) (صحيح)

دسعید بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله به فرمائیل نه هامه شته اونه عدوی اونه سپیره والې په کوم شي کښې اوکه چرې سپیره والې اوبدفالي وې نوپه درې څیزونوکښې به وې په اس کښې اوپه ښځه کښې او په کور کښې.

**قوله:** ﴿عَنْ سَعْدِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَقُولُ « لاَ هَامَةَ وَلاَ عَدْوَى وَلاَ طِيَرَةَ وَإِنْ تَكُنِ الطِّيَرَةُ فِى شَىْءٍ فَفِى الْفَرَسِ وَالْمَرْأَةِ وَالدَّارِ » ﴾

دا حدیث خو د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه دې، وړاندې په حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما کښې هم داسې راروان دی.

[۳۹۲۲]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ حَمْزَةَ، وَسَالِمٍ ابْنَيْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الشُّؤْمُ فِي الدَّارِ وَالْمَرْأَةِ وَالْفَرَسِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قُرِءَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ وَأَنَا شَاهِدٌ، أَخْبَرَكَ ابْنُ الْقَاسِمِ، قَالَ: سُئِلَ مَالِكٌ عَنِ الشُّؤْمِ فِي الْفَرَسِ وَالدَّارِ، قَالَ: كَمْ مِنْ دَارٍ سَكَنَهَا نَاسٌ، فَهَلَكُوا ثُمَّ سَكَنَهَا آخَرُونَ، فَهَلَكُوا؟ فَهَذَا تَفْسِيرُهُ فِيمَا نَرَى وَاللَّهُ أَعْلَمُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: حَصِيرٌ فِي الْبَيْتِ خَيْرٌ مِنَ امْرَأَةٍ لَا تَلِدُ.

دعبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ق فرمائیلی دی سپیره والی په درې څیزونو کښې وي یو په کور بل په ښځه کښې اودریم په اس کښې. ابوداؤد فرمائی دامام مالك نه تپوس اوکړې شو چه ایا په کور اوپه اس کښې سپیره والې وي؟ هغه اووئیل یوخوکورونه داسې وو چه په هغې کښې خلق اوسیدل اوبیاهغوی مړه شول نوهلته نور خلق آباد شول بیا هغوی هم مړه شول نودادکور سپیره والې شو الله تعالی ښه پوهیږي.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ.... أَخْبَرَكَ ابْنُ الْقَاسِمِ قَالَ سُئِلَ مَالِكٌ عَنِ الشُّؤْمِ فِى الْفَرَسِ وَالدَّارِ قَالَ كَمْ مِنْ دَارٍ سَكَنَهَا نَاسٌ فَهَلَكُوا ثُمَّ سَكَنَهَا آخَرُونَ فَهَلَكُوا فَهَذَا تَفْسِيرُهُ الخ﴾

## په روایت الباب کښې دوه حیثیتونو سره تعارض او د دواړو جواب:

په دې دواړو احادیثو کښې اولا د مطلق طیرة د نفی نه پس د درې څیزونو استثناء کړې شوې ده، فرس، مراة او دار.... خو په ړومبی حدیث کښې استثناء په طور د تعلیق ده یعنی ﴿ وان تکن الطیرة فی شی ﴾ او په دویم حدیث کښې بغیر د تعلیق نه ده ﴿ الشؤم فی ثلاثة ﴾ په ظاهر کښې دا تعارض دې د دې جواب خو هم دا ورکړې شوې دې چه چرته تعلیق نشته هلته هم دا حکم هم په طور د تعلیق دې یعنی که بدفالی په یو څیز کښې وې نو هغه به په دې دریو څیزونو کښې وې، خو چونکه په اسلام کښې بدفالی په یو څیز کښې هم نشته لهذا په دې دریو څیزونو کښې هم نشته او د امام قرطبی رحمه الله رائې دا ده چه د تعلیق والا

---

[1]: صحیح البخاري/الجهاد ۴۷ (۲۸۵۸)، النكاح ۱۷ (۵۰۹۳)، الطب ۴۳ (۵۷۵۳)، ۵۴ (۵۷۷۲)، صحیح مسلم/السلام ۳۴ (۲۲۲۵)، سنن الترمذي/الأدب ۵۸ (۲۸۲۴)، سنن النسائي/الخيل ۴ (۳۵۹۹)، سنن ابن ماجه/النكاح ۵۵ (۱۹۹۵)، (تحفة الأشراف: ۶۸۶۴، ۱۸۳۷۶، ۶۶۹۹)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاستئذان ۸ (۲۲)، مسند احمد (۲/۸، ۳۶، ۱۱۵، ۱۲۶) (صحیح)

روايت مقدم دې دې وخته پورې رسول اللهﷺ ته په دې څيزونو کښې د تحقق شؤم علم نه وو شوې، بيا روستو چه هغوی ته د دې علم اوشو چه په دې دريو کښې وی نو هغوی بالجزم اوفرمائيل چه ﴿ الشوم فی الثلاثة ﴾، او يو جواب دا ورکړې شوې دې چه ﴿ ان تکن الطيرة ﴾ سره مقصود اظهار د تردد او شک نه دې بلکه په دې سره مقصود اثبات په طريقه د مبالغې، لکه چه څوک داسې اوائی چه په دنيا کښې که څوک دوست دې نو هغه زيد دې دغه شان دلته هم په دې حديث کښې مقصود دا دې چه په دې درې واړو کښې طيرة بالضرور او باليقين ده دا خو جواب شو د هغه دوه مختلفو روايتونو خو دويم اختلاف اوس هم باقی دې چه ﴿ لا عدوی ولا طيرة ﴾ کښې د شوم علی الاطلاق نفی ده او په دې حديث کښې په دې اشياء ثلاثه کښې شوم ثابت دې، د دې جواب دا دې چه دا درې د دې نفی د عموم نه مستثنی دی، خو د اهل جاهليت د مسلک موافق نه چه په دې درې څيزونو کښې تاثير اومنلې شی فی حد ذاتها، بلکه د اهل اسلام د مسلک په طريق باندې چه الله پاک مسبب الاسباب دې هم هغه په بعض څيزونو کښې د نفع او ضرر تاثير پيدا کوی نو هم هغه په دې دريو کښې اثر ضرور پيدا کړې دې، دې رائې لره بالتصريح اختيار کونکې امام مالک رحمه الله دې لکه چه مخکښې په متن کښې ذکر شوچه هغوی اوفرمائيل تاسو ګورئ نه چه څومره ډير کورونه داسې دی چه هغې ته خلق راغلل او استوګنه ئې پکښې اختيار کړه خو هغه تباه شو او خراب شو بيا چه نور خلق هغې ته راشی نو د هغوی هم دا حال شی يعنی بعض کورونه داسې وی [1] خو د امام مالک رحمه الله قول کوم چه دلته په ابوداؤد کښې ذکر دې په اواخر دموطاء کښې چه کوم باب دې ﴿ ما يتقی من الشوم ﴾ په عنوان سره هلته هغوی دا د اشياء ثلاثه والاحاديث خو ذکرکړې دې خودهغوی رائې هلته د موطاء په موجوده نسخه کښې نشته بلکه دابه غالبا دموطاء چه کوم روايت د ابن القاسم نه دې په هغې کښې به وی.

امام ترمذی رحمه الله په کتاب الادب ﴿ باب ما جآء فی الشوم ﴾ کښې اول حديث د ابن عمر رضی الله عنهما ﴿ الشوم فی الثلاثة الحديث ﴾ په باره کښې فرمائيلې دی ﴿ هذا حديث حسن صحيح ﴾ وفی تحفة الاحوذی : واخرجه الشيخان.... د دې نه پس ترمذی کښې دی : ﴿ وقد روی عن النبی انه قال ان کان الشوم فی شئ ففی المراة والدابة والمسکن ﴾ په دې باندې په تحفة الاحوذی ۸/۹۵ کښې دی رواه الشيخان [2] عن ابن عمر، وکذا عن سهل بن سعد اه.

---

[1] ، دا خو شوم فی الدار شو خو شوم فی الفرس والمراة هغوی نه دې بيان فرمائيلې، بعض علماء کرامو وئيلې دی چه د زنانه دپاره شؤم دا دې چه هغه شنده شی د هغې اولاد نه وی او دا چه د خاوند مخکښې بدزبانی کوی او شوم الفرس دا دې چه په هغې باندې جهاد اونکړې شی.

[2] ، معلومه شوه چه دا دواړه روايتونه د تعليق او بغير د تعليق نه د صحيحينو دی، لهذا په دې کښې يو ته هم ضعيف نه شی وئيلې کيدې او د تطبيق بين الحديثين شکلونه هم هغه دی کوم چه پورته ذکر شو.

[۳۹۲۳](١)حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، وَعَبَّاسُ الْعَنْبَرِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَحِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ فَرْوَةَ بْنَ مُسَيْكٍ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرْضٌ عِنْدَنَا يُقَالُ لَهَا أَرْضُ أَبْيَنَ هِيَ أَرْضُ رِيفِنَا وَمِيرَتِنَا وَإِنَّهَا وَبِئَةٌ، أَوْ قَالَ: وَبَاؤُهَا شَدِيدٌ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دَعْهَا عَنْكَ فَإِنَّ مِنَ الْقَرَفِ التَّلَفَ".

د فروه بن مسيك نه روايت دې دې وائي ما عرض اوکړو اې د الله رسوله زمونږ سره زمکه ده کومې ته چه مونږه ابين وايو اودغه زمکه زرغونه او د فصلونو زمکه ده او زمونږه دغلې ځائې دې هلته هميشه افتونه راځي، يادا چه راوی اووئيل ددغه ځائې وباډيره سخته وي نونبی ﷺ اوفرمائيل په دې زمکه کښې اوسيدل پريږده، دوباپه زمکه کښې په اوسيدوسره انسان هلاکيږي.

**قوله:** ﴿ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرْضٌ عِنْدَنَا يُقَالُ لَهَا أَرْضُ أَبْيَنَ هِيَ أَرْضُ رِيفِنَا وَمِيرَتِنَا وَإِنَّهَا وَبِئَةٌ الخ ﴾

يو صحابی رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو چه زمونږ يوه زمکه ده چه د هغې نوم ارض ابين دې هغه زمونږ د فصل او غلې زمکه ده خو هغه ځائې وبائی دې يعنی بيمارئ په هغې کښې زياتې وی نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل هغه زمکه پريږدئ.

**قوله:** ﴿ فَإِنَّ مِنَ الْقَرَفِ التَّلَفَ ﴾ قرف يعنی د بيمارئ نزديکت او د هغې سره خلط ملط کيدل، يعنی د بيمارئ په قرب کښې هلاکت دې. دا حديث دې د ﴿ لا عدوی ﴾ خلاف او نه ګنړلې شی بلکه دا من باب الطب دې يعنی د آب وهوا ناموافقت....

[۳۹۲٤](٢)حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا كُنَّا فِي دَارٍ كَثِيرٌ فِيهَا عَدَدُنَا، وَكَثِيرٌ فِيهَا أَمْوَالُنَا، فَتَحَوَّلْنَا إِلَى دَارٍ أُخْرَى فَقَلَّ فِيهَا عَدَدُنَا وَقَلَّتْ فِيهَا أَمْوَالُنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ذَرُوهَا ذَمِيمَةً".

د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه يوکس نبی ﷺ ته عرض وکړو مونږه په يوکور کښې وو په کوم کښې چه زمونږ تعداد زيات وو او مال هم ډير وو بيا مونږ ددغه کور نه بل کورته لاړو نو په دې بل کورکښې زمونږ مال هم کم شو اوتعداد هم کم شو (يعنی مړه شو) نونبی ﷺ اوفرمائيل دغه کور ددې بدحالئ سره پريږدئ.

**قوله:** ﴿ إِنَّا كُنَّا فِي دَارٍ كَثِيرٌ فِيهَا عَدَدُنَا وَكَثِيرٌ فِيهَا أَمْوَالُنَا فَتَحَوَّلْنَا إِلَى دَارٍ أُخْرَى الخ ﴾

يو سړی رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو چه په کوم کور کښې مونږ مخکښې اوسيدو په هغې کښې مونږ ښه خوشحاله او آباد وو زمونږ د افرادو تعداد هم زيات وو او مالونه مو هم ډير وو، د دې نه پس چه مونږ بيا کوم کور ته منتقل شو نو هلته زمونږ د افرادو تعداد

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٥١/٣) (ضعيف الإسناد)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٣) (حسن)

کیمیدل شروع شو او په مالونو کښې هم... رسول اللهﷺ اوفرمائیل: ﴿ذَرُوهَا ذَمِيمَةً﴾ د دې توجیه هم هغه کړې شوې ده کومه چه د پورته حدیث وه.

[۳۹۲۵]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا مُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَخَذَ بِيَدِ مَجْذُومٍ فَوَضَعَهَا مَعَهُ فِي الْقَصْعَةِ، وَقَالَ: كُلْ ثِقَةً بِاللَّهِ وَتَوَكُّلًا عَلَيْهِ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم و دیوجذاي لاس ونیولو اودخپل ځان سره ئې په پلېټ کښې کیخودو (یعنی دشریك خوړلو دپاره) او وئې فرمائیل دالله تعالی په ذات باندې په اعتماد اوتوکل کولوسره شریك خوراك کوو.

**قوله:** ﴿عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– أَخَذَ بِيَدِ مَجْذُومٍ فَوَضَعَهَا مَعَهُ فِي الْقَصْعَةِ وَقَالَ « كُلْ ثِقَةً بِاللَّهِ وَتَوَكُّلاً عَلَيْهِ » ﴾

یو کرت رسول اللهﷺ یو مجذوم د لاس نه اونیولو او ځان سره ئې په خوراک کښې شریک کړو او وې فرمائیل چه په الله پاک باندې یقین کولو سره اوخوره.

**(اشکال):**

دلته دا سوال واردیږی چه د توکل حکم رسول اللهﷺ دې مجذوم ته ولې اوکړو، ځکه چه که په دې کښې احتیاط ته حاجت وې نو رسول اللهﷺ ته وو هغه مجذوم ته خو نه وو،

**(جواب):**

د دې جواب دا دې چه د رسول اللهﷺ خو یقین وو چه هغه سره په خوراک باندې به ماته هیڅ نقصان نه وی، خو د هغه خوراک کونکی مجذوم تردد کیدې شو چه چرته ما سره په خوراک باندې رسول اللهﷺ ته تکلیف او نه رسی. پس رسول اللهﷺ د توکل هدایت هم هغه ته اوکړو (یعنی زما فکر مه کوه) کذافی هامش البذل عن الکوکب.

والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.... آخرکتاب الطب

[الحمدلله! اووم جلد ختم شو]

(): سنن الترمذي/الأطعمة ١٩ (١٨١٧)، سنن ابن ماجه/الطب ٤٤ (٣٥٤٢)، (تحفة الأشراف: ٣٠١٠) (ضعيف)